# فتح الهداية



# هداية

داول حل لپاره په آسانه معیاري پښتو
دهدایې یوه جامع شرحه

ژباړه او ترتیب

مولوي حبیب الرحمن مدني

فاضل وفاق المدارس العربيه

صداقت کتبخانه
کنهار

وَاللّٰهُ يَهْدِيْ مَنْ يَّشَآءُ اِلٰى صِرَاطٍ مُّسْتَقِيْمٍ [القرآن]

# فتح الهداية

## پښتو شرح

# هدايه

د اول ځل لپاره په آسانه معياري پښتو

د هدايې يوه جامع شرحه

تعيين د قول راجح

د هرې جملې تر څنګ ژباړه

د عنواناتو اضافه

صورت د مسئلې

پر فقهي او ضروري معلوماتو

مشتمله يوه جامع مقدمه

د حديثونو تخريج

د متن بشپړ اعراب

صرفي تحقيق

د لغاتو حل

لسم ټوک

كتاب الشفعة تا كتاب الكراهية


ژباړه او ترتيب:

مولوی حبيب الرحمن مدني

فاضل وفاق المدارس العربيه



صداقت کتب خانه – کندهار

# فهرس


كِتَابُ الشُّفْعَةِ ..... ۱
د شفعې لغوي او اصطلاحي معنیٰ او د شفعې وجه تسميه ..... ۱
د شفعې د مستحقينو ترتيب ..... ۲
په نقلي دلائلو (احاديثو) سره د شفعې ثبوت ..... ۴
په شفعه کې د امام شافعي رَحِمَهُ الله مسلک او دلائل ..... ۵
د احنافو دلائل ..... ۹
په شفعه کې د ترتيب دلائل ..... ۱۳
د شريک في نفس المبيع په موجوديت کې د نورو کسانو د محروميت بيان ..... ۱۴
د پورتنۍ مسئلې نور وضاحت او د همسايه (جَار) مصداق ..... ۱۵
د همسايه مصداق او هغه سره اړوند درې صورتونه په نقشه کې ..... ۱۶
د شريک في المبيع اقسام ..... ۱۸
د شريک في حق المبيع د حقِ شفعه شرطونه ..... ۲۰
د پورتنۍ مسئلې نور وضاحت ..... ۲۱
د شرکت جوار يو صورت ..... ۲۳
د څو شفيع کانو د موجودوالي يو صورت ..... ۲۴
په پورتنۍ مسئله کې زموږ (د احنافو) دليل ..... ۲۶
په پورتنۍ مسئله کې د يوه شفيع خپل حق ساقطول ..... ۲۹
که بعضې د شفعې مستحقين (شفيع ګان) غائب وي نو څه حکم دی ..... ۲۹
د شفعې حق کله او څنګه ثابتيږي؟ ..... ۳۱
د حق شفعه د ثابتولو طريقه (د طلب إشهاد او طلب مواثبه حيثيت) ..... ۳۳
شفيع کله د مشفوعه کور او جايداد مالک کيږي؟ (د شفعې د بشپړتيا آخري مرحله) ..... ۳۴

بَابُ طَلَبِ الشُّفْعَةِ وَالْخُصُومَةِ فِيهَا ........ ۳۷
د شفعي د طلب کولو طريقه او تفصيل ........ ۳۷
هغه کلام کوم چي پر اعراض دلالت نه کوي ........ ۴۰
د "يو مخکيني عبارت" وضاحت (د طلب مواثبه او إشهاد شرعي حيثيت) ........ ۴۲
په شفعه کي طلب اشهاد يعني گواه درول کله ضروري دي ؟ ........ ۴۳
د شفعي د طلب کولو دويمه درجه (د طلب تقرير او طلب اشهاد حکم) ........ ۴۵
د طلبِ اشهادِ ځای (چي گواه به چيري قائموي) ........ ۴۶
د طلبِ اشهاد طريقه ........ ۴۸
د طلبِ اشهاد مودت ........ ۴۹
د امام محمد رَحِمَهُ الله دليل ........ ۵۰
د امام صاحب رَحِمَهُ الله دليل ........ ۵۱
په شفعه کي د قاضي وظيفه (د شفعي د دعوې طريقه) ........ ۵۳
په پورتني صورت کي که شفيع بيّنه پيش نه کړي سي نو قاضي به له مشتري څخه قسم اخلي (د قسم طريقه) .... ۵۵
د پورتنۍ مسئلې نور وضاحت ........ ۵۷
که شفيع د کور پر شراء بيّنه پيش نه کړی سي نو قاضي به له مشتري څخه څنگه قسم اخلي؟ ..... ۵۸
پر شفيع د قاضي په مجلس کي ثمن حاضرول ضروري دي، که نه (د فقهاوؤ قولونه) ........ ۵۹
مشتري ته تر کومه وخته د مبيع راگرځولو (شفيع ته د نه ورسپارلو) اختيار سته ........ ۶۱
شفيع د بائع سره کله مخاصمت او دعوی کولای سي ........ ۶۲
د پورتنۍ مسئلې نور وضاحت ........ ۶۴
د مشتري په حق کي د بيع فسخ کېدلو مطلب ........ ۶۵
د وکالت په ذريعه د خرڅېدونکي ځای د شفعي بيان ........ ۶۷
په شفعه کي د خيارِ عيب او خيارِ رؤيت مسئله ........ ۶۹
فَصْلٌ فِي الْاِخْتِلَافِ ........ ۷۱
که د شفيع او مشتري تر مينځ په ثمن کي اختلاف راسي، نو د چا قول معتبر دی؟ ........ ۷۱
که په پورتني صورت کي د دواړو سره بيّنه وي؟ ........ ۷۳
د مشتري او بائع د اختلاف په صورت کي د شفيع لپاره قولِ معتبر ........ ۷۷
د پورتنۍ مسئلې بل صورت ........ ۷۹

فَصْلٌ فِيْ مَا يُؤْخَذُ بِهِ الْمَشْفُوْعُ........................................ ۸۳
که بائع ثمن کم کړي نو له مشتري څخه هم کميږي (ساقطيږي) ........................ ۸۳
که مشتري د بائع لپاره په ثمن کي اضافه وکړي نو پر شفيع دا اضافه سوی ثمن نه لازميږي ........ ۸۵
د سامان په بدله کي د خرڅ کړی سوي کور د شفعي بيان........................ ۸۶
په قرض سره د خرڅ کړی سوي جايداد د شفعي بيان........................ ۸۸
په قرض سره خرڅ کړی سوی مشفوعه جايداد په نغدو رانيول........................ ۹۲
د پورتنی مسئلې نور وضاحت........................ ۹۳
د شراب يا خنزير په بدله کي د خرڅ کړی سوي جايداد د شفعي بيان ........................ ۹۵
د پورتنی مسئلې نور وضاحت........................ ۹۶
فَصْلٌ........................................ ۱۰۰
په مشفوعه جايداد کي د مشتري د تصرّفاتو بيان........................ ۱۰۱
که په مشفوعه ځمکه کي شفيع يو تصرّف وکړي او بيا دا ځمکه د بل چا مستحقه وخيږي نو څه حکم دی؟ ..... ۱۰۷
د مشفوعه کور د نړېدلو يا د مشفوعه باغ د وچېدلو او داسي نورو په صورت کي د شفيع لپاره څه حکم دی؟ ........ ۱۱۰
که مشتري د کور ودانۍ او بناء ماته کړي نو څه حکم دی ........................ ۱۱۲
که مشتري داسي ځمکه رانيسي چې په هغه کي مېوه داره درختي وي نو د شفيع لپاره څه حکم دی؟ ..... ۱۱۳
د پورتنی مسئلې نور وضاحت ........................ ۱۱۵
بَابُ مَا تَجِبُ فِيْهِ الشُّفْعَةُ وَمَا لَا تَجِبُ ........................ ۱۱۸
په کوم جايداد کي د شفعي حق حاصليږي؟........................ ۱۱۸
په کومو شيانو کي شفعه نه حاصليږي؟ ........................ ۱۲۰
د ذمي کافر لپاره هم د شفعي حق سته (د شفعي استحقاق عام دی)........................ ۱۲۳
په کوم عقد کي د شفعي حق سته او په کوم کي نسته؟........................ ۱۲۴
په کوم ځای او کوم عقد کي شفعه نه واجبيږي؟........................ ۱۲۴
په پورتنی مسئله کي د امام شافعي رَحِمَهُ اللهُ اختلاف ........................ ۱۲۶
په مهر کي د تاکل سوي کور يو خاص صورت او په هغه کي د شفعي حکم ........................ ۱۲۹
د انکار يا اقرار په صورت کي پر کور صلح وکړي نو د شفعي حکم........................ ۱۳۱
په هبه کړی سوي جايداد کي د شفعي حکم........................ ۱۳۴
د بيع بشرط الخيار په صورت کي د شفعي حکم ........................ ۱۳۵

د شراء بالخیار په صورت کې د شفعې حکم ........ ۱۳۶
په بیع فاسد کې د شفعې حکم ........ ۱۳۹
د پورتنۍ مسئلې نور وضاحت ........ ۱۴۰
د جایداد د تقسیم په صورت کې د شفعې حکم ........ ۱۴۲
د بیع د فسخ (ماتېدلو) په صورت کې د شفعې حکم ........ ۱۴۳
د پورتنۍ مسئلې نور وضاحت ........ ۱۴۴
په تقسیم کې او د خیار رؤیت په صورت کې د شفعې د عدمِ وجوب دلیل ........ ۱۴۵
بَابُ مَا تَبْطُلُ بِهِ الشُّفْعَةُ ........ ۱۴۷
د طلبِ مواثبت په پرېښوولو سره د شفعې د باطلېدلو بیان ........ ۱۴۷
د عوض اخیستلو په بدله کې د شفعې پرېښوولو حکم او تفصیل ........ ۱۴۸
د پورتنۍ مسئلې مثال ........ ۱۵۰
د شفیع په مرګ سره د شفعې د باطلېدلو بیان ........ ۱۵۱
د مشتري په مرګ سره د شفعې نه باطلېدلو بیان ........ ۱۵۳
که شفیع د شفعې تر فیصلې مخکې خپل جایداد خرڅ کړي نو د شفعې حکم ........ ۱۵۴
د مشتري وکیل یا د بائع وکیل شفیع جوړېدلای سي، که نه؟ (تفصیلي حکم) ........ ۱۵۶
د غلط قیمت اورېدلو پر بناء د شفعې پرېښودلو بیان ........ ۱۵۸
د پورتنۍ مسئلې بل صورت ........ ۱۵۹
د مشتري یا مبیع په هکله د غلط معلومات اورېدلو پر بناء د شفعې پرېښودلو بیان ........ ۱۶۰
فصل ........ ۱۶۲
د شفعې ساقطولو حیله ........ ۱۶۲
د شفعې ساقطولو بله حیله ........ ۱۶۳
د ثمن (قیمت) په عوض کې د بل شي ورکولو حیله ........ ۱۶۵
د شفعې د ساقطولو حیلې شرعي حیثیت ........ ۱۶۷
مَسَائِلُ مُتَفَرِّقَةٌ ........ ۱۶۹
که د جایداد رانیونکي یا خرڅونکي څو کسان وي نو د شفعې څه حکم دی؟ ........ ۱۶۹
د پورتنۍ مسئلې نور وضاحت ........ ۱۷۰
د مشترک کور د یوې حصې خرڅولو په صورت کې د شفعې تفصیلي حکم ........ ۱۷۱

په پورتنۍ مسئله کي يو وضاحت ............ ۱۷۴
دمأذون غلام او مالک تر مينځ د شفعي بيان ............ ۱۷۵
د کوچني هلک (صغير) له طرفه دهغه د پلار يا وصي د شفعي پرېښودلو حکم ............ ۱۷۶
په پورتنۍ مسئله کي د شيخينو رَحِمَهُمَا الله دليل ............ ۱۷۸
د پورتنۍ مسئلې بل صورت ............ ۱۷۹
كِتَابُ الْقِسْمَةِ ............ ۱۸۱
د قسمت لغوي او اصطلاحي معنیٰ ............ ۱۸۱
د قسمت سبب ............ ۱۸۱
د قسمت رکن او شرط ............ ۱۸۱
په مشترک شي کي د تقسيم شرعي حيثيت او تفصيل ............ ۱۸۱
د پورتنۍ مسئلې نور وضاحت ............ ۱۸۳
په تقسيم کي د قاضي د جبر حکم او تفصيل ............ ۱۸۵
د خلکو تر مينځ د تقسيم کولو لپاره د تقسيم کونکي (قاسم) د ټاکلو حکم او تفصيل ............ ۱۸۷
د عارضي تقسيم کونکي په ذريعه د تقسيم حکم ............ ۱۸۸
د تقسيم کونکي په ټاکلو کي د خلکو د رضا حکم ............ ۱۸۹
د تقسيم کونکو د اجتماع ممانعت ............ ۱۹۰
د تقسيم د اُجرت ورکولو په هکله تفصيل ............ ۱۹۱
د تقسيم د طلب کولو پړاوونه ............ ۱۹۴
د تقسيم د طلب کولو يو صورت او د هغه حکم ............ ۱۹۹
د تقسيم د طلب کولو بل صورت او د هغه حکم ............ ۲۰۱
د پورتنۍ مسئلې نور وضاحت ............ ۲۰۲
د تقسيم د طلب يو بل صورت او د هغه حکم ............ ۲۰۴
د پورتنۍ مسئلې نور وضاحت ............ ۲۰۵
فَصْلٌ فِيمَا يُقْسَمُ وَمَا لَا يُقْسَمُ ............ ۲۰۸
د تقسيم لپاره طلب ضروري دی ............ ۲۰۸
د تقسيم د طلب مختلفه صورتونه ............ ۲۰۹
د پورتنۍ مسئلې نور وضاحت ............ ۲۱۰

د سامان د تقسیم صورت او حکم.................. ۲۱۱
قاضي به کوم څه تقسیموي یا نه تقسیموي (په اجناسِ مختلفه کي د بالجبر تقسیم کولو ممانعت)........ ۲۱۲
دیوې کیړې د تقسیم حکم.................. ۲۱۳
د غلامانو او جواهراتو د تقسیم حکم.................. ۲۱۵
د پورتنۍ مسئلې نور وضاحت.................. ۲۱۶
د حمام، ژرندي او داسي نورو تقسیم.................. ۲۱۸
د څو مشترکه کورونو د تقسیم حکم.................. ۲۱۸
د پورتنۍ مسئلې نور وضاحت.................. ۲۲۱
د کور او ځمکي یا د کور او دوکان د تقسیمولو طریقه.................. ۲۲۳

فَصْلٌ فِي كَيْفِيَةِ الْقِسْمَةِ.................. ۲۲۵

د تقسیم طریقه.................. ۲۲۵
د پورتنۍ مسئلې نور وضاحت.................. ۲۲۷
د تقسیم یو خاص صورت.................. ۲۲۸
د مشترکه ځمکي او ځای د تقسیم یو صورت.................. ۲۲۹
په پورتنۍ مسئله کي د امام محمد رَحِمَهُ اللهُ روایت.................. ۲۳۱
تر تقسیم وروسته د لاري یا د اوبو د لاري مسئله.................. ۲۳۲
د پورتنۍ مسئلې نور وضاحت.................. ۲۳۳
د دو منزله (دوچته) ځای د تقسیم مختلفه صورتونه.................. ۲۳۸
د پورتنۍ مسئلې نور وضاحت.................. ۲۳۹
د امام صاحب رَحِمَهُ اللهُ د قول تفسیر.................. ۲۴۳
د شریکانو او قاسمینو د اختلاف په صورت کي معتبر قول.................. ۲۴۵
په پورتنۍ مسئله کي د امام طحاوي رَحِمَهُ اللهُ قول او د هغه جواب.................. ۲۴۷
دیوه قاسم گواهي معتبره نه ده.................. ۲۴۹
په تقسیم کي د غلطۍ دعویٰ کول.................. ۲۵۰
د پورتنۍ مسئلې نور وضاحت.................. ۲۵۲
په تقسیم کي د غلطۍ د دعوې کولو بل صورت.................. ۲۵۳
د کور په تقسیم کي د اختلاف کولو صورت.................. ۲۵۵

فَصْلٌ ........ ۲۵۷
تر تقسيم وروسته په جايداد کي د بل چاحق ثابتېدل ........ ۲۵۷
د پورتنۍ عبارت نور وضاحت ........ ۲۶۲
که د ميراث له تقسيم څخه وروسته په هغه کي قرض ښکاره سي (حکم او تفصيل) ........ ۲۶۴
په پورتني صورت کي که قرضخواهان مړی معاف کړي (حکم او تفصيل) ........ ۲۶۵
فَصْلٌ فِي الْمُهَايَاةِ ........ ۲۶۷
د مهايات شرعي حيثيت ........ ۲۶۷
د مهايات دويم قسم او د هغه حکم ........ ۲۶۹
په يوه غلام کي د مهايات کولو حکم او په مهايات في الزمان أو في المکان کي د اختلاف حکم ........ ۲۷۱
د دوو مشترکو غلامانو د مهايات حکم او تفصيل ........ ۲۷۳
د غلامانو د نفقې پر شرط د مهايات کولو حکم ........ ۲۷۴
د دوو مشترکو کورونو د مهايات حکم ........ ۲۷۵
د دوو مشترکو څارويو د مهايات حکم ........ ۲۷۷
په کرايه د کور ورکولو کي د مهايات حکم او تفصيل ........ ۲۷۸
په کرايه د کور ورکولو په صورت کي د يوه شريک په نوبت کي د زياتي کرايې د راتللو حکم ........ ۲۷۹
په پورتني صورت کي د دوو کورونو حکم ........ ۲۸۰
د دوو غلامانو د مهايات حکم ........ ۲۸۲
د درختو او څارويو د مهايات حکم ........ ۲۸۳
كِتَابُ الْمُزَارَعَةِ ........ ۲۸۶
د مزارعت تعريف او د امامانو اقوال ........ ۲۸۶
د مزارعة، مخابرة او مساقاة مطلب ........ ۲۸۶
د امام صاحب رَحِمَهُ الله د قول تفريعات ........ ۲۹۰
د صاحبينو د قول تفريعات ........ ۲۹۲
د پورتنۍ مسئلې پاته حصه ........ ۲۹۳
صاحبينو په نېز د مزارعت صورتونه ........ ۹۵
په ظاهر روايت کي باطل صورت کوم چي د امام ابو يوسف رَحِمَهُ الله په نېز جائز دی ........ ۲۹۷
د مزارعت څو ناجائز صورتونه ........ ۲۹۸

د مزارعت د صحيح کېدو لپاره د مودت معلومېدل ضروري دي ........................ ۳۰۰
هر هغه شرط مزارعت فاسدوي کوم چې د شرکت ختمونکی وي ........................ ۳۰۱
د مزارعت فاسدونکي نور شرائط ........................ ۳۰۳
که دا شرط ولګول سي چې غله به د دواړو وي لېکن د پروړو تذکره نه وسي ........................ ۳۰۵
که د تخم والا لپاره د پروړو شرط ولګول سي ........................ ۳۰۶
د مزارعت د منعقد کېدلو په صورت کې به پيداوار د شرط مطابق تقسيمول کيږي ........................ ۳۰۷
په مزارعت فاسده کې د اُجرت مسئله ........................ ۳۰۹
د مزارعت فاسده د اُجرت بله مسئله ........................ ۳۱۰
په مزارعت فاسده کې د پيداوار د استحقاق بيان ........................ ۳۱۱
له مزارعت کولو څخه وروسته د يوه عاقد د انکار کولو بيان ........................ ۳۱۲
د پورتنی مسئلې نور وضاحت ........................ ۳۱۴
د مدت مزارعت په دوران کې د ځمکې د مالک د وفات کېدلو يو صورت ........................ ۳۱۵
له تخم کرلو څخه مخکې د ځمکې د مالک د وفات کېدلو حکم ........................ ۳۱۶
د مقروض ربُ الأرض په قرض کې د هغه د ځمکې د نه خرڅولو يو صورت ........................ ۳۱۸
له کښت پخېدلو څخه مخکې د مودت مزارعت د ختمېدلو بيان ........................ ۳۱۹
د پورتنی مسئلې نور وضاحت ........................ ۳۲۱
له کښت پخېدلو څخه مخکې د عامل (کښتګر) د وفات کېدلو حکم ........................ ۳۲۳
د کښت اضافي خرچونه او لګښتونه پر دواړو د خپلو حصو په اندازه لازم دي ........................ ۳۲۴
په عقد مزارعت کې د عقد د مقتضا خلاف شرط لګولو تفصيل ........................ ۳۲۶
د کښت د خرچونو او لګښتونو نور وضاحت ........................ ۳۲۶
که د مېوې شکول يوازې پر عامل شرط کړی سي ........................ ۳۲۸

## كِتَابُ الْمُسَاقَاةِ

كِتَابُ الْمُسَاقَاةِ ........................ ۳۳۰
د مساقاة شرعي حيثيت ........................ ۳۳۰
د مساقات او مزارعت په هکله د امام شافعي رَحِمَهُ الله مذهب او دليل ........................ ۳۳۲
د مساقات لپاره مودت شرط دی که نه؟ ........................ ۳۳۳
د پورتنی مسئلې مستثنيات ........................ ۳۳۶
په عقد مساقات کې د لږ مودت ټاکلو حکم ........................ ۳۳۸
مساقات په کومو شيانو کې کېدلای سي؟ ........................ ۳۴۰

بغير له عذره به مساقات نه فسخ کول کيږي او عامل به نه ايستل کيږي ..... ۳۴۲
مېوه داره درختي د مساقات په توګه ورکول (حکم او تفصيل) ..... ۳۴۲
د ځمکي د مالک (ربُ الأرض) د مرګ په صورت کي د مساقات حکم ..... ۳۴۴
د عامل يا دواړو عاقدينو د مرګ په صورت کي د مساقات حکم ..... ۳۴۶
د مېوې تر پخېدلو مخکي د مودت ختمېدلو حکم ..... ۳۴۷
د عذر په وجه د مساقات فسخ کېدلو بيان ..... ۳۴۹
د مساقات يو ناجائز صورت ..... ۳۵۱

## كِتَابُ الذَّبَائِحِ

كِتَابُ الذَّبَائِحِ ..... ۳۵۴
د ښکارويي د حلال کېدو لپاره کوم څه ضروري دي؟ ..... ۳۵۴
د ذبح شرعي حيثيت، تعريف او شرائط ..... ۳۵۴
د ذبح د اهليت بيان ..... ۳۵۷
د مجوسي او مرتد د ذبيحې حکم ..... ۳۵۹
د محرم (احرام تړونکي) ذبيحه ..... ۳۶۱
قصداً د تسميه (بسم الله) پرېښوولو بيان ..... ۳۶۲
د امام شافعي رَحِمَهُ الله د قول حيثيت ..... ۳۶۳
د ذبح کولو پر مهال د بسم الله ويلو تفصيل ..... ۳۶۸
د ذبح پر مهال د الله ﷻ له نوم سره د غير الله يادونه کول ..... ۳۷۰
د پورتنۍ عنوان سره اړوند نوري مسئلې ..... ۳۷۱
ديوازي بسم الله ويلو شرط ..... ۳۷۳
د ذبح کولو مقام ..... ۳۷۵
په ذبح کې به کوم رګونه پرېکول کيږي؟ ..... ۳۷۶
د پورتنۍ مسئلې نور وضاحت ..... ۳۷۷
په پورتنۍ مسئله کي د امام صاحب رَحِمَهُ الله دليل ..... ۳۸۰
په کومو شيانو سره ذبح کول جائز دي؟ ..... ۳۸۱
د پورتنۍ مسئلې نور وضاحت ..... ۳۸۴
د ذبح مستحبات ..... ۳۸۵
د ذبح مکروهات ..... ۳۸۶
د شټ له طرفه د ذبح کولو حکم ..... ۳۸۸

د ذبح مختلف اقسام (د کومو ځاروېو لپاره به ذبح اختياري يا ذبح اضطراري اختيارول کيږي؟) ....... ۳۸۹

د پورتنۍ مسئلې نور وضاحت ........ ۳۹۱

د ذبح مستحب اقسام (نحر او ذبح) ........ ۳۹۲

د مذبوحه ځاروي له نس څخه د را وتونکي بچي حکم ........ ۳۹۳

فَصْلٌ فِيمَا يَحِلُّ أَكْلُهُ وَمَا لَا يَحِلُّ ........ ۳۹۸

د حرامو حيوانانو او مرغانو بيان (چې خوړل يې حرام دي) ........ ۳۹۸

د درنده د حراميدلو وجه (د انسان شرافت او کرامت) ........ ۳۹۹

د کارګه قسمونه او د هغوی حکم ........ ۴۰۱

د کومو ځاروېو خوړل مکروه دي ........ ۴۰۲

د کورني خره، غاټري او آس حکم ........ ۴۰۴

د سوی (سوی ګي) حکم ........ ۴۰۷

په ذبح سره د حرام حيوان د پاکېدلو بيان ........ ۴۰۸

د اوبو د حيوانانو بيان ........ ۴۱۱

د "سمک طافي" حکم (او د فقهاؤ قولونه) ........ ۴۱۵

د ماهي بعضي نور قسمونه (او د ملخ په هکله د امام مالک رَحِمَهُ الله رايه) ........ ۴۱۶

د ماهي د حلت او حرمت په هکله قاعده کليه ........ ۴۱۸

كِتَابُ الأُضْحِيَةِ ........ ۴۲۰

د "اضحيه" لغوي او اصطلاحي معنیٰ ........ ۴۲۰

د قربانۍ شرعي حيثيت او د قربانۍ حکم (پر کوم چا او څه وخت واجب ده؟) ........ ۴۲۰

قربانۍ ته د سنت ويونکو حضراتو دلائل ........ ۴۲۱

قربانۍ ته د واجب ويونکو حضراتو دلائل ........ ۴۲۲

د قربانۍ شرائط او د هغوی وجوهات ........ ۴۲۵

قرباني د چا له طرفه واجب ده؟ ........ ۴۲۷

د مال لرونکي کوچني د قربانۍ بيان ........ ۴۲۸

د قربانۍ کوم ځاروي او د څومره کسانو له طرفه کافي دي (تفصيلي بيان) ........ ۴۳۰

﴿د شريکانو په مينځ کي د غوښو د تقسيمولو طريقه﴾ ........ ۴۳۴

قرباني د خپل ځان لپاره رانيول خو بيا شپږ نور کسان پکښي شريکول (حکم او تفصيل) ........ ۴۳۴

پر غريب او مسافر کبس د قرباني نه وجوب او د قرباني وخت ........ ۴۳۶
د پورتنۍ مسئلې نور وضاحت (د صحرا د خلکو لپاره د قرباني وخت) ........ ۴۳۷
په قرباني کي به د کوم ځای اعتبار کیږي؟ ........ ۴۳۹
د قرباني ورځي او مودت ........ ۴۴۱
په شپه کي د قرباني ذبح کولو بيان ........ ۴۴۳
د قرباني نه کولو جرمانه ........ ۴۴۴
د کومو عيبداره ځارويو قرباني جائز نه ده؟ ........ ۴۴۶
څومره مقدار عيب شمېرل کيږي؟ ........ ۴۴۷
په عيبداره عضو کي د عيب معلومولو طريقه ........ ۴۵۰
هغه عيبونه چي د هغوی باوجود قرباني جائز ده ........ ۴۵۱
پر مذکوره قاعده متفرع شده مسئله ........ ۴۵۵
د ځاروي د ذبح کولو په وخت کي د عيب پيدا کېدلو حکم ........ ۴۵۶
د قرباني لپاره کوم ځارويان خاص دي؟ ........ ۴۵۸
د قرباني د جواز لپاره د ځارويو د کم عمر بيان ........ ۴۵۸
د قرباني له شريکانو څخه د يوه شريک د مرګ يو خاص صورت ........ ۴۶۱
د پورتنۍ مسئلې نور وضاحت ........ ۴۶۳
د قرباني د غوښو مصارف ........ ۴۶۴
د قرباني د څرمن مصارف ........ ۴۶۶
د پورتنۍ مسئلې نور وضاحت او د قرباني د شيدو وغيره حکم ........ ۴۶۸
قرباني په خپل لاس ذبح کول افضل دي ........ ۴۷۰
په کتابي (نصراني او يهودي) سره د قرباني ځاروی ذبح کول ........ ۴۷۱
که څوک په غلطۍ سره د بل چا ځاروی ذبح کړي ........ ۴۷۲
د پورتنۍ مسئلې په څېر نور څلور استحساني مسائل (چي په هغوی کي په استحسان عمل کيږي) ........ ۴۷۵
د مذکوره پورتنۍ مسئلې خلاصه ........ ۴۷۷
د قرباني له ځاروي څخه د حاصل شده ضمان حکم ........ ۴۷۸

كِتَابُ الْكَرَاهِيَةِ ........................................ ۴۸۱
د مکروه معنیٰ او مراد ........................................ ۴۸۲
فَصْلٌ فِي الْأَكْلِ وَالشُّرْبِ ........................................ ۴۸۳
د خرو غوښې، شيدې او د اوښانو متيازې مکروه دي ........................................ ۴۸۳
د سرو او سپينو زرو د لوښو استعمالول (تفصيلي بيان) ........................................ ۴۸۴
د مسو، سرپو او داسې نورو لوښې استعمالول ........................................ ۴۸۶
په سپينو زرو يا سرو زرو سره د پوښل سوي او ښکلي کړی سوي لوښي وغيره حکم ........................................ ۴۸۷
د مجوسي خادم د خبر حکم ........................................ ۴۹۱
د هديه (تحفه) وغيره په باره کې د غلام، مينځې او بچې د خبر حکم ........................................ ۴۹۲
په معاملاتو او دياناتو کې د فاسق د قول حکم ........................................ ۴۹۳
د پورتنۍ مسئلې نور وضاحت ........................................ ۴۹۴
په دياناتو کې د مستور الحاله کس د قول حکم ........................................ ۴۹۵
په دياناتو کې د غلام او مينځې د قول حکم ........................................ ۴۹۶
د عادل کس په هکله د کذب احتمال ساقطيږي او که د چا په هکله غالب گومان د دروغو وي نو څه حکم دی؟ ........................................ ۴۹۷
که يو دعوت او ميلمستيا ته انسان وغوښتل سي او هلته خلاف شرع څه وليدل شي (حکم او تفصيل) ........................................ ۴۹۸
د پورتنۍ مسئلې نور وضاحت ........................................ ۵۰۰
فَصْلٌ فِي اللُّبْسِ ........................................ ۵۰۲
د وريښمي جامې د اغوستلو حکم ........................................ ۵۰۲
له اغوستلو څخه بغير بل ځای وريښم استعمالول ........................................ ۵۰۲
د جنگي مقاصدو او د جنگ په حالت د وريښمو استعمالول ........................................ ۵۰۶
د وريښمو نور قسم جامې (خزّ وغيره) ........................................ ۵۰۸
د سرو يا سپينو زرو زيورات او گاڼې استعمالول د خلکو لپاره څنگه دي؟ ........................................ ۵۱۱
د سرو زرو يا سپينو زرو گوتمۍ استعمالول د خلکو لپاره څنگه دي؟ ........................................ ۵۱۳
د سرو زرو نور شيان استعمالول ........................................ ۵۱۵
د کوچنې بچيانو او هلکانو لپاره د وريښمو او سرو زرو استعمالول ........................................ ۵۱۷
د مخ وغيره د وچولو لپاره ځانگړی دسمال گرځول (تفصيلي حکم) ........................................ ۵۱۷
فَصْلٌ فِي الْوَطْيِ وَالنَّظَرِ وَاللَّمْسِ ........................................ ۵۲۰
د ښځې د بدن هغه اعضاء چې په عورت کې داخل نه دي ........................................ ۵۲۰
په شهوت سره د ښځې وريښتو وغيره ته د کتلو حکم ........................................ ۵۲۱
له پورتنۍ مسئلې څخه استثناء ........................................ ۵۲۳
د قاضي لپاره کتل جائز دي (تفصيلي بيان) ........................................ ۵۲۵

﴿د نکاح په اراده ښځي ته کتل جائز دي﴾ ........................ ۵۲۷
ښځي ته د طبيب (ډاکټر) کتل څنګه دي؟ ........................ ۵۲۷
د سړي کوم اندامونه په عورت کي داخل دي؟ ........................ ۵۲۹
ښځه د سړي کومو اندامو ته کتلای سي؟ ........................ ۵۳۳
د پورتني مسئلې نور وضاحت ........................ ۵۳۵
ښځي ته د ښځي کتل (حکم او تفصيل) ........................ ۵۳۶
خپلي ښځي ته کتل ........................ ۵۳۷
خپلو محارمو ته د سړي کتل ........................ ۵۳۹
د پورتني مسئلې نور وضاحت ........................ ۵۴۰
د خپل محارمو د مسه کولو حکم او تفصيل ........................ ۵۴۱
د بل چا د مينځي احکام ........................ ۵۴۵
د مينځي د رانيولو پر مهال د مسه کولو حکم ........................ ۵۴۸
د بالغي مينځي احکام او د نامرده کس، نر ښځي وغيرهما احکام ........................ ۵۴۹
د نارينه غلام خپلي مالکي ښځي ته د کتلو حکم ........................ ۵۵۱
له خپلي ښځي يا مينځي څخه د عزل کولو حکم ........................ ۵۵۳

فِصْلٌ فِي الْاِسْتِبْرَاءِ وَغَيْرِهِ ........................ ۵۵۵
د استبراء معنیٰ او وضاحت ........................ ۵۵۵
د استبراء حکم ........................ ۵۵۵
د استبراء واجبېدلو شرطونه ........................ ۵۵۷
پر پورتني مذکوره قاعده څه نور تفريعات ........................ ۵۵۸
د خپلي مشترکي مينځي د رانيولو په صورت کي د استبراء حکم ........................ ۵۶۱
تر استبراء مخکي د وطي د دواعي وو حرمت ........................ ۵۶۳
د حامله، صغيره او آئسه په حق کي د استبراء حکم ........................ ۵۶۵
د استبراء لپاره د حيله کولو حکم ........................ ۵۶۷
د کفارهٔ ظهار تر اداء کولو مخکي د وطي د دواعي وو حکم ........................ ۵۷۰
دوې داسي مينځي مچول کوم چي سره خوندي وي (حکم او تفصيل) ........................ ۵۷۲
د پورتني مسئلې نور وضاحت او تفصيل ........................ ۵۷۴
د سړي خوله وغيره مچول او معانقه کول څنګه دي؟ (حکم او تفصيل) ........................ ۵۷۷

# كِتَابُ الشُّفُعَةِ

## (دا) کتاب د "شفعي" (په بیان کي) دی

**تشريح**: مخکي تر دې مصنف رَحِمَهُ الله غصب او د هغه احکام بیان کړل. اوس له دې ځایه شفعه او د هغې احکام ذکر کوي، د كتابُ الغصب او كتابُ الشفعة تر مینځ مناسبت په دې توګه دی چي په غصب او شفعه دواړو کي د مال د خاوند له رضاء او خوښې څخه بغیر بل څوک د هغه مال په خپله قبضه کي اخلي، فرق یې صرف دومره دی چي په غصب کي ظلم او تعدی کیږي او هغه د شریعت له نظره ډېر قبیح او مذموم فعل دی، حال دا چي شفعه خپله د شریعت له طرفه تاکل سوې خصبه ده او له ظلم او تعدی څخه پاکه ده.

پاته سو دا سوال چي کله شفعه په شریعت کي ثابته ده، نو هغه یې تر كتابُ الغصب مخکي ولي نه ده بیان کړې؟، جواب دا دی چي که څه هم شفعه یو مشروع امر دی او په دې وجه هغه مخکي بیانول پکار دي، لېکن څرنګه چي د شفعي په مقابله کي غصب كثيرُ الوقوع دی، ځکه چي د زمانې انقلاباتو او تغیراتو خلک له خپل دین، صداقت او ایمانداری څخه لیري کړي دي او هغوی یې د لوټمار او خیانت عادي جوړ کړي دي. نو ځکه مصنف رَحِمَهُ الله د غصب بیان د شفعي تر بیان مخکي کړی، چي خلک د غصب په مسائلو او احکامو خبر سي او په هره توګه له هغه څخه لیري اووسي.

### د شفعي لغوي او اصطلاحي معنی او د شفعي وجه تسميه

الشُّفْعَةُ مُشْتَقَّةٌ مِنَ الشَّفْعِ شفعه له شَفْعٌ څخه جوړه کړی سوې ده وَهُوَ الضَّمُّ او هغه [شَفْع] ضمول دي [یعني د "شَفْع" معنیٰ ده: ضمول. سره یو ځای کول] سُمِّيَتْ بِهَا شفعه [ځکه] په شفعه سره ونومول سوه لِمَا فِيهَا مِنْ ضَمِّ الْمُشْتَرَاةِ إِلَى عَقَارِ الشَّفِيعِ ځکه چي په شفعه کي د رانیول سوي ځمکي ضمول [یو ځای کول] سته د شفیع د ځمکي سره [یعني ځکه چي په شفعه کي رانیول سوې ځمکه د شفیع د ځمکي سره ضمول کیږي].

**اللغات**: ﴿مُشتقة﴾ د افتعال له باب څخه صیغه د واحده مؤنثه مفعول ده. اِشْتَقَّ يَشْتَقُّ اِشْتِقَاقًا: د دې باب څو معناوي دي چي له هغوی څخه یې یوه معنی دا ده: یوه کلمه له بلي کلمي څخه جوړول (پريو

مخصوص وزن له بل لفظ څخه یو لفظ جوړول)، ﴿ضَمّ﴾ د نصر د باب مصدر دی: (یو شی د بل شي) سره یو ځای کول، ضمول، جمع کول، ورسره اضافه کول، (معجم وسیط)، ﴿مشتراة﴾ د افتعال له باب څخه ضیغه د واحده مؤنثه مفعول ده: رانیول سوې، ﴿عَقَار﴾ غیر منقوله جایداد، یعني ځمکه، کور او داسي نور کوم چي له یوه ځایه بل ځای ته نه سي نقلول کېدلای بلکي پر خپل ځای ثابت قائم وي.

**تشریح**: دلته صاحب د هدایې د شفعې مأخذ او د هغې لغوي معنیٰ او وجه د تسمیه بیانوي، نو فرمایي چي شفعه له "شَفْعٌ" څخه مشتق ده او "شَفْعٌ" د فتح د باب مصدر دی، "شَفْعُ الشَّيْءِ بِالشَّيْءِ" چي د هغه معنیٰ ده: یو شی د بل شي سره یو ځای کول او عربي قاموسونو یې داسي معنیٰ کړې ده چي: یو شی د خپل هَمْ مثل شي سره یو ځای کول او جُوړه (جفت) ګرځول، همدا د شفعې لغوي معنیٰ ده یعني "سره یو ځای کول".

او د شفعې اصطلاحي معنیٰ ده: "تَمَلُّكُ الْبُقْعَةِ (أَوِ الْعَقَارِ) بِمَا قَامَ عَلَى الْمُشْتَرِيْ بِالشِّرْكَةِ أَوِ الْجِوَارِ" یعني د شرکت یا همسایه توب پر بنیاد د (خرڅ کړل سوی) جایداد مالک کېدل د دومره قیمت په عوض کي څومره قیمت چي مشتري اداء کړی وي.

(حق الشفعة: په آسانه وینا دا چي یو څوک خپله ځمکه یا غیر منقوله جایداد [لکه کور وغیره] خرڅوي او د هغه شریک یا همسایه وړبوري چي دا زه رانیسم [په هغومره قیمت څومره چي د هغه ځمکي او جایداد قیمت تاکل سوی وي] او بل چا ته یې نه پرېږدم، نو دې ته "د شفعې حق" وایي).

**وجه تسمیه**: څرنګه چي په شفعه کي د خپلي ځمکي او جایداد سره د بل چا ځمکه او جایداد یو ځای کول کېږي، نو په دې مناسبت شفعې ته "شفعه" ویل سوي دي.

## د شفعې د مستحقینو ترتیب

قَالَ [امام قدوري رَحِمَهُ الله] فرمایي اَلشُّفْعَةُ وَاجِبَةٌ لِلْخَلِيْطِ فِيْ نَفْسِ الْمَبِيْعِ شفعه ثابته ده په خودي مبیع کي د شریک کس لپاره [یعني څوک چي په خودي ځمکه او جایداد کي (د بائع سره) شریک وي، د شفعې حق اولاً هغه لره ثابت او حاصل دی] ثُمَّ لِلْخَلِيْطِ فِيْ حَقِّ الْمَبِيْعِ بیا په حقِ مبیع کي د شریک کس لپاره كَالشِّرْبِ وَالطَّرِيْقِ لکه د اوبو حق [یا د چینلو اوبه] او لاره ثُمَّ لِلْجَارِ بیا د همسایه لپاره أَفَادَ هٰذَا اللَّفْظُ ثُبُوْتَ حَقِّ الشُّفْعَةِ لِكُلِّ وَاحِدٍ مِنْ هٰؤُلَاءِ دغه لفظ [یعني د متن الفاظو] په دې [مذکوره] کسانو کي د

هر يوه لپاره د حقِ شفعه د ثابتېدلو فايده ورکړه [يعني د متن له الفاظو څخه معلومه سوه چي په مذکوره دريو کسانو کي د هر يوه لپاره هشفعي حق ثابت دی] وَأَفَادَ التَّرْتِيبَ او [بل د دوی دريو سره تر مينځ] د ترتيب فايده يې ورکړه.

**اللغات**: ﴿خليط﴾ له خلط څخه مشتق دی، د دې لفظ څو معناوي نقل سوي دي، مثلاً: ① شريک، ② ملګری، ③ همسايه، ④ خاوند او داسي نور، دلته مراد ځني شريک دی، جمع خُلَطَاء، ﴿شِرْب﴾ د دې لفظ هم څو معناوي نقل سوي دي: ① د چيښلو اوبه، ② د اُوبو حق، يعني ځمکي او کور ته له والې (نهر) څخه د اوبه ورکولو حق (حق الشرب)، ③ له والې (نهر) او لښتي څخه د اوبو تاکلې حصه او د اوبو نوبت. په قرآن شريف کي هم دا لفظ ذکر سوی دی ﴿وَلَكُمْ شِرْبُ يَوْمٍ مَعْلُومٍ﴾. ﴿طَرِيق﴾ کور او ځمکي ته د تګ راتګ لاره (ځيني وخت پر يوه مُتعيّنه لاره د هر خلک خپلو کورو او ځمکو ته ځي راځي. دلته همدغه لاره مراد ده)، ﴿جار﴾ همسايه، ګاونډی.

**تشريح**: د ځمکي او جايداد سره درې قسمه کسان متصل وي:

① ... يو خو هغه کس وي کوم چي په خودي ځمکه کي ور سره شريک وي او په ځمکه (مبيع) کي وېش او تقسيم سوی نه وي، داسي کس ته "شريک فی نفس المبيع" وايي يعني "په خودي مبيع کي شريک"، کله چي ځمکه خرڅول کيږي نو همداسي کس د هغې د رانيولو زيات حقدار دی.

② ... دويم هغه کس دی کوم چي په خودي ځمکه کي خو شريک نه وي، لېکن د ځمکي چي کوم حق دی په هغه کي ور سره شريک وي، مثلاً ځمکي ته چي کومه د اوبو واله (وياله) راځي، په هغه کي دواړه سره شريکان وي (يعني بائع او شفيع دواړه له هغه ويالې څخه په خپله حصه کي اُوبه اخلي)، يا مثلاً ځمکي ته چي کومه د تګ راتګ لاره وي، په هغې کي دواړه سره شريکان وي، داسي کس ته "شريک فی حق المبيع" وايي يعني "په حق د مبيع کي شريک"، ده ته پر دويم نمبر حقِ شفعه حاصليږي چي که اول قسم کس "شريک فی نفس المبيع" نه وي، نو بيا دئ د شفعي او د ځمکي د رانيولو زيات حقدار دی.

③ ... دريم کس همسايه دی چي هغه نه په مبيع (ځمکه) کي شريک وي او نه د مبيع په حق کي شريک وي، بلکي د مبيع سره د ده ځمکه او جايداد متصل وي، ده ته پر دريم نمبر حقِ شفعه حاصليږي چي که "شريک فی نفس المبيع" او "شريک فی حق المبيع" موجود نه وي يا موجود خو وي لېکن هغوی دا ځمکه نه غواړي، نو اوس همسايه ګان د شفعي او د ځمکي د رانيولو زيات حق دار دی.

او کله چي مذکوره درې سره کسان دا ځمکه او جايداد نه غواړي، نو بيا د بهر خلکو ته د رانيولو حق سته. تر دغه دريو کسانو مخکي هيڅا ته د هغه د رانيولو حق نسته. (د دې عقلي وجه او دليل دا

دی چي که مذکوره دريو کسانو ته حقِ شفعه نه ورکول سي، نو خراب او لوچک، بدماش کس به دغه ځمکه او جايداد رانيسي، چي هغه به د دې کسانو لپاره همېشه د تکليف او ضرر سبب وګرځي، نو ځکه شريعت په مناسب قيمت سره اول دغو کسانو ته د رانيولو حق ورکړی دی).

أفاد هٰذا اللفظ إلخ: صاحب د هدايې رَحِمَهُ الله فرمايي چي د متن له الفاظو (يعني لِلْخَلِيْطِ فِيْ نَفْسِ الْمَبِيْعِ...إلخ) څخه دوې خبرې معلومې سوې: ① يوه دا چي مذکوره دريو سره کسانو ته حقِ شفعه حاصلېږي. ② او بله دا چي په هاغه ترتيب سره ور ته حاصلېږي کوم ترتيب چي په متن کي بيان سو چي اول شريک في نفس المبيع دی؛ د شريک فی نفس المبيع د مخکي والي وجه دا ده چي د هغه شرکت او اتصال له شريک فی حق المبيع او همسايه دواړو څخه زيات دی (نو ځکه امام قدوري هغه اول ذِکر کړی دی او دې ته يې اشاره کړې ده چي د هغه حق تر ټولو مقدم دی)، تر هغه وروسته بيا شريک فی حق المبيع دی؛ ځکه چي هغه هم په يو درجه نه درجه کي په مبيع کي شريک دی، او بيا تر هغه وروسته همسايه دی؛ ځکه چي همسايه ته صرف د جوار (همسايه توب) پر بنياد حقِ شفعه حاصلېږي، نو ر په مبيع کي د هغه هيڅ شرکت نسته.

## په نقلي دلائلو (احاديثو) سره د شفعي ثبوت

أَمَّا الثُّبُوتُ کوم چي [د شفعي] ثابتېدل دي فَلِقَوْلِهِ الْعَلَيْهِ السَّلَامُ [1] : "اَلشُّفْعَةُ لِشَرِيْكٍ لَمْ يُقَاسِمْ" نو د نبي کريم ﷺ د دې فرمان په وجه چي: "شفعه د هغه شريک لپاره ده کوم چي تقسيم نه وي کړی" وَلِقَوْلِهِ الْعَلَيْهِ السَّلَامُ [2] : "جَارُ الدَّارِ أَحَقُّ بِالدَّارِ وَالْأَرْضِ او د نبي ﷺ د دې فرمان په وجه چي: "د کور همسايه د کور او ځمکي زيات حقدار دی يُنْتَظَرُ لَهُ وَإِنْ كَانَ غَائِبًا إِذَا كَانَ طَرِيقُهُمَا وَاحِدًا " د هغه لپاره به انتظار کيږي که څه هم غائب وي که چيري د دواړو لاره يوه وي" وَلِقَوْلِهِ الْعَلَيْهِ السَّلَامُ [3] : "اَلْجَارُ أَحَقُّ بِسَقَبِهِ او

---

[1] تخريج: أخرجه البخاري ومسلم بغير هٰذا اللفظ. البخاري، باب عرض الشفعة على صاحبها قبل البيع، حديث رقم:۲۲۵۸، ومسلم، باب الشفعة، حديث رقم:۱۶۰۸، ۴۱۲۸.

يادونه: صاحب د هدايې رَحِمَهُ الله چي کوم احاديث ذکر کړي دي هغه يې د حديثو له کتابو څخه مخامخ نه دي ليکلي. نو ځکه په الفاظو کي يې څه کمي بيشي راغلې وي.

[2] تخريج: أخرجه أبو داؤد في كتاب البيوع، باب في الشفعة، حديث رقم:۳۵۱۷، ۲۳۱۸، والترمذی، باب ما جاء في الشفعة للغائب، حديث رقم:۱۳۶۸.

[3] تخريج: أخرجه أبو داؤد في كتاب البيوع، باب في الشفعة، حديث رقم:۳۵۱۶، والترمذی، باب ما جاء في الشفعة للغائب، حديث رقم:۱۳۶۹.

د نبي ﷺ د دې فرمان په وجه چې: "همسايه د خپل سَقَب زيات حقدار دی" قِيْلَ: يَا رَسُوْلَ اللهِ مَا سَقَبُهُ؟ نو ورېل سوه [پوښتنه وسوه] چې اې د الله رسوله! د همسايه سَقَب څه شي دی؟ قَالَ: شُفْعَتُهُ" نبي ﷺ وفرمايل چې: د هغه شفعه [يعني له سقب څخه مراد شفعه ده] وَيُرْوٰى: "اَلْجَارُ أَحَقُّ بِشُفْعَتِهِ" او روايت سوی دی چې: " همسايه د خپل شفعي زيات حقدار دی" [يعني په بل روايت کي د "الجار أحق بشفعته" الفاظ راغلي دي].

**اللغات**: ﴿سَقَب﴾ د سين او قاف په فتح سره د سمع د باب مصدر دی، سَقِبَ يَسْقَبُ سَقَبًا و سُقُوْبًا: نژدې کېدل، نژدېکت، او له همدې څخه دي "سَاقِبُ الدَّار" (د کور نژدې والا يعني "همسايه") "الْمُسَاقِب" (مجاور).

**تشريح**: په دغه عبارت کي صاحب د کتاب رَحِمَهُ الله د شفيع د مخکيني دريو قسمونو په هکله درې جلا، جلا حديثونه ذکر کړي دي، د اول حديث تعلق د اول قسم يعني د"شريک فی نفس المبيع" سره دی چې په دې کي د هغه لپاره شفعه ثابته کړی سوې ده، او د دويم حديث تعلق د "شريک فی حق المبيع" سره دی، په دې دويم حديث کي "جَار" د شريک په معنیٰ سره دی او مطلب يې دا دی چې که د شريک فی حق المبيع او بائع لاره يوه وي، نو بيا تر شريک فی نفس المبيع وروسته (پر دويم نمبر) شريک فی حق المبيع زيات حقداره دی چې مبيع (ځمکه او کور) رانيسي، تر دې چې د هغه په ناموجوديت کي به هم د هغه رايې او فيصلې ته انتظار کيږي. د درېيم حديث تعلق د همسايه سره دی، چې په هغه کي د "سقب" په لفظ سره د ده لپاره شفعه ثابته کړی سوې ده، د "سقب" معنیٰ ده: قربت او نژدېکت، چې په لغاتو کي يې وضاحت وسو.

## په شفعه کي د امام شافعي رَحِمَهُ الله مسلک او دلائل

وَقَالَ الشَّافِعِيُّ: لَا شُفْعَةَ بِالْجِوَارِ او امام شافعي رَحِمَهُ الله فرمايي: چې د همسايه توب پر بنياد شفعه نسته [يعني همسايه لره حقِ شفعه نسته] لِقَوْلِهِ عَلَيْهِ السَّلَامُ: "اَلشُّفْعَةُ فِيْمَا لَمْ يُقْسَمْ" ځکه نبي ﷺ فرمايلي دي: "شفعه په داسي څه [جايداد] کي سته چې په هغه کي تقسيم [وېش] سوی نه وي [په بله وينا دا چې حقِ شفعه صرف په غير مقسومه ځمکه، کور وغيره کي سته] فَإِذَا وَقَعَتِ الْحُدُوْدُ وَصُرِفَتِ الطُّرُقُ نو که چيري حدود واقع سي او لاري وګرځول سي [يعني که په ځمکه او جايداد کي حدود وټاکل سي او

لاري جلا کړل سي] فَلَا شُفْعَةَ" نو بيا شفعه نسته" وَلِأَنَّ حَقَّ الشُّفْعَةِ مَعْدُولٌ بِهِ عَنْ سُنَنِ الْقِيَاسِ او ځکه چي حقِ شفعه [د شفعي حق] د قياس د لارو څخه اوښتی دی لِمَا فِيْهِ مِنْ تَمَلُّكِ الْمَالِ عَلَى الْغَيْرِ مِنْ غَيْرِ رِضَاهُ ځکه په حقِ شفعه کي د بل چا پر مال د هغه له رضاء څخه بغير مالک کېدل سته وَقَدْ وَرَدَ الشَّرْعُ بِهِ فِيمَا لَمْ يُقْسَمْ حال دا چي شريعت د حقِ شفعه په هکله په داسي څه [جايداد] کي وارد سوی دی چي په هغه کي تقسيم سوی نه وي وَهٰذَا لَيْسَ فِي مَعْنَاهُ او دا [يعني جَار يا مقسوم جايداد] د هغه په معنیٰ سره نه دی [يعني همسايه يا مقسوم جايداد د مَا ورد به الشرع (يعني د غيرِ مقسوم جايداد) په معنیٰ سره نه دی] لِأَنَّ مُؤْنَةَ الْقِسْمَةِ تَلْزَمُهُ فِي الْأَصْلِ دُوْنَ الْفَرْعِ ځکه چي د تقسيم کولو مشقت شفيع لره په اصل [غيرِ مقسوم جايداد] کي لازميږي، نه په فرع [مقسوم جايداد] کي. [يا په بله وينا دا چي د تقسيم زحمت په اصل يعني د "شريک فی نفس المبيع" په صورت کي لازميږي، نه د "همسايه" په صورت کي]

**اللغات:** ﴿جِوَار﴾ (بكسر الجيم) د مفاعلې د باب اسم مصدر دی، جَاوَرَ يُجَاوِرُ مُجَاوَرَةً و جِوَارًا (لکه قَاتَلَ يُقَاتِلُ مُقَاتَلَةً و قِتَالًا): همسايه توب، همسايه ګلوي، ﴿صُرِفت﴾ د ضرب له بابه د واحد مؤنث غائب ماضي مجهولي صيغه ده: ګرځېدل، ګرځول، اړول. ﴿طُرُق﴾ جمع د طَرِيْقَةٌ ده: لاره. ﴿معدول﴾ د ضرب له بابه د مفعول صيغه ده. عَدَلَ يَعْدِلُ عُدُوْلًا. د دې باب په صله کي چي "عَنْ" ذکر سي، نو معنیٰ يې ده: (د لاري څخه) اوښتل. ګرځېدل، ليري کېدل. ﴿حق الشفعة معدول به عن سنن القياس﴾ د شفعي حق د قياس د لارو څخه اوښتی او د قياس د تقاضا خلاف دی؛ ځکه د قياس تقاضا دا ده چي د بل چا مال د هغه په رضاء سره واخيستل سي او دلته (په شفعه کي) د بائع مال بغير د هغه له رضاء څخه اخيستل کيږي. ﴿تملّك﴾ د تفعّل د باب مصدر دی: مالک کېدل (مالک جوړېدل). ﴿مؤنة﴾ مشقت، خرچ او بار. ﴿وقد ورد الشرع فيما لم يقسم﴾ مطلب دا چي حديث د غيرِ مقسوم (نا تقسيم کړی سوي) جايداد په هکله وارد سوی دی چي صرف په هغه کي شفعه سته، نه د مقسوم جايداد په هکله. ﴿وهٰذا ليس في معناه﴾ د "هٰذا" په مشارٌإليه کي اختلاف دی. صاحب د عنايې او داسي نور شارحين وايي چي: په دې سره "جَار" ته اشاره سوې ده يعني "شفعه د جار". او صاحب د فتح القدير وايي: صحيح دا ده چي په دې سره "مقسوم" ته اشاره وسي. د تفصيل لپاره فتح القدير وګورئ!. د مَعْنَاهُ ضمير "مَا وَرَدَ بِهِ الشَّرْعُ" (مورد شرع) ته راجع دی. يعني "د کوم شي په هکله چي شريعت يعني حديث وارد سوی دی" هغه ته راجع دی. چي هغه "مَا لَمْ يُقْسَمْ" يعني غير مقسوم جايداد دی يا په بله وينا د "شريک فی نفس للمبيع جايداد".

**تشريح**: په دې عبارت کې د امام شافعي مسلک او د هغه نقلي او عقلي دواړه دليلونه ذکر کوي، فرمايي چې د امام شافعي رَحِمَهُ الله په نېز صرف په عينِ مبيع کې د شرکت پر بنياد حقِ شفعه ثابتيږي، د جوار (همسايه توب) پر بنياد د هغه په نېز حق شفعه نه ثابتيږي، په بله وينا دا چې د امام شافعي رَحِمَهُ الله په نېز صرف "شريک فی نفس المبيع" لره حق شفعه سته او پاتـه سو "جار (همسايه)" لره د شفعي حق نسته[1]؛ دليل دا حديث دی: "الشُّفْعَةُ فِيْمَا لَمْ يُقْسَمْ...إلخ"، امام شافعي رَحِمَهُ الله فرمايي چې په دې حديث کې د "الشفعة" الف لام د جنس لپاره دی، نو د حديث مطلب دا دی چې "شفعه د هغه جايداد سره خاص ده چې په هغه کې تقسيم نه وي سوی او تقسيم صرف د "شريک فی نفس المبيع" په جايداد کې نه وي سوی (بلکي هغه د ده او د ملکري تر مينځ مشترک پاته وي)، نو ځکه د امام شافعي په نېز صرف شريک فی نفس المبيع لره حقِ شفعه حاصل دی، نه همسايه لره؛ ځکه د همسايه د جايداد او د ملکري (بائع) د جايداد تر مينځ حدود واقع سوي او قائم سوي وي او لاري يې سره جلا وي. (دا د امام شافعي رَحِمَهُ الله د نقلي دليل حاصل سو).

ولأن حق الشفعة معدول إلخ: دا د امام شافعي رَحِمَهُ الله له طرفه عقلي دليل دی، حاصل يې دا دی چې حقِ شفعه (د شفعي حق) د قياس خلاف دی؛ ځکه د قياس تقاضا دا ده چې د بل چا مال د هغه په رضاء سره واخيستل سي لېکن په شفعه کې د بائع له رضاء او خوښې څخه بغير د هغه مال (ځمکه او

---

[1] **يادونه**: په اثمارُ الهدايه کي "شريک فی حق المبيع" د "شريک فی نفس المبيع" سره يو ځای شمېرل سوی دی، يعني د امام شافعي رَحِمَهُ الله په نېز صرف شريک فی حق المبيع او شريک فی نفس المبيع لره حقِ شفعه ثابت دی او همسايه لره ثابت نه دی. په احسن الهدايه او په حاشيه کي د عنايې په حواله سره شريک فی حق المبيع د جار (همسايه) سره يو ځای شمېرل سوی دی او د فقهي په عامو کتابو کي هم د امام شافعي رَحِمَهُ الله مذهب همداسي بيان سوی دی چې د هغه په نېز جار او شريک فی حق المبيع دواړو لره حقِ شفعه نسته او مذکوره حديث يې دليل وړاندي کړی دی، او پاته سو دا سوال چې کله د امام شافعي رَحِمَهُ الله په نېز شريک فی حق المبيع لره هم شفعه نسته، نو بيا ولي مصنف رَحِمَهُ الله صرف د جوار تخصيص کړی دی چې "لا شفعة بالجوار"، بايد شريک فی حق المبيع يې هم د امام شافعي رَحِمَهُ الله په قول کي ذکر کړي وای؟ د دغه سوال جواب صاحب د فتحُ القدير داسي کړی دی چې مصنف ځکه د جوار تخصيص کړی دی چې د امام شافعي رَحِمَهُ الله دليل صرف د جّار په حق کي پوره لګيږي، نه د شريک فی حق المبيع په حق کي (ځکه چې د شريک فی حق المبيع حق [يعني لاره او شِرب] مقسوم نه وي بلکي د هغه او د ملکري (بائع) تر مينځ مشاع وي، حال دا چې د امام شافعي رَحِمَهُ الله په مستدل حديث کي د "مالم يُقسم" الفاظ راغلي دي، لهذا دا حديث صرف د جار پر صورت پوره صادقيږي، نو په دې خاطر يې شريک فی حق المبيع نه دی ذکر کړی)، والله أعلم

جايداد) اخيستل کيږي، او تاسو دا أصول ويلی دی چې کوم شی د قياس خلاف ثابت وي، هغه فقط د شرع تر مورده پورې منحصر وي (يعني په شريعت کې چې د کوم څه په حق کې نص وارد سوی وي، صرف د هغه په حق کې دغه خلاف القياس حکم ثابتيږي)، او دلته په نص [حديث] کې صرف "فيما لم يُقسَم" يعني "نا تقسيم سوی جايداد" وارد سوی دی يا په بله وينا دا چې مذکوره حديث صرف د شريک فی نفس المبيع په حق کې وارد سوی دی (ځکه نا تقسيموالی صرف د هغه په جايداد کې سته چې تر اوسه يې د خپل ملګري [بائع] سره وېش او تقسيم نه دی کړی)، لهذا فقط هغه لره به حق شفعه حاصل وي، او پاته سو جَار لره به دا حق حاصل نه وي؛ ځکه چې تقسيم سوی دی؛ ځکه د هغه او د بائع تر مينځ حدود واقع سوي او قائم سوي وي او لاري يې سره جلا وي (او دا ښکاره خبره ده چې مقسوم د "فيما لم يُقسم" (غير مقسوم) په معنیٰ سره نه دی)، نو ځکه د مذکوره حديث پر بناء به همسايه ته بالکل د شفعي حق حاصل نه وي.

لأنّ مؤنة القسمة إلخ: دا په يوه توګه د امام شافعي رَحِمَهُ الله دويم عقلي دليل دی، حاصل يې دا دی چې شريک فی نفس المبيع ته ځکه حق شفعه ورکول سوی دی چې د تقسيم له مشقت او تکليف څخه خوندي سي، ځکه ښکاره خبره ده چې که ده ته د رانيولو حق نه ورکول سي بلکې بل څوک د ده له ملګري (بائع) څخه څمکه رانيسي، نو هغه رانيونکی خو خامخا په ده دا ځمکه تقسيموي چې خپل حصه جلا کړي او دئ مجبوراً دا تقسيم کوي، نو د تقسيم له مشقت څخه د خوندي کېدلو په خاطر ده ته حقِ شفعه ورکول سوی دی، لېکن په فرع يعني د جار (همسايه) په صورت کې دا خبره او مجبوري نسته؛ ځکه چې په مبيع (ځمکه او جايداد) کې د همسايه هيڅ حصه او اشتراک نسته چې تقسيم کولو او د حصې جلا کولو ته مجبوري پيدا سي (ځکه ښکاره خبره ده چې همسايه د خپل همسايه سره مشترک نه وي، بلکې د دوی تر مينځ حدود واقع او قائم وي او لاري يې سره جلا وي. لهذا پر همسايه د تقسيم هيڅ مؤنت او مشقت نه راځي)، نو ځکه هغه ته به حق شفعه حاصل نه وي.

(په اصل کې مذکوره عبارت يعني "لأن مؤنة القسمة إلخ" د "هذا ليس في معناه" دليل دی، خو په قول د اثمار الهدايه دا د امام شافعي رَحِمَهُ الله دويم عقلي دليل دی، او موږ د آسانۍ په خاطر د هغه او اشرف الهدايې دواړو د ترتيب مطابق د عبارت تشريح وکړه).

أصل، فرع: له "أصل" څخه مراد "مورد شرع" يعني "ما لم يقسم" دی يا په بله وينا "شريک فی نفس المبيع" ځني مراد دی، او له "فرع" څخه مراد "غيرِ مورد شرع" يعني "مقسوم" يا په بله وينا "جار" ځني مراد دی. (اثمار الهدايه)

## د احنافو دلائل

وَلَنَا مَا رَوَيْنَا او زموږ دليل هغه [دري] حديثونه دي كوم چي موږ روايت كړل وَلِأَنَّ مِلْكَهُ مُتَّصِلٌ بِمِلْكِ الدَّخِيلِ اِتِّصَالَ تَأْبِيدٍ وَقَرَارٍ او ځکه چي د شفيع ملکيت [جايداد] د مشتري د ملکيت سره په همېشني او دوامي توګه متصل دی فَيَثْبُتُ لَهُ حَقُّ الشُّفْعَةِ عِنْدَ وُجُودِ الْمُعَاوَضَةِ بِالْمَالِ اِعْتِبَارًا بِمَوْرِدِ الشَّرْعِ نو ځکه شفيع لره به حقِ شفعه ثابتيږي د معاوضه بالمال د موجودېدلو په وخت کي پر موردِ شرع په قياس کولو سره [په بله وينا: نو ځکه پر "مَا وَرَدَ بِهِ الشَّرْعُ" (يعني پر "شريک فی نفس المبيع") په قياس کولو سره به د جايداد د عوض (قيمت) ورکولو په وخت کي د همسايه شفيع لپاره هم حق شفعه ثابتيږي] وَهٰذَا لِأَنَّ الاِتِّصَالَ عَلٰى هٰذِهِ الصِّفَةِ إِنَّمَا انْتَصَبَ سَبَبًا فِيهِ لِدَفْعِ ضَرَرِ الْجِوَارِ او دا ځکه چي دغه ډول [همېشنی او دوامي] اتصال د جوار د ضرر ليري کولو په خاطر په موردِ شرع کي سبب قائم سوی دی [په بله وينا دا چي: دغه همېشني او دوامي اتصال ځکه په موردِ شرع (يعني د "شريک فی نفس المبيع په جايداد") کي سبب ټاکل سوی دی چي د جوار ضرر دفع سي] إِذْ هُوَ مَادَّةُ الْمَضَارِّ، عَلٰى مَا عُرِفَ ځکه چي دا جوار [ضررِ جوار او خراب جوار] د ټولو ضررونو جرړه ده، لکه څرنګه چي دا معلومه خبره ده وَقَطْعُ هٰذِهِ الْمَادَّةِ بِتَمَلُّكِ الْأَصْلِ أَوْلٰى او د دغه جرړي [ضررِ جوار] ختمول د شفيع د مالک کېدلو په ذريعه ډېر غوره دي لِأَنَّ الضَّرَرَ فِي حَقِّهِ بِإِزْعَاجِهِ عَنْ خُطَّةِ آبَائِهِ أَقْوٰى ځکه چي ضرر د شفيع په حق کي د خپلو پلرونو له ټاټوبي څخه د ليري کولو په وجه زيات قوي دی [يعني شفيع د خپل پلار او نيکه له ټاټوبي څخه ليري کول دا د هغه په حق کي له ضررِ جوار څخه زيات ضرر دی، يا په آسانه وينا د ټولي جملې مفهومي معنیٰ دا چي: همسايه شفيع ته حقِ شفعه ورکول او هغه د مشفوعه جايداد مالک کول له دې څخه ډېر غوره دي چي هغه له خپل پلرني ټاټوبي څخه ليري کړی سي او د هغه پر ځای اجنبي مشتري راوستل سي] وَضَرَرُ الْقِسْمَةِ مَشْرُوعٌ او د تقسيم ضرر مشروع دی [يعني په شريعت کي د هغه ګنجايش سته، او هغه يو روا امر دی] لَا يَصْلُحُ عِلَّةً لِتَحْقِيقِ ضَرَرِ غَيْرِهِ کوم چي د بل څه د ضرر ثابتولو لپاره د علت جوړېدلو صلاحيت نه لري. [کوم چي د بل څه (يعني د مشتري له رضاء څخه بغير د هغه پر مال د قابض کېدلو) د ضرر ثابتولو لپاره.... په لنډه توګه: د تقسيم ضرر يو مشروع کار دی کوم چي د حقِ شفعه د ثابتولو لپاره د علت جوړېدلو صلاحيت نه لري].

**اللغات**: ﴿دخيل﴾ د دې لفظ څو معناوي دي: ① داخلېدونکی. ② هغه اجنبي کس چې بل قوم ته داخل سي او هغو ته منسوب سي حالانکي اصلاً له هغه قوم څخه نه وي. ③ عجمي کلمه چې عربي ژبې ته داخله سوې وي او داسې نور، دلته څني مراد مشتري دی (چې هغه لره اوس په جايداد کي دخل ستته) وسمّاه دخيلًا لأنه ليس بأصيلٍ في الجوار، والأصيل هو الجَار. ﴿تأبيد﴾ د تفعيل د باب مصدر دی، أَبَّدَ يُؤَبِّدُ تَأْبِيْدًا: همېشه کول، دائمي او همېشه کېدل. ﴿قرار﴾ د ضرب له بابه اسم دی: بقاء (باقي پاتېدل، قائم پاتېدل). يادونه: د "تَأْبِيد" په لفظ سره يې له منقولي ملکيت او له هغه ملکيت (جايداد) څخه احتراز وکړی کوم چې په عاريت اخيستل سوی وي. او د "قَـرَار" په لفظ سره يې له هغه ملکيت (جايداد) څخه احتراز وکړی کوم چې په شراءِ فاسد سره رانيول سوی وي؛ ځکه هغه لره قرار نسته، چې د بيع فاسد ماتول واجب دي. ﴿مورد الشرع﴾ "ما وردَ به الشرع" يعني د کوم څه په باره کي چې شريعت وارد سوی دی چې هغه "ما لم يُقسم" (غير مقسوم جايداد) يعني د "شريک في نفس المبيع" جايداد دی، يا خودي "شريک في نفس المبيع". ﴿مادة﴾ د شي اصل (له کوم څخه چې هغه جوړ سوی او پيدا سوی وي)، جرړه او بنياد. ﴿مضارّ﴾ جمع د مَضَرَّةٌ ده: ضرر، نقصان، تکليف. ﴿إزعاج﴾ د افعال د باب مصدر دی: ليري کول (شړل)، تنګول. ﴿خِطَّة﴾ (د خاء په کسره سره): د ځمکي هغه حصه کوم چې چا د خپل ځان لپاره خاصه کړې وي، تاتوبی، او دا لفظ د خاء په ضمه سره نه دی ځکه د خُطَّة معنیٰ ده: کار، خصلت، مشکله معامله چې د هغه څه حل نه وي او داسي نور، جمع: خُطَط. ﴿لا يصلح﴾ د کَرُم له بابه د نفي صيغه ده: صلاحيت لرل، وړتيا لرل.

**تشريح**: فرمايي: د شفيع د دريو سره اقسامو لپاره چې موږ حق شفعه ثابت کړی دی، په دې هکله زموږ دليل هغه درې حديثونه دي کوم چې مخکي موږ روايت کړل، چې د هغوی الفاظ داسي دي: ① الشُّفْعَةُ لِشَرِيْكٍ لَمْ يُقَاسِمْ. ② جَارُ الدَّارِ أَحَقُّ بِالدَّارِ إلخ. ③ او الجَارُ أَحَقُّ بِسَقَبِهٖ. نو موږ د همدې احاديثو پر بناء د "شفيع في نفس المبيع" سره سره د "جَار" او "شريک في حق المبيع" لپاره هم شفعه ثابتوو. لهذا د دې احاديثو پيشِ نظر د امام شافعي رَحِمَهُ الله تقرير لره اعتبار نسته.

ولأن ملكه إلخ: دا زموږ د احنافو له طرفه عقلي دليل دی، حاصل يې دا دی چې "شريک في نفس المبيع" لره چې کوم د شفعي حق حاصل دی، هغه په دې وجه چې د ده ملکيت د مشتري (دخيل) د ملکيت سره په دائمي توګه متصل دی چې دا د ده لپاره د ضرر او تکليف لامل ګرځي او دې د

قیمت په عوض کي له مشتري څخه کور رانیسي، او دغه علت په جوار یعني د همسایه په صورت کي هم موجود دی (ځکه د همسایه د ملکیت سره هم د مشتري ملکیت مُتصلٌ اتّصالَ تأبید وقرار)، لهذا کله چي د دائمي متصل کېدلو په سبب شریک فی نفس المبیع لره د مال (قیمت) په عوض کي د ځمکي او جایداد رانیولو حق سته، نو د همسایه لپاره په داسي کولو کي څه تاوان دی؟ [احسن الهدایه]. (یا په بله وینا دا چي کله دغه علت په جوار کي هم موجود دی، نو د مذکوره ضرر د لیري کولو په خاطر به جار [همسایه] ته هم په دوو وجهو سره د شفعي حق حاصل وي: یو دا چي هغه د ځمکي په عوض کي پوره قیمت ورکوي. او دویم دا چي پر مخکیني حدیث "... فِيمَا لَمْ يُقْسَمْ" یعني پر "شریک فی النفس المبیع" باندي به قیاس کېږي (چي په هغه کي مذکوره علت په "جَار" کي هم موجود دی [اثمار الهدایه]).

<u>وهذا لأن الاتصال إلخ</u>: دا د امام شافعي رَحِمَهُ الله د دې قول "وَهٰذَا لَيْسَ فِيْ مَعْنَاه" جواب دی چي جَار (یا مقسوم جایداد) د "مَا وَرَدَ بِهِ الشَّرْع" (یعني د "شریک فی نفس المبیع" یا غیرِ مقسوم جایداد) په معنیٰ سره نه دی یعني مخکي چي امام شافعي رَحِمَهُ الله جَار (همسایه) له موردِ شرع څخه خارج کړی وو، نو صاحب د هدایې رَحِمَهُ الله په مذکوره عبارت "وهذا لأن الاتصال إلخ" سره د هغه جواب ورکوي، چي له دائمي اتصال څخه مقصد همدا دی چي انسان د همسایه له تکالیفو څخه خوندي اووسي، او دائمي اتصال چي څرنګه په "ما ورد به الشرع" یعني په غیرِ مقسوم (ناتقسیم کړی سوي) جایداد کي سته (یا په بله وینا دا چي دائمي اتصال چي څرنګه د "شریک فی نفس المبیع" په صورت کي سته)، همدارنګه د جوار (همسایه والي) په صورت کي هم سته لکه څرنګه چي دا ښکاره ده؛ او خراب همسایه همېشه د انسان لپاره تکلیف او نقصان وي؛ ځکه خرابه همسایه ګڼلوي د هر ډول ضرر او نقصان جرړه ده. لهذا د ضرر او نقصان لیري کولو په خاطر جَار (همسایه شفیع) ته هم حقِ شفعه ورکول پکار دي؛ ځکه چي د همدې ضررِ جوار پر بنیاد حقِ شفعه ورکول کیږي، او ښکاره ده چي دغه علت د جَار په صورت کي هم موجود دی، نو ځکه جَار ته به هم د شفعي حق ورکول کیږي.

<u>وقطع هذه المادة إلخ</u>: دا د یو اعتراض جواب دی. اعتراضِ دا دی چي کله شفیع ته له مشتري څخه د ضرر شکایت او خطره سته، نو دا ضرر (ضررِ جوار) خو داسي هم لیري کیږي چي خپله د شفیع ځمکه هم مشتري ته ورکول سي (پر خرڅه کړل سي)، نو په دې توګه به شفیع له ضرر او نقصان څخه خوندي سي؟.

د دې جواب دا دی چي په مذکوره صورت کي د شفیع نقصان نور هم اضافه کیږي؛ ځکه چي هغه ته دا ځمکه او ځای له خپل پلار او نیکه څخه ورپاته دي او له ډېره وخته دلته اوسیږي او د دې

ځای د خلکو سره پوره بلد دی. اوس که هغه له خپل دغه پلرني ټاټوبي ځخه لیري کړی سي، نو ښکاره خبره ده چي په فطري توګه به هغه ته زيات تکلیف وي، لهذا ډېره غوره همدا ده چي هغه ته حقِ شفعه ورکول سي او مشتري دفع کړی سي.

وضرر القسمة مشروع إلخ: دا د امام شافعي د دې قول "لأنّ مؤنة القسمة إلخ" جواب دی چي امام شافعي رَحِمَهُ الله د حقِ شفعه علت د تقسيم ضرر ګرځولی دی يعني مخکي چي هغه داسي وويل چي ("شريک في نفس المبيع" ته که حقِ شفعه نه ورکول سي بلکي بل ځوک ځمکه رانيسي، نو هغه رانيونکی خو خامخا (مجبوراً) په ده هغه ځمکه تقسيموي چي خپله حصله جلا کړي، لهذا د تقسيم له ضرر او زحمت ځخه د خوندي کېدلو په خاطر "شريک في نفس المبيع" ته حقِ شفعه ورکول سوی دی لېکن د همسايه په صورت کي دا خبره او مجبوري نسته...).

نو صاحب د هدايې رَحِمَهُ الله د دې په جواب کي فرمايي چي د تقسيم ضرر خو يو مشروع او روا کار دی (مثلاً که يو شريک د تقسيم غوښتنه وکړي، نو بيا به هم مجبوراً وېش او تقسيم کېږي که څه هم په دې کي د دويم شريک نقصان وي)، او کله چي د تقسيم ضرر يو مشروع امر دی، نو هغه د حقِ شفعه علت نه سي جوړېدلای، د حقِ شفعه اصل علت ضررِ جوار دی، نه د تقسيم ضرر. (او ښکاره خبره ده چي دغه د ضررِ جوار علت د همسايه په صورت کي هم موجود دی، نو ځکه هغه لره به هم حقِ شفعه ثابت وي).

**د امام شافعي د مُستدل حديث جواب:** امام شافعي رَحِمَهُ الله چي په خپل دليل کي کوم حديث وړاندي کړی وو (يعني "الشُّفْعَةُ فِيمَا لَمْ يُقْسَمْ")، د هغه دوه جوابونه صاحب د احسن الهدايې نقل کړي دي: ① يو جواب دا چي په دغه حديث کي رسول الله ﷺ په خاصه توګه په غيرِ مقسوم جايداد کي شفعه ثابته کړې ده او د فقهي قاعده دا ده چي "تخصيص الشيء بالذكر لا يدلّ على نفي ما عداه" يعني په خاصه توګه د يو شي ذکر کول له هغه ځخه بغير د بل شي نفي نه ثابتوي، لهذا په مذکوره حديث سره په مقسوم جايداد کي د شفعي ممانعت نه ثابتېږي.

② دويم جواب دا دی چي په "الشفعة" کي الف لام د مبالغې لپاره دی او د حديث مطلب دا دی چي "د کاملي درجې شفعه په غيرِ مقسوم جايداد کي ده"، دا يې مطلب نه دی چي "شفعه صرف په غيرِ مقسوم جايداد کي ده او په مقسوم جايداد او جوار کي شفعه نسته".

## په شفعه کي د ترتيب دلائل

وَأَمَّا التَّرْتِيبُ فَلِقَوْلِهِ عَلَيْهِ السَّلَامُ [1]: اَلشَّرِيكُ أَحَقُّ مِنَ الْخَلِيطِ او کوم چي ترتيب دى نو د نبي ﷺ د دې فرمان په وجه [ثابت دی]: چي شريک له خليط [شريک فی حق المبيع] څخه زيات حقدار دی وَالْخَلِيطُ أَحَقُّ مِنَ الشَّفِيعِ او خليط له شفيع [همسايه] څخه زيات حقدار دی فَالشَّرِيكُ فِي نَفْسِ الْمَبِيعِ لهذا شريک په نفسِ مبيع کي دی [يعني دلته له شريک څخه شريک فی نفس المبيع مراد دی] وَالْخَلِيطُ فِي حُقُوقِ الْمَبِيعِ او خليط په حقوقِ مبيع کي دی [يعني له خليط څخه شريک فی حق المبيع مراد دی] وَالشَّفِيعُ هُوَ الْجَارُ او شفيع هغه همسايه دی وَلِأَنَّ الِاتِّصَالَ بِالشَّرِكَةِ فِي الْمَبِيعِ أَقْوَى او څکه چي په مبيع کي د شرکت په ذريعه اتصال [له اتصال فی الحقوق څخه] زيات قوي دی لِأَنَّهُ فِي كُلِّ جُزْءٍ څکه چي دا [د مبيع] په هر جزء کي وي وَبَعْدَهُ الِاتِّصَالُ فِي الْحُقُوقِ او تر هغه وروسته په حقوقو کي اتصال [زيات قوي] دی لِأَنَّهُ شَرِكَةٌ فِي مَرَافِقِ الْمِلْكِ څکه چي دا د ملکيت په منافعو کي شرکت [اتصال] دی وَالتَّرْجِيحُ يَتَحَقَّقُ بِقُوَّةِ السَّبَبِ او ترجيح د سبب په قوت سره ثابتيږي وَلِأَنَّ ضَرَرَ الْقِسْمَةِ إِنْ لَمْ يَصْلُحْ عِلَّةً او څکه چي د تقسيم ضرر که څه هم د علت جوړيدلو صلاحيت نه لري صَلُحَ مُرَجِّحًا خو د مُرجح جوړيدلو صلاحيت لري.

**اللغات:** ﴿الشريك﴾ مراد ځني شريک فی نفس المبيع دی اوله خليط څخه مراد شريک فی حق المبيع دی، لکه څرنګه چي خپله صاحب د هدايې رَحِمَهُ الله ذکر کړي دي، ﴿مرافق﴾ منافع، د نفعي شيان. ﴿اتصال﴾ د افتعال د باب مصدر دی: متصل والی، پيوست والی (جوخت والی). ﴿مُرجح﴾ د تفعيل له بابه د فاعل صيغه ده: ترجيح ورکونکی، د ترجيح او تقدّم سبب.

**تشريح:** مخکي صاحب د هدايې رَحِمَهُ الله وفرمايل چي د هغه لفظ (يعني د متن الفاظ) د دوو خبرو فايده ورکړه: ثبوت (د شفعي) او ترتيب. نو اول صاحب د هدايې رَحِمَهُ الله په دلائلو سره شفعه ثابته کړه. اوس يې دلته په شفعه کي ترتيب په دلائلو سره ثابت کړی او د دې په دليل کي يې اول وار د نبي ﷺ حديث پيش کړی دی چي په هغه کي شريک له خليط څخه او خليط له جَار (همسايه) څخه زيات حقدار ښوول سوی دی.

---

[1] تخريج: أخرجه ابن أبي شيبة في مصنفه، كتاب البيوع، باب من كان يقضى بالشفعة للجار، ج:۴، ص:۵۲۰، حديث رقم:۲۲۷۱۷، ۲۳۱۷۲، ومصنف عبد الرزاق، ج:۸، ص:۶۲، رقم:۱۴۴۶۷. (ځو په الفاظو کي يې څه تغير سته او د هغه وجه موږ مخکي ذکر کړه).

ولأن الاتصال إلخ: دا د ترتيب پر ثبوت عقلي دليل دی. حاصل يې دا دی چې په نفسِ مبيع کښې د شرکت اتصال په هر هر جزء کې وي (يعني په هر هر جزء کې شريکان سره مشترک وي). او دا له بل اتصال څخه بالا او اقویٰ دی، لهذا هغه کس کوم چې د دغه اتصال حامل وي (يعني شريک فی نفس المبيع)، د هغه درجه به هم بالا وي او تر ټولو مخکې به همهغه د حقِ شفعه حقدار وي. او که هغه خپل حقِ شفعه نه غوښتل، نو بيا د شريک فی حقوق المبيع نمبر دی؛ ځکه چې هغه د مبيع (جايداد) په منافعو کې شريک دی او د منافعو اتصال د جَار له اتصال څخه زيات قوي دی؛ ځکه چې دا په هر حال کې په يو درجه نه درجه کې د مبيع سره پيوست وي. نو ځکه شريک فی حق المبيع به پر جَار مخکې کول کيږي او پر دويم نمبر به هغه د حقِ شفعه حقدار وي. او که هغه هم له حقِ شفعه څخه انکار وکړی چې زه دا جايداد او ځمکه نه غواړم، نو بيا پر دريم نمبر جَار (همسايه) د حقِ شفعه زيات حقدار دی؛ ځکه په فقه کې دا مسلمه قاعده ده چې ترجيح او تقدم د سبب په قوت سره حاصليږي، لهذا د شريک فی نفس المبيع سبب تر ټولو زيات قوي دی، نو ځکه د هغه حق هم تر ټولو مخکې دی، بيا شريک فی حق المبيع دا له جَار څخه مضبوط سبب والا دی، نو ځکه جَار ته پر هغه تقدم او فوقيت حاصل دی، او بيا په پر دريم نمبر جَار دی، نو ځکه تر شريک فی حق المبيع وروسته هغه له نورو خلکو څخه زيات حقدار دی.

ولأن ضرر القسمة إلخ: مخکې صاحب د هدايې د امام شافعي رَحِمَهُ الله په جواب کې ويلي وه چې د تقسيم ضرر د حقِ شفعه علت نه سي جوړېدای، دلته دا راښيي چې که څه هم د شفعې علت نه سي جوړېدای. خو هغه د ترجيح صلاحيت لري او مُرَجِّح (ترجيح ورکونکی) جوړېدای سي، يعني په کوم صورت کې چې د تقسيم ضرر لازميږي، هغه صورت پر نورو مخکې کول کېدای سي، لکه څرنګه چې زموږ په بيان سوي ترتيب کې هم په اول قسم يعني په شرکت فی نفس المبيع کې د تقسيم ضرر لازميږي، نو ځکه هغه به پر نورو دوو قسمونو مخکې کول کيږي.

ګواکې په دې عبارت سره هم مصنف رَحِمَهُ الله د ترتيب پر ثُبوت دليل نيولی دی. (احسن الهدايه)

## د شريک فی نفس المبيع په موجوديت کې د نورو کسانو د محروميت بيان

قَالَ: وَلَيْسَ لِلشَّرِيْكِ فِي الطَّرِيْقِ وَالشِّرْبِ وَالْجَارِ شُفْعَةٌ مَعَ الْخَلِيْطِ فِي الرَّقَبَةِ او نسته شفعه په لاره او شرب کې د شريک لپاره او د همسايه لپاره د شريک فی الرقبه سره [يعني د شريک فی نفس المبيع په موجوديت کې د شريک فی حق المبيع او همسايه لپاره شفعه نسته] لِمَا ذَكَرْنَا أَنَّهُ مُقَدَّمٌ د هغه دليل پر بناء کوم چې موږ مخکې ذکر کړی چې شريک فی الرقبه [شريک فی نفس المبيع] مخکې دی.

اللغات: ﴿رقبة﴾ معنیٰ غاړه، مراد ځنې اصل مبيع (نفسِ مبيع) ده. ﴿شِرب﴾ څه مخکې يې تفصيل تېر سو چې د دې لفظ څو معناوي دي: ① د څښلو اوبه. ② د اوبو حق، يعنې ځمکې او کور ته له والې (نهر) څخه د اوبه ورکولو حق (حق الشرب) او داسې نور. ﴿خليط﴾ مراد ځنې شريک دی.

**تشريح:** کومه خبره چې مخکې صاحب د هدايې (شارح) په تفصيل سره بيان کړه، يعنې د شفيع مراتب او اقسام، هماغه خبره امام قدوري (ماتن) داسې بيان کړې ده چې د شريک فی نفس المبيع په موجوديت کې به شريک فی حق المبيع او همسايه ته حق شفعه نه ورکول کيږي. چې دلائل يې مخکې تېر سول (يعنې په مخکينې عبارت کې ذکر سوی حديث، عقلي دليل، قوت سبب).

## د پورتنۍ مسئلې نور وضاحت او د همسايه (جَار) مصداق

قَالَ: فَإِنْ سَلَّمَ فرمايي: نو که چيرې شريک فی الرقبة لاس په سر سي [يعنې که شريک فی نفس المبيع له خپل حق شفعه څخه لاس په سر سي (پرې يې ږدي) او نه يې واخلي] فَالشُّفْعَةُ لِلشَّرِيْكِ فِي الطَّرِيْقِ نو بيا شفعه په لاره کې د شريک لپاره ده فَإِنْ سَلَّمَ او که هغه هم لاس په سر سي أَخَذَهَا الْجَارُ نو همسايه به يې اخلي لِمَا بَيَّنَّا مِنَ التَّرْتِيْبِ د همغه ترتيب په وجه کوم چې موږ بيان کړی وَالْمُرَادُ بِهٰذَا الْجَارُ الْمُلَاصِقُ او له دغه جار څخه مراد جار ملاصق دی وَهُوَ الَّذِيْ عَلٰى ظَهْرِ الدَّارِ الْمَشْفُوْعَةِ او جار ملاصق هغه دی کوم چې د مشفوعه کور شا ته وي وَبَابُهُ فِيْ سِكَّةٍ أُخْرٰى او دروازه يې په بله کوڅه کې وي وَعَنْ أَبِيْ يُوْسُفَ أَنَّ مَعَ وُجُوْدِ الشَّرِيْكِ فِي الرَّقَبَةِ لَا شُفْعَةَ لِغَيْرِهِ او له امام ابو يوسف رَحِمَهُ الله څخه روايت دی چې د شريک فی الرقبه په موجوديت کې د بل چا لپاره شفعه نسته سَلَّمَ أَوِ اسْتَوْفٰى برابره ده هغه لاس په سر سي يا [خپل حق شفعه] واخلي لِأَنَّهُمْ مَحْجُوْبُوْنَ بِهِ ځکه چې د شريک فی الرقبه په وجه نور شفيع ګان محروم پاته وي وَوَجْهُ الظَّاهِرِ أَنَّ السَّبَبَ تَقَرَّرَ فِيْ حَقِّ الْكُلِّ او د ظاهر روايت وجه دا ده چې د شفعې سبب [چې هغه اتصال دی] د هر يوه په حق کې ثابت سوی دی إِلَّا أَنَّ لِلشَّرِيْكِ حَقَّ التَّقَدُّمِ خو شريک فی الرقبه لره د مخکې والي حق حاصل دی [يعنې د هغه حق مخکې دی] فَإِذَا سَلَّمَ لهذا کله چې هغه لاس په سر سي [او خپل حق شفعه نه واخلي] كَانَ لِمَنْ يَلِيْهِ نو شفعه به د هغه کس لپاره وي کوم چې ده ته نژدې وي بِمَنْزِلَةِ دَيْنِ الصِّحَّةِ مَعَ دَيْنِ الْمَرَضِ لکه د صحت [د زمانې] قرض د مرض [د زمانې] د قرض سره.

**اللغات:** ﴿سلّم﴾ د تفعيل د باب ماضي ده، د دې باب ډيرې معناوې دي چې د صلې په بدلون سره يې معنی هم بدليږي، مثلاً: ورسپارل، ورکول، راضي کېدل، خالص کول، پر ځان قدرت ورکول او داسې نور، خو څرنګه چې يې دلته صله لفظاً نه ده ذکر سوې، نو ځکه د يو معنی تعيين يې نه سي

کېدلای، اُردو شارحينو دلته د پرېښوولو او لاس په سر کېدلو معنیٰ کړې ده والله أعلم. ﴿ملاصق﴾ متصل، جوخت، ور سره يو ځای. ﴿سِكّة﴾ کوڅه (ګلی). ﴿استوفی﴾ د استفعال د باب ماضي ده: پوره اخيستل، ترلاسه کول. ﴿يليه﴾ د حسب د باب مضارع ده: متصل کېدل، څرمه کېدل (او د ضرب له بابه د ولايت لرلو معنیٰ ورکوي).

**تشريح**: مخکې د شفيع د اقسامو تر مينځ ترتيب ذکر سو چې اول شريک فی نفس المبيع (شريک فی الرقبة) د شفعې زيات حقدار دی، بيا شريک فی حق المبيع (شريک فی الطريق...) او بيا همسايه، د شريک فی حق المبيع مطلب مخکې تېر سو چې په لاره (طريق) کې شريک وي يا ځمکې ته چې کوم د اوبو لښتی او واله راځي په هغه کې شريک وي، اوس په دې عبارت کې فرمايي چې که اول حقدار يعني شريک فی نفس المبيع موجود وي خو خپل حق شفعه نه غواړي يا ګرسره موجود نه وي، نو بيا شريک فی حق المبيع لره حق شفعه حاصل دی، او که هغه (شريک فی حق المبيع) موجود نه وي او يا موجود خو وي لېکن حق شفعه نه غواړي، نو بيا همسايه لره حق شفعه حاصل دی، او که هغه موجود نه وي يا موجود وي لېکن حق شفعه نه غواړي، نو بيا نورو خلکو ته حق شفعه يعني د مشفوعه کور او ځمکې د رانيولو حق سته. دا ظاهر روايت دی.

### ﴿د همسايه مصداق او هغه سره اړوند درې صورتونه په نقشه کې﴾

**والمراد بهٰذا الجَار**: صاحب د هدايې رَحِمَهُ الله فرمايي چې له جَار څخه مراد هغه همسايه دی چې د مشفوعه کور و شاته وي او د هغه دروازه بل طرف (بلې کوڅې) ته خلاصيږي، دلته صاحب د اثمار الهدايې د همسايه درې صورتونه په نقشه سره بيان کړي دي چې ستاسو د آسانۍ په خاطر يې موږ دلته را نقل کوو:

①... يو جار ملاصق همسايه دی چې د مشفوعه کور (يا په بله وينا د خرڅېدونکي کور) و شاته د هغه کور وي چې دروازه يې د شا کوڅې ته خلاصيږي (دا صورت په کتاب کې ذکر سوی دی)، نقشې ته وګورئ!:



(٢)... دويم صورت دا دی چي د دواړو دروازه يوې کوڅې ته را خلاصيږي، په دې صورت کي هم همسايه ته حق شفعه حاصليږي، خو د جوار (همسايه توب) پر بناء نه. بلکي په دې وجه چي دلته دواړه کورنو والا په يوه لار کي سره شريک دي، نقشې ته وګورئ! :




(٣)... دريم صورت دا دی چي د دواړو کورونه سره مخامخ وي او د دواړو په مينځ کي کوڅه يا سړک وي، چي هغه ته د دواړو دروازه را خلاصيږي، نو په دې صورت کي حق شفعه نه حاصليږي؛ ځکه چي په مينځ کي د کوڅې يا سړک راتللو په وجه جَار ملاصق يعني متصل همسايه پاته نه سو. نقشې ته وګورئ! :




وعن أبي يوسف إلخ: له امام ابو يوسف رَحِمَهُ الله څخه په غيرِ ظاهر روايت کي نقل سوي دي چي که شريک فی نفس المبيع (شريک فی الرقبة) موجود وي، نو برابره ده هغه خپل حقِ شفعه غواړي او که يې نه غواړي، په هر صورت کي بل حقدار (شريک فی حق المبيع او همسايه) ته حقِ شفعه نه حاصليږي، همدا د امام ابو يوسف رَحِمَهُ الله اُصول دی.

امام ابو يوسف رَحِمَهُ الله په اصل کي دغه مسئله د ميراث پر مسئلې قياسوي او شريک فی نفس المبيع (شريک فی الرقبة) د نورو حقدارنو لپاره حاجب ګڼي، يعني څرنګه چي په ميراث کي که د پلار مور (انا) او د مور د مور مور سره جمع سي، نو برابره ده د پلار مور ميراث وړي او که يې نه وړي، هغه په هر حال کي د مور د مور مور (له ميراث څخه) محروموي، همداسي دلته هم که شريک فی نفس المبيع موجود وي، نو برابره ده هغه خپل حق شفعه غواړي او که يې نه غواړي، په هر حال کي بل حقدار (له حقِ شفعه څخه) محروموي. دا غيرِ ظاهر روايت دی لکه مخکي چي هم موږ ذکر کړه.

**وجه الظاهر إلخ:** په ظاهر روايت كي وويل سوه چي كه شريک فی نفس المبيع خپل حقِ شفعه نه غواړي، نو شريک فی حق المبيع لره حقِ شفعه حاصل دی. او كه شريک فی حق المبيع يې هم نه غواړي، نو بيا جَار لره حق شفعه حاصل دی. دلته د ظاهر روايت دليل بيانوي، دليل يې دا دی چي د شفعي سبب (يعني اتصال) د شفيع په دريو سره قسمونو كي ثابت او موجود دی، لهذا د مشفوعه كور د خرڅيدلو سره سم دوی ټولو ته پر يوه ځای شفعه حاصله سوه، خو فرق صرف د اولويت (اول والي) دی، نو څوک چي په نفسِ كور كي شريک دی، هغه ته اول حق حاصليږي، او كه هغه يې نه غواړي، نو بيا په لاره كي شريک ته حاصليږي، او كه هغه يې هم نه غواړي، نو پر دريم نمبر همسايه ته حاصليږي.

**بمنزله دين الصحة إلخ:** د دې يو مثال ذكر كوي چي مثلاً خالد د صحت (جوړ والي) په زمانه كي پنځه زره روپۍ په قرض واخلي، بيا د مرضٰ (ناجوړی) په حالت كي مثلاً دوه زره په قرض واخلي او بيا مړ سي او تر خپل شا صرفٰ پنځه زره سرمايه پرېږدي، نو په دې صورت كي به اول د صحت (جوړ والي) د زمانې قرض اداء كول كيږي او چي له هغه څخه روپۍ پاته سي، نو د مرض والا زمانې قرض به په اداء كول كيږي. يا مثلاً د صحت والا قرض خالد ته وبخښل سي (معاف كړی سي)، نو د مرض والا زمانې قرض به اداء كول كيږي؛ ځكه چي د مړي (خالد) سره په يوه ځل د دواړو حق متعلق سوی دی. فرق صرف د اولويت (اول والي) دی، او اول د صحت قرض دی، نو د صحت والا ته به اول قرض وركول كيږي، همدارنګه دلته هم ټولو ته په يوه ځل حقِ شفعه حاصل سوی دی، خو اول حقدار يعني شريک فی نفس المبيع ته به اول حق وركول كيږي، كه هغه خپل حق نه غوښتی، نو بيا به وروسته والا ته وركول كيږي او د چا حق نه ساقطيږي.

**امام ابو يوسف ته جواب:** دا دی چي ميراث پر شفعه قياسول صحيح نه دي؛ ځكه په ميراث كي ملكيت غيرِ اختياري وي، چي د هغه په ختمولو كي بنده لره هيڅ دخل نسته، حال دا چي په شفعه كي ملكيت اختياري وي او انسان بذاتِ خود له هغه څخه لاس په سر كېدلای سي، لهذا په مقيس عليه او مقيس كي موافقت نسته، فكيف يصح القياس. (احسن الهدايه)

### د شريک فی المبيع اقسام

وَالشَّرِيكُ فِي الْمَبِيعِ قَدْ يَكُونُ فِي بَعْضٍ مِنْهَا او شريک فی المبيع كله د كور [كلا] په څه حصه كي شريک وي كَمَا فِي مَنْزِلٍ مُعَيَّنٍ مِنَ الدَّارِ أَوْ جِدَارٍ مُعَيَّنٍ مِنْهَا لكه د كور په يو معيّن منزل كي يا د كور په يو معيّن دېوال كي وَهُوَ مُقَدَّمٌ عَلَى الْجَارِ فِي مَنْزِلٍ او دا شريک په منزل كي پر همسايه مخكي

دی [يا په بله وينا د منزل پر همسايه مخکي دی] وَكَذَا عَلَى الْجَارِ فِيْ بَقِيَّةِ الدَّار او همدارنګه د دار [کلا] په پاته حصه کي پر همسايه [مخکي دی] فِيْ أَصَحِّ الرِّوَايَتَيْنِ عَنْ أَبِيْ يُوْسُفَ له دوو صحيح روايتونو څخه د ډېر صحيح روايت مطابق له امام ابو يوسف رَحِمَهُ الله څخه [يعني د امام ابو يوسف رَحِمَهُ الله د اصح روايت مطابق دا شريک د منزل پر همسايه او د کلا د مابقي حصې والا پر همسايه مخکي دی] لِأَنَّ اتِّصَالَهُ أَقْوٰى ځکه چي د هغه اتصال زيات قوي دی وَالْبُقْعَةَ وَاحِدَةٌ او د ځمکي حصه يوه ده [په بله وينا دا چي ټوله دار او کلا خو يو ځای او يوه ځمکه ده].

**اللغات**: ﴿دَار﴾ کور او سرای ته وايي، مراد ځني غټ کور دی يعني لويه کلا چي په هغه کي څو کوچني کورونه وي (چي عموماً په داسي کلا کي د يوه خاندان خلک د هغه په جلا جلا کورو کي اوسيږي، يا د کرايې لپاره استعماليږي)، ﴿منزل﴾ مراد ځني کوچنی کور دی کوم چي پر دوو يا دريو خونو مشتمل وي (او په لويه کلا کي دننه وي چي داسي کوچني کور ته پلاټ هم ويل کيږي)، او هري خوني ته يې "بَيْت" ويل کيږي، ﴿بقعة﴾ د ځمکي يوه ټوټه، حصه، په اصل کي د ځمکي هغه حصې ته وايي کوم چي له شا وخوا ځمکو څخه بدله وي، جمع: بُقَع او بِقَاع.

**تشريح**: **صورت د مسئلې**: دا دی چي مثلاً يو لويه کلا ده چي په هغه کي څو کوچني کورونه دي چي له هغوی څخه په يوه کور کي يا د کور په يو خونه کي يو کس شريک دی يا صرف په يو ديوال کي شريک دی، اوس که د دغه کلا هسي يو حصه خرڅيږي (يعني برابره ده هغه مشترکه حصه (کور او خونه) وي يا بله حصه خرڅيږي)، نو دغه شريک (کوم چي په بعضي حصه يا ديوال کي شريک دی) تر ټولو مخکي د هغه خرڅېدونکي حصې د رانيولو اول حقدار دی او له هر ډول همسايه (جَار) څخه د هغه حقِ شفعه مخکي دی، او د دغه مخکي والي دوې وجهې دي: ① يوه دا چي دغه کس په يو درجه نه درجه کي په کلا کي شريک دی، او همسايه بالکل شريک نه وي، نو د هغه اتصال د همسايه له اتصال څخه ډېر قوي دی، ② دويمه وجه دا چي ټوله کلا بقعه واحده (د ځمکي يوه حصه) ده، په بله وينا دا چي ټوله يوه کلا ده يعني په کلا کي د ټولو جوړو کورونو او خونو ځمکه يوه ده، لهذا کله چي دغه کس د کلا په يو منزل يا ديوال کي شريک دی (او منزل، ديوال او داسي نور د کلا له توابعو څخه دي)، نو په دې سره د هغه اشتراک په ټوله کلا کي ثابت سو، او کله چي هغه په ټوله کلا (دَار) کي شريک ثابت سو، نو ښکاره خبره ده چي د هغه حق به په هر حال کي له همسايه ګانو څخه مخکي وي.

## د شريک فی حق المبيع د حق شفعه شرطونه

ثُمَّ لَا بُدَّ أَنْ يَكُوْنَ الطَّرِيْقُ أَوِ الشِّرْبُ خَاصًّا بيا ضروري ده چي دا لاره او شِرب [واله] به خاصه وي حَتّٰى تَسْتَحِقَّ الشُّفْعَةُ بِالشَّرِكَةِ فِيْهِ د دې لپاره چي شفيع په هغه کي د شرکت په وجه د شفعي حقدار سي فَالطَّرِيْقُ الْخَاصُّ أَنْ لَا يَكُوْنَ نَافِذًا نو خاصه لاره دا ده چي هغه نافِذه [خلاصه] نه وي وَالشِّرْبُ الْخَاصُّ أَنْ يَكُوْنَ نَهْرًا لَا تَجْرِي فِيهِ السُّفُنُ او خاص شِرب دا دی چي داسي واله وي چي په هغه کي کښتياني نه سي چلېدلای وَمَا تَجْرِي فِيهِ او په کومه واله کي چي کښتياني چلېدلای سي فَهُوَ عَامٌّ نو هغه عامه واله ده وَهٰذَا عِنْدَ أَبِيْ حَنِيْفَةَ وَمُحَمَّدٍ او دا [تفسير] د طرفينو رَحِمَهُمَا الله په نيز دی وَعَنْ أَبِيْ يُوْسُفَ ۞ أَنَّ الْخَاصَّ أَنْ يَكُوْنَ نَهْرًا يُسْقٰى مِنْهُ قَرَاحَانِ أَوْ ثَلَاثَةٌ او له امام ابو يوسف رَحِمَهُ الله څخه روايت دی چي شِربِ خاص دا دی چي داسي واله وي چي په هغه سره دوه يا درې کښتونه [کېتياني] اوبه کېدلای سي وَمَا زَادَ عَلٰى ذٰلِكَ او کوم چي له دې مقدار څخه زيات وي فَهُوَ عَامٌّ نو هغه عام نهر دی.

**اللغات**: ﴿نافذ﴾ خلاصه (عمومي) لار، ﴿سُفُن﴾ جمع د سَفِيْنَةٌ ده: کښتي، بېړی، ﴿القَرَاحَان﴾ تثنيه د قَرَاحٌ ده، د دې لفظ څو معناوي نقل سوي دي چي له هغوی څخه يوه دا ده: هغه کښت او کرونده چي هيڅ ودانی (بناء) او درختي پکښې نه وي (مصباح منير)، يا هغه ځمکه چي په هغه کي هيڅ ودانی (بناء) او درختي نه وي بلکي د کښت کرني لپاره خالي کړل سوې وي (معجم وسيط)، هسې خو د دې لفظ خپله معنیٰ ده: خالص، لکه څرنګه چي ويل کيږي مَاءٌ قَرَاحٌ يعني خالص اُوبه، او په حاشيه کي د دې لفظ معنیٰ په باغ سره سوې ده کوم چي زموږ په قاموسونو کي نه ده نقل سوې.

**تشريح**: مخکي په متن کي ذکر سوه چي کوم کس په لاره کي شريک وي يا په شِرب يعني په واله کي شريک وي (نو پر دويم نمبر هغه ته حقِ شفعه حاصلېږي)، د دې مطلب دا دی چي په خاصه لاره يا

---

۞ القول الراجح: فی مسالة شرب الخاص قولان آخران: ① قول عامة الفقهاء: وهو أن الشركاء على النهر إذا كانوا لا يحصون (يعني که د نهر شريکان بې شمېره وي چي بعضي د هغو شمېر پنځه سوه تا کلی دی او بعضو سل او بعضو څلوېښت) فهو كبير وإلا فصغير (خاص)، ② وقيل: انه مفوض إلى رأى كل مجتهد فی زمانه إن رآهم كثيرًا كانوا كثيرًا، وإن رآهم قليلًا كانوا قليلًا.

فالقول الراجح فی هذه المسئلة هو التفويض إلى رأى كل مجتهد فی زمانه، وهذا أصح الأقوال فی هذه المسئلة، انظر للتفصيل [القول الراجح ج:۲، ص:۲۶۷]

خاصه واله کي شريک وي، نو حق شفعه ورته حاصلیږي، خو که چيري په لويه عامه لاره کي شريک وي، يا په لوی نهر او عامه واله کي شريک وي، نو ښکاره خبره ده چي په هغه کي بيخي ډېر خلک شريکان وي، نو حق شفعه به څنګه ورته حاصل سي!.

وروسته د خاص لاري تعريف کوي چي کومه لاره غير نافذه وي يعني له دواړو طرفونو څخه خلاصه نه وي بلکي يو طرف يې بند وي (چي په هغه کي د عامو خلکو تګ راتګ نه وي او صرف د هغه لاري کورو والا پکښي ځي راځي)، نو دې ته خاصه لاره وايي، او کومه لاره چي (آر پار) خلاصه وي (چي په هغه کي عام کسان تګ راتګ کوي)، نو هغه عامه لاره ده.

او د "شِرْب" په تعريف کي فرمايي چي په کوم نهر (واله) کي کوچنۍ کښتۍ نه سي تللای، هغه شربِ خاص (او کوچنۍ واله) ده، او په کوم نهر کي چي کوچنۍ کښتۍ تللای سي، هغه عام نهر دی چي په هغه کي حقِ شفعه نه ثابتيږي، دا د طرفينو رَحِمَهُمَا الله تعريف دی. او د امام ابو يوسف رَحِمَهُ الله تعريف دا دی چي په کوم نهر (واله) سره چي دوه يا درې کښتونه او باغونه اوبه کېدلای سي هغه "شرب خاص" دی او کوم نهر چي له دې څخه غټ وي چي په هغه سره تر دې ډېرو کښتو ته اوبه ورکول کېدلای سي، نو هغه "شربِ عام" دی چي په هغه کي شرکت د شفعي سبب نه سي جوړېدای او حقِ شفعه نه سي پکښي ثابتېدای.

## د پورتني مسئلې نور وضاحت

فَإِنْ كَانَتْ سِكَّةٌ غَيْرَنَافِذَةٍ او که کوڅه غير نافذه [بنده] وي يَنْشَعِبُ مِنْهَا سِكَّةٌ غَيْرُنَافِذَةٍ چي له هغې څخه بله غير نافذه کوڅه [لاندي] را جلا کيږي وَهِيَ مُسْتَطِيلَةٌ او هغه اوږده کوڅه وي [صاحب د اثمار الهدايې د "هِيَ" ضمير دا اولي کوڅې ته راجع کړی دی له کومي څخه چي بله کوڅه را جلا کيږي، او نورو شارحينو راجلا کېدونکي [منشعبه] کوڅې ته راجع کړی دی] فَبِيعَتْ دَارٌفِي السُّفْلَى بيا په لاندينۍ [منشعبه] کوڅه کي يو کور خرڅ سي فَلِأَهْلِهَا الشُّفْعَةُ خَاصَّةً دُونَ أَهْلِ الْعُلْيَا نو صرف د هغې [لاندينۍ منشعبه کوڅې] خلکو لره شفعه سته، نه د پورتنۍ کوڅې خلکو لره وَإِنْ بِيعَتْ فِي الْعُلْيَا او که په پورتنۍ کوڅه کي يو کور خرڅ سي فَلِأَهْلِ السِّكَّتَيْنِ نو د دواړو کوڅو خلکو لره شفعه سته وَالْمَعْنَى مَا ذَكَرْنَافِي كِتَابِ أَدَبِ الْقَاضِيْ او د دې وجه هماغه ده کوم چي په "كتاب أدب القاضي" کي موږ ذکر کړې ده وَلَوْكَانَ نَهْرٌصَغِيرٌيَأْخُذُ مِنْهُ نَهْرٌأَصْغَرُمِنْهُ او که يو کوچنی نهر [واله] وي چي له هغه څخه تر

هغه کوچنی نهر راوځي فَهُوَ عَلَى قِيَاسِ الطَّرِيقِ فِيمَا بَيَّنَّاهُ نو دا هم د لاري پر قياس ده په هغه صورت کي کوم چي موږ بيان کړی [يعني فإن كانت سكة غير نافذة ينشعب منها سكة غير نافذة إلخ].

**اللغات:** ﴿سِكّة﴾ کوڅه (ګلی)، ﴿غير نافذة﴾ داسي کوڅه کوم چي خلاصه نه وي چي هغې ته بنده کوڅه ويل کيږي، ﴿ينشعب﴾ د انفعال له بابه د مضارع صيغه ده، د دې باب څو معناوي دي چي يوه معنىٰ يې ده: را جلا کېدل (دا معنىٰ يې هلته راځي کله چي يې په صله کي لار او داسي نور ذکر سي)، ﴿مستطيلة﴾ اوږده، ﴿سُفلیٰ﴾ لاندينی، صاحب د اثمار الهدايې وايي چي له سُفلیٰ څخه مراد کوچنۍ (منشعبه) کوڅه ده او له عُلیا څخه مراد اوږده کوڅه ده. (اثمار الهدايه، ج: ۱۲، ص: ۲۴)

**اصول:** چيري چي د خلګو بار، بار تللو ته ضرورت پېښيږي، هلته هغوی ته حق شفعه حاصليږي، او چيري چي يې د بار، بار تللو ضرورت نه وي، هلته حق شفعه نه ورته حاصليږي.

**تشريح: صورت د مسئلې:** دا دی چي يوه اوږده غيرِ نافذه (بنده) کوڅه ده چي له هغې څخه بله غيرِ نافذه کوچنۍ کوڅه وځي، مثلاً داسي:




ښکاره خبره ده چي کله د دې کوچنۍ غيرِ نافذه کوڅې خلک دباندي ځي، نو پر دغه اوږده پورتنۍ کوڅه وځي، لهذا د کوچنۍ کوڅې والا خلګو لره هر وخت دا ضرورت پېښيږي چي پر اوږده کوڅه ولاړ سي راسي؛ ځکه بله لار سته نه (نو ځکه کوچنۍ کوڅې والا په دې اوږده کوڅه کي حقِ شفعه لري)، او پاته سو د اوږدې کوڅې خلګو لره دا ضرورت نه پېښيږي چي لاندي کوچنۍ کوڅې ته راسي، نو معلومه سوه چي په لاندي کوچنۍ کوڅه کي د اوږدې کوڅې والا وو اشتراک نسته (ځکه چي هغوی دغه کوڅې ته هيڅ ضرورت نه لري) او د دغه لاندينۍ کوچنۍ کوڅې د خلګو په دواړو کوڅو کي اشتراک سته (ځکه چي د هغوی اوږدې کوڅې ته هم ضرورت سته)، نو په دې وجه که چيري په اوږده کوڅه کي يو کور خرڅېدی، نو د اوږدې کوڅې د خلګو سره د کوچنۍ کوڅې والا خلګو ته هم حقِ شفعه حاصليږي، خو که په کوچنۍ کوڅه کي يو کور خرڅېدی، نو فقط کوچنۍ کوڅې ولا ته دا حق حاصليږي.

ولوكان النهرإلخ: همدارنګه د دوو نهرونو (ويالو) هم دغه حکم دی. يعني که يوه وياله (نهر صغير) وي چي له هغه څخه لاندې بله کوچنۍ وياله (نهر اصغر) يعني لښتی را وځي. اوس ښکاره خبره ده چي د لښتي (نهر اصغر) والا خلک په هغه پورتنۍ وياله (نهر صغير) کي اشتراک لري لېکن د ويالې د خلکو د لښتي والا سره هيڅ تعلق نسته، نو په دې وجه که چيري د پورتنۍ ويالې (نهر صغير) سره متصل ديو چا کښت او ځمکه خرڅېدله، نو د دغه پورتنۍ ويالې د خلکو سره د لښتي (نهر اصغر) خلکو ته هم حق شفعه حاصلېږي (ځکه چي د لښتي (نهر اصغر) والا خلک بار. بار د اُوبه را ايله کولو او اخيستلو لپاره پورتنۍ ويالې ته ځي راځي، نو ځکه هغو ته به هم حق شفعه حاصل وي)، او که چيري د لښتي (نهر اصغر) سره کښت او ځمکه خرڅېدله، نو فقط د همدغه لښتي خلکو لره حق شفعه سته، د پورتني ويالې خلکو ته حقِ شفعه نه حاصلېږي (ځکه چي د هغو دلته راتلو ته ضرورت نسته).

## د شرکت جوار يو صورت

قَالَ: وَلَا يَكُوْنُ الرَّجُلُ بِالْجُذُوْعِ عَلَى الْحَائِطِ شَفِيْعَ شَرِكَةٍ [صاحب د هدايې رَحِمَهُ الله] فرمايي: چي سړی پر دېوال د تيرانو په ايښودلو سره د شرکت والا شفيع نه ګرځي وَلٰكِنَّهُ شَفِيْعُ جِوَارٍ لېکن هغه د جوار [همسايه توب] والا شفيع دی لِأَنَّ الْعِلَّةَ هِيَ الشَّرِكَةُ فِي الْعَقَارِ ځکه [د شرکت والا شفيع کېدلو] علت په جايداد [ځمکه] کي شريک کېدل دي وَبِوَضْعِ الْجُذُوْعِ لَا يَصِيْرُ شَرِيْكًا فِي الدَّارِ او د تيرانو په ايښودلو سره هغه په کور کي شريک نه ګرځي إِلَّا أَنَّهُ جَارٌ مُلَازِقٌ خو هغه متصل همسايه دی قَالَ: وَالشَّرِيْكُ فِي الْخَشَبَةِ تَكُوْنُ عَلَى حَائِطِ الدَّارِ جَارٌ [امام محمد رَحِمَهُ الله] فرمايي: او شريک د هغه لرګيو کوم چي د کور پر دېوال وي همسايه دی [يعني د کور پر دېوال په ايښودل سوو لرګيو او تيرانو کي شريک کس د همسايه په حکم کي دی] لِمَا بَيَّنَّا د هغه دليل په وجه کوم چي موږ بيان کړی.

**اللغات:** ﴿جذوع﴾ جمع د جِذْعٌ ده: د خرما د درختي تنه، تير، شاتير، ﴿حائط﴾ دېوال، جمع حِيْطَان. ﴿ملازق﴾ ورسره متصل (موښتی)، جوخت، ﴿عقار﴾ جايداد، لکه ځمکه، کور او داسي نور. ﴿خشبة﴾ واحد د خَشَبٌ دی: مَا غَلُظَ مِنَ الْعِيْدَان يعني پنډ لرګيان. (معجم وسيط)

**يادونه:** په دغه عبارت کي د اول قَالَ فاعل صاحب د هدايې رَحِمَهُ الله دی. او د دويم قَالَ فاعل امام محمد رَحِمَهُ الله دی.

**تشريح**: مخكي چي كوم په دېوال كي د شريک كېدلو بحث تېر سو، د هغه مطلب صرف په دېوال كي شريک كېدل نه دي، بلكي د دېوال سره په هغه ځمكه يا كور كي هم شركت ضروري دی چي په هغه كي دېوال ولاړ وي، همدا وجه ده چي پر دېوال محض د تېرانو او لرگيانو په ايښودلو سره شركت نه ثابتيږي، مثلاً كه د يو چا پر دېوال د بل كس تېران پراته وي، نو محض په دې وجه سره هغه بل كس شريک فی الدار نه گرځي،لهذا هغه ته به شركت والا شفيع نه ويل كيږي، بلكي داسي كس ته د همسايه توب والا شفيع (يا په بله وينا همسايه) ويل كيږي.

**قال**: صاحب د هدايې د امام محمد رَحِمَهُ الله عبارت د تائيد په توګه پېشوي چي د امام محمد رَحِمَهُ الله په نېز هم د كور پر دېوال د ايښودل سوو تيرانو شريک ته جَار (همسايه) ويل كيږي، نه شريک فی الدار، او د دې دليل دا دی چي د شريک فی الدار (يا شركت والا شفيع) كېدلو لپاره په ځمكه او كور كي شركت ضروري دی كوم چي دلته نسته او محض د تير او لرگي په ايښودلو سره هغه په كور (دَار) نه شريک كيږي، خو هغه جَار ملاصق دی چي تفصيل يې مخكي تېر سو (چي تر شريک فی نفس المبيع او شريک فی حق المبيع وروسته به حق شفعه وركول كيږي).

## د څو شفيع گانو د موجود والي يو صورت

قَالَ: وَإِذَا اجْتَمَعَ الشُّفَعَاءُ فرمايي: او كله چي [د يو جايداد مثلاً د يو كور په شفعه كي] څو شفيع گان جمع سي فَالشُّفْعَةُ بَيْنَهُمْ عَلَىٰ عَدَدِ رُءُوسِهِمْ نو شفعه [حقِ شفعه] د هغو په مينځ كي د هغو د عدد رؤس [شمېر] مطابق ده [يعني د هغو د شمېر او تعداد اعتبار به كيږي چي ټولو ته به برابر، برابر حقِ شفعه حاصليږي] وَلَا يُعْتَبَرُ اخْتِلَافُ الْأَمْلَاكِ او د ملكيتونو د اختلاف [كمي و زياتوب] اعتبار به نه كيږي وَقَالَ: الشَّافِعِيُّ: هِيَ عَلَىٰ مَقَادِيرِ الْأَنْصِبَاءِ او امام شافعي رَحِمَهُ الله فرمايي: چي [په دې صورت كي] شفعه د حصو په اندازه ده [يعني د شفيع گانو د حصو او ملكيت د مقدار په اعتبار سره (يعني څومره حصه او ملكيت چي يې وي هغومره) حقِ شفعه ورته حاصليږي] لِأَنَّ الشُّفْعَةَ مِنْ مَرَافِقِ الْمِلْكِ ځكه چي شفعه د ملكيت له منافعو څخه ده أَلَا يَرَىٰ أَنَّهَا لِتَكْمِيلِ مَنْفَعَتِهِ آيا نه گوري چي شفعه د ملكيت د منفعت پوره كولو لپاره ده فَأَشْبَهَ الرِّبْحَ وَالْغَلَّةَ وَالْوَلَدَ وَالثَّمَرَةَ نو حقِ شفعه د گټي، غلې، ولد او مېوې په څېر سو.

**اللغات**: ﴿رؤوس﴾ جمع د رَأْسٌ ده: سر، مراد څني ذات او نفس دی. ﴿مقادير﴾ جمع د مِقْدَارٌ ده: مقدار، اندازه، كچه. ﴿أنصباء﴾ جمع د نَصِيبٌ ده: حصه، برخه. ﴿مرافق﴾ جمع د مَرْفِق ده (پر وزن د مسجد): هغه شی چي انسان نفع څني اخلي، منفعت، نو مرافق معنیٰ منافع. ﴿ربح﴾ نفع، گټه،

﴿ولد﴾ مراد ځني د مينځي بچي دی، ﴿الغلّة﴾ د ځمکي غله پيداوار، فصل، محصولات (يعني کوم څه چي له ځمکي څخه حاصليږي لکه غنم، اوربشي، مېوه او داسي نور).

**تشريح: صورت د مسئلې**: دا دئ چي مثلاً يو کور څلورو کسانو په څلوېښت لکه رانيوی، چي په هغه کي شل لکه د يوه کس دي، لس لکه د دويم کس دي، پنځه لکه د دريم کس دي او پنځه لکه بيا د څلورم کس دي، اوس مثلاً پنځو لکو والا کس خپله حصه خرڅوي چي د هغه تر شا درې کسان شفيع ګڼل (د شفعي مستحقين) دي، نو په داسي صورت کي زموږ د احنافو مسلک دا دی چي ټولو شفيع ګانو ته برابر حق شفعه حاصليږي يعني دغه خرڅېدونکې حصه به ټوله برابر، برابر اخلي، او د هر کس د حصې (سهم) مقدار ته به نه کتل کيږي، يعني داسي به نه کيږي چي شل لکو والا ته به نيمه حصه ورکول کيږي او لس لکو والا ته څلورمه حصه او پنځو لکو والا ته به د څلورمي نيمی (اتمه حصه) ورکول کيږي (بلکي که شفيع ګان مثلاً درې کسان وه لکه دلته، نو مشفوعه حصه [ځمکه] به درې حصې کول کيږي او هر يوه ته به يوه حصه [دريمه حصه] ورکول کيږي).

امام شافعي رَحِمَهُ الله فرمايي چي د حصو د مقدار په اعتبار سره حق شفعه حاصليږي، يعني د هر کس چي څومره حصه او څومر ملکيت دی، د هغه په اعتبار سره هغه ته د حصه اخيستلو حق سته، مثلاً په پورتني مثال کي شل لکو والا ته به (د خرڅېدونکي [مشفوعه] ځمکي) نيمه حصه ورکول کيږي، ځکه چي په څلوېښت زرو کي نيمی د هغه دي، او د کوم کس چي لس زره دي، هغه ته به (د خرڅېدونکي ځمکي) څلورمه حصه ورکول کيږي، او د کوم يوه چي پنځه زره دي، هغه ته به اتمه حصه ورکول کيږي.

**د امام شافعي دليل**: دا دی چي شفعه د ملکيت له منافعو څخه ده، يعني شفيع ته د همدې خپل ملکيت په وجه حق شفعه حاصليږي چي هغه په ځمکه کي ملکيت لري او چي هغه په حق شفعه سره له خپل ملکيت څخه پوره نفع ترلاسه کړي، ګواکي د شفعي مقصد د ملکيت د منفعت تکميل دی، لنډه دا چي کله شفعه د ملکيت له منافعو څخه ده، او ښکاره خبره ده چي د يو ملکيت منافع د حصو په اندازه تقسيمېږي، نو موجوده شفيع ګانو ته به هم د خپلو حصو په اندازه حق شفعه حاصليږي.

فأشبه الربح والغلة والولد والثمرة إلخ: امام شافعي رَحِمَهُ الله د خپل مسلک په تائيد کي څلور مثالونه پېشوي:

① ... ربح: رانيول سوی شی چي خرڅ کړی سي او پر هغه ګټه ترلاسه کړی سي، له ربح څخه همدا ګټه (نفع) مراد ده، مثلاً زيد، عمر او خالد يوه غوا په پنځه دېرش زره (۳۵۰۰۰) رانيوله، چي په هغه کي شل زره د زيد دي، لس زره د عمر دي او پنځه زره د خالد دي، بيا يې دا غوا په اته دېرش نيم

زره (۳۸۵۰۰) خرڅه کړه، یعني درې نیم زره یې ګټه پر وکړه. نو له دغه ګټې (نفعې) څخه به دوه زره زید ته ور کول کیږي؛ ځکه د هغه حصه شل زره وه، او عمر ته به زر ور کول کیږي؛ ځکه د هغه حصه لس زره وه، او پنځه سوه به خالد ته ور کول کیږي؛ ځکه د هغه حصه پنځه زره وه. لهذا څرنګه چې په ګټه او نفع کې د حصو اعتبار کیږي، نو همداسې به په حق شفعه کې هم د حصو اعتبار کیږي چې د هر یوه څومره حصه وي، هغومره حق شفعه به ور کول کیږي.

(۲)... غلة: له غله څخه مراد د ځمکې پیداوار دی، مثلاً زید، عمر او خالد په ۳۵ زره یو ځمکه رانیوله، بیا هغه ځمکې ۳۵ منه غنم وکړه، نو زید ته به شل منه ور کول کیږي، عمر ته لس منه او خالد ته به پنځه منه ور کول کیږي؛ ځکه چې دوی په همدې حساب سره په ځمکه کې حصه لري.

(۳)... الولد: له ولد څخه مراد د مینځې بچی دی، مثلاً زید، عمر او خالد په ۳۵ زره یوه مینځه رانیوله، بیا له هغې څخه یو هلک پیدا سو چې وروسته دا هلک په ۳۵ زره خرڅ سو، نو زید ته شل زره، عمر ته لس زره او خالد ته پنځه زره حاصلیږي؛ ځکه دوی په همدې حساب سره په مینځه کې حصه داره دي.

(۴)... الثمرة: مراد ځنې د باغ مېوه ده، مثلاً زید، عمر او خالد په ۳۵ زره یو باغ رانیوی، بیا هغه باغ مېوه وکړه او په ۳۵ زره خرڅه سوه، نو زید ته شل زره، عمر ته لس زره او خالد ته پنځه زره حاصلیږي؛ ځکه دوی په همدې حساب سره په ځمکه کې حصه داره وه.

په دغه څلور سره مثالو کې هر کس ته د خپل ملکیت منافع (ګټه) د خپل حصې په اندازه حاصلیږي، او حق شفعه هم د ملکیت منافع دي، نو ځکه حق شفعه به هم هر یوه ته د خپل حصې په مقدار سره حاصلیږي.

## په پورتنی مسئله کې زموږ (د احنافو) دلیل

وَلَنَا: أَنَّهُمْ اِسْتَوَوْا فِي سَبَبِ الِاسْتِحْقَاقِ او زموږ دلیل دا دی چې دا ټوله شفیع ګان [د شفعې] د مستحق کېدلو په سبب کې سره برابر دي وَهُوَ الِاتِّصَالُ او هغه [د شفعې سبب] اتصال دی [یعني د مشفوعه جایداد (کور یا ځمکې) سره د شفیع ملکیت متصل کېدل] فَيَسْتَوُوْنَ فِي الِاسْتِحْقَاقِ نو ځکه په استحقاق [حق شفعه اخیستلو] کې به هم سره برابر وي أَلَا يَرَىٰ أَنَّهُ لَوِ انْفَرَدَ وَاحِدٌ مِنْهُمْ آیا دې ته نه ګوري چې که له شفیع ګانو څخه یو شفیع یوازې سي [یعني یوازې یو شفیع پاته سي] اِسْتَحَقَّ كُلَّ الشُّفْعَةِ نو هغه د ټولې شفعې مستحق کیږي وَهٰذَا آيَةُ كَمَالِ السَّبَبِ او دا د سبب د کامل والي علامت دی وَكَثْرَةُ

الاِتِّصَالِ تُؤْذِنُ بِكَثْرَةِ العِلَّةِ او د اتصال زياتوالى [زياتېدل] د علت د زياتوالي خبر ورکوي وَالتَّرْجِيحُ بِقُوَّةِ الدَّلِيلِ لَا بِكَثْرَتِهِ [لېکن] ترجيح د دليل په قوي کېدلو سره وي، نه د هغه په زياتوالي سره وَلَا قُوَّةَ هٰهُنَا او دلته قوت سته نه لِظُهُورِ الْأُخْرٰى بِمُقَابَلَتِهِ ځکه چې د هغه په مقابله کې بل قوت ښکاره دى وَتَمَلُّكُ مِلْكِ غَيْرِهِ لَا يُجْعَلُ ثَمَرَةً مِنْ ثَمَرَاتِ مِلْكِهِ او د بل چا د ملکيت مالک کېدل د خپل ملکيت له ثمراتو [نتائجو] څخه نه سي ګرځول کېداى [په بله وينا: د بل چا د ملکيت مالک جوړېدل د خپل ملکيت ثمره او نتيجه نه سي شمېرل کېداى] بِخِلَافِ الثَّمَرَةِ وَأَشْبَاهِهَا په خلاف د مېوې او داسي نورو.

**اللغات:** ﴿استووا﴾ د استفعال له بابه د جمع مذکر غائب ماضي صيغه ده: برابرېدل. ﴿تُؤْذِن﴾ د افعال د باب مضارع ده، آذَنَ يُؤْذِنُ إِيْذَانًا: د دغه باب څو معناوي دي چې له هغوى څخه يوه دا ده: اګاه کول، خبر ورکول. ﴿تملّك﴾ د تفعّل د باب مصدر دى: مالک کېدل، مالک جوړېدل.

**تشريح:** په دغه عبارت کې صاحب د هدايې رَحِمَهُ الله د احنافو دليل ذکر کړى او د امام شافعي رَحِمَهُ الله د دليل جواب ورکوي، حاصل د عبارت دا دى چې د څو شفيع ګانو د موجود والي په صورت کې چې موږ دا حکم کړى دى چې دوى ټولو ته برابر، برابر حقِ شفعه حاصلېږي؛ د دې دليل دا دى چې د شفعي سبب اتصال دى (يعني حقِ شفعه هغه چا ته حاصلېږي چې د هغه ملکيت د مشفوعه کور او ځمکي سره په يو توګه متصل وي)، او دلته ټوله شفيع ګان په اتصال کې سره برابر دي (يا په بله وينا دا چې په مبيع کې ټوله سره شريک دي)، نو ځکه دوى به د شفعي په استحقاق کې هم يو د بل سره برابر او مساوي وي؛

په أَلَا يَرٰى سره د دې يو دليل پېښوي چې که له موجوده شفيع ګانو څخه يو يوازي سي يا په بله وينا دا چې له يوه څخه بغير نور (دوه) شفيع ګان له خپل حقِ شفعه اخيستلو څخه انکار وکړي، نو هغه يوازني شفيع ته ټوله شفعه حاصليږي (يعني د ټوله خرڅېدونکي مشفوعه کور يا ځمکي د اخيستلو حق ور ته حاصلېږي)، داسي نه ده چې هغه ته فقط د خپلي حصې په اندازه شفعه حاصلېږي، نو دا د دې خبري دليل دى چې په حق شفعه کې د ټولو شفيع ګانو حق سره برابر دى (يا په بله وينا دا چې په انفرادي حالت کې د ټولي شفعي حاصلېدل دا په خپله د سبب د کمال دليل دى. کنې ښکاره خبره ده چې په داسي صورت کې خو منفرد ته صرف د خپلي حصې په اندازه شفعه حاصلېدل پکار دي).

وكثرة الاتصال إلخ: دا د يو اعتراض جواب دی. اعتراض دا دی چې کله د شفعې د استحقاق سبب اتصال دی، نو په اتصال کې خو کمي و زياتوب وي (يعني د چا اتصال زيات وي او د بل يوه د کم وي)؛ ځکه د زياتي حصې والا اتصال د کمي حصې والا په مقابله کې زيات وي. نو دا دواړه څنګه سره مساوي کېدلای سي.

د جواب حاصل دا دی چې موږ هم دا خبره در سره منو چې په اتصال کې کمي وزياتوب (کمي بيشي) راځي، لېکن تاسو دا قاعده په ياد لرئ! چې ترجيح د علتونو په کثرت سره نه حاصلېږي، بلکې ترجيح د علت د قوت پر بنياد حاصلېږي (په بله وينا دا چې په ترجيح کې د علت مضبوط والي لره اعتبار دی. د علت کثرت لره اعتبار نسته)، او دلته د علت قوت نسته که څه هم کثرت يې سته (چې د زياتي حصې والا علت زيات دي)؛ نو ترجيح به هم نه حاصلېږي، ځکه که چيري زياتي حصې والا (صاحب کثير) لره ترجيح حاصله وای، نو د هغه په موجوديت کې به بل يوه ته هيڅ نه حاصلېدای، حال دا چې دلته د هغه په موجوديت کې بل يوه (کمي حصې والا) ته هم حق شفعه حاصلېږي، معلومه سوه چې د علت کثرت د ترجيح وجه نه سي کېدلای. (په بله وينا دا چې د کوم يوه حصه [ځمکه] چې زياته ده، د هغه علت زيات دی، خو د نورو په مقابله کې د هغه علت قوي او مضبوط نه دی؛ ځکه که هغه قوي وای، نو د زياتي حصې والا په موجوديت کې به کمي حصې والا ته بالکل حق نه حاصلېدای. حالانکې دلته هغه ته هم حاصلېږي، لهذا کله چې د زياتي حصې والا علت قوي نه دی، نو ټولو ته به برابر حق شفعه حاصلېږي. لاقوة ههنا لظهور الأخرى بمقابلته: صاحب د اثمار الهدايه د دغه عبارت مطلب داسې بيان کړی دی چې څرنګه شريک فی نفس المبيع چې کله موجود وي، نو شريک فی حق المبيع [شريک فی الطريق] لره حق شفعه نه حاصلېږي؛ ځکه په نفس مبيع کې د شريک کس علت قوي دی. لېکن دلته داسې نه ده؛ ځکه په مبيع [ځمکه او کور] کې چې د چا حصه زياته ده. د هغه په موجوديت کې کمي حصې والا ته هم حق شفعه حاصلېږي. نو ځکه د زياتي حصې والا حق د نورو په مقابله کې قوي نه دی).

وتملك مال غيره إلخ: دا د امام شافعي رَحِمَهُ الله د دليل جواب دی، هغه ويلي وه چې شفعه د ملکيت له منافعو څخه ده او بيا يې څلور مثالونه پېش کړي وه. د جواب حاصل دا دی چې شفعه د ملکيت له منافعو څخه نه سي شمېرل کېدای (د خپل ملکيت منافع نه سي کېدلای)، کنې په هر تملک (مالک کېدلو) کې د خپل ملکيت دخل راتلل پکار دي (يعني که شفعه د ملکيت له منافعو څخه سي او خپل ملکيت لره دخل ورکول سي، نو بيا پکار دا ده چې د هر شي چې انسان مالک سي، نو په هغه شي کې به د ده ملکيت دخل وي. حالانکې داسې نه ده)، مثلاً پلار د خپل ځوی د مينځې مالک وي، لېکن دا ملکيت د هغه د ملکيت ثمره نه ده بلکې دا خو د زوی د ملکيت ثمره ده. لهذا شفعه ته د ملکيت منافع نه سي ويل کېدای.

پاته سوه د مېوې او داسې نورو مسئله، نو مېوه خو له عين ملکت څخه پيدا کيږي او هغه د ملکيت ثمره ده. نو ځکه هغه د ملکيت له منافعو څخه شمېرل کيږي. لېکن شفعه د ملکيت له منافعو څخه شمېرل د دې هيڅ وجه زموږ په ذهن کې نه راځي.

## په پورتنۍ مسئله کې د یوه شفیع خپل حق ساقطول

وَلَوْ أَسْقَطَ بَعْضُهُمْ حَقَّهُ او که بعضي د دې شفیع ګانو خپل حقِ شفعه ساقط کړي فَهِيَ لِلْبَاقِيْنَ فِي الْكُلِّ عَلَى عَدَدِهِمْ نو شفعه باقي کسانو لره ده په ټوله مبیع [کور] کې د هغو د شمېر مطابق [یعني په دې صورت کې پاته شفیع ګانو ته د هغو د عددِ رؤوس مطابق په ټوله مشفوعه کور یا ځمکه کې حقِ شفعه حاصلیږي] لِأَنَّ الِانْتِقَاصَ لِلْمُزَاحَمَةِ مَعَ كَمَالِ السَّبَبِ فِي حَقِّ كُلِّ وَاحِدٍ مِنْهُمْ ځکه چې د حصې کمېدل د مزاحمت په وجه وه، د هر شفیع په حق کې د سبب د کامل والي باوجود [په بله وینا: ځکه د ټولو شفیع ګانو حصه چې کمه (لږ) سوې وه، هغه د مزاحم کېدلو په وجه وه، حالانکې د هر یوه په حق کې سبب پوره او کامل موجود دی] وَقَدِ انْقَطَعَتْ او مزاحمت ختم سو.

**اللغات:** ﴿انتقاص﴾ د افتعال مصدر دی: کمېدل، کموالی، ﴿مزاحمة﴾ د مفاعلې د باب مصدر دی: مقابل کېدل، تنګي کول. ﴿لأن الانتقاص للمزاحمة﴾ یعني ټولو شفیع ګانو ته چې کمه حصه (دریمه حصه) رسېدل، هغه د دریم کس (دریم شفیع) د مزاحم کېدلو په وجه وه چې دا د دریم کس د پاته (دوو) کسانو مقابل راتلی، لېکن کله چې هغه خپل حق ساقط کړی او دا مزاحم کېدل ختم سوه، نو اوس به پاته کسانو (شفیع ګانو) ته برابر حق حاصلیږي.

**تشریح:** دا عبارت د مخکنۍ مسئلې سره تعلق لري چې که له (موجوده دریو) شفیع ګانو څخه یو شفیع خپل حق شفعه پرېږدي او ساقط یې کړي چې زه یې نه غواړم، نو اوس پاته (دوو) شفیع ګانو ته برابر، برابر حقِ شفعه حاصلیږي (او داسې نه ده چې زیاتې حصې والا شریک ته به په مشفوعه کور کې زیاته حصه ورکول کیږي او کمې حصې ولا ته به کمه ورکول کیږي)؛ ځکه چې کامل سبب هر یوه ته حاصل دی، او د حصې کموالی د شریکانو (شفیع ګانو) د کثرت او مزاحمت پر بناء وه (یعني دریو سره شفیع ګانو ته چې کمه [لږ] حصه رسېدل، هغه د دریم کس د مزاحمت په وجه وه)، لېکن کله چې یوه کس (هغه دریم کس) خپل حق ساقط کړی او مزاحمت ختم سو، نو ځکه اوس به پاته (دوو) شفیع ګانو ته برابر حق حاصلیږي او هر یوه ته به له مشفوعه کور څخه برابره حصه ورکول کیږي.

## که بعضي د شفعې مستحقین (شفیع ګان) غائب وي نو څه حکم دی

وَلَوْ كَانَ الْبَعْضُ غُيَّبًا او که بعضي شفیع ګان غائب وي يُقْضٰى بِهَا بَيْنَ الْحُضُوْرِ عَلٰى عَدَدِهِمْ نو د حاضرینو په مینځ کې به د هغو د عدد [شمېر] مطابق د شفعې فیصله کیږي لِأَنَّ الْغَائِبَ لَعَلَّهُ لَا يَطْلُبُ ځکه کېدای سي چې غائب [د شفعې] طلب نه وکړي وَإِنْ قُضِيَ لِحَاضِرٍ بِالْجَمِيْعِ او که د یو حاضر

شفيع لپاره د ټولي شفعي فيصله وسي ثُمَّ حَضَرَ آخَرُ بيا بل شفيع حاضر سي يُقْضٰى لَهُ بِالنِّصْفِ نو د هغه لپاره به د نيمي شفعي فيصله كيږي وَلَوْحَضَرَ ثَالِثٌ او كه درېيم شفيع حاضر سي فَبِثُلُثِ مَا فِي يَدِ كُلِّ وَاحِدٍ نو د هر يوه په قبضه كي د موجوده حصې د ثلث [درېيمي حصې] فيصله به كيږي تَحْقِيقًا لِلتَّسْوِيَةِ د برابرۍ ثابتولو لپاره فَلَوْ سَلَّمَ الْحَاضِرُ بَعْدَ مَا قَضٰى لَهُ بِالْجَمِيعِ او كه دا حاضر [له شفعي څخه] لاس په سر سي وروسته تر دې چي د هغه په حق كي د ټوله شفعي فيصله وسي [يعني كه د حاضر شفيع په حق كي د ټولي شفعي تر فيصله كېدلو وروسته وروسته دا حاضر شفيع لاس په سر سي او خپل حق شفعه پرېږدي] لَا يَأْخُذُ الْقَادِمُ إِلَّا النِّصْفَ نو راتلونكي شفيع به صرف نصف اخلي [يعني راتلونكي غائب شفيع ته صرف نيمه حصه حاصليږي] لِأَنَّ قَضَاءَ الْقَاضِي بِالْكُلِّ لِلْحَاضِرِ يَقْطَعُ حَقَّ الْغَائِبِ عَنِ النِّصْفِ ځكه چي د حاضر په حق كي د قاضي د ټولي شفعي فيصله د غائب حق له نصف څخه قطع كوي [يعني قاضي چي د حاضر لپاره د ټولي شفعي فيصله كړې وه، هغه فيصلې د غائب نيمه حصه ختمه كړه] بِخِلَافِ مَا قَبْلَ الْقَضَاءِ په خلاف د قاضي له فيصلې څخه د مخكي والا صورت.

**اللغات**: ﴿غُيَب﴾ جمع د غَائِبٌ ده: غائب، نا حاضر، ﴿يقضى﴾ د ضرب د باب مضارع مجهوله ده: فيصله كول، حكم كول، ﴿تسوية﴾ د تفعيل د باب مصدر دى: برابرول، ﴿قادم﴾ د سمع د باب فاعل دى: راتلونكى.

**تشريح**: **صورت د مسئلې**: دا دى چي په يو كور يا په يو بل جايداد كي مثلاً درې كسان شفيع ګڼل وه او له دوى څخه يو غائب وو، نو كوم دوه چي حاضر دي، هغو ته به د خپل تعداد (شمېر) مطابق برابر، برابر حق شفعه وركول كيږي (په بله وينا دا چي دواړو حاضرينو لپاره به د ټولي شفعي فيصله كيږي)، او غائب كس (شفيع) ته به انتظار نه كيږي؛ ځكه كېداى سي چي غائب كس شفعه طلب نه كړي او خپله حصه نه واخلي، يعني د هغه په اخيستلو او نه اخيستلو كي شك سته او حاضرين فى الحاله د اخيستلو مطالبه كوي. لهذا د شك پر بنياد به دوى له خپل حصې څخه نه منع كول كيږي، بلكي د دوى په حق كي به فيصله كيږي. ځكه قاعده دا ده چي "اليقين لا يزول بالشك".

وإن قضى لحاضر بالجميع: د دې حاصل دا دى چي مثلاً درې كسان شفيع ګڼل وه، خو له هغو څخه يو شفيع حاضر وو. بيا قاضي د هغه لپاره د ټولي شفعي (يعني د ټوله مشفوعه ځمكي يا كور) فيصله وكړه چي دا ټوله ستا ده، تر دې وروسته دويم شفيع راغلى او هغه هم مطالبه وكړه. نو اوس به قاضي د هغه

لپاره د نیمي حصې فیصله کوي یعني له اول شفیع ځخه به نیمه (مشفوعه ځمکه) اخلي او دغه دویم شفیع ته به یې ورکوي چې په دې توګه به دواړو ته نیمه، نیمه حصه ورسیږي، لېکن بیا که درېیم شفیع هم راغلی او هغه هم د خپل حق شفعه مطالبه وکړه، نو قاضي به له اولو دوو شفیع ګانو ځخه یو، یو ثلث (درېیمه حصه) واخلي او دغه درېیم شفیع ته به د ټولي شفعي (مشفوعه ځمکي) یو ثلث ورکړي چې په دې توګه به هر شفیع ته یو، یو ثلث (درېیمه حصه) ورسیږي؛ دا د دې لپاره چې هر یوه ته برابره حصه حاصله سي (ځکه چې دا ځمکه د دوی په مینځ کي په همدې توګه د دوی د عدد رؤس مطابق ده. نو د پورتنی طریقې مطابق په ورکولو سره به په عدد رؤس او حق شفعه کي برابري ثابته سي).

فلوسلم إلخ: په دې سره دا رابنیي چې مثلاً شفیع دوه کسان وه، خو یو حاضر وو، او قاضي د هغه لپاره د ټولي شفعي (مشفوعه ځمکي) فیصله وکړه، بیا دغه حاضر شفیع خپل شفعه پرېښووله چې زه یې نه غواړم، تر دې وروسته غائب شفیع راغلی، نو اوس که څه هم ټوله شفعه (پوره مشفوعه ځمکه) پاته ده، خو هغه ته نصف (نیمه حصه) حاصلیږي؛ ځکه کله چې قاضي د حاضر شفیع لپاره د ټولي حصې فیصله وکړه، نو په دغه فیصلې سره په نصف کي د غائب حق په یقیني توګه ختم سو، لهذا ګواکي د هغه لپاره صرف نصف (نیمه حصه) پاته سوه، نو ځکه هغه ته صرف نصف حاصلیږي، ها! که چیري قاضي د حاضر شفیع لپاره فیصله نه وای کړې، نو اوس به غائب شفیع ته ټوله حاصلېدای:
(په مشکله وینا پورتنی خبره داسي هم کولای سی چي د قاضي په فیصله سره په نصف کي د غائب حق په یقیني توګه ختم سو؛ ځکه چي په دې نصف کي هغه مقضی علیه دی. اوس که هغه ته ټوله شفعه ورکول سي، نو په کوم نصف کي چي هغه مقضی علیه دی، په هغه نصف کي به مقضی لهٔ هم وګرځي، حال دا چي یو کس په یوه مسئله کي مقضی علیه او مقضی لهٔ دواړه نه سي کېدای. خو ځرنګه چي ما قبل القضاء [یعني د قاضي تر فیصله کولو مخکي] هغه مقضی علیه نه دی، لهذا په دې صورت کي به هغه په ټوله شفعه کي مقضی لهٔ وي، نو ټوله شفعه [یعني ټوله مشفوعه ځمکه] به هغه ته حاصلیږي).

## د شفعي حق کله او ځنګه ثابتیږي؟

قَالَ: وَالشُّفْعَةُ تَجِبُ بِعَقْدِ الْبَيْعِ [امام قدوري رَحِمَهُ الله] فرمایي: او شفعه په عقد بیع سره ثابتیږي دَمَعْنَاهُ بَعْدَهُ او د دې معنیٰ دا ده چي تر بیع وروسته [ثابتیږي] لَا أَنَّهُ هُوَ السَّبَبُ داسي نه ده چي بیع د شفعي سبب ده لِأَنَّ سَبَبَهَا الِاتِّصَالُ ځکه چي د شفعي سبب خو اتصال دی عَلَىٰ مَا بَيَّنَّاهُ لکه [مخکي] چي مورږ ذکر کړه وَالْوَجْهُ فِيهِ أَنَّ الشُّفْعَةَ إِنَّمَا تَجِبُ إِذَا رَغِبَ الْبَائِعُ عَنْ مِلْكِ الدَّارِ او وجه په دې [وجوب الشفعة بعد البیع] کي دا ده چي شفعه هغه وخت واجبیږي کله چي بائع د کور له ملکیت

څخه اعراض [او بې رغبتي] وکړي وَالْبَيْعُ يُعَرِّفُهَا او بيع د دې اعراض خبر ورکوي وَلِهٰذَا يُكْتَفٰى بِثُبُوتِ الْبَيْعِ فِيْ حَقِّهٖ په همدې وجه د بائع په حق کي د بيع په ثبوت اکتفاء کيږي [په بله وينا: همدا وجه ده چي د بائع په حق کي د بيع ثابتېدل بس همدومره د شفعي لپاره کافي دي] حَتّٰى يَأْخُذَهَا الشَّفِيْعُ إِذَا أَقَرَّ الْبَائِعُ بِالْبَيْعِ تر دې چي شفيع به کور اخلي که چيري بائع [فقط] د بيع اقرار وکړي وَإِنْ كَانَ الْمُشْتَرِيْ يُكَذِّبُهٗ که څه هم مشتري [رانيونکی] د هغه تکذيب کوي.

**اللغات**: ﴿رغب﴾ د سمع د باب ماضي ده، د دغه لفظ په صله کي چي عَنْ راسي نو معنی يې ده: اعراض کول، بې رغبتي او بې توجهي کول، پرېښوول. ﴿يُعرِّف﴾ د تفعيل د باب مضارع ده: ورپېژندل، په خبرول، ښوول. ﴿يكذّب﴾ د تفعيل د باب مضارع ده: تکذيب کول، درواغجن ګڼل (درواغجن ګرځول).

**تشريح**: د دې عبارت حاصل دا دی چي د شفعي سبب د ملکيت اتصال دی (يعني د مشفوعه کور او ځمکي سره د شفيع د ملکيت متصل کېدل، لکه مخکي چي هم ذکر سوه) او د شفعي شرط عقد بيع ده، فرمايي چي شفعه په عقد بيع يعني د کور او جايداد په خرڅېدلو سره ثابتيږي (يعني کله چي بائع خپل کور يا ځمکه خرڅوي او له خپل ملکيت يې څخه باسي، نو په دې وخت کي هغه ته حق شفعه حاصليږي چي د خپل حق شفعه په ذريعه دا کور او ځمکه رانيسي).

**معناه بعده**: د متن له عبارت "بعقد البيع" څخه دا وهم کېدی چي عقد بيع د شفعي سبب دی، نو ځکه دا وهم ليري کوي چي بيع (خرڅلاو) د شفعي د ثبوت سبب نه دی، ځکه چي شفعه تر بيع وروسته ثابتيږي، نو بيع د شفعي د ثبوت لپاره د شرط درجه لري چي شفعه هله ثابتيږي کله چي بيع کيږي؛ او د دې وجه دا ده چي شفعه اصلاً هغه وخت واجبيږي، څه وخت چي مالک له خپل ځمکي او جايداد څخه اعراض او بې رغبتي ښکاره کړي (او د خرڅولو اراده يې وکړي)، او دا يو پټ امر دی، نو فقهاؤ د دغه پټ کار د معلومولو لپاره إقدام على البيع دليل ګرځولی دی، لهذا کله چي هم إقدام على البيع وسي، نو په دې سره سمدستي د مالک اعراض او بې رغبتي ثابتيږي چي د هغه تر څنګ شفعه ثابتيږي.

او څرنګه چي إقدام على البيع د اعراض دليل دی چي په هغه سره د مالک اعراض او بې رغبتي پېژندل کيږي، نو ځکه که مالک (بائع) صرف د بيع اقرار وکړي او مشتري د هغه تکذيب وکړي (چي بيع نه ده سوې)، نو هم د شفيع لپاره حق شفعه ثابتيږي چي مشفوعه ځمکه او مشفوعه کور واخلي؛

ځکه کله چې اقدام على البيع د مالک د اعراض دی، نو اقرار بالبيع خو به په درجه اولیٰ د مالک پر اعراض دليل وي او په هغه سره به هم د شفيع لپاره حق شفعه ثابتيږي.

## د حق شفعه د ثابتولو طريقه (د طلب إشهاد او طلب مواثبه حيثيت)

قَالَ: وَتَسْتَقِرُّ بِالْإِشْهَادِ فرمايي: او شفعه په ګواه درولو [ګواه پېښولو] سره مضبوطيږي وَلَابُدَّ مِنْ طَلَبِ الْمُوَاثَبَةِ او فوراً طلب کول ضروري دي لِأَنَّهُ حَقٌّ ضَعِيفٌ يَبْطُلُ بِالْإِعْرَاضِ ځکه چې شفعه کمزوری حق دی کوم چې په اعراض سره باطليږي فَلَابُدَّ مِنَ الْإِشْهَادِ وَالطَّلَبِ لِيُعْلَمَ بِذٰلِكَ رَغْبَتُهُ فِيهِ، دُونَ إِعْرَاضِهِ عَنْهُ نو ځکه ګواه درول او طلب کول ضروري دي چې په دې سره په شفعه کې د شفيع رغبت معلوم سي، او دا چې هغه له دې څخه اعراض نه کوي [يعني چې دا معلومه سي چې شفيع د خپل حق شفعه اخيستلو ته راغب دی، اعراض نه کوي] وَلِأَنَّهُ يَحْتَاجُ إِلَى إِثْبَاتِ طَلَبِهِ عِنْدَ الْقَاضِيْ او ځکه چې شفيع د قاضي مخته د خپل طلب و ثابتولو ته محتاج دی وَلَا يُمْكِنُهُ إِلَّا بِالْإِشْهَادِ او دا [خپل طلب ثابتول] له ګواه درولو څخه بغير ممکن نه دي.

**اللغات**: ﴿تستقرّ﴾ د استفعال مضارع ده: پخېدل، مضبوطېدل. ﴿إشهاد﴾ د افعال د باب مصدر دی: ګواه درول، ګواه جوړول، ګواه پېښول. ﴿مواثبة﴾ د مفاعلې د باب مصدر دی، وَاثَبَ يُوَاثِبُ مُوَاثَبَةً: د دغه باب دوې معناوي دي: ① وړاندېتوب کول، تېزي او تلوار کول، مراد: سمدستي د شفعې طلب او دعوىٰ کول. ② يو پر بل را غورځېدل. دلته اوله معنىٰ مراد ده. ﴿إعراض﴾ د افعال د باب مصدر دی: مخ اړول، توجه نه کول. مراد: د شفعې طلب نه کول او خپل حق شفعه نه قبلول.

**تشريح**: کله چې بيع ثابته سي چې مالک خپل کور او ځای خرڅ کړي، نو پر شفيع دا ضروري ده چې سمدستي د خپل حق شفعه طلب وکړي (چې دا کور زه رانيسم) او پر هغه ګواه ودروي (د دې لپاره چې ګواه د قاضي مخته دا ګواهي پېش کړي سي چې شفيع کله په بيع خبر سو، نو سمدستي يې زه پر خپل طلب شفعه او د کور پر اخيستلو ګواه قائم کړم او داسې نور). "إشهاد" يعني ګواه درول ځکه ضروري دي چې په دې سره حق شفعه پوره کيږي او مضبوطيږي. او "طلبِ مواثبه" يعني سمدستي طلب کول ځکه ضروري دي چې حق شفعه نهايت کمزوری حق دی کوم چې په معمولي اعراض سره باطليږي. لهذا شفيع ته پکار دي چې کله هم د کور په بيع (خرڅېدلو) خبر سي نو سمدستي دې خپل حق طلب کړي او پر هغه دې ګواه ودروي. د دې لپاره چې معلومه سي چې دا شفيع د مشفوعه کور رانيولو او اخيستلو ته پوره آماده دی او د خپل حق په ساقطولو بالکل راضي نه دی.

ولأنه یحتاج إلخ: په دې سره د إشهاد (ګواه درولو) دویم دلیل پېشوي، فرمایي چې شفیع دې ته مجبوره دی چې د قاضي مخته دا ثابته کړي چې ما د حقِ شفعه طلب کړی دی، او دا خپل طلب ثابتول له إشهاد (ګواه درولو) څخه بغیر ممکن نه دي، نو ځکه د طلبِ مواثبه سره إشهاد هم ضروري دی، چې په یقیني توګه د هغه حق ثابت سي.

## شفیع کله د مشفوعه کور او جایداد مالک کیږي؟ (د شفعي د بشپړتیا آخري مرحله)

قَالَ: وَتُمْلَكُ بِالْأَخْذِ إِذَا سَلَّمَهَا الْمُشْتَرِيْ أَوْحَكَمَ بِهَا الْحَاكِمُ فرمایي: او کور په اخیستلو سره [د شفیع] په ملکیت کي راځي کله چې مشتري هغه ورسپارلی وي یا حاکم [قاضي] د هغه حکم کړی وي [په بله وینا: کله چې مشتري شفیع ته مشفوعه کور وسپاري یا قاضي د دې فیصله وکړي. نو په دې وخت کي هغه په اخیستلو [یعني په قبضه کولو] سره د شفیع په ملکیت راځي] لِأَنَّ الْمِلْكَ لِلْمُشْتَرِيْ قَدْ تَمَّ ځکه چې د مشتري ملکیت پوره سوی دی فَلَا يَنْتَقِلُ إِلَى الشَّفِيْعِ إِلَّا بِالتَّرَاضِيْ أَوْ قَضَاءِ الْقَاضِيْ لهذا [اوس] هغه د شفیع وطرف ته نه منتقل کیږي مګر [د مشتري] په رضاء سره یا د قاضي په فیصله سره كَمَا فِي الرُّجُوْعِ فِي الْهِبَةِ لکه په هبه کي د رجوع کولو په صورت کي [یعني لکه د هبه کړی سوي شي د واپس اخیستلو په صورت کي چې همدا حکم دی] وَتَظْهَرُ فَائِدَةُ هٰذَا فِيْمَا إِذَا مَاتَ الشَّفِيْعُ بَعْدَ الطَّلَبَيْنِ او د دې فایده په هغه صورت کي ښکاره کیږي ① کله چې شفیع له دواړو طلبونو [طلب اشهاد او مواثبه] څخه وروسته مړ سي أَوْبَاعَ دَارَهُ الْمُسْتَحَقَ بِهَا الشُّفْعَةَ ② یا شفیع خپل هغه کور خرڅ کړي چې د هغه په ذریعه د شفعي مستحق سوی وي أَوْ بِيْعَتْ دَارٌ بِجَنْبِ الدَّارِ الْمَشْفُوْعَةِ قَبْلَ حُكْمِ الْحَاكِمِ أَوْ تَسْلِيْمِ الْمُخَاصِمِ ③ یا د مشفوعه کور [یعني کوم کور چې شفیع په شفعه اخلي د هغه] تر څنګ یو کور خرڅ سي د حاکم [قاضي] له حکم او د مشتري له ورسپارلو څخه مخکي لَا تُوْرَثُ عَنْهُ فِي الصُّوْرَةِ الْأُوْلٰى نو په اول صورت کي د شفیع له طرفه کور [د شفیع وارثانو ته] په میراث کي نه حاصلیږي وَتَبْطُلُ شُفْعَتُهُ فِي الثَّانِيَةِ او په دویم صورت کي د شفیع شفعه باطلیږي [یعني حقِ شفعه یې ختمیږي] وَلَا يَسْتَحِقُّهَا فِي الثَّالِثَةِ لِانْعِدَامِ الْمِلْكِ لَهُ او په دریم صورت کي د شفیع د ملکیت د نشتوالي په وجه هغه د کور نه مستحق کیږي.

ثُمَّ قَوْلُهُ: تَجِبُ بِعَقْدِ الْبَيْعِ بَيَانٌ أَنَّهُ لَا يَجِبُ إِلَّا عِنْدَ مُعَاوَضَةِ الْمَالِ بِالْمَالِ بیا د امام قدوري رَحِمَهُ

الله دا قول "تجب بعقد البيع" د دې خبرې بيان دی چې شفعه نه ثابتيږي مګر د مال سره د مال د معاوضې په وخت کې [يعني د دې خبرې بيان دی چې شفعه هغه وخت واجبيږي کله چې جايداد (کور او ځمکه) د مال په عوض کې خرڅ سي] عَلٰى مَا نُبَيِّنُهُ إِنْ شَاءَ اللّٰهُ تَعَالٰى لکه څرنګه چې موږ به [آينده] انشاء الله د دې بيان وکړو. والله سبحانه أعلم بالصّواب

**اللغات**: ﴿تُملك﴾ د ضرب له بابه د واحد مؤنث غائب مضارع مجهولې صيغه ده، ضمير د هِيَ پکښې مقدر دی چې مشفوعه کور ته راجع دی، مملوک کېدل، په ملکيت کې راتلل. ﴿سلّم﴾ د تفعيل ماضي ده: ورسپارل. ﴿تراضي﴾ د تفاعل د باب مصدر دی: يو له بل څخه راضي کېدل (خپل مينځوي رضامندي). ﴿جنب﴾ څنګ، بغل. ﴿مخاصم﴾ د مفاعلې د باب فاعل دی: خصومت او دعویٰ کونکی، فريقِ مخالف. دلته مشتري ځني مراد دی. ﴿انعدام﴾ د انفعال د باب مصدر دی: نشتوالی (نه کېدل)، نه موجودېدل.

**تشريح**: په دې عبارت کې صاحب د هدايې رَحِمَهُ الله د شفعې د پوره کېدلو آخري حکم ذکر کړی دی، حاصل يې دا دی چې له طلب مواثبه او إشهاد (ګواه درولو) څخه وروسته هم شفيع تر هغه وخته د مشفوعه کور (او مشفوعه ځمکې) نه مالک کيږي، ① تر څو چې مشتري هغه کور ده ته حواله نه کړي، ② يا قاضي د ده لپاره د هغه فيصله نه وکړي، يعني د مشتري تر ورسپارلو يا د قاضي تر قضاوت وروسته شفيع د مشفوعه کور مالک کيږي؛ د دې وجه دا ده چې اوس مالک (بائع) په مشتري دا کور خرڅ کړی دی او په کور کې د مشتري ملکيت راغلی او پوره سوی دی، او حقِ شفعه د مشتري له رضاء څخه بغير شفيع ته حاصليږي (لکه مخکې چې ذکر سوه. ځکه د مشتري دا نه ده خوښه چې بل څوک [شفيع] دا رانيول سوی کور ځني واخلي)، نو ځکه د مشتري ورسپارل ضروري دي، د دې لپاره چې هغه ملکيت د شفيع وطرف ته واپس او منتقل سي، او دا داسې ده لکه خالد چې مثلاً و زيد ته يو شی هبه کړي بيا واهب (يعني خالد) له موهوب لهٗ (يعني له زيد) څخه هغه شی واپس واخلي، نو څرنګه چې دلته په هغه شي کې د موهوب لهٗ (زيد) ملکيت راغلی دی، لهذا اوس دا ملکيت د واهب (خالد) وطرف په دوو شکلونو سره منتقل کېدای سي، يو دا چې موهوب لهٗ په خپل رضاء او خوښې سره هغه شی واهب ته وسپاري، دويم دا چې يا قاضي د رجوع او واپس کولو فيصله وکړي.

وتظهر الخ: څه مخکې دا خبره ده چې ذکر سوه چې د شفيع وطرف ته د ملکيت منتقل کېدلو لپاره د مشتري ورسپارل يا د قاضي فيصله (قضاوت) ضروري دی، اوس فرمايي چې د دې فايده په لاندينی دريو صورتونو کې ښکاره کيږي.

①... که شفیع طلبِ مواثبه او طلبِ اشهاد دواړه وکړه، خو تر اوسه مشتري هغه ته دا مشفوعه کور سپارلی نه وو، یا تر اوسه قاضي د هغه په حق کي د دغه کور فیصله کړې نه وه، نو څرنګه چي شفیع تر اوسه د دې کور مالک سوی نه دی. لهٰذا اوس که په دې دوران کي هغه مړ سي، نو د هغه وارثان د دې کور نه وارث کیږي (یعني په میراث کي نه ورته حاصلیږي، که څه هم هغه مواثبه او اشهاد دواړه طلبونه کړي دي)؛ ځکه چي د ملکیت د نشتوالي (نه مالک کېدلو) په وجه دا کور د شفیع په میراث کي داخل نه دی او وراثت صرف د مړي په میراث کي جاري کیږي.

②... دویم صورت دا دی چي د کوم کور په ذریعه چي شفیع ته حق شفعه حاصلیږي، شفیع را اولاړ سو هغه کور یې خرڅ کړی (یعني تر طلبِ اشهاد او مواثبه وروسته او د مشتري تر ورسپارلو او د قاضي تر فیصلې مخکي یې خرڅ کړی)، نو په دې صورت کي شفیع ته حق شفعه نه حاصلیږي؛ ځکه د شفعې سبب خو اتصال الملک (د ملکیت اتصال) دی، او د خرڅولو په وجه د شفیع ملکیت ختم سو، لهٰذا کله چي د هغه ملکیت پاته نه سو. نو اتصال به له کومه وي. نو ځکه په دې صورت کي د شفعې د سبب زائلېدلو په وجه د هغه حق شفعه ختمیږي.

③... د درېیم صورت حاصل دا دی چي شفیع د مشفوعه کور لپاره طلب اشهاد او طلب مواثبه دواړه وکړه. لیکن تر اوسه مشتري شفیع ته نه کور سپارلی دی او نه د شفیع په حق کي د قاضي فیصله سوې ده (ګواکي تر اوسه شفیع د مشفوعه کور مالک نه دی)، اوس که په دې دوران کي د دغه مشفوعه کور تر څنګ یو بل کور خرڅیږي. نو شفیع هغه خرڅېدونکي کور د حق شفعه په توګه نه سي رانیولای: ځکه د شفعې سبب خو اتصال الملک دی. حال دا چي تر اوسه شفیع د اول کور مالک نه دی. نو په دویم کي به له کومه اتصال ثابت سي. لهٰذا د ملکیت د نشتوالي په وجه هغه دا دویم کور نه سي اخیستلای.

**ثم قوله إلخ:** دوه عبارته مخکي په متن کي دا جمله تېره سوه چي "تجب بعقد البیع" (یعني شفعه هغه وخت واجبیږي کله چي کور [یا بل جایداد] خرڅ کړی سي)، اوس صاحب د هدایې رَحِمَهُ الله فرمایي: د دې مطلب دا دی چي مبادلة المال بالمال ثابت سي یعني کله چي هم د مال په عوض کي کور او جایداد خرڅ کړی سي. نو حق شفعه واجبیږي. لیکن کله چي مبادلة المال بالمال ثابت نه سي بلکي د هبې، وصیت، میراث او داسي نورو په ذریعه جایداد ورکول سي، نو بیا حق شفعه نه واجبیږي. د دې نورو تفصیل به انشاء الله وروسته بیان سي.

❀❀❀

# بَابُ طَلَبِ الشُّفْعَةِ وَالْخُصُومَةِ فِيهَا

(دا) باب د شفعې د طلب کولو او د شفعې په هکله د خصومت (او دعوې) کولو (په بيان کې) دی

## د شفعې د طلب کولو طريقه او تفصيل

قَالَ: وَإِذَا عَلِمَ الشَّفِيعُ بِالْبَيْعِ فرمايي: او کله چې شفيع په بيع [يعني د مشفوعه ځای په خرڅېدلو] خبر سي أَشْهَدَ فِي مَجْلِسِهِ ذٰلِكَ عَلَى الْمُطَالَبَةِ نو په خپل هغه مجلس کې دې پر [خپله] مطالبه ګواه ودروي اِعْلَمْ أَنَّ الطَّلَبَ عَلَى ثَلَاثَةِ أَوْجُهٍ پوه سه! چې طلب پر درې (۳) قسمه دی طَلَبُ الْمُوَاثَبَةِ، وَهُوَ أَنْ يَطْلُبَهَا كَمَا عَلِمَ ① [يو] طلب مواثبه دی، او هغه دا دی چې شفيع د شفعې طلب وکړي څرنګه چې هغه خبر سي [يعني کله چې هم هغه د مشفوعه جايداد په خرڅېدلو خبر سي نو سمدستي د خپل شفعې طلب وکړي] حَتّٰى لَوْ بَلَغَ الشَّفِيعَ الْبَيْعُ وَلَمْ يَطْلُبْ شُفْعَتَهُ تر دې که شفيع ته د بيع [خرڅېدلو] خبر ورسيږي او هغه د خپل شفعې طلب نه وکړي بَطَلَتِ الشُّفْعَةُ نو شفعه باطليږي لِمَا ذَكَرْنَا د هغه دليل په وجه کوم چې موږ ذکر کړی [چې شفعه يو کمزوری حق دی] وَلِقَوْلِهِ عَلَيْهِ الصَّلَاةُ وَالسَّلَامُ: "اَلشُّفْعَةُ لِمَنْ وَاثَبَهَا" [1] او د نبي ﷺ د دې فرمان په وجه: "شفعه د هغه کس لپاره ده کوم چې شفعې ته وراندېتوب وکړي [يعني کوم چې يې سمدستي طلب کړي] وَلَوْ أُخْبِرَ بِكِتَابٍ وَالشُّفْعَةُ فِي أَوَّلِهِ أَوْ فِي وَسَطِهِ او که چيرې شفيع ته د خط په ذريعه خبر ورکول سي او [ذکر د] شفعه د خط په شروع يا په مينځ کې وي فَقَرَأَ الْكِتَابَ إِلَى آخِرِهِ بيا شفيع تر آخره پورې [توله] خط ووايي بَطَلَتْ

---

[1] تخريج: صاحب د اثمار الهدايه غفرالله له ويلي دي؛ چې دا د تابعي قول دی کوم چې په مصنف عبد الرزاق کې په دې الفاظو سره ذکر سوی دی: عن شريح، قال: إنما الشفعة لمن واثبها (مصنف عبد الرزاق. باب الشفيع يأذن قبل البيع وکم وقتها، ج:۸، ص: ۶۶، رقم: ۱۴۴۸۴)؛ له دې قول تابعي څخه معلومه سوه چې که سمدلاسه او بې له ځنډه د حقِ شفعه دعوی وکړي نو هغه ته دا حقِ شفعه حاصليږي او که اعراض وکړي نو دا حق ساقطيږي.

شُفْعَتُهُ نو شفعه يې باطليږي [يعني حق شفعه يې ختميږي] وَعَلىٰ هٰذَا عَامَّةُ الْمَشَايِخ او پر همدې عام مشايخ دي [يعني دا دزياتره مشايخو مذهب دی] وَهُوَ رِوَايَةٌ عَنْ مُحَمَّدٍ او دا له امام محمد رَحِمَهُ الله څخه يو روايت هم دی وَعَنْهُ أَنَّ لَهُ مَجْلِسَ الْعِلْمِ او له امام محمد رَحِمَهُ الله څخه دويم روايت دا دی چې د شفيع لپاره د خبرېدلو مجلس دی [يعني په کوم مجلس کې چې په بيع خبر سي، په هغه ټوله مجلس کې ده ته د طلب شفعه اختيار سته] وَالرِّوَايَتَانِ فِي النَّوَادِرِ او دا دواړه روايتونه په نوادر کې دي وَبِالثَّانِيَةِ أَخَذَ الْكَرْخِيُّ او دويم روايت امام کرخي رَحِمَهُ الله اختيار کړی دی لِأَنَّهُ لَمَّا ثَبَتَ لَهُ خِيَارُ التَّمَلُّكِ ځکه کله چې د شفيع لپاره د مالک جوړېدلو اختيار ثابت دی [يعني کله چې هغه ته د خپل حق شفعه په وجه د ځای رانيولو اختيار ورکول سوی دی] لَا بُدَّ لَهُ مِنْ زَمَانِ التَّأَمُّلِ نو د هغه لپاره د غور او فکر وخت [ورکول] هم ضروري دي كَمَا فِي الْمُخَيَّرَةِ لکه په مخيّره ښځه کې.

**اللغات**: ﴿أشهد﴾ د افعال د باب ماضي ده: ګواه درول، ګواه جوړول. ﴿وَاثَبَ﴾ د مفاعلې د باب ماضي ده، وَاثَبَ يُوَاثِبُ مُوَاثَبَةً: وړانديټوب کول، تېزي او تلوار کول. ﴿التأمّل﴾ د تفعّل د باب اسم مصدر دی: غور و فکر. ﴿مخيّرة﴾ د تفعّل د باب مؤنث اسم مفعول دی: اختيار والا ښځه، مراد ځني هغه ښځه ده چې خاوند د طلاق ورکولو اختيار ورکړی وي.

**تشريح**: مخکې تر دې دا خبره بيان سوه چې د شفعې له طلب څخه بغير شفعه (حق شفعه) نه ثابتيږي، په دې باب کې د طلب قسمونه او صورتونه ذکر کوي.

د عبارت حاصل دا دی چې په کوم مجلس کې شفيع په بيع خبر سي چې زما همسايه يا زما شريک خپل ځای (ځمکه يا کور) خرڅ کړی، نو هغه ته پکار دي چې فوراً (سمدستي) د خپل حق شفعه مطالبه دې وکړي او پر هغه دې ګواه ودروي (چې ما دخبرېدلو په وخت کې سمدستي د شفعې مطالبه وکړه). په بله وينا دا چې طلب مواثبه او طلب اشهاد دې وکړي (خو وروسته به ذکر سي چې په دې وخت کې طلب اشهاد [يعني ګواه درول] ضروري نه دی).

د طلب څو صورتونه دي چې له هغوی څخه تر ټولو مخکې طلب مواثبه دی، او د هغه حاصل په خپله صاحب د هدايې رَحِمَهُ الله بيان کړی دی چې د بيع د خبر رسېدلو په وخت کې سمدستي د خپل حق شفعه طلب کول، دې ته ځکه طلب مواثبه وايي، چې دا طلب د تلوار او فوريت (سمدستي والي) تقاضا کوي. لهذا که شفيع په بيع تر خبرېدلو وروسته سمدستي طلب نه وکړي، نو د هغه حق ساقطيږي؛ ځکه دا خبره مخکې هم ذکر سوه چې شفعه يو کمزوری حق دی کوم چې په معمولي

اعراض سره هم ختميږي. او بل صاحب د هدايې رَحِمَهُ الله په حديث سره هم پر طلب مواثبه دليل نيولی دی چي د شفعي طلب به فوراً کوي. (د علامه عيني رَحِمَهُ الله د تحقيق مطابق دا حديث نه دی. بلکي د حضرت شريح قول دی، خو بيا هم د استدلال لائق دی. د تابعي او صحابي پر قول هم د حديث اطلاق کيږي. لکه څرنګه چي دا د حديث په تعريفونه کي ذکر سوي دي).

ولو أخبر الخ: د دې حاصل دا دی چي که شفيع کس ته څوک خط وليکي او د خط په شروع يا په مينځ کي د بيع او شفعي يادونه وکړي چي "فلانکي خو خپل ځای خرڅ کړی چي په هغه کي ته د شفعي حق لرې"، بيا شفيع ټوله خط ووايي او د خط په شروع کي يا مينځ کي چي د بيع او شفعي يادونه سوې ده هغه ته هيڅ توجه نه وکړي او نه د خپل شفعي طلب وکړي، نو د زياتره مشائخو په نېز او د امام محمد رَحِمَهُ الله د أصح روايت مطابق د دغه شفيع شفعه باطليږي او حقِ شفعه يې ختميږي؛ ځکه چي د خط ويلو په دوران کي د بيع او شفعي د يادوني پر مهال د خپل حقِ شفعه طلب نه کول دا د هغه اعراض او بې رغبتۍ دليل دی، او د اعراض په صورت کي شفيع ته شفعه نه حاصليږي. لهذا په دې صورت کي به هم نه ور ته حاصليږي.

او د امام محمد رَحِمَهُ الله دويم روايت (کوم چي د امام کرخي قول هم دی) دا دی چي په بيع او شفعه تر خبرېدلو وروسته به شفيع ته د خبرېدلو تر مجلسه پوري د طلب اختيار ورکول کيږي (يعني په کوم مجلس کي چي يې خط ويلی دي او په شفعي خبر سوی دی، که د هغه مجلس تر ختمېدلو پوري طلب وکړي، نو حقِ شفعه ور ته حاصليږي او باطليږي نه. کنې باطليږي)؛ د دې روايت دليل دا دی چي کله شفيع ته د مالک جوړېدلو بشپړ اختيار ورکول سوی دی (چي په خپل حقِ شفعه سره مشفوعه ځای رانيسي او مالک بې سي)، نو ضروري ده چي هغه ته د تأمل او فکر کولو موقع هم ورکول سي (چي دا ځای بايد زه رانيسم او که نه؟). او د دې لپاره تر ټولو مناسب مقام د خبرېدلو مجلس (مجلسِ علم) دی. لهذا کم تر کمه هغه ته د علم تر مجلسه پوري د طلب اختيار ورکول پکار دي، د دې مثال دا دی لکه هغه مُخَيّره ښځه چي خاوند د طلاق اختيار ورکړی وي چي تا ته د دې اختيار دی چي خپل ځان ته طلاق ورکړې، او ټلسو ته به معلومه وي چي د داسي ښځي اختيار د "مجلسِ خيار" تر ختمېدلو پوري باقي پاتيږي، يعني که د مجلس تر ختمېدلو مخکي هغه طلاق اختيار کړي، نو طلاقيږي، کنې نه طلاقيږي، خاص همداسي شفيع ته هم د "مجلس علم" تر ختمېدلو پوري اختيار حاصلېدل پکار دي.

مګر د دې جواب دا دی چي شفيع پر مُخَيّره ښځه قياسول او د هغه لپاره د تأمل او فکر مهلت غوښتل صحيح نه دي؛ ځکه تر طلب وروسته شفيع ته فوراً شفعه نه حاصليږي. بلکي تر طلب وروسته د مشتري رضاء او د هغه ورسپارلو ته يا د قاضي فيصلې ته هم ضرورت پرېوځي. او دا (د

مينځ) زمانه د شفيع د تأمل او فکر لپاره کافي ده (يعني هغه په دې دوران کې تأمل کولای سي چې دا ځای بايد زه رانيسم، که نه؟)؛ حال دا چې په مُخيّره ښځه کې د قاضي فيصلې او داسي نورو ته ضرورت نه پرېوځي؛ لهذا هغې ته د تأمل او فکر لپاره د خِيار تر مجلسه پوري اختيار ورکول سوی دی. لېکن د شفعي په مسئله کې چې څرنګه تر طلب وروسته د تأمل او فکر لپاره شفيع ته ښه کافي وخت حاصلېږي. نو ځکه د هغه په حق کې به د تأمل لپاره د علم تر مجلسه پوري اختيار نه ثابتېږي. (احسن الهدايه)

## هغه کلام کوم چې پر اعراض دلالت نه کوي

وَلَوْقَالَ بَعْدَمَا بَلَغَهُ الْبَيْعُ: اَلْحَمْدُ لِلّٰهِ أَوْ لَا حَوْلَ وَلَا قُوَّةَ إِلَّا بِاللّٰهِ أَوْ قَالَ: سُبْحَانَ اللّٰهِ او که د بيع د خبر له رسېدلو څخه وروسته شفيع ووايي: الحمد لله. يا لَا حَوْلَ ولا قُوَّةَ إلا بِا الله. يا ووايي: سُبحان الله لَا تَبْطُلُ شُفْعَتُهُ نو [په دې صورتونو کې] د هغه شفعه نه باطلېږي لِأَنَّ الْأَوَّلَ حَمْدٌ عَلَى الْخَلَاصِ مِنْ جِوَارِهِ ځکه چې اوله [جمله] د بائع له [بد] همسايه توب څخه پر خلاصون حمد ويل دی وَالثَّانِيَ تَعَجُّبٌ مِنْهُ لِقَصْدِ إِضْرَارِهِ او دويمه [جمله] د شفيع له طرفه د بائع د نقصان ورکولو پر اراده تعجّب کول دي وَالثَّالِثَ لِافْتِتَاحِ كَلَامِهِ او درېيمه [جمله] د خپل کلام د شروع کولو لپاره ده فَلَا يَدُلُّ شَيْءٌ مِنْهُ عَلَى الْإِعْرَاضِ نو ځکه له دوی څخه هيڅ [جمله] هم پر اعراض دلالت نه کوي وَكَذَا إِذَا قَالَ: مَنِ ابْتَاعَهَا وَبِكَمْ بِيعَتْ او همدا راز که شفيع ووايي: چې چا دا کور رانيولی دی او په څو خرڅ سوی دی [نو دا هم اعراض نه دی او په دې سره د هغه شفعه نه باطلېږي] لِأَنَّهُ يَرْغَبُ فِيهَا بِثَمَنٍ دُونَ ثَمَنٍ ځکه چې شفيع په دې کور کې رغبت کوي په يوه قيمت سره. نه په بل [زيات] قيمت سره [يعني په هر قيمت سره د دې کور رانيول نه غواړي بلکې که قيمت يې مناسب وي. زيات نه وي. نو بيا يې رانيسي] وَيَرْغَبُ عَنْ مُجَاوَرَةِ بَعْضٍ دُونَ بَعْضٍ او اعراض کوي د بعضي [بد] له همسايه توب څخه. نه د بعضي.

**اللغات:** ﴿خلاص﴾ د نصر د باب مصدر دی: خلاصون، خلاصېدل، نجات موندل. ﴿جوار﴾ همسايه توب (همسايه ګلوي). ﴿إضرار﴾ د افعال د باب مصدر دی: ضرر او نقصان رسول. ﴿ابتاع، بيعت﴾ د ب. ي. ع (بيع) ماده که د افتعال په باب کې ذکر سي نو د رانيولو معنیٰ ورکوي او د ضرب له باب څخه د خرڅولو معنیٰ ورکوي. ﴿يرغب﴾ د سمع د باب مضارع ده: رغبت کول، لېوالتيا، خو د

دغه باب په صل کي چي عَن ذکر سي، نو معنیٰ يې ده: اعراض او بېزاري کول، توجه نه کول، پرېښوول.

**تشريح**: مخکي ذکر سوه چي (له شفعي څخه) په اعراض کولو سره شفعه باطليږي، لېکن کوم الفاظ پر اعراض دلالت کوي او کوم يې نه کوي، دلته د دې وضاحت بيان سوى دى. حاصل يې دا دى چي کله شفيع په بيع خبر سي (چي زما همسايه يا زما شريک خپل جايداد خرڅ کړى)، او په دې دوران کي الحمد لله ووايي، نو فرمايي چي دا کلمه اعراض نه دى؛ ځکه په دې جمله سره خو شفيع له بد همسايه "بائع" څخه د خلاصېدلو په بدله کي د الله حمد اداء کړى چي شکر دى دا خراب همسايه خو مي ولاړى، همدارنګه که هغه "لَا حَوْلَ" ووايي، نو دا جمله هم له شفعي او طلب څخه اعراض نه دى، بلکي د تعجب او حيرانتيا ښکاره کول دي چي بائع څنګه همسايه دى چي زه يې خبر هم نه کړم او نا بيره يې ځاى پر بل چا خرڅ کړى لاحول ولا قوة إلا بالله. لهذا دا جمله په دې وخت کي د تعجّب لپاره ده، نه (له شفعي څخه) د اعراض لپاره.

همدارنګه که هغه ووايي سُبحان الله، نو دا هم اعراض نه دى؛ ځکه د بعضي خلکو دا عادت وي چي د خبرو په شروع کي (د خوشالى پر مهال) سبحان الله وايي، لهذا هغه دا کلمه د کلام د افتتاح او شروع لپاره ويلې ده؛ خلاصه دا چي په دغه دريو سره جملو کي هيڅ د اعراض او بې رغبتى دليل نسته؛ چي د هغه پر بناء د ويونکي (شفيع) حق شفعه ختم کړى سي، نو ځکه په دې يوه سره به هم حق شفعه نه باطليږي.

همدا راز که په بيع تر خبرېدلو وروسته شفيع د مشتري (رانيونکي) يا د جايداد په سلسله پوښتنه موښتنه وکړي (چي دا ځاى چا رانيولى دى يا په څويې رانيولى دى؟)، نو داسې پوښتنه هم د اعراض دليل نه دى؛ ځکه کېداى سي چي شفيع په زيات قيمت سره د هغه په اخيستلو راضي نه وي، يا شفيع د هر همسايه سره په اوسېدلو راضي نه وي (په بله وينا دا چي د قيمت په پوښتني سره د شفيع مطلب دا دى چي که دا ځاى په کم قيمت خرڅ سوى وي نو د شفعي طلب او دعوىٰ به وکړم. او که په زيات قيمت خرڅ سوى وي. نو د شفعي طلب به نه کوم. همدارنګه هغه چي دا پوښتنه کوي چي چا رانيولى دى. نو په دې سره دا معلوموي چي که ښه همسايه رانيولى وي. نو د شفعي طلب به نه کوم. او که خراب همسايه رانيولى وي. نو طلب به يې وکړم او خپله به يې رانيسم. چي د هغه له تکليف او ضرر څخه خوندي سم). لهذا د قيمت يا مشتري په هکله پوښتنه کول د اعراض دليل نه دى (بلکي دا ديو دول د شفعي پر طلب اقدام کول دي).

## د "يو مخکيني عبارت" وضاحت (د طلب مواثبه او إشهاد شرعي حيثيت)

وَالْمُرَادُ بِقَوْلِهِ فِي الْكِتَابِ "أَشْهَدَ فِي مَجْلِسِهِ ذٰلِكَ عَلَى الْمُطَالَبَةِ" طَلَبُ الْمُوَاثَبَةِ او په قدوري [متن] کي د امام قدوري رَحِمَهُ الله په دې قول "أَشْهَدَ فِي مجلسه إلخ" سره طلبِ مواثبه مراد دی وَالْإِشْهَادُ فِيهِ لَيْسَ بِلَازِمٍ او په دې [طلب مواثبه] کي اشهاد ضروري دی. إِنَّمَا هُوَ لِنَفْيِ التَّجَاحُدِ اشهاد [يعني ګواه درول] خو صرف د انکار د نفي کولو لپاره دی [چي که مشتري انکار وکړي، نو د هغه د نفي کولو او ختمولو لپاره ګواه پېش کړی سي] وَالتَّقْيِيدُ بِالْمَجْلِسِ إِشَارَةٌ إِلَى مَا اخْتَارَهُ الْكَرْخِيُّ او د مجلس قيد لګول د امام کرخي رَحِمَهُ الله د اختيار کړی سوي روايت وطرف ته اشاره ده وَيَصِحُّ الطَّلَبُ بِكُلِّ لَفْظٍ يُفْهَمُ مِنْهُ طَلَبُ الشُّفْعَةِ او [د شفعي] طلب کول په هر هغه لفظ سره صحيح دی چي له هغه څخه د شفعي طلب فهمول کيږي كَمَا لَوْ قَالَ: طَلَبْتُ الشُّفْعَةَ لکه شفيع چي [داسي] ووايي: ما شفعه طلب کړه أَوْ أَطْلُبُهَا يا زه شفعه طلب کووم أَوْ أَنَا طَالِبُهَا يا زه د شفعي طلب کونکی يم لِأَنَّ الِاعْتِبَارَ لِلْمَعْنَى ځکه چي اعتبار معنیٰ لره دی.

**اللغات**: ﴿إشهاد﴾ د افعال د باب مصدر دی: ګواه درول، ګواه جوړول. ﴿تجاحد﴾ د تفاعل د باب مصدر دی: يو د بل انکار کول. ﴿تقييد﴾ د تفعيل د باب مصدر دی: قيد لګول، مقيّد کول.

**تشريح**: صاحب د هدايې رَحِمَهُ الله د متن د مخکيني عبارت "أَشْهَدَ فِي مَجْلِسِهِ ذٰلِكَ عَلَى الْمُطَالَبَةِ" وضاحت کوي، فرمايي چي له دې څخه طلبِ مواثبه مراد دی يعني په بيع د خبرېدلو په وخت کي پر شفيع طلبِ مواثبه ضروري دی، او پاتېٖ سو په هغه مجلس کي طلب اشهاد يعني ګواه درول ضروري نه دي، بلکي پر طلب مواثبه د ګواه درولو حکم يې صرف په دې وجه کړی دی چي که مشتري د شفيع د طلبِ مواثبه انکار وکړي (چي تا خو سملستي د شفعي [او د مشفوعه ځای د رانيولو] طلب نه دی کړی)، نو شفيع به د ګواهانو په ذريعه خپل طلب ثابت کړی سي

او بغير له ګواهانو څخه د طلبِ مواثبه د ضروري کېدلو وجه دا ده چي د شفيع حق ديانتاً (فيما بينه وبين الله) ثابت سي او بل دا چي که مشتري د شفيع د طلبِ مواثبه انکار وکړي، نو شفيع به قسم اخيستلای سي چي ما طلب کړی وو.

او په متن کي چي امام قدوري رَحِمَهُ الله تر "أَشْهَدَ" وروسته د "فِي مَجْلِسِه" قید لګولی دی، دا و دې طرف ته اشاره ده چي د هغه په نېز د امام کرخي رَحِمَهُ الله قول خوښ او مختاره دی (یعني د خبر ېدلو تر مجلسه پوري شفیع ته د طلب د اختیار ورکولو قول).

وروسته فرمایي چي د شفعي د طلب لپاره الفاظ متعیّن نه دي، بلکي هر هغه لفظ چي له هغه څخه د شفعي طلب فهمول کیږي، په هغه سره د شفعي طلب کول صحیح دي؛ ځکه چي په عرف او معاملاتو کي معاني وو لره اعتبار دی، نه الفاظو لره. لکه څرنګه چي همدا فقهي قاعده ده چي "اَلاعْتِبَارُ لِلْمَعَانِي، لَا لِلْمَبَانِي". لهذا کله چي شفیع أَطْلُبُ، أَنَا طَالِبُ الشُّفْعَة یا داسي نور الفاظ ووایي چي له هغه څخه د شفعي طلب فهمول کیږي، نو په هغه سره به د ده طلب ثابتیږي.

## په شفعه کي طلب اشهاد یعني ګواه درول کله ضروري دي؟

وَإِذَا بَلَغَ الشَّفِيْعُ بَيْعَ الدَّارِ او کله چي شفیع ته د کور خرڅېدلو خبر ورسیږي لَمْ يَجِبْ عَلَيْهِ الْإِشْهَادُ حَتّٰى يُخْبِرَهُ رَجُلَانِ أَوْ رَجُلٌ وَامْرَأَتَانِ أَوْ وَاحِدٌ عَدْلٌ نو پر هغه ګواه درول [ګواه پېښول] واجب نه دي، تر دې چي هغه ته دوه خلک، یا یو سړی او دوې ښځي، یا یو عادل سړی خبر ورکړي عِنْدَ أَبِي حَنِيْفَةَ [دا حکم] د امام صاحب رَحِمَهُ الله په نېز [دی] وَقَالَا ✿: يَجِبُ عَلَيْهِ أَنْ يُشْهِدَ إِذَا أَخْبَرَهُ وَاحِدٌ حُرًّا كَانَ أَوْ عَبْدًا صَبِيًّا كَانَ أَوِ امْرَأَةً او صاحبین رَحِمَهُمَا الله فرمایي: چي پر شفیع ګواه درول واجب دي کله چي هغه ته [فقط] یو سړی خبر ورکړي، برابره ده هغه آزاد وي یا غلام وي، بچی وي یا ښځه وي إِذَا كَانَ الْخَبَرُ حَقًّا [په دې شرط] کله چي خبر رښتونی وي وَأَصْلُ الِاخْتِلَافِ فِي عَزْلِ الْوَكِيْلِ او [د امام صاحب او صاحبینو] اصل اختلاف د وکیل د معزوله کولو په باره کي دی وَقَدْ ذَكَرْنَاهُ بِدَلَائِلِهِ وَأَخَوَاتِهِ فِيمَا تَقَدَّمَ او هغه موږ د خپل دلائلو او مثالونو سره مخکي ذکر کړی دی [د کتاب أدب القاضي "فصل القضاء بالمواريث" په آخر کي] وَهٰذَا بِخِلَافِ الْمُخَيَّرَةِ إِذَا أُخْبِرَتْ عِنْدَهُ او دا د مخیّره ښځي په خلاف دي کله چي د هغې سره خبر ورکول سي [یعني هغې ته خبر ورکول سي چي تا ته خاوند د طلاق اختیار درکړی دی] لِأَنَّهُ لَيْسَ فِيهِ إِلْزَامُ حُكْمٍ ځکه په دې کي د څه حکم لازمول نسته وَبِخِلَافِ مَا إِذَا أَخْبَرَهُ الْمُشْتَرِي

✿ القول الراجح: قول الإمام أبي حنيفة رَحِمَهُ الله، كما ظهر من داب المصنف رَحِمَهُ الله، انظر للتوضيح [القول الراجح ج:٢، ص:٢٦٨]

او په خلاف د هغه صورت [هم] كله چي مشتري په خپله شفيع ته خبر وركړي [نو هم نصاب شهادت (يعني دوه كسان) او داسي نور ضروري نه دي] لِأَنَّهُ خَصْمٌ فِيهِ ځكه چي مشتري خپله په دې باب كي خصم دى [په بله وينا: ځكه چي مشتري خپله د حق شفعه په سلسله كي د شفيع مد مقابل او د هغه سره خصومت او دعوىٰ كونكى دى] وَالْعَدَالَةُ غَيْرُ مُعْتَبَرَةٍ فِي الْخُصُومِ او په خصمونو [خاصمينو] كي عدالت معتبر نه دى.

**اللغات**: ﴿عزل﴾ د ضرب د باب مصدر دى: معزوله كول، برطرفه كول (له منصبه ليري كول). ﴿مخيّرة﴾ هغه ښځه چي خاوند د طلاق اختيار وركړى وي. ﴿خصم﴾ جنګ او دعوىٰ كونكى، فريق مخالف، مدعي او مدعىٰ عليه دواړو ته ويل كيږي (دوى يو د بل خصم دي). ﴿خصوم﴾ جمع د خَصْمٌ ده: دعوې والا خلك (كوم چي په خپل مينځ كي پر يو شي تنازع او دعوىٰ لري)، مدعيان او مدعىٰ عليهم.

**تشريح**: **صورت د مسئلې**: دا دى كه شفيع ته په يو توګه د مشفوعه ځاى د خرڅېدلو خبر وركول سي (چي ستا همسايه يا شريك خو خپل ځمكه يا كور خرڅ كړى)، نو پر شفيع څه وخت ګواه درول ضروري دى؟، په دې سلسله كي دوه مذهبه دي: ① د امام صاحب رَحِمَهُ الله مذهب دا دى چي نصاب شهادت يا عدالت ضروري دى يعني تر څو چي دوه خلك يا يو سړى او دوې ښځي يا يو عادل سړى شفيع ته د مشفوعه ځاى د خرڅېدلو خبر نه وركړي، تر هغه وخته پر شفيع اشهاد (ګواه درول) ضروري نه دي.

② د صاحبينو مذهب دا دى چي دلته نصاب يا عدالت ضروري نه دى، بلكي كه فقط يو سړى راسي خبر وركړي او شفيع د هغه خبر صحيح او رښتونى وګڼي، نو هم پر شفيع اشهاد ضروري دى.

صاحب د هدايې رَحِمَهُ الله فرمايي چي د امام صاحب او صاحبينو اصل اختلاف د وكيل معزوله كولو په مسئله كي دى، يعني كه يو مؤكل خپل وكيل معزوله كړي او بيا وكيل ته د خپل معزولتيا خبر ورسيږي، نو په دې صورت كي امام صاحب نصاب شهادت يا عدالت ضروري بولي، او صاحبين فرمايي چي فقط د يوه فرد په خبر سره هم هغه معزوله كيږي.

**وهذا بخلاف المخيرة**: په دې سره دا راښيي چي د امام صاحب رَحِمَهُ الله په نيز د هر خبر لپاره نصاب شهادت يا عدالت ضروري نه دى، بلكي كه خاوند د خپلې ښځي په نا موجوديت كي هغې ته د طلاق اختيار وركړي او بيا هغې ته فقط يو كس خبر وركړي (چي ته مخيره يې، تا ته خاوند د طلاق اختيار دركړى)، او د دې په اورېدو سره دا ښځه خپل ځان ته طلاق وركړي نو طلاق واقع كيږي، او ګورئ! په

دې مسئله کي امام صاحب د نصاب شهادت يا عدالت اعتبار نه دی کړی بلکي صرف د فرد واحد خبر يې معتبر ګڼلی دی؛ د دې وجه دا ده چي د مخيره ښځي په مسئله کي الزامِ حکم نسته، يعني که مخيره ښځه طلاق اختيار کړي او خاوند داختيار ورکولو تصديق وکړي (چي هو! ما دطلاق اختيار ورکړی دی)، نو هغه طلاقيږي، کنې د خاوند دانکار په صورت هغه د ده ښځه پاتيږي او نه طلاقيږي؛ ځکه چي نکاح خو له مخکښي څخه لا ثابته او لازمه ده؛ (څرنګه چي دلته پر ښځي د هيڅ حکم لازمول نسته، نو ځکه نصاب او عدالت ضروري نه دي (اثمار الهدايه))

د دې په خلاف د شفيع په مسئله کي الزامِ حکم موجود دی؛ ځکه که شفيع ته د بيع خبر ورسيږي خو بيا هم هغه سکوت اختيار کړي، نو هغه به د همسايه توب د ضرر سره مخامخ سي (په دې توګه چي مشفوعه ځای به بل بد خوک رانيسي)، (همدا ډول دا هم ښکاره خبره ده چي شفيع په خپل حقِ شفعه سره د بل چا [بائع او مشتري] ځای اخلي، نو په شفعه کي الزام سته). خلاصه دا چي د مخيره ښځي په مسئله کي الزامِ حکم نسته، نو ځکه هلته نصاب (عدد) او عدالت شرط نه دی، او د شفعي په مسئله کي الزام حکم سته، نو په دې وجه دلته نصاب او عدالت شرط دی.

وبخلاف إلخ: په دې عبارت سره صاحب د هدايې رَحِمَهُ الله يوه بله مسئله ذکر کوي، چي په هغه کي هم امام صاحب نصاب او عدالت ضروري نه بولي، هغه دا ده چي که مشتري له بائع څخه کور رانيسي او بيا خودي مشتري و شفيع ته د بيع خبر ورکړي (چي ستا همسايه يا ستا شريک خو ځای خرڅ کړی)، نو دلته هم عدد او عدالت ضروري نه دی؛ ځکه چي دلته مشتري په خپله خصم دی، او په خصم کي د عدالت اعتبار نه کيږي، ځکه خصم (مشتري) د بيع په خبر ورکولو سره خپل ځان ته نقصان رسوي، نو ښکاره خبره ده چي هغه به رښتيا وايي، نو په دې وجه د هغه عادل کېدل يا دوه کسان کېدل ضروري نه دي.

## د شفعي د طلب کولو دويمه درجه (د طلب تقرير او طلب اشهاد حکم)

وَالثَّانِي طَلَبُ التَّقْرِيرِ وَالْإِشْهَادِ او دويم [قسم] طلبِ تقرير او اشهاد دی. لِأَنَّهُ مُحْتَاجٌ إِلَيْهِ لِإِثْبَاتِهِ عِنْدَ الْقَاضِي ځکه چي شفيع د قاضي مخ ته د خپل طلب ثابتولو لپاره اشهاد [ګواه درولو] ته محتاج دی عَلَى مَا ذَكَرْنَا لکه [مخکي] چي موږ ذکر کړه وَلَا يُمْكِنُهُ الْإِشْهَادُ ظَاهِرًا عَلَى طَلَبِ الْمُوَاثَبَةِ او شفيع لره پر طلبِ مواثبه اشهاد [ګواه درول] په ظاهره ممکن نه دي لِأَنَّهُ عَلَى فَوْرِ الْعِلْمِ بِالشِّرَاءِ ځکه چي طلب مواثبه په رانيولو د خبرېدلو سره فوراً ده [يعني چي کله شفيع د مشفوعه ځای په بيع او رانيول کېدلو خبر سي، نو فوراً (سمدستي) پر هغه طلبِ مواثبه لازم ده] فَيَحْتَاجُ بَعْدَ ذَلِكَ إِلَى طَلَبِ الْإِشْهَادِ وَالتَّقْرِيرِ نو ځکه

شفيع به طلبِ اشهاد و تقرير ته تر طلبِ مواثبه وروسته محتاج وي وَبَيَانُهُ مَا قَالَ فِي الْكِتَابِ او د دې طلب بيان همغه دی کوم چي امام قدوري رَحِمَهُ الله په کتاب [متن] کي ويلی دی [چي هغه يې په راروان متن کي ذکر کړی دی].

**اللغات**: ﴿تقرير﴾ د تفعيل د باب مصدر دی: ثابتول. ﴿إشهاد﴾ د افعال د باب مصدر دی: گواه جوړول، (يو څوک پر خپل قول او دعوی) گواه درول.

**تشريح**: صاحب د کتاب رَحِمَهُ الله ويلي وه چي د طلب درې قسمونه دي، اول قسم (يعني طلبِ مواثبه) يې بيان کړی، اوس د طلبِ اشهاد بيان کوي چي د هغه نوم طلب تقرير دی. کيفيت او طريقه به يې په راروانو عباراتو کي ذکر سي. د طلبِ تقرير او اشهاد فايده دا ده چي که مشتري د شفيع د طلب انکار وکړي (چي تا د شفعي طلب نه دی کړی)، نو شفيع په خپل دغه طلب سره د قاضي په عدالت کي خپل طلبِ مواثبه ثابتولای سي، او دغه طلب (طلب تقرير و اشهاد) ته ضرورت ولي سته. دا مخکي بيان سوه.

ولا يمكنه إلخ: او د دې طلب ضرورت تر طلبِ مواثبه وروسته ولي نه دی. ولي د طلبِ مواثبه سره يو ځای ضروري نه دی گرځول سوی؟. نو فرمايي چي د هغه سره ځکه يو ځای نه دی ضروري سوی چي په بيع تر خبرېدلو وروسته فوراً پر شفيع طلبِ مواثبه ضروري ده او دا ښکاره خبره ده چي د پر ځله د خبرېدلو په وخت (مجلسِ علم) کي د شفيع سره هيڅ کس موجود نه وي. لهذا که د شفيع د خبرېدلو په وخت کي پر هغه د طلبِ مواثبه سره طلبِ اشهاد هم ضروري وگرځول سي، نو شفيع ته به ضرر لاحق سي او د گواهانو د نه موجودېدلو په وجه به د هغه حقِ شفعه ختم سي. نو ځکه دغه طلب تر طلبِ مواثبه وروسته ايښوول سوی دی. د دې پوره وضاحت به په راروان عبارت کي ذکر سي.

## د طلب اشهاد ځای (چي گواه به چيري قائموي)

ثُمَّ يَنْهَضُ مِنْهُ يَعْنِي مِنَ الْمَجْلِسِ بيا دي شفيع له هغه يعني له مجلس څخه ولاړ سي وَيُشْهِدُ عَلَى الْبَائِعِ او پر بائع [د بائع مخته] دي [پر خپل طلب] گواه ودروي [خو دا په هغه وخت کي] إِنْ كَانَ الْمَبِيْعُ فِي يَدِهِ، مَعْنَاهُ لَمْ يُسَلِّمْ إِلَى الْمُشْتَرِيْ که چيري مبيع د بائع په قبضه کي وي. يعني تر اوسه يې مشتري ته سپارلې نه وي أَوْ عَلَى الْمُبْتَاعِ أَوْ عِنْدَ الْعَقَارِ يا [شفيع] دي پر مشتري يا د جايداد سره گواه ودروي فَإِذَا فَعَلَ ذٰلِكَ نو کله چي شفيع دا وکړي اِسْتَقَرَّتْ شُفْعَتُهُ نو د هغه شفعه پخه [او مضبوطه] سوه

وَهٰذَا لِأَنَّ كُلَّ وَاحِدٍ مِنْهُمَا خَصْمٌ فِيهِ او دا ځکه چي له بائع او مشتري ځنخه هر يو [په حقِ شفعه کي د شفيع] خصم دی لِأَنَّ لِلْأَوَّلِ الْيَدَ وَلِلثَّانِي الْمِلْكَ ځکه چي د اول [بائع] لپاره قبضه ده او د دويم [مشتري] لپاره ملکيت دی وَكَذَا يَصِحُّ الْإِشْهَادُ عِنْدَ الْمَبِيعِ لِأَنَّ الْحَقَّ مُتَعَلِّقٌ بِهِ او همدارنګه د مبيع سره [پر خپل طلب او دعوىٰ] ګواه درول [ځکه] صحيح کيږي چي حق [حقِ شفعه] د مبيع سره متعلق دی فَإِنْ سَلَّمَ الْبَائِعُ الْمَبِيعَ بيا که بائع [و مشتري ته] مبيع وسپاري لَمْ يَصِحَّ الْإِشْهَادُ عَلَيْهِ نو پر بائع [د بائع مخته] إشهاد صحيح نه دی لِخُرُوجِهِ مِنْ أَنْ يَكُونَ خَصْمًا ځکه چي هغه له خصم کېدلو ځنخه ووتی [يعني اوس بائع د شفيع خصم پاته نه سو] إِذْ لَا يَدَ لَهُ وَلَا مِلْكَ ځکه چي [اوس] هغه لره نه قبضه سته او نه ملکيت فَصَارَ كَالْأَجْنَبِيِّ نو هغه داجنبي په څېر سو.

**اللغات:** ﴿ينهض﴾ د فتح د باب مضارع ده: پورته کېدل، ولاړېدل، جګېدل. ﴿مبتاع﴾ د افتعال د باب فاعل دی: رانيونکی، مشتري. ﴿عقار﴾ جايداد، يعني ځمکه، کور او داسي نور. ﴿خصم﴾ د جنګ او دعوې يو فريق، فريقِ مخالف. ﴿اليد﴾ مراد ځني قبضه ده.

**تشريح:** په دې عبارت کي د طلبِ اشهاد وضاحت کوي، فرمايي چي د خبرېدلو تر مجلس (مجلسِ علم) وروسته شفيع ته پکار دي چي په چټکتيا سره ولاړ سي او طلبِ اشهاد وکړي، که چيري مبيع (خرڅ کړی سوی ځای) تر اوسه د بائع (خرڅونکي) په قبضه کي وي او مشتري ته يې حواله کړی نه وي، نو شفيع دي هغه ته ورسي او د هغه مخ ته دي پر خپل طلب ګواهان ودروي (چي ما د شفعي طلب کړی دی او اوس يې هم طلب کوم او دا مبيع ځای زه غواړم)، او که چيري مبيع د مشتري په قبضه کي وي، نو د هغه مخ ته دي ګواهان ودروي. همدارنګه د مبيع سره هم پر خپل طلب ګواهان درولای سي.

د بائع يا مشتري مخ ته طلبِ اشهاد ځکه کولای سي چي بائع خو پر مبيع قابض دی (يعني مبيع ځای د هغه په قبضه کي دی) او مشتري د رانيولو په وجه د مبيع مالک سوی دی، نو دوی دواړه د حقِ شفعه په سلسله کي د شفيع خصم جوړېدای سي (لهذا د خپل حق قوي کولو لپاره د بائع يا مشتري مخ ته طلبِ اشهاد ضروري دی).

او څرنګه چي د شفيع حق (يعني حق شفعه) په همدې مبيع کي دی، نو ځکه د مبيع سره هم ګواهان درولای سي. او دا ټوله صرف د خپل حق مضبطولو او ثابتولو لپاره دي.

فإن سلم إلخ: فرمايي که بائع مبيع مشتري ته حواله کړي، نو څرنګه چې اوس هغه خصم پاتـه نه سو، ځکه اوس هغه نه پر مبيع قابض دی او نه يې مالک دی بلکې د اجنبي په شـان سو. نو په دې وجه اوس د هغه مخته ګواه درول لغو سو (ځکه ښکاره خبره ده چې اوس د هغه مخته طلب اشهاد هيڅ فايده نه کوي).

## د طلب اشهاد طريقه

وَصُورَةُ هٰذَا الطَّلَبِ أَنْ يَقُوْلَ او د دغه طلب صورت دا دی چې شفيع داسې ووايي إِنَّ فُلَانًا اِشْتَرٰى هٰذِهِ الدَّارَ وَأَنَا شَفِيْعُهَا چې فلانکي کس دا کور رانيولی دی او زه د دغه کور شفيع يم وَقَدْ كُنْتُ طَلَبْتُ الشُّفْعَةَ وَأَطْلُبُهَا الْآنَ فَاشْهَدُوْا عَلٰى ذٰلِكَ او ما [مخکې هم] د شفعې طلب کړی وو او اوس يې هم کوم نو تاسې پر دې ګواهان سئ! وَعَنْ أَبِيْ يُوْسُفَ أَنَّهُ يُشْتَرَطُ تَسْمِيَةُ الْمَبِيْعِ وَتَحْدِيْدُهُ او له امام ابو يوسف رَحِمَهُ الله څخه روايت دی چې د مبيع [ځمکې يا کور] نوم اخيستل او د هغه حدونه بيانول شرط دي لِأَنَّ الْمُطَالَبَةَ لَا تَصِحُّ إِلَّا فِيْ مَعْلُوْمٍ ځکه چې مطالبه صرف په معلوم شي کې صحيح کيږي وَالثَّالِثُ طَلَبُ الْخُصُوْمَةِ وَالتَّمَلُّكِ او دريم [قسم] طلب خصومت او طلب تملک دی وَسَنَذْكُرُ كَيْفِيَّتَهُ مِنْ بَعْدُ إِنْ شَاءَ اللهُ تَعَالٰى او د هغه کيفيت به موږ انشاء الله وروسته ذکر کړو.

**اللغات**: ﴿تسمية﴾ د تفعيل د باب مصدر دی: نومول، نوم اخيستل، ذکر کول (بيانول)، مُتعيّن کول. ﴿تحديد﴾ دا هم د تفعيل مصدر دی: حد بندي، حدود بيانول (مثلاً د ځمکې حدود مُتعيّن کول چې له دې ځايه تر دې ځايه پورې)،

**تشريح**: په دې عبارت کې صاحب د هدايې رَحِمَهُ الله د طلب اشهاد طريقه بيانوي چې شفيع دې د څو خلکو په موجوديت کې دا ووايي چې "دا ځای (ځمکه يا کور) کوم چې زما د ځای پر برابر دی. فلانکي دا رانيولی دی او زه د دې شفيع يم، ما مخکې هم د شفعې طلب کړی دی. اوس يې هم طلب کووم، تاسو زما پر طلب ګواهان سئ!".

له امام ابو يوسف رَحِمَهُ الله څخه يو روايت دا هم دی چې د هغه په نېز د مبيع ځای (ځمکې يا کور) نوم اخيستل او د هغه څلور سره حدود بيانول هم ضروري دي، ځکه چې د نوم او حدودو په بيانولو (تسميه او تحديد) سره د مبيع ذات او د هغه طول او عرض متعين کيږي او مبيع په يقيني توګه معلوميږي، او طلب او دعویٰ د معلوم شي کول صحيح دي، نو ځکه تر تسميه او تحديد وروسته به د شفيع طلب او دعویٰ صحيح وي.

والثالث إلخ: د شفعي د طلب کولو درېيمه درجه يعني د طلب درېيم قسم طلب خصومت دی، د دې مطلب دا دی په درېيم ځل دې شفيع د قاضي مجلس ته ولاړ سي او هلته دې د خپل حق شفعه طلب او خصومت وکړي او د مبيع تملک (مالک کېدلو) دعوىٰ دې وکړي (چې دا مبيع ځای زه رانيسم او زه يې مالک کېږم)، دې ته طلب خصومت او طلب تملک وايي، د دې کيفيت او وضاحت به انشاء الله وروسته راسي،

## د طلب اشهاد مودت

قَالَ [امام قدوري رَحِمَهُ الله] فرمايي وَلَا تَسْقُطُ الشُّفْعَةُ بِتَأْخِيرِ هٰذَا الطَّلَبِ عِنْدَ أَبِيْ حَنِيْفَةَ اوشفعه نه ساقطيږي د دغه طلب [طلب خصومت] په ځنډولو سره د امام صاحب رَحِمَهُ الله په نېز وَهُوَ رِوَايَةٌ عَنْ أَبِيْ يُوسُفَ او همدا له امام ابو يوسف رَحِمَهُ الله څخه هم يو روايت دی وَقَالَ: مُحَمَّدٌ ۞: إِنْ تَرَكَهَا شَهْرًا بَعْدَ الْإِشْهَادِ او امام محمد رَحِمَهُ الله فرمايي: که شفيع له ګواه درولو [طلب اشهاد] څخه وروسته تر يوې مياشتي پوري خصومت [طلب خصومت] پرېږدي بَطَلَتْ نو شفعه باطليږي وَهُوَ قَوْلُ زُفَرَ او همدا د امام زفر رَحِمَهُ الله قول هم دی مَعْنَاهُ إِذَا تَرَكَهَا مِنْ غَيْرِ عُذْرٍ د دې مطلب دا دی چې کله هغه بغير له عذره خصومت پرېږدي وَعَنْ أَبِيْ يُوسُفَ أَنَّهُ إِذَا تَرَكَ الْمُخَاصَمَةَ فِيْ مَجْلِسٍ مِنْ مَجَالِسِ الْقَاضِيْ او له امام ابو يوسف رَحِمَهُ الله څخه [بل] روايت دا دی چې کله شفيع د قاضي له مجلسونو څخه په يو مجلس کي مخاصمه [دعوىٰ او طلب] پرېږدي تَبْطُلُ شُفْعَتُهُ نو د ده شفعه باطليږي لِأَنَّهُ إِذَا مَضٰى مَجْلِسٌ مِنْ مَجَالِسِهِ وَلَمْ يُخَاصِمْ فِيهِ اخْتِيَارًا ځکه کله چې د قاضي له مجلسونو څخه يو مجلس تېر سو او ده په خپل اختيار سره په هغه کي مخاصمه نه وکړه دَلَّ ذٰلِكَ عَلٰى إِعْرَاضِهِ وَتَسْلِيْمِهِ نو دا د ده پر اعراض او تسليم [يعني د شفعي پر پرېښوولو] دلالت کوي.

**اللغات:** ﴿شهراً﴾ يوه مياشته، ﴿إشهاد﴾ د افعال د باب مصدر دی: ګواه درول، ګواه جوړول.

**تشريح: صورت د مسئلې:** دا دی که يو شفيع له طلب مواثبه او طلب اشهاد څخه وروسته په طلب خصومت کي تأخير وکړي (يعني د قاضي په مجلس کي د حق شفعه د مطالبې او دعوې پېشولو لپاره نا وخته ولاړ

---

۞ القول الراجح: قول ابي حنيفة رَحِمَهُ الله، لكن الفتوىٰ اليوم على قول محمد رَحِمَهُ الله لأنه أوفق بهذا الزمان، انظر للتفصيل والتوضيح [القول الراجح ج:۲، ص:۲۶۹]

سي لو ځنډ وکړي)، نو د هغه دا تأخير به یا د عذر په وجه وي یا بېله عذره به وي، که چیري د عذر په وجه وي. نو په دې سره بالاتفاق د هغه حقِ شفعه نه ساقطیږي. او که بغیر له عذره وي (یعني بغیر له عذره په طلبِ خصومت کي تأخیر وکړي)، نو د امام صاحب رَحِمَهُ الله په نېز او د امام ابو یوسف رَحِمَهُ الله دیوه روایت مطابق په دې صورت کي هم په تأخیر سره حقِ شفعه نه ساقطیږي. د امام محمد او امام زفر رَحِمَهُمَا الله مسلک دا دی چي که شفیع بغیر له څه عذره تر یوې میاشتي پوري طلبِ خصومت نه وکړي، نو د هغه حقِ شفعه ساقطیږي.

د امام ابو یوسف رَحِمَهُ الله یو بل روایت دا دی چي که شفیع د قاضي په مجلس کي طلبِ خصومت نه وکړي، نو د هغه حقِ شفعه ساقطیږي او ختمیږي، د هغه دلیل دا دی چي د قاضي مجلسونه د خپل حقوقو د ثابتولو لپاره وضع سوي دي (چي څوک هلته خپل حق طلب کړي او د قاضي په قضاوت سره یې ثابت کړي)، لهذا کوم کس چي د قاضي په مجلس کي د خپل حق طلب نه کوي او نه یې ثابتوي، نو دا به ګڼل کیږي چي هغه له خپل حق غوښتلو څخه اعراض کوي او نه یې خوښوي، نو ځکه په دې صورت کي د هغه حقِ شفعه باطلیږي.

## د امام محمد رَحِمَهُ الله دلیل

وَجْهُ قَوْلِ مُحَمَّدٍ أَنَّهُ لَوْ لَمْ يَسْقُطْ بِتَأْخِيرِ الْخُصُومَةِ مِنْهُ أَبَدًا د امام محمد رَحِمَهُ الله د قول وجه دا ده چي که د طلبِ خصومت په ځنډولو سره هیڅکله هم شفعه ساقطه نه سي يَتَضَرَّرُ بِهِ الْمُشْتَرِيْ نو په دې سره مشتري ته ضرر رسیږي لِأَنَّهُ لَا يُمْكِنُهُ التَّصَرُّفُ، حَذَارَ نَقْضِهِ مِنْ جِهَةِ الشَّفِيْعِ ځکه مشتري لره به هیڅ تصرف کول ممکن نه وي، د شفیع له طرفه د هغه د تصرف ماتېدلو له بیري [یعني د شفیع له جانبه د مشتري د تصرف ماتېدلو له بیري به مشتري هیڅ تصرف نه سي کولای] فَقَدَّرْنَاهُ بِشَهْرٍ نو ځکه موږ هغه په یوې میاشتي سره مقدّر [او متعین] کړی لِأَنَّهُ آجِلٌ وَمَا دُوْنَهُ عَاجِلٌ ځکه چي دا یوه میاشته وروستنی مودت دی او تر یوې میاشتي کم بېړنی مودت دی [یعني یوه میاشته زیات او لیري مودت دی او تر یوې میاشتي کم وخت لږ او قریب مودت دی] عَلَىٰ مَا مَرَّ فِي الْأَيْمَانِ لکه څرنګه چي په کتاب الأيمان کي تېر سوه.

**اللغات**: ﴿يتضرر﴾ د تفعّل مضارع ده: نقصان رسېدل، نقصان مند کېدل (تاواني کېدل)، ﴿حذار﴾ بېره، خان ساتنه. ﴿نقض﴾ د نصر د باب مصدر دی: ماتول، ماتېدل. ﴿آجل﴾ وروستني، مؤخر، مراد ځني مدة بعيده دی، ﴿عاجل﴾ بېړنی، ژر کېدونکی، فوري، مراد ځني مدة قريبه دی.

**تشريح**: مخکې ذکر سوه چې د امام محمد رَحِمَهُ الله په نيز يوه مياشت د طلب خصومت ځنډول (مؤخر کول) حقِ شفعه ساقطوي، په دې عبارت کې د هغه دليل ذکر کوي، حاصل يې دا دی چې امام محمد رَحِمَهُ الله چې کوم د يوې مياشتې قيد لګولی دی، هغه يې ځکه لګولی دی چې مشتري ته نقصان او ضرر نه ورسيږي، ځکه که د طلبِ خصومت په تأخير سره د همېشه لپاره حقِ شفعه ساقط نه سي، نو ښکاره خبره ده چې مشتري به له دې بيري په رانيول سوي ځای کې هيڅ تصرف او لاسوهنه نه سي کولای چې که زه تصرف وکړم او په دې ځای کې څه وداني جوړه کړم او بيا وروسته شفيع په طلبِ خصومت سره دا ځای بېرته زما څخه واخلي، نو زما تصرّف به مات کړي او زما خواري و کوښښ به عبث ولاړ سي، لهذا له دې بيري به مشتري په رانيول سوي ځای کې هيڅکله هم شی نه جوړوي، نو په دې وجه امام محمد رَحِمَهُ الله فرمايي چې شفيع ته به د زيات تأخير اجازه نه ورکول کيږي بلکې لږ تاکل سوی مودت به د هغه اختيار ورکول کيږي چې مشتري ته ضرر لاحق نه سي، نو په دې باره کې امام محمد رَحِمَهُ الله يوه مياشته مودت وټاکی، ځکه يوه مياشته کم مودت دی، لکه څرنګه چې په کتاب الأيمان کې (د دراهمو د مطالبه کولو په سلسله کې) تر يوې مياشتې کم مودت قليل (قريب) او تر يوې مياشتې زيات مودت کثير (بعيد) شمارل سوی دی، لهذا که شفيع د يوې مياشتې تر تېرېدلو مخکې طلبِ خصومت وکړي يعني د قاضي په مجلس کې د خپل حقِ شفعه مطالبه او دعوی وکړي، نو د هغه حقِ شفعه نه ساقطيږي او که يوه مياشته يا تر دې زيات وخت په دې کې تأخير وکړي، نو دا حق يې ساقطيږي او ختميږي.

## د امام صاحب رَحِمَهُ الله دليل

وَوَجْهُ قَوْلِ أَبِي حَنِيفَةَ وَهُوَ ظَاهِرُ الْمَذْهَبِ وَعَلَيْهِ الْفَتْوٰى أَنَّ الْحَقَّ مَتٰى ثَبَتَ وَاسْتَقَرَّ او د امام صاحب رَحِمَهُ الله د قول وجه (او همدا ظاهر مذهب او مفتیٰ به قول دی) دا ده چې حق کله ثابت او مضبوط سي لَا يَسْقُطُ إِلَّا بِإِسْقَاطِهِ نو [بيا] هغه نه ساقطيږي مګر د صاحبُ الحق په ساقطولو سره وَهُوَ التَّصْرِيحُ بِلِسَانِهِ او هغه د ده په خپل ژبه سره تصريح کول دي [يعني د خپل حق ساقطولو شکل دا دی چې د حق خاوند په خپل ژبه سره د دې تصريح وکړي] كَمَا فِي سَائِرِ الْحُقُوقِ لکه څرنګه چې په ټولو حقوقو کې [همداسې ده] وَمَا ذُكِرَ مِنَ الضَّرَرِ يُشْكِلُ بِمَا إِذَا كَانَ غَائِبًا او [د امام محمد رَحِمَهُ الله په قول کې] چې د کوم ضرر يادونه سوې ده پر هغه په هغه صورت سره اشکال کيږي کله چې شفيع غائب وي [يعني

پر هغه دا اشكال واردېږي چي كه شفيع غائب او مسافر وي نو خو هم مشتري ته ضرر رسيږي] وَلَا فَرْقَ فِي حَقِّ الْمُشْتَرِيْ بَيْنَ الْحَضَرِ وَالسَّفَرِ حال دا چي د مشتري په حق كي [د شفيع] د سفر او حضر هيڅ فرق نسته وَلَوْ عُلِمَ أَنَّهُ لَمْ يَكُنْ فِي الْبَلَدِ قَاضٍ او كه دا معلومه سي چي په ښار كي قاضي نسته لَا تَبْطُلُ شُفْعَتُهُ بِالتَّأْخِيرِ بِالِاتِّفَاقِ نو [په دې صورت كي] بالاتفاق د تأخير كولو په وجه د شفيع شفعه نه باطلېږي لِأَنَّهُ لَا يَتَمَكَّنُ مِنَ الْخُصُومَةِ إِلَّا عِنْدَ الْقَاضِيْ ځكه چي شفيع پر خصومت قدرت نه لري مگر صرف د قاضي مخته [د قاضي په مجلس كي] فَكَانَ عُذْرًا نو دا به عذر وي.

**اللغات**: ﴿استقرّ﴾ د استفعال د باب ماضي ده: مضبوطېدل، پخېدل. ﴿تصريح﴾ د تفعيل د باب مصدر دی: واضح او ښكاره بيانول. ﴿لايتمكّن﴾ د تفعل له بابه د نفي صيغه ده: قدرت لرل (قدرت پيدا كول)، قادر كېدل.

**تشريح**: صاحب د هدايې رَحِمَهُ الله له دې ځايه د امام صاحب دليل ذكر كوي، هغه فرمايي چي په تمام حقوقو كي اُصول دا دی چي حق كله ثابت او مضبوط سي، نو بيا نه ساقطيږي (تر څو چي په خپل ژبه سره انكار نه وكړي)، لېكن كله چي د حق خاوند په خپل ژبه سره انكار وكړي او خپل حق ختم او ساقط كړي، نو بيا ساقطيږي. او شفعه هم يو حق دی، لهذا كله چي د شفيع په طلبِ مواثبه او طلبِ اشهاد سره دا حق ثابت او مضبوط سو، نو د طلبِ خصومت په تأخير سره به نه ساقطيږي، مگر دا چي شفيع خپل دا حق پرېږدي او ساقط يې كړي، او څرنگه چي په پورتنۍ مسئله كي د شفيع حق ثابت سوی دی، نو ځكه په تأخير سره به هغه نه ساقطيږي.

وما ذكر إلخ: دا د امام محمد رَحِمَهُ الله د دليل جواب دی، هغه ويلي وه چي "په طلبِ خصومت كي د يوې مياشتي په تأخير كولو سره حقِ شفعه ساقطيږي ځكه كه داسي نه وسي نو مشتري ته ضرر او نقصان رسيږي"، نو په جواب كي فرمايي چي دا خبره صحيح نه ده، ځكه كه شفيع غائب وي نو بيا هم هغه ته خپل حقِ شفعه حاصليږي، حال دا چي په دې صورت كي هم مشتري ته ضرر رسيږي، لهذا كله چي د شفيع د غائب والي او سفر په صورت كي د مشتري ضرر برداشت كړی سوی دی، نو د شفيع د موجود والي په صورت كي هم دا ضرر برداشت كول پكار دي، ځكه چي د مشتري په حق كي د سفر او حضر تر مينځ هيڅ فرق نسته.

ولوعلم إلخ: مخکې موږ وويل چې که د عذر په وجه تأخير وسي، نو بالاتفاق حقِ شفعه نه ساقطيږي، همدا وجه ده که په ښار کې قاضي نه وي چې په دې وجه په طلب خصومت کې تأخير وسي، نو بالاتفاق دا تأخير حقِ شفعه نه ساقطوي؛ ځکه شفيع صرف د قاضي مخ ته د خپل حقِ شفعه دعوىٰ او خصومت کولاى سي، او کله چې قاضي سته نه، نو شفيع به خصومت څنګه وکړي!؟، نو ځکه په دې صورت کې به شفيع معذوره ګڼل کيږي او د هغه حقِ شفعه به باقي پاتيږي، ساقطيږي به نه.

## په شفعه کې د قاضي وظيفه (د شفعي د دعوې طريقه)

قَالَ [امام قدوري رَحِمَهُ الله] فرمايي وَإِذَا تَقَدَّمَ الشَّفِيعُ إِلَى الْقَاضِيْ فَادَّعَى الشِّرَاءَ وَطَلَبَ الشُّفْعَةَ او کله چې شفيع قاضي ته راسي او د رانيول کېدلو دعوىٰ وکړي [چې فلانکي هغه کور رانيوى چې زه د شفعې حق پکښې لرم] او د شفعې طلب وکړي سَأَلَ الْقَاضِيْ الْمُدَّعٰى عَلَيْهِ نو قاضي دي له مدعىٰ عليه [مشتري] څخه پوښتنه وکړي فَإِنِ اعْتَرَفَ بِمِلْكِهِ الَّذِيْ يَشْفَعُ بِهِ نو که چيرې مشتري د شفيع د هغه ملکيت اقرار وکړي چې د هغه په ذريعه شفيع د شفعې دعوىٰ کوي [نو سمه ده] وَإِلَّا كَلَّفَهُ بِإِقَامَةِ الْبَيِّنَةِ کنې قاضي دي شفيع د بېنې په پېشولو سره مکلف کړي لِأَنَّ الْيَدَ ظَاهِرٌ مُحْتَمَلٌ ځکه چې [د شفيع] قبضه يو ظاهري شى ده چې په هغه کې څو احتماله دي فَلَا تَكْفِيْ لِإِثْبَاتِ الِاسْتِحْقَاقِ نو ځکه محض قبضه [د شفيع] د استحقاق ثابتولو لپاره نه کافي کيږي قَالَ [صاحب د هدايې رَحِمَهُ الله] فرمايي يَسْأَلُ الْقَاضِيْ الْمُدَّعِيَ قَبْلَ أَنْ يُقْبِلَ عَلَى الْمُدَّعٰى عَلَيْهِ عَنْ مَوْضِعِ الدَّارِ وَحُدُوْدِهَا چې قاضي به مدعىٰ عليه [مشتري] ته تر متوجه کېدلو مخکې له مدعي [شفيع] څخه د مشفوع کور د ځاى او حدودو په هکله پوښتنه کوي لِأَنَّهُ ادَّعٰى حَقًّا فِيْهَا ځکه چې شفيع په هغه کور کې د حق [حقِ شفعه] دعوىٰ کړې ده فَصَارَ كَمَا إِذَا ادَّعٰى رَقَبَتَهَا نو دا داسې سو لکه هغه چې د کور د ملکيت دعوىٰ وکړي وَإِذَا بَيَّنَ ذٰلِكَ او کله چې شفيع دا ټوله بيان کړي يَسْأَلُهُ عَنْ سَبَبِ شُفْعَتِهِ نو بيا به قاضي له شفيع څخه د شفعې د سبب په هکله پوښتنه کوي لِاخْتِلَافِ أَسْبَابِهَا ځکه چې د شفعې اسباب مختلف وي فَإِنْ قَالَ: أَنَا شَفِيْعُهَا بِدَارٍ لِيْ تُلَاصِقُهَا نو که شفيع ووايي: چې زه د دې کور شفيع يم د خپل هغه

کور په وجه کوم چې د دې کور سره متصل دی اَلْاٰنَ تَمَّ دَعْوَاهُ نو اوس د هغه دعویٰ پوره سوه عَلٰی مَا قَالَهُ الْخَصَّافُ د هغه تفصیل مطابق کوم چې امام خصاف رَحِمَهُ الله ذکر کړی دی [یعني د امام خصاف د قول مطابق د سبب په بیانولو سره د هغه دعویٰ پوره کیږي] وَذُكِرَ فِي الْفَتَاوٰى تَحْدِيدُ هٰذِهِ الدَّارِ الَّتِيْ يَشْفَعُ بِهَا أَيْضًا او په فتاویٰ کې د دې کور حدودو بیانول هم ذکر سوي دي چې د هغه په وجه شفیع د شفعې دعویٰ کوي وَقَدْ بَيَّنَّاهُ فِي الْكِتَابِ الْمَوْسُوْمِ بِالتَّجْنِيْسِ وَالْمَزِيْدِ او موږ دا په خپل کتاب کې بیان کړي دي چې د هغه نوم "التجنیس والمزید" دی.

**اللغات**: ﴿يشفع﴾ د فتح د باب مضارع ده: شفیع کېدل، شفیع جوړېدل، صاحب د احسن الهدایې معنیٰ کړې ده: د شفعې دعویٰ کول، د شفعې مستحق کېدل (خو د ټولو مراد یو دی)، ﴿كلّف﴾ د تفعیل د باب ماضي ده: مکلف کول، مجبوره او پابند کول، ﴿بيّنة﴾ ګواهي، ﴿يد﴾ لاس، مراد ځني قبضه ده، ﴿محتمل﴾ احتمالي (احتمال لرونکی)، ځکه دلته دا احتمال سته چې د کرایې په توګه یې پر کور قبضه کړې وي، دا احتمال هم سته چې د هبې یا عاریت په توګه یې پر کور قبضه وي او دا احتمال هم سته چې د ملکیت په توګه قبضه وي، نو ځکه ګواهي پېشول ضروري دي چې د ملکیت قبضه ثابته کړي، ﴿يُقبل﴾ د افعال د باب مضارع ده: متوجه کېدل، مخامخ کېدل، ﴿تُلاصِق﴾ د مفاعلې د باب مضارع ده: متصل کېدل (جوختېدل).

**تشریح**: له دې ځایه امام قدوري رَحِمَهُ الله د طلب خصومت صورت او د قاضي لپاره کړنلاره بیانوي، حاصل یې دا دی چې کله شفیع د قاضي مجلس ته ولاړ سي او هلته د مشفوعه کور د خرڅېدلو او رانیول کېدلو دعویٰ وکړي او بیا د خپل حق شفعه طلب وکړي، نو د قاضي وظیفه دا ده چې له مشتري (رانیونکي) څخه دا تحقیق او معلومات وکړي چې آیا شفیع واقعي د هغه کور مالک دی چې د هغه په وجه شفیع دُخپل حق شفعه طلب کوي؟ (یعني کوم کور چې د شفیع په قبضه کې دی چې د هغه پر بناء د حق شفعه دعویٰ کوي، آیا رښتیا هم هغه د دې مالک دی. [یا په بله وینا دا چې آیا رښتیا هم ستا د رانیول سوی کور سره د شفیع کور یو ځای دی])، که چیري مشتري د شفیع د ملکیت اقرار وکړي (چې هو! دئ رښتیا هم د هغه کور مالک دی [د ده کور زما د کور سره دی] او دئ زما په رانیول سوي کور کې د شفعې حق لري)، نو قاضي به (د شفیع د حق پر بناء) له مشتري څخه مشفوع کور اخلي او شفیع ته به یې ور کوي. او که مشتري د شفیع د ملکیت انکار وکړي، نو قاضي به له شفیع څخه بیّنه (ګواهان) طلب کړي؛ ځکه د کوم کور په وجه

چي شفيع د حقِ شفعه مطالبه کوي، هغه که څه هم په ظاهره د شفيع په قبضه کي دی، لېکن په هغه کي دا احتمال هم سته چي هغه دي د ده ملکيت نه وي، بلکي د کرايې يا هبې يا عاريت دي وي، او په ظاهري قبضه سره استحقاق نه ثابتيږي، نو ځکه د خپل ملکيت ثابتولو لپاره به شفيع بيّنه پېشوي او له بيّنه پېشولو څخه وروسته به هغه ته حقِ شفعه ورکول کيږي.

قال ويسأل إلخ: په دې سره دا رابنيي چي له بيّنه پېشولو څخه وروسته به هم مشفوع کور شفيع ته نه سپارل کيږي، بلکي اوس به قاضي له شفيع څخه د مشفوع کور په هکله پوښتنه کوي چي هغه په کومه سيمه او کوم ځای کي واقع دی او د هغه حدودِ اربعه څه دي (مثلاً راسته، چپه، لوړ او لاندي طرف ته يې د کومو کسانو کورونه او ځمکي دي)؛ ځکه چي شفيع په مشفوع کور کي د خپل حقِ شفعه دعویٰ کړې ده او دعویٰ په معلوم شي کي صحيح کيږي، نو ځکه د مشفوع کور په هکله د شفيع معلومات پوښتل هم ضروري دي، لکه يو څوک چي ديو کور د ملکيت دعویٰ وکړي (چي زه د دې کور مالک يم). نو له هغه څخه د دې کور معلومات او تفصيل هم پوښتل کيږي چي معلومه سي چي د هغه دعویٰ صحيح ده.

بيا چي کله شفيع قاضي ته د مشفوع کور په هکله معلومات ورکړي او حدودِ اربعه يې بيان کړي، نو بيا به قاضي له هغه څخه دا پوښتنه کوي چي "ته په کوم سبب د حقِ شفعه طَلَب کوې، آيا د شرکت په سبب (چي ته په مشفوع کور يا لارهٔ کي ور سره شريک يې) او که د همسايه توب په سبب (چي ته د ده همسايه يې)"، نو هر صورت چي شفيع بيان کړي، قاضي به د هغه مطابق د ده په حق کي فيصله کوي او مشفوع کور به ده ته سپاري.

د حقِ شفعه د سبب په بيانولو سره د شفيع دعویٰ پوره کيږي، دا د امام خصاف رَحِمَهُ الله مسلک دی.

لېکن د فتاویٰ په کتاب کي دا هم ذکر سوي دي چي څرنګه له شفيع څخه د مشفوع کور معلومات او حدودِ اربعه پوښتل کيږي، همداسي به له ده څخه د هغه کور معلومات او حدودِ اربعه هم پوښتل کيږي چي د هغه په وجهٔ دئ د حقِ شفعه دعویٰ او طلب کوي، او د دې مقصد دا دی چي فريب او دوکه نه وکړي او وروسته بيا نزاع او څه مسئله واقع نه سي.

## په پورتني صورت کي که شفيع بيّنه پېش نه کړی سي نو قاضي به له مشتري څخه قسم اخلي (د قسم طريقه)

قَالَ: فَإِنْ عَجَزَ عَنِ الْبَيِّنَةِ فرمايي: که شفيع له بيّنه [پېشولو] څخه عاجزه سي اِسْتَحْلَفَ الْمُشْتَرِيَ "بِاللهِ مَا يَعْلَمُ أَنَّهُ مَالِكٌ لِلَّذِيْ ذَكَرَهُ مِمَّا يَشْفَعُ بِهِ" نو قاضي به له مشتري څخه داسي قسم اخلي "په الله قسم ما ته معلومه نه ده چي شفيع د هغه څه [کور] مالک دی د کوم چي ده يادونه کړې ده

يعني چي د هغه په وجه دئ د شفعي دعوىٰ كوي مَعْنَاهُ بِطَلَبِ الشَّفِيعِ د دې مطلب دا دی چي د شفيع پر مطالبه [يعني قسم به هغه وخت ځني اخيستل كيږي كله چي شفيع د دې مطالبه وكړي (چي له مشتري څخه دي قسم واخيستل سي)] لِأَنَّهُ ادَّعَىٰ عَلَيْهِ مَعْنًى لَوْ أَقَرَّ بِهِ ځكه چي شفيع پر مشتري د يو داسي شي دعوىٰ كړې دم چي كه مشتري د هغه اقرار وكړي لَزِمَهُ نو هغه به پر ده لازم سي [په بله وينا دا چي شفيع پر مشتري داسي دعوىٰ كړې ده چي كه مشتري اقرار وكړي نو پر مشتري به د كور وركول لازم سي] ثُمَّ هُوَ اسْتِحْلَافٌ عَلَىٰ مَا فِي يَدِ غَيْرِهِ بيا دا پر داسي شي قسم اخيستل دي كوم چي له مشتري څخه بغير د بل چا [شفيع] په قبضه كي دی فَيُحَلَّفُ عَلَى الْعِلْمِ نو ځكه صرف پر علم به قسم ځني اخيستل كيږي [چي په الله قسم! ما ته معلومه نه ده...].

**اللغات**: ﴿استحلف﴾ د استفعال د باب ماضي ده: د قسم طلب ځني كول، له يو چا څخه قسم اخيستل، ﴿يُحلّف﴾ د تفعيل د باب مضارع مجهوله ده: حَلَّفَ يُحَلِّفُ تَحْلِيْفًا: بل څوک په قسم سره مكلف كول، قسم وركول، قسم په اخيستل.

**تشريح**: **صورت د مسئلې**: دا دی چي كه مشتري انكار وكړي (چي شفيع د هغه كور مالک نه دی چي د هغه پر بناء د شفعي دعوىٰ كوي)، نو په دې صورت كي خو پر شفيع بيّنه پېشول واجب او ضروري دي چي خپل ملكيت ثابت كړي، لېكن كه شفيع بيّنه پېش نه كړی سي، نو قاضي به له مشتري څخه قسم اخلي او څرنګه چي دا د بل چا پر ملكيت قسم اخيستل دي نو ځكه داسي قسم به ور څخه اخلي "په الله قسم! د كوم كور په وجه چي شفيع د شفعي طلب او دعوىٰ كوي، ما ته معلومه نه ده چي دا كور د هغه ملكيت دی (يا په بله وينا دا چي: په خداى قسم! ما ته معلومه نه ده چي دا كو د شفيع دی او كه نه دی) يعني هغه به د شفيع د ملكيت په هكله د خپل لا علمی اظهار كوي. لېكن ښكاره دي وي چي قاضي به هغه وخت له مشتري څخه قسم اخلي كله چي شفيع د دې مطالبه وكړي (چي ما خو بيّنه پېش نه كړی سوه لهذا له مشتري څخه قسم واخله!). او د مشتري د قسم اخيستلو وجه دا ده چي شفيع پر هغه د يو شي (يعني د حقِ شفعه د ثبوت) دعوىٰ كړې ده او د دغه دعوې د پوره كېدلو يا نه پوره كېدلو همدا دوه صورتونه دي: يا دا چي مشتري د هغه د دعوې تصديق وكړي او هغه ته خپل حق حواله كړي، يا بيا د انكار په صورت كي د خپل لاعلمی قسم واخلي. او پر مشتري د خپل علم ښكاره كولو قسم ځكه لازم دی چي دلته هغه د بل چا پر ملكيت قسم اخلي او قاعده دا ده چي د بل چا پر فعل، ملكيت او داسي نورو به قسم على العلم اخيستل كيږي، نو ځكه دلته به هم مشتري قسم على العلم اخلي. د

دې په خلاف پر خپل فعل او ملکيت به قسم على البتات اخيستل کيږي (على البتات مطلب دا چې په قطعي او يقيني توګه به قسم اخلي).

## د پورتنۍ مسئلې نور وضاحت

فَإِنْ نَكَلَ أَوْ قَامَتْ لِلشَّفِيعِ بَيِّنَةٌ او که مشتري له قسم اخيستلو [حلف على العلم] څخه انکار وکړي يا د شفيع په حق کې بيّنه پېش سي [يعني يا شفيع پر خپل ملکيت ګواهان پېش کړي (چې دا کور زما ملکيت دی چې د هغه په وجه زه شفيع يم)] ثَبَتَ مِلْكُهُ فِي الدَّارِ الَّتِي يَشْفَعُ بِهَا وَثَبَتَ الْجِوَارُ نو د ده ملکيت په هغه کور کې ثابتيږي چې د هغه په وجه دئ شفيع جوړيږي او جوار [همسايه کېدل] هم ثابتيږي [چې دئ د مشتري همسايه دی او کور يې د مشتري د کور تر څنګ دی] فَبَعْدَ ذَلِكَ سَأَلَهُ الْقَاضِيْ يَعْنِي الْمُدَّعَى عَلَيْهِ هَلِ ابْتَاعَ أَمْ لَا بيا تر دې وروسته به قاضي له مدعىٰ عليه [مشتري] څخه دا پوښتنه کوي چې تا دا کور رانيولی دی که نه؟ فَإِنْ أَنْكَرَ الِابْتِيَاعَ که چيري هغه د رانيولو انکار وکړي قِيْلَ لِلشَّفِيْعِ: أَقِمِ الْبَيِّنَةَ نو شفيع ته به ويل کيږي: چې [پر رانيولو] بيّنه پېش کړه لِأَنَّ الشُّفْعَةَ لَا تَجِبُ إِلَّا بَعْدَ ثُبُوتِ الْبَيْعِ ځکه چې شفعه صرف د بيع تر ثابتېدلو وروسته ثابتيږي وَثُبُوتُهُ بِالْحُجَّةِ او د بيع ثبوت په دليل سره کيږي. [يعني په بيع په حجّت او بيّنه سره ثابتيږي]

**اللغات**: ﴿نکل﴾ د نصر او ضرب د باب ماضي ده: له قسم څخه انکار کول، ﴿جوار﴾ همسايه توب، همسايه والی (همسايه کېدل)، ﴿يشفع﴾ د فتح د باب مضارع ده: شفيع کېدل، شفيع جوړېدل، صاحب د احسن الهدايې معنیٰ کړې ده: د شفعې طلب او دعویٰ کول، ﴿ابتاع﴾ د افتعال د باب ماضي ده، اِبْتَاعَ يَبْتَاعُ اِبْتِيَاعًا: رانيول، ﴿أَقِم﴾ د افعال له بابه د واحد مذکر امرِ حاضر صيغه ده: قائمول، درول (مراد: پېشول)، ﴿حجة﴾ د قضاء په محاوره کې د حجة معنیٰ ده: دليل،

**تشريح**: فرمايي که مشتري له حلف على العلم څخه انکار وکړي، يا په دې دوران کې شفيع بيّنه پېش کړي، نو په دواړو صورتونو کې د مشفوعه کور په څنګ والا کور کې د شفيع ملکيت ثابتيږي، او کله چې د شفيع ملکيت ثابتيږي نو جوار يعني همسايه والی يې هم ثابتيږي، لهذا اوس به قاضي له شفيع څخه مخ اړوي او له مشتري څخه به دا پوښتنه کوي چې تا دا مشفوعه کور رانيولی دی، که نه؟، که هغه ووايي چې هو!، نو صحيح ده، او که انکار وکړي چې ما نه دی رانيولی، نو په دې صورت کې به شفيع د رانيولو (شراء) د ثبوت لپاره بيّنه پېشوي، ځکه چې شفعه خو همغه وخت

ثابتيږي، کله چي دا معلومه سي چي کور خرڅ سوی دی، او د خرڅېدلو او رانيول کېدلو (بيع و شراء) علم په دلائلو سره کيږي، لهذا د شراء او بيع د ثابتولو لپاره به شفيع يو وار بيا کوښښ کوي.

**که شفيع د کور پر شراء بيّنه پېش نه کړی سي نو قاضي به له مشتري څخه قسم اخلي؟**

قَالَ: فَإِنْ عَجَزَعَنْهَا فرمايي: او که شفيع له بيّنه پېشولو څخه عاجزه سي اِسْتَحْلَفَ الْمُشْتَرِيَ بِاللهِ مَا ابْتَاعَ نو قاضي به له مشتري څخه داسي قسم اخلي چي "په الله قسم! ده نه دی رانيولی" [يعني مشتري به وايي چي په الله قسم! ما دا کور نه دی رانيولی] أَوْ بِاللهِ مَا اسْتَحَقَّ عَلَيْهِ فِي هٰذِهِ الدَّارِ شُفْعَةً مِنَ الْوَجْهِ الَّذِي ذَكَرَهُ يا "په الله قسم! په دې کور کي شفيع پر ده [پر ما] په هغه توګه د شفعي مستحق نه دی کوم چي شفيع ذکر کړې ده" فَهٰذَا عَلَى الْحَاصِلِ نو دا پر حاصل قسم دی وَالْأَوَّلُ عَلَى السَّبَبِ او اول قسم پر سبب دی وَقَدِ اسْتَوْفَيْنَا الْكَلَامَ فِيهِ فِي الدَّعْوٰى وَذَكَرْنَا الِاخْتِلَافَ بِتَوْفِيقِ اللهِ او په دې باره کي موږ په کتابُ الدعویٰ کي کلام په تفصيل سره بيان کړی دی او د الله جَلَّ جَلَالُهُ په توفيق سره مو اختلاف [هم] بيان کړی دی وَإِنَّمَا يُحَلِّفُهُ عَلَى الْبَتَاتِ لِأَنَّهُ اِسْتِحْلَافٌ عَلٰى فِعْلِ نَفْسِهِ وَعَلٰى مَا فِي يَدِهِ أَصَالَةً او قاضي به له مشتري څخه قطعي [حتمي] قسم په دې وجه اخلي ځکه چي دا د مشتري پر خپل فعل قسم اخيستل دي او پر هغه شي [قسم اخيستل دي] کوم چي د ده په قبضه کي دی [يعني کور] وَفِي مِثْلِهِ يُحَلَّفُ عَلَى الْبَتَاتِ او په داسي صورت کي قطعي قسم اخيستل کيږي.

**اللغات:** ﴿علی البتات﴾ په قطعي او حتمي توګه (په يقيني توګه).

**تشريح:** د عبارت حاصل دا دی چي که مشتري د رانيولو انکار وکړي (چي ما کور نه دی رانيولی) نو په دې صورت کي پر شفيع دا ضروري ده چي د هغه پر رانيولو بيّنه پېش کړي، لېکن که شفيع بيّنه پېش نه کړی سي، نو بيا به قاضي له مشتري څخه قسم اخلي، او دا قسم به دوه ډوله وي، يا خو به مشتري د خپل نه رانيولو قسم اخلي (چي ما دا کور نه دی رانيولی)، يا به د شفيع د نه مستحق کېدلو قسم اخلي (چي شفيع د شفعي مستحق نه دی [حقِ شفعه نه لري]). که هغه د نه رانيولو قسم اخلي، نو دا حلف علی السبب دی، يعني ګواکي مشتري په دې قسم سره د شفعي (د حقِ شفعه) سبب ختم کوي. او که مشتري د شفيع د نه استحقاق قسم اخلي، نو دا حلف علی الحاصل دی، چي د هغه مطلب دا دی چي کور خو ما رانيولی دی لېکن د شفيع حقِ شفعه په هغه کي ثابت نه دی (په هغه کي د شفعي مستحق نه

دی)، دا حلف على الحاصل دی (ځکه د شفعي د طلب او دعوې کولو چي کوم حاصل دی پر هغه قسم اخيستل سوی دی).

صاحب د هدايې رَحِمَهُ الله فرمايي چي د حلف على السبب او حلف على الحاصل په هکله په كتابُ الدعوىٰ كي موږ تفصيلي بحث کړی دی، او هلته دا ذکر سوي دي چي د حلف على السبب او حلف على الحاصل فرق د طرفينو رَحِمَهُمَا الله په نيز دی، کنې امام ابو يوسف رَحِمَهُ الله په دواړو صور تونو کي د حلف على السبب قائل دی:

وإنما يحلفه إلخ: مخکي ذکر سوه چي پر خپل ملکيت، خپل فعل او داسي نورو به على البتات (په قطعي توګه) قسم اخيستل کيږي چي دې ته حلف على البتات وايي، وي او د بل چا پر ملکيت او فعل به حلف على العلم اخيستل کيږي، او څرنګه چي دلته مشتري پر خپل فعل او خپل د قبضې پر شي قسم اخلي (چي دا زما په قبضه كي كور ما نه دی رانيولی)، نو ځکه دا قسم به حلف على البتات يعني حتمي او قطعي وي، حلف العلم به نه وي (چي په خدای قسم ما ته معلومه نه ده او داسي نور...).

## پر شفيع د قاضي په مجلس کي ثمن حاضرول ضروري دي، که نه (د فقهاؤ قولونه)

قَالَ: وَتَجُوزُ الْمُنَازَعَةُ فِي الشُّفْعَةِ وَإِنْ لَمْ يُحْضِرِ الشَّفِيعُ الثَّمَنَ إِلَى مَجْلِسِ الْقَاضِيْ فرمايي: او د شفعي په باره کي منازعه [او دعوىٰ] جائز ده كه څه هم شفيع د قاضي مجلس ته ثمن [د مشفوعه كور قيمت] حاضر کړی نه وي فَإِذَا قَضَى الْقَاضِيْ بِالشُّفْعَةِ [لېکن] کله چي قاضي د شفعي فيصله وکړي لَزِمَهُ إِحْضَارُ الثَّمَنِ نو بيا پر شفيع د ثمن حاضرول لازم دي وَهٰذَا ظَاهِرُ رِوَايَةِ الْأَصْلِ او دا د مبسوط ظاهر روايت دی وَعَنْ مُحَمَّدٍ أَنَّهُ لَا يَقْضِي حَتّٰى يُحْضِرَ الشَّفِيعُ الثَّمَنَ او له امام محمد رَحِمَهُ الله څخه نقل سوي دي چي قاضي به فيصله نه کوي تر څو چي شفيع ثمن حاضر نه کړي وَهُوَ رِوَايَةُ الْحَسَنِ عَنْ أَبِيْ حَنِيْفَةَ او همدا له امام صاحب رَحِمَهُ الله څخه د حضرت حسن رَحِمَهُ الله روايت دی لِأَنَّ الشَّفِيعَ عَسَاهُ يَكُونُ مُفْلِسًا ځکه کېدای سي چي شفيع مفلسه وي فَيَتَوَقَّفُ الْقَضَاءُ عَلٰى إِحْضَارِهِ حَتّٰى لَا يَتْوَى مَالُ الْمُشْتَرِيْ نو ځکه د ثمن پر حاضرولو به [د قاضي] فيصله موقوفه [او منحصره] وي، تر څو د مشتري مال ضايع نه سي وَجْهُ الظَّاهِرِ أَنَّهُ لَا ثَمَنَ لَهُ عَلَيْهِ قَبْلَ الْقَضَاءِ د ظاهر روايت وجه دا ده چي [د قاضي] تر فيصلې مخکي د مشتري لپاره پر شفيع هيڅ ثمن نسته وَلِهٰذَا لَا يُشْتَرَطُ تَسْلِيمُهُ همدا

وجه ده چي [د قاضي تر فيصلې مخکي] دَ ثمن ورسپارل شرط نه دي فَكَذَا لَا يُشْتَرَطُ إِحْضَارُهُ نو همداسي به د هغه حاضرول هم شرط نه وي.

**اللغات**: ﴿إحضار﴾ د افعال د باب مصدر دی: حاضرول، پېشول. ﴿لا يتوي﴾ د سمع له بابه د نفي صيغه ده: هلاکېدل، ضايع کېدل (بربادېدل).

**تشريح**: **صورت د مسئلې**: دا دی چي کله شفيع د قاضي مجلس ته د خپل حقِ شفعه په باره کي د منازعه او دعوىٰ کولو لپاره ولاړ سي، نو پر هغه د ثمن وړل ضروري دي، که نه (چي د ځان سره د مشفوعه کور ثمن او قيمت هم يووسي او د قاضي په مجلس کي د ثمن سره حاضر سي)، په دې باره کي دوه مذهبه دي:
اول مذهب دا دی چي د شفعي تر فيصله کېدلو مخکي پر شفيع د ثمن وړل ضروري نه دي (يعني تر څو چي قاضي د شفيع لپاره د حقِ شفعي فيصله کړې نه وي، تر هغه وخته پر شفيع د ثمن حاضرول لازم نه دي)، خو تر فيصله کېدلو وروسته ثمن حاضرول ضروري دي، همدا د ظاهر روايت حکم دی.
دويم مذهب دا دی چي تر څو شفيع ثمن نه راوړي، تر هغه وخته به قاضي د شفعي فيصله نه کوي، دا له امام محمد رَحِمَهُ الله څخه منقول دي او همدا د امام صاحب رَحِمَهُ الله يو روايت هم دی.
د دې حضراتو دليل دا دی چي کېدای سي شفيع مفلسه وي او محض مشتري ته د تکليف ورکولو لپاره يې له ثمن حاضرولو څخه بغير منازعه او دعوىٰ کړې وي، نو ځکه فقط د ثمن تر حاضرولو وروسته به د شفعي فيصله کيږي چي مشتري له ضرر او نقصان څخه خوندي سي؛ ځکه ښکاره خبره ده چي که د شفيع د مفلسي خبر د شفعي تر فيصله کېدلو وروسته حاصل سي، نو په دې صورت کي خو مشتري ته ضرر رسيږي چي د هغه د رانيول سوي کور فيصله به د شفيع لپاره وسي حال دا چي شفيع اوس ثمن نه اداء کوي نو د مشتري مصرف سوی مال به ضايع سي او هسي په انتظار کي به ناست وي.
د ظاهر روايت دليل دا دی چي د شفعي تر فيصلې مخکي مشتري ته بالکل دا حق نسته چي له شفيع څخه د ثمن مطالبه وکړي، ځکه تر اوسه پر شفيع ثمن لازم سوی نه دی، ثمن خو د شفعي تر فيصلې وروسته لازميږي (چي کله قاضي د شفيع لپاره د شفعي [مشفوعه کور] فيصله وکړي)، همدا وجه ده چي د قاضي تر قضاء (فيصلې) مخکي پر شفيع دا لازم نه دي چي مشتري ته (د مشفوعه کور) ثمن وسپاري، نو کله چي تر قضاء مخکي د ثمن اداء کول او ورسپارل ضروري نه دي، نو قبل القضاء د ثمن راوړلو او حاضرولو ته څه ضرورت دی.

**مشتري ته تر کومه وخته د مبيع راګرځولو (شفيع ته د نه ورسپارلو) اختيار سته**

وَإِذَا قُضِيَ لَهُ بِالدَّارِ فَلِلْمُشْتَرِيْ أَنْ يَحْبِسَهُ حَتّٰى يَسْتَوْفِيَ الثَّمَنَ او کله چې د شفيع لپاره د کور فيصله وسي نو مشتري ته دا اختيار سته چې د ثمن ترلاسه کولو [اخيستلو] پورې کور راوګرځوي وَيَنْفُذُ الْقَضَاءُ عِنْدَ مُحَمَّدٍ أَيْضًا او د امام محمد رَحِمَهُ الله په نيز فيصله هم نافذيږي لِأَنَّهُ فَصْلٌ مُجْتَهَدٌ فِيْهِ ځکه چې دا مجتهد فيه [مختلف فيه] مسئله ده وَوَجَبَ عَلَيْهِ الثَّمَنُ او پر شفيع قيمت واجب سو فَيُحْبَسُ فِيْهِ نو ځکه د دې ثمن په وجه به کور راګرځول کيږي فَلَوْ أَخَّرَ أَدَاءَ الثَّمَنِ بَعْدَ مَا قَالَ لَهُ: اِدْفَعِ الثَّمَنَ إِلَيْهِ او که شفيع د ثمن اداء کول وځنډوي وروسته تر دې چې قاضي هغه ته ويلي وي: چې مشتري ته ثمن ورکړه [يعني قاضي تر فيصلې وروسته شفيع ته حکم وکړي چې د مشتري د کور قيمت اداء کړه، خو بيا هم شفيع تأخير وکړي] لَا تَبْطُلُ الشُّفْعَةُ نو [د شفيع] شفعه نه باطليږي لِأَنَّهَا تَأَكَّدَتْ بِالْخُصُوْمَةِ عِنْدَ الْقَاضِيْ ځکه چې د قاضي مخته په خصومت [او دعوىٰ] کولو سره شفعه مضبوطه سوې ده. [په بله وينا دا چې د قاضي په فيصله سره شفعه مضبوطه سوې ده].

**اللغات:** ﴿يحبس﴾ د ضرب د باب مضارع ده: د دغه باب اصل معنىٰ ده: منع کول، راګرځول (په خپل تبضه کې يو شی راګرځول). ﴿يستوفي﴾ د استفعال د باب مضارع ده: پوره اخيستل، ترلاسه کول. ﴿القضاء﴾ د قاضي فيصله. ﴿مجتهد فيه﴾ په کومه مسئله کې چې د فقهاؤ اختلاف وي او د دواړو طرفونو سره شرعي دلائل موجود وي او دا مسئله د قرآن، حديث او اجماع خلاف نه وي، نو دې ته مجتهد فيه مسئله وايي. ﴿تأكدت﴾ د تفعّل له بابه د واحد مؤنث غائب ماضي معلوم صيغه ده: مضبوطېدل، ټينګېدل.

**تشريح: صورت د مسئلې:** دا دی چې کله شفيع د قاضي په مجلس کې له ثمن حاضرولو څخه بغير منازعه وکړي او قاضي (د شفيع لپاره) د شفعې فيصله هم وکړي، نو اوس مشتري ته دا اختيار سته چې تر څو ټوله ثمن (له شفيع څخه) ترلاسه نه کړي، تر هغه وخته کور راوګرځوي او شفيع ته يې نه سپاري: ځکه کله چې هغه د ثمن په عوض کې کور رانيولی دی، نو له ثمن اخيستلو څخه بغير به يې هغه څنګه ورسپاري!.

وينفذ القضاء إلخ: دا د يو اشکال جواب دی. اشکال دا دی چې کله د امام محمد رَحِمَهُ الله په نيز د ثمن تر حاضرولو مخکې ګرسره د شفعې قضاء (فيصله) صحيح نه ده. نو بيا مشتري ته د کور راګرځولو د

اختيار ور کولو څه مطلب دی؟، د دې په جواب کي فرمايي چي که څه هم امام محمد رَحِمَهُ الله د ثمن تر حاضرولو مخکي د عدمِ قضاء قائل دی، خو څرنګه چي دا مجتهد فيه (مختلف فيه) مسئله ده، نو ځکه که له ثمن حاضرولو څخه مخکي هم قاضي فيصله وکړي، نو د هغه فيصله به نافذيږي. او بيا تر فيصلې وروسته ثمن د شفيع پر ذمه واجبيږي (چي هغه به مشتري ته د مشفوعه کور ثمن ورکوي)، نو ځکه د ثمن تر لاسه کولو لپاره به مشتري د کور د راګرځولو اختيار (اختيارِ حبس) وي.

فلو أخر إلخ: يعني کله چي قاضي د شفعي تر فيصلې وروسته شفيع د ثمن په اداء کولو مکلف کړه (چي د مشتري ثمن ژر اداء کړه!)، خو بيا هم شفيع د ثمن په اداء کولو کي ځنډ او تأخير کوي، نو د دغه تأخير په وجه د هغه شفعه (حقِ شفعه) نه باطليږي، ځکه چي شفيع مخکي د قاضي په مجلس کي د مخاصمه او دعویٰ کولو په وجه خپل شفعه مضبوطه او ټينګه کړې ده، لهذا اوس د ثمن په ځنډولو سره د هغه پر دې مؤکده او مضبوطه شفعه (حقِ شفعه) هيڅ اثر نه پرېوځي.

## شفيع د بائع سره کله مخاصمت او دعویٰ کولای سي

قَالَ: وَإِنْ أَحْضَرَ الشَّفِيعُ الْبَائِعَ وَالْمَبِيعُ فِي يَدِهِ فرمايي: او که شفيع بائع [د قاضي مخته] حاضر کړي او مبيع [کور] تر اوسه د بائع په قبضه کي وي فَلَهُ أَنْ يُخَاصِمَهُ فِي الشُّفْعَةِ نو شفيع ته دا اختيار سته چي د شفعي په هکله د بائع سره مخاصمه [او دعویٰ] وکړي لِأَنَّ الْيَدَ لَهُ ځکه چي قبضه د بائع ده [يعني مبيع کور د هغه په قبضه کي دی] وَهِيَ يَدٌ مُسْتَحَقَّةٌ او دا معتبره قبضه ده وَلَا يَسْمَعُ الْقَاضِي الْبَيِّنَةَ حَتَّى يَحْضُرَ الْمُشْتَرِي او قاضي به بيّنه نه اوري تر دې چي مشتري حاضر سي فَيَفْسَخُ الْبَيْعَ بِمَشْهَدٍ مِنْهُ نو [د مشتري تر حاضريدلو وروسته] به قاضي د هغه په موجوديت کي بيع فسخ کوي وَيَقْضِي بِالشُّفْعَةِ عَلَى الْبَائِعِ وَيَجْعَلُ الْعُهْدَةَ عَلَيْهِ او پر بائع به د شفعي فيصله کوي او ذمه واري به هغه ته سپاري لِأَنَّ الْمِلْكَ لِلْمُشْتَرِي وَالْيَدَ لِلْبَائِعِ ځکه چي ملکيت د مشتري دی او قبضه د بائع ده وَالْقَاضِي يَقْضِي بِهِمَا لِلشَّفِيعِ او قاضي د شفيع لپاره د دې دواړو شيانو فيصله کوي فَلَا بُدَّ مِنْ حُضُورِهِمَا نو ځکه د بائع او مشتري دواړو حاضري ضروري ده.

**اللغات**: ﴿اليد﴾ لاس، مراد: قبضه. ﴿مشهد﴾ د سمع له بابه مصدرِ ميمي دی: موجوديت (موجودګي)، حاضري. ﴿العهدة﴾ ذمه واري.

**تشريح**: مخکي د شفيع او مشتري ترمينځ د مخاصمه او دعوې بيان وو. اوس له دې ځايه دا رابنيي چي که شفيع تر بيع (يعني د کور تر خرڅولو) وروسته بائع (خرڅونکی) د قاضي مخته پيش کړي او مبيع (کور) تر اوسه د بائع په قبضه کي وي، مشتري ته يې نه وي سپارلی، نو په دې صورت کي شفيع ته دا حق سته چي د خپل شفعي (حقِ شفعه) په هکله د بائع سره مخاصمه او منازعه وکړي؛ ځکه چي شفعه په مبيع (کور) کي ثابتيږي او اوس پر مبيع د بائع قبضه ده، او قبضه چي د چا وي، هغه مدعیٰ عليه او مخاصم وي، نو ځکه په دې پورتني صورت کي به هم شفيع د بائع سره مخاصمه کوي.

**ولايسمع إلخ**: حاصل يې دا دی چي په دې مسئله کي که څه هم شفيع به د بائع سره مخاصمه کوي، لېکن څرنګه چي د رانيولو په وجه د مبيع (کور) سره د مشتري حق متعلق سوی دی، نو ځکه د مشتري له حاضروالي او موجوديت څخه مخکي به قاضي بيّنه (ګواهي) او داسي نور نه اوري او نه قبلوي (ځکه د مشتري او بائع دواړو حاضري ضروري ده)، او کله چي مشتري حاضر سي، نو بيا به قاضي د هغه په مخ کي بيع فسخ کوي او پر هغه به د شفعي فيصله کوي، او د شفعي سره اړوند ذمه واري به هم د بائع په غاړه ورکوي مثلاً که تر فيصلې وروسته په مبيع کي د چا استحقاق ثابت سي (يعني بل څوک دعویٰ وکړي چي دا کور يا په دې کور کي څه حصه زما ده او خپل استحقاق ثابت کړي)، نو د هغه ضمان او تاوان به بائع ورکوي.

**لأن الملك إلخ**: په دې سره صاحب د هدايې رَحِمَهُ الله د دې خبري علت او دليل بيانوي چي د مشتري سره د بائع موجوديت هم ضروري دی (چي دواړه به موجود او حاضر وي)، علت يې دا دی چي کله مشتري له بائع څخه کور رانيوی، نو په هغه کي د مشتري ملکيت ثابت سو، او څرنګه چي تر اوسه مبيع (کور) د بائع په قبضه کي دی، نو پر هغه د بائع قبضه هم ثابته ده، نو د يوه لپاره ملکيت ثابت دی او د بل لپاره قبضه (په بله وينا دا چي مشتري د کور مالک دی او بائع د قبضي مالک دی)، او قاضي دا دواړه شيان شفيع ته سپاري، نو ځکه د دې دواړو شيانو د مالکانو (بائع او مشتري) موجوديت او حاضري هم ضروري ده، کنې که د يوه په ناموجوديت کي فيصله وسي، نو قضاء على الغائب به لازم سي، او قضاء على الغائب صحيح نه ده، نو ځکه په پورتنی مسئله کي د بائع او مشتري دواړو حاضري او موجودګي ضروري ده.

## د پورتنۍ مسئلې نور وضاحت

بِخِلَافِ مَا إِذَا كَانَتِ الدَّارُ قَدْ قُبِضَتْ په خلاف د هغه صورت كله چې پر كور [د مشتري] قبضه سوې وي حَيْثُ لَا يُعْتَبَرُ حُضُورُ الْبَائِعِ نو په دې صورت كې د بائع حاضرېدلو لره اعتبار [او ضرورت] نسته لِأَنَّهُ صَارَ أَجْنَبِيًّا ځكه چې [اوس] هغه اجنبي وګرځېدی إِذْ لَا يَبْقَى لَهُ يَدٌ وَلَا مِلْكٌ ځكه نه د هغه قبضه باقي پاته سوه او نه د هغه د ملكيت باقي پاته سو وَقَوْلُهُ "فَيَفْسَخُ الْبَيْعَ بِمَشْهَدٍ مِنْهُ" إِشَارَةٌ إِلَى عِلَّةٍ أُخْرَى او د ماتن [امام قدوري رَحِمَهُ الله] دا قول "چې قاضي به د مشتري په موجوديت كې بيع فسخ كوي" د يو بل علت وطرف ته اشاره ده وَهِيَ أَنَّ الْبَيْعَ فِي حَقِّ الْمُشْتَرِي إِذَا كَانَ يَنْفَسِخُ لَا بُدَّ مِنْ حُضُورِهِ لِيَقْضِيَ بِالْفَسْخِ عَلَيْهِ او هغه دا چې كله [دلته] بيع د مشتري په حق كې فسخ كېږي نو په دې وجه [هم] د هغه حاضري [او موجوديت] ضروري دی چې قاضي پر هغه د فسخ فيصله وكړي.

**اللغات:** ﴿أجنبي﴾ پردی، كوم چې د عقد (شفعي) سره هيڅ علاقه نه لري. ﴿فيفسخ﴾ د فتح له بابه مضارع ده: فسخ كول، ماتول (ختمول). ﴿ينفسخ﴾ د انفعال د باب مضارع ده: فسخ كېدل، ماتېدل.

**تشريح:** په مخكنۍ مسئله كې د مشتري سره د بائع (يعني د دواړو) موجوديت او حاضري ځكه ضروري وه چې د بائع قبضه باقي پاته وه، لېكن كله چې بائع مشتري ته كور وسپاری او قبضه يې ختمه سوه، نو اوس د بائع حاضرېدل هيڅ معنیٰ نه لري؛ ځكه چې د هغه ملكيت خو مخكې لا ختم سوی دی، او د قبضې په ختمېدلو سره هغه د اجنبي په څېر وګرځېدی او د اجنبي موجوديت لره هيڅ اعتبار نه وي (... برابره ده اجنبي كس موجود وي او كه نه وي. قاضي خپله فيصله كوي)، نو ځكه د قبضې تر ختمېدلو وروسته به د بائع موجوديت او حاضري لره هم هيڅ حيثيت او اعتبار نه وي.

**وقوله فيفسخ إلخ:** په دې سره دا رابنيي چې په مخكنۍ مسئله كې د مشتري د موجوديت او حاضرېدلو (چې مشتري به هم حاضر وي) دوه علته دي. اول خو همغه علت دی چې په دې كور كې د هغه ملكيت ثابت دی، او بل دويم علت دا چې د مشتري په حق كې بيع ثابته سوې ده او د شفعي د فيصلې پر مهال قاضي د مشتري په حق كې بيع فسخ كوي او شفعه پكښې لازموي. ګواكې قاضي د هغه ثابت شُده حق ختموي، نو ځكه په دې وجه هم د هغه موجوديت ضروري دی. د دې لپاره چې قضاء على الغائب لازم نه سي.

## د مشتري په حق کي د بيع فسخ کېدلو مطلب

ثُمَّ وَجْهُ هٰذَا الْفَسْخِ الْمَذْكُورِ أَنْ يَنْفَسِخَ فِي حَقِّ الْإِضَافَةِ بيا د دغه ذکر سوي فسخ وجه دا ده چي بيع [د مشتري وطرف ته] د اضافت په حق کي فسخ سي لِامْتِنَاعِ قَبْضِ الْمُشْتَرِي بِالْأَخْذِ بِالشُّفْعَةِ په شفعه سره د اخيستلو پر بنياد د مشتري د قبضي د منع کېدلو په وجه [يعني ځکه چي د شفعي په ذريعه د اخيستلو په وجه د مشتري قبضه باقي پاتېدل ممتنع دي] وَهُوَ يُوجِبُ الْفَسْخَ او دا [د مشتري د قبضې ممتنع کېدل] فسخ واجبوي إِلَّا أَنَّهُ يَبْقَى أَصْلُ الْبَيْعِ خو اصل بيع باقي پاتيږي لِتَعَذُّرِ انْفِسَاخِهِ ځکه د هغه فسخ کېدل نا ممکن دي لِأَنَّ الشُّفْعَةَ بِنَاءٌ عَلَيْهِ ځکه چي شفع پر هغه [بيع] مبني ده [يعني د همدې بيع پر بنياد شفعه حاصليږي] وَلٰكِنَّهُ تَتَحَوَّلُ الصَّفْقَةُ إِلَيْهِ لېکن د بيع معامه د شفيع وطرف ته منتقل کيږي وَيَصِيرُ كَأَنَّهُ هُوَ الْمُشْتَرِي مِنْهُ او شفيع په خپله داسي ګرځي لکه مشتري له بائع څخه [يعني لکه شفيع چي په خپله دا کور له مشتري څخه رانيولی وي] فَلِهٰذَا يَرْجِعُ بِالْعُهْدَةِ عَلَى الْبَائِعِ په همدې وجه ذمه واري بائع ته راجع کيږي بِخِلَافِ مَا إِذَا قَبَضَهُ الْمُشْتَرِي په خلاف د هغه صورت کله چي مشتري پر مبيع قبضه کړې وي فَأَخَذَهُ مِنْ يَدِهِ نو [په دې صورت کي] به شفيع مبيع د مشتري له قبضې څخه اخلي حَيْثُ تَكُونُ الْعُهْدَةُ عَلَيْهِ په دې حيثيت سره چي [د شفعي] ذمه واري پر مشتري ده لِأَنَّهُ تَمَّ مِلْكُهُ بِالْقَبْضِ ځکه چي د قبضه کولو په وجه د مشتري ملکيت پوره سو وَفِي الْوَجْهِ الْأَوَّلِ امْتَنَعَ قَبْضُ الْمُشْتَرِي او په اول صورت کي د مشتري قبضه ممتنع [او ناممکنه] وه وَأَنَّهُ يُوجِبُ الْفَسْخَ او همدا شی فسخ ثابتوي وَقَدْ طَوَّلْنَا الْكَلَامَ فِيهِ فِي كِفَايَةِ الْمُنْتَهِي بِتَوْفِيقِ اللهِ تَعَالَى او موږ په توفيق الهي سره په دې هکله په کفاية المنتهي کي تفصيلي خبره کړې ده.

**اللغات**: ﴿امتناع﴾ د افتعال د باب مصدر دی: منع کېدل، نا ممکن کېدل (منعذر کېدل). ﴿تعذّر﴾ د تفعّل د باب مصدر دی: مشکل کېدل، نا ممکن کېدل. ﴿تتحول﴾ د تفعّل د باب مضارع ده: بدلېدل (اوښتل)، منتقل کېدل (نقلېدل). ﴿صفقه﴾ معامله، عقد. ﴿ينفسخ في حق الاضافة﴾ د اضافت (نسبت) په حق کي بيع ماتيږي، يعني د مشتري وطرف ته چي کوم د بيع نسبت وو، هغه ماتيږي او د

شفيع وطرف ته کيږي يعني شفيع مشتري ګرځي. لكنه تتحول الصفقة إليه: صفقه يعني د بيع معامله د مشتري له طرفه د شفيع وطرف ته منتقل کيږي.

**تشريح**: له دې ځايه صاحب د هدايې رَحِمَهُ الله د بيع د فسخ کېدلو علت او د هغه صورت بيانوي، چې په مبيع (کور) کې د شفيع د حق ثابتېدلو او د مشتري په حق کې د بيع د فسخ کېدلو مطلب دا دی چې د اضافت او نسبت په حق کې بيع فسخ کيږي، اصل بيع نه فسخ کيږي، ځکه چې د شفعې د ثابتېدلو مدار پر همدې بيع دی، لنډه دا چې بيع د نسبت په حق کې فسخ کيږي يعني مخکې چې کومه بيع د مشتري وطرف ته منسوبه وه، اوس هغه د شفيع وطرف ته منسوبه کيږي، يا داسې ووايه! چې مخکې مشتري رانيونکی (خريدار) وو، او اوس شفيع رانيونکی سو؛ (او په دې ډول د بيع د فسخ کېدلو وجه دا ده چې کله شفيع دا کور په حق شفعه سره اخلي، نو بيا د مشتري قبضه ممنوع سوه او د مشتري په حق کې د بيع غرض پوره نه سو (په بله وينا دا چې د مشتري د رانيولو غرض پوره نه سوه چې هغه له کور څخه نفع واخلي)، لهذا کله چې دا غرض پوره نه سو، نو ځکه د مشتري په حق کې بيع فسخ کړی سوه).

إلا أنه يبقى إلخ: په دې سره هغه مخکنۍ خبره رانبيي (کوم چې موږ څه مخکې ذکر کړه) چې بيع صرف د مشتري په حق کې فسخ کيږي، اصل عقد او بيع نه فسخ کيږي؛ ځکه چې د شفعې د ثبوت مدار پر بيع دی، لهذا کله چې ګرسره اصل بيع ختم سي، نو شفعه به څنګه ثابته سي، نو ځکه اصل بيع ثابته او وباقي ومنل سوه او د بيع معامله (صفقه) د شفيع وطرف ته منتقل کړی سوه او په خپله شفيع مشتري وګرځول سو (لکه هغه چې دا کور له بائع څخه رانيولی دی)، او د همدې اصل بيع د پاتېدلو او انتقال صفقه په وجه د بيع ذمه واريانې اوس هم د بائع پر ذمه دي، کنې دا که چيرې نوې بيع وای او اصل بيع فسخ کېدای، نو د بيع ذمه واريانې به د مشتري وطرف ته راجع کېدای.

بخلاف ما إذا إلخ: په دې سره دا رانبيي چې مذکوره تفصيل هغه وخت دی کله چې مبيع (کور) د بائع په قبضه کې وي، خو کله چې مشتري پر مبيع (کور) قبضه وکړي، نو بيا به شفيع له مشتري څخه مبيع اخلي؛ ځکه د مشتري ملکيت خو له مخکې څخه ثابت وو، تر قبضې وروسته هغه مکمل سو. لهذا د بيع ټولې ذمه وارۍ به اوس د هغه وطرف ته راجع کيږي، نو د شفعې په هکله به هم اوس د هغه سره خبرې کيږي. او څرنګه چې په اول صورت کې مبيع (کور) د بائع په قبضه کې ده او د مشتري قبضه او تصرف په هغه کې ناممکن وو، نو ځکه هلته د هغه په حق کې بيع فسخ کړی سوې وه. صاحب د هدايې رَحِمَهُ الله فرمايي چې په دې باره کې موږ په کفاية المنتهي کې پوره تفصيل بيان کړی دی.

## د وکالت په ذريعه د خرڅېدونکي ځای د شفعي بيان

قَالَ: وَمَنِ اشْتَرٰى دَارًا لِغَيْرِهٖ فرمايي: او څوک چي د بل چا لپاره کور رانيسي فَهُوَ الْخَصْمُ لِلشَّفِيْعِ نو دا رانيونکی [مشتري] د شفيع خصم [مدعیٰ عليه] دی لِأَنَّهٗ هُوَ الْعَاقِدُ ځکه چي همدا دئ عقد کونکی دی وَالْأَخْذُ بِالشُّفْعَةِ مِنْ حُقُوْقِ الْعَقْدِ او د شفعي په ذريعه اخيستل د عقد له حقوقو څخه دي فَيَتَوَجَّهُ عَلَيْهِ نو دا حق به همدې مشتري ته متوجه کيږي قَالَ: إِلَّا أَنْ يُسَلِّمَهَا إِلَى الْمُوَكِّلِ فرمايي: مگر دا چي مشتري هغه کور مؤکل ته وسپاري لِأَنَّهٗ لَمْ يَبْقَ لَهٗ يَدٌ وَلَا مِلْكٌ ځکه چي [په دې صورت کي] نه د مشتري قبضه پاته سوه او نه د مشتري ملکيت فَيَكُوْنُ الْخَصْمُ هُوَ الْمُوَكِّلُ نو ځکه [اوس] به خصم مؤکل وي وَهٰذَا لِأَنَّ الْوَكِيْلَ كَالْبَائِعِ مِنَ الْمُوَكِّلِ او دا ځکه چي وکيل داسې دی لکه پر مؤکل خرڅونکی [يعني وکيل د مؤکل لپاره د بائع په درجه کي دی گواکي وکيل پر مؤکل دا مبيع خرڅوي] عَلٰى مَا عُرِفَ لکه څرنگه چي معلومه سوې ده فَتَسْلِيْمُهٗ إِلَيْهِ كَتَسْلِيْمِ الْبَائِعِ إِلَى الْمُشْتَرِيْ نو د وکيل [له طرفه د مبيع] سپارل و مؤکل ته داسې دي لکه سپارل د بائع و مشتري ته فَتَصِيْرُ الْخُصُوْمَةُ مَعَهٗ نو ځکه [اوس] به خصومت [او دعویٰ] د مؤکل سره وي إِلَّا أَنَّهٗ مَعَ ذٰلِكَ قَائِمٌ مَقَامَ الْمُوَكِّلِ ليکن دلته وکيل د مؤکل قائم مقام [نائب] دی فَيَكْتَفِيْ بِحُضُوْرِهٖ فِي الْخُصُوْمَةِ قَبْلَ التَّسْلِيْمِ نو ځکه [د مبيع] تر سپارلو مخکي به په خصومت کي د همدې وکيل پر موجوديت اکتفاء کيږي وَكَذَا إِذَا كَانَ الْبَائِعُ وَكِيْلَ الْغَائِبِ او همدارنگه کله چي بائع د يو غائب کس وکيل وي فَلِلشَّفِيْعِ أَنْ يَأْخُذَهَا مِنْهُ إِذَا كَانَتْ فِيْ يَدِهٖ نو شفيع لپاره دا اختيار سته چي [مشفوعه] کور له ده څخه واخلي کله چي کور د ده په قبضه کي وي لِأَنَّهٗ عَاقِدٌ ځکه چي دئ [بائع] عقد کونکی دی وَكَذَا إِذَا كَانَ الْبَائِعُ وَصِيًّا فِيْمَا يَجُوْزُ بَيْعُهٗ لِمَيِّتٍ او همدارنگه کله چي بائع د يو مړي وصي وي، په هغه شيانو کي چيري چي [د وصي] بيع صحيح وي [نو شفيع به د بائع سره خصومت او دعویٰ کوي] لِمَا ذَكَرْنَا د هغه دليل په وجه کوم چي موږ ذکر کړی.

**اللغات:** ﴿خصم﴾ د جنگ او دعوې يو فريق، يعني مدعي يا مدعیٰ عليه. ﴿عاقد﴾ د ضرب د باب اسم فاعل دی: معامله کونکی. ﴿وصي﴾ چا ته چي مړي وصيت کړی وي (هغه کس چي مړي يو کار ورته سپارلی وي).

**تشريح : صورت د مسئلې** : دا دی چې که ديو سړي له طرفه يو څوک وکيل جوړ سي او د هغه لپاره کور رانيسي، نو په دې صورت کي کوم يو د شفيع خصم کيږي يعني شفيع به د خپل حقِ شفعه لپاره د کوم يوه سره مخاصمه او دعوىٰ کوي، د دې دوه صورتونه دي: (۱) که وکيل و مؤکل سړي ته مبيع (کور) سپارلی نه وي، نو په دې صورت کي به شفيع د وکيل سره مخاصمه کوي، ځکه چې همدا وکيل عاقد دی او په عقدِ بيع کي حقوق د عاقد وطرف ته راجع کيږي، او د شفعي طلب او دعوىٰ کول دا هم يو حق دی، نو ځکه په دې صورت کي به شفيع د عاقد يعني د وکيل سره مخاصمه کوي. (۲) دويم صورت دا دی چې وکيل کور و مؤکل ته سپارلی وي، نو په دې صورت کي به شفيع د مؤکل سره مخاصمه کوي، نه د وکيل سره، ځکه چې د وکيل ملکيت خو ګرسره سته نه (ځکه د رانيول سوي کور مالک خو مؤکل دی)، د وکيل لپاره صرف قبضه ده، او د مبيع (کور) په ورسپارلو سره هغه قبضه هم ختمه سوه، نو ځکه اوس مخاصمه او دعوىٰ صرف د مؤکل سره کېداى سي، د وکيل سره به نه کيږي.

وهذا إلخ: په دې سره د پورتني خبري وجه او وضاحت بيانوي يعني دا خبره چې د مبيع تر سپارلو مخکي (قبل التسليم) به مخاصمه د وکيل سره کيږي او تر سپارلو وروسته به د مؤکل سره کيږي، د دې وجه دا ده چې وکيل او مؤکل د بائع او مشتري په څېر دي، او د بائع او مشتري په مسئله کي مخاصمه تر سپارلو مخکي د بائع سره کيږي او تر سپارلو وروسته د مشتري سره کيږي، نو د وکيل او مؤکل په مسئله کي به هم حکم د بائع او مشتري د حکم په څېر وي چې د وکيل تر ور سپارلو مخکي به مخاصمه د وکيل سره او تر سپارلو وروسته به د مؤکل سره کيږي.

إلا أنه إلخ: دا ديو مقدر اعتراض جواب دی، اعتراض دا دی چې کله وکيل او مؤکل د بائع او مشتري په درجه کي دي، نو د بائع او مشتري په مسئله کي خو د شفعي حاصلولو لپاره د مبيع (کور) تر سپارلو مخکي د خصومت لپاره د بائع او مشتري دواړو حاضرېدل ضروري وه، نو بيا د وکيل او مؤکل په مسئله کي د مبيع تر سپارلو مخکي د شفعي د حاصلولو لپاره صرف د وکيل په موجوديت کي ولي مخاصمه صحيح ده؟ دلته د وکيل او مؤکل دواړو موجوديت او حاضري ولي ضروري نه ده؟.

د جواب حاصل دا دی چې د وکالت مسئله پر بيع قياسول صحيح نه دي، بلکي په دواړو کي فرق دی، هغه دا چې په وکالت کي وکيل د مؤکل نائب وي (مؤکل يې اصل وي) او د نائب په موجوديت کي اصل لره ضرورت نه وي، نو په دې وجه د وکالت په مسئله کي صرف د وکيل په موجوديت کي هم د شفعي مخاصمه او دعوىٰ صحيح ده. پاتـه سوه د بيع مسئله، نو په هغه کي خو

بائع د مشتري له طرفه نائب نه وي، نو په همدې وجه د بائع سره سره د مشتري حاضري هم ضروري ده او تنها د بائع په موجوديت کې مخاصمه نه کيږي.

وكذا إلخ: په دې سره دا رابنيي چې څرنګه چې د وکيل د مشتري کېدلو په صورت کې تر سپارلو مخکې د وکيل سره مخاصمه کيږي، همداسې که وکيل د يو غائب کس له طرفه بائع وي، نو په دې صورت کې به هم د وکيل سره مخاصمه کيږي، يا که بائع د يو مړسوي کس له طرفه وصي وي، نو هم به د هغه سره مخاصمه کيږي، ځکه چې په هر صورت کې همدا وکيل عاقد دی او د بيع حقوق د عاقد وطرف ته راجع کيږي، نو ځکه په دې صورتونو کې به هم د همدې وکيل (عاقد) سره مخاصمه کيږي.

فيما يجوز بيعه إلخ: صاحب د هدايې رَحِمَهُ الله د مړي د وصي تصرّفات محدود او متعيّن کړي دي، فرمايي چې د مړي د وصي تصرف په همغه شيانو کې صحيح کيږي، چې هلته غبنِ فاحش نه وي، يا هغه وخت صحيح کيږي، کله چې وارثان کوچنيان او غير عاقلين وي. لېکن که دا وصي په غبنِ فاحش کې تصرّف کوي (مثلاً د لسو لکو کور په پنځه لکه خرخوي)، يا د مړي وارثان عاقلان سوي وي او په دې وخت کې هغه تصرف کوي، نو تصرّف يې نه صحيح کيږي. په اول صورت کې د نه صحيح کېدلو وجه ښکاره ده چې په غبنِ فاحش سره وارثانو ته ضرر رسيږي، او په دويم صورت کې د نه صحت وجه دا ده چې کله وارثان په خپله د عقل او پوهې حدّ ته رسېدلي دي او دوی د ښه او بد تميز کولای سي، نو په خپله همدوی د خپل منفعت او ضرر مالکان دي او اوس دوی د بل چا له تصرّف څخه بې پروا سوي دي، نو ځکه د بل چا تصرّف نه صحيح کيږي.

## په شفعه کې د خيارِ عيب او خيارِ رؤيت مسئله

قَالَ: وَإِذَا قُضِيَ لِلشَّفِيْعِ بِالدَّارِ وَلَمْ يَكُنْ رَآهَا او کله چې د شفيع لپاره د کور فيصله وسي حال دا چې ده کور ليدلی نه وي فَلَهُ خِيَارُ الرُّؤْيَةِ نو د هغه لپاره خيارِ رؤيت سته [يعني په دې صورت کې شفيع ته خيارِ رؤيت حاصليږي] وَإِنْ وَجَدَ بِهَا عَيْبًا فَلَهُ أَنْ يَرُدَّهَا [همدارنګه] که شفيع په کور کې يو عيب ومومي، نو هغه ته دا اختيار سته چې کور واپس کړي [يعني شفيع ته خيارِ عيب هم حاصليږي] وَإِنْ كَانَ الْمُشْتَرِيْ شَرَطَ الْبَرَاءَةَ مِنْهُ که څه هم مشتري له عيب څخه د بري کېدلو شرط لګولی وي لِأَنَّ الْأَخْذَ بِالشُّفْعَةِ بِمَنْزِلَةِ الشِّرَاءِ ځکه چې د شفعې په ذريعه اخيستل د رانيولو په درجه کې دي أَلَا يُرَى أَنَّهُ مُبَادَلَةُ الْمَالِ بِالْمَالِ آيا نه ګوري چې دا مبادلة المال بالمال ده فَيَثْبُتُ فِيْهِ الْخِيَارَانِ كَمَا فِيْ

الشِّرَاءِ نو ځکه په دې کې به خيار [خيارِ رؤيت او خيارِ عيب] ثابتيږي لکه څرنګه چې په رانيولو کې ثابتيږي وَلَا يَسْقُطُ بِشَرْطِ الْبَرَاءَةِ مِنَ الْمُشْتَرِي وَلَا بِرُؤْيَتِهِ لِأَنَّهُ لَيْسَ بِنَائِبٍ عَنْهُ او د مشتري له طرفه د بري کېدلو په شرط لګولو سره دا خيار نه ساقطيږي او نه د هغه په رؤيت سره [ساقطيږي. دا] ځکه چې مشتري د شفيع نائب نه دی فَلَا يَمْلِكُ إِسْقَاطَهُ نو ځکه هغه د شرط ساقطولو ملکيت نه لري.

**اللغات**: ﴿إسقاط﴾ د افعال د باب مصدر دی: ساقطول، غورځول.

**تشريح**: دلته صاحب د کتاب رَحِمَهُ الله د شفيع لپاره خيارِ عيب او خيارِ رؤيت ثابت کړی دی، حاصل د عبارت دا دی چې څرنګه مشتري (رانيونکي) ته خيارِ عيب او خيارِ رؤيت حاصليږي کله چې هغه تر رانيولو وروسته په شي کې عيب ويني يا شی د ليدلو څخه بغير رانيسي (چې تفصيل يې په کتابُ البيوع کې تېر سوی دی)، خاص همداسې که شفيع د ليدلو څخه بغير د شفعې په توګه کور رانيسي نو هغه ته خيارِ رؤيت حاصليږي، همدارنګه که په مبيع (کور) کې عيب ويني، نو هغه ته خيارِ عيب (د عيب په وجه د واپس کولو اختيار) هم حاصليږي، که څه هم مشتري له عيب څخه د بري کېدلو (برائت من العيب) شرط لګولی وي (چې که په کور کې عيب ښکاره سو، نو زه له هغه څخه خلاص او بري يم)؛ ځکه د شفعې په توګه مبيع اخيستل داسې دي لکه رانيول، او بل دا چې په دې کې د رانيولو (شراء) په څېر مبادلة المال بالمال هم سته، لهذا څرنګه چې د ليدلو څخه بغير د رانيولو (شراء) په صورت کې مشتري ته خيارِ رؤيت او خيارِ عيب حاصليږي، نو همداسې به په شفعه کې شفيع ته هم دغه دواړه خيارونه (اختيارونه) حاصليږي.

**ولا يسقط بشرط البرائة إلخ**: فرمايي چې دا وهم دې نه کيږي چې د مشتري له طرفه د برائت من العيب په شرط لګولو سره (چې زه له عيب څخه خلاص او بري يم) يا د رؤيت په اقرار کولو سره (چې ما مبيع کور ليدلی دی، په دې سره) د شفيع په حق کې خيار ساقطيږي، په دې سره بالکل خيار نه ساقطيږي، ځکه خيار خو هلته ساقطيږي، چيري چې د برائت شرط لګونکی يا د مبيع ليدونکی کس د بل چا نائب او قائم مقام وي، او په مذکوره صورت کې مشتري نه د شفيع نائب دی او نه د هغه قائم مقام دی، نو ځکه د هغه د برائت په شرط يا د هغه په رؤيت سره د شفيع پر خيارِ عيب او خيارِ رؤيت هيڅ اثر نه پرېوځي.

❁❁❁

# فَصْلٌ فِي الْاِخْتِلَافِ

## (دا) فصل (د مشتري او شفيع تر مينځ) د اختلاف په بيان كي دی

**که د شفيع او مشتري تر مينځ په ثمن کي اختلاف راسي، نو د چا قول معتبر دی؟**

قَالَ: وَإِنِ اخْتَلَفَ الشَّفِيعُ وَالْمُشْتَرِيْ فِي الثَّمَنِ فرمايي: که شفيع او مشتري د ثمن په هکله اختلاف وکړي فَالْقَوْلُ قَوْلُ الْمُشْتَرِيْ نو قول د مشتري معتبر دی لِأَنَّ الشَّفِيعَ يَدَّعِي اسْتِحْقَاقَ الدَّارِ عَلَيْهِ عِنْدَ نَقْدِ الْأَقَلِّ ځکه چي شفيع د کم ثمن اداء کولو په وخت کي پر مشتري د کور د مستحق کېدلو دعویٰ کوي وَهُوَ يُنْكِرُ او مشتري د دې انکار کوي وَالْقَوْلُ قَوْلُ الْمُنْكِرِ مَعَ يَمِينِهِ او قول د منکر معتبر وي د قسم سره [يعني خبره د منکر منل کيږي د قسم سره] وَلَا يَتَحَالَفَانِ او دواړه به قسم نه اخلي لِأَنَّ الشَّفِيعَ إِنْ كَانَ يَدَّعِي عَلَيْهِ اسْتِحْقَاقَ الدَّارِ ځکه که شفيع که څه هم پر مشتري د کور د استحقاق دعویٰ کوي فَالْمُشْتَرِيْ لَا يَدَّعِيْ عَلَيْهِ شَيْئًا لېکن مشتري خو پر شفيع د هيڅ شي دعویٰ نه کوي لِتَخَيُّرِهِ بَيْنَ التَّرْكِ وَالْأَخْذِ ځکه چي شفيع ته د پرېښودلو او اخيستلو تر مينځ اختيار دی وَلَا نَصَّ هٰهُنَا او دلته [د دواړو د قسم اخيستلو په هکله] هيڅ نصّ هم نسته فَلَا يَتَحَالَفَانِ نو ځکه دواړه به قسم نه اخلي.

**اللغات**: ﴿يدّعي﴾ د افتعال د باب مضارع ده: دعویٰ کول. ﴿تخيُّر﴾ د تفعّل د باب مصدر دی: اختيار من کېدل، اختيار لرل. ﴿نص﴾ صريحي دليل (مراد ځني قرآن او حديث وي).

**تشريح**: تر اوسه د شفعي د متفق عليها مسائلو بيان وو، اوس له دې ځايه مختلف فيها مسائل شروع کيږي (چي په هغه کي شفيع او دلسي نور سره متفق نه وي بلکي اختلاف يې وي). فرمايي چي که شفيع او مشتري د ثمن په مقدار کي اختلاف وکړي مثلاً مشتري وايي چي ما دا (مشفوعه) کور په دوه زره درهمه رانيولی دی او شفيع وايي چي نه! تا په زر درهمه رانيولی دی، او د شفيع سره گواه نه وي، نو

په دې صورت کې د مشتري قول معتبر دی خو د قسم سره؛ ځکه چې شفيع پر مشتري په کم قيمت سره د کور د استحقاق دعویٰ کوي (چې زه په زر درهمه د دې کور مستحق سوی يم [يعني ما ته دې په زر درهمه راکړی دی])، او مشتري د دې انکار کوي، او تاسو ته دا قاعده معلومه ده "البَيِّنَةُ عَلَى الْمُدَّعِيْ وَالْيَمِيْنُ عَلٰى مَنْ أَنْكَرَ" چې که مدعي بيّنه پېش نه کړی سي (د ګواه له پېشولو څخه عاجزه سي)، نو بيا د مدعیٰ عليه (منکر) قول مع اليمين معتبر دی، نو ځکه په دې مسئله کې به هم شفيع کوم چې مدعی دی که بيّنه پېش نه کړي، نو د مدعیٰ عليه يعني د مشتري قول به مع اليمين معتبر وي.

ولايتحالفان إلخ: دا ديو مقدر اعتراض جواب دی، اعتراض دا دی چې کله په شفيع او مشتري (دواړو) کې ديوه سره ګواه نسته، نو څرنګه چې د مشتري قول د قسم سره معتبر منل کيږي، همداسې دې د شفيع قول هم د قسم سره معتبر کړی سي، ځکه که پر داسې موقع د بائع او مشتري تر مينځ اختلاف وي او ديوه سره هم بيّنه نه وي، نو له دواړو څخه قسم اخيستل کيږي، او تاسو مخکې شفيع او مشتري د بائع او مشتري په څېر منلي دي (چې دوی داسې دي لکه بائع او مشتري)، نو ځکه دلته هم له دواړو څخه قسم اخيستل پکار دي.

د دې جواب يې دا ورکړی دی چې د بائع او مشتري والا په مسئله کې له دواړو څخه قسم ځکه اخيستل کيږي چې هلته د دواړو انکار وي (دواړه منکر وي)، او له دواړو څخه د قسم اخيستلو په هکله چې کوم نص (حديث) دی، هغه هم د هغه موقع په هکله دی کله چې دواړه منکر وي، په حديث شريف کې دي "إِذَا اخْتَلَفَ الْمُتَبَايِعَانِ وَالسِّلْعَةُ قَائِمَةٌ بِعَيْنِهَا تَحَالَفَا وَتَرَادَّا"، او پاته سو په پورتنۍ مسئله کې خو نه څه نص سته او نه د دواړو له طرف انکار سته؛ ځکه چې صرف مشتري منکر دی، او شفيع خو د کم (أقل) قيمت مدعي دی، لهذا دا مسئله د بائع او مشتري والا پر مسئله قياسول او دلته هم له دواړو څخه قسم اخيستل صحيح نه دي.

او بل دا چې دلته شفيع ته دا اخيستلو او نه اخيستلو اختيار سته (چې که زړه يې غواړي نو مشفوعه کور دې واخلي، کنې دا قصه دې پرېږدي)، نو کله چې هغه ته دا اختيار ورکول سوی دی، بيا د قسم اخيستلو څه مطلب دی، که يې زړه نه غواړي، نو کور او شفعه دې پرېږدي، څه زور خو نه ور سره کيږي.

## که په پورتني صورت کي د دواړو سره بيّنه وي؟

قَالَ: وَلَوْأَقَامَا الْبَيِّنَةَ فرمايي: او که چيري دوی دواړه بيّنه [گواهي] پېش کړي فَالْبَيِّنَةُ لِلشَّفِيعِ عِنْدَ أَبِي حَنِيفَةَ وَمُحَمَّدٍ نو د طرفينو رَحِمَهُمَا الله په نېز د شفيع بيّنه معتبره ده وَقَالَ أَبُويُوسُفَ ❁: الْبَيِّنَةُ بَيِّنَةُ الْمُشْتَرِي او امام ابو يوسف رَحِمَهُ الله فرمايي: چي د مشتري بيّنه معتبره ده لِأَنَّهَا أَكْثَرُ إِثْبَاتًا ځکه چي هغه زياته [او غالبه] ده د ثابتولو په اعتبار سره [يعني د مشتري بيّنه زيات ثمن ثابتوي] فَصَارَ كَبَيِّنَةِ الْبَائِعِ وَالْوَكِيلِ وَالْمُشْتَرِي مِنَ الْعَدُوِّ نو ځاى د بائع، وكيل او له دښمن [دار الحرب] څخه د رانيونكي د بيّنې په څېر سو.

**اللغات**: ﴿بيّنة﴾ گواهي، ﴿إثبات﴾ د افعال د باب مصدر دى: ثابتول، ﴿عدو﴾ دښمن.

**تشريح**: څرنګه چي په مخکني صورت کي د دواړو سره بيّنه (گواهي) نه وه، په همدې وجه هلته بالاتفاق د مشتري قول معتبر کړى سوى وو، دلته دا رانېيي چي که مشتري او شفيع دواړه پر خپله دعوىٰ گواهي پېش کړي، نو د طرفينو رَحِمَهُمَا الله په نېز د شفيع بيّنه معتبره ده او د امام ابو يوسف رَحِمَهُ الله په نېز د مشتري بيّنه معتبره ده.

د امام ابو يوسف رَحِمَهُ الله دليل دا دى چي چيري إثبات غالب وي، د هغه اعتبار كيږي، او د مشتري په بيّنه كي إثبات زيات او غالب دى، نو ځكه هغه به معتبره وي، ① د دې يو مثال داسى دى لكه بائع او مشتري چي د ثمن د مقدار په هكله اختلاف وكړي او هر يو بيّنه پېش كړي مثلاً مشتري پر دې بيّنه پېش كړي چي ما دا كور په زر درهمه رانيولى دى او بائع پر دې بيّنه پېش كړي چي په دوه زره درهمه مي پر خرڅ كړى دى، نو دلته د بائع بيّنه معتبره او مقبوله ده، ② يا مثلاً وكيل او مؤكل د ثمن په مقدار كي اختلاف وكړي، وكيل وايي چي ما دا شى په پنځه سوه درهمه رانيولى دى او مؤكل وايي چي تا په څلور سوه درهمه رانيولى دى او دواړه بيّنه پېش كړي، نو د وكيل بيّنه معتبره ده، ③ او دريېم مثال دا چي يو مسلمان كس (مثلاً خالد) يو غلام رانيولى وي بيا يو كافر هغه غلام

---

❁ القول الراجح: قول الطرفين رَحِمَهُ الله. قال العلامة الزيلعي رَحِمَهُ الله في ترجيح قولهما: ولئن سلّمنا أن بيّنة المشتري أولى كما هو ظاهر الرواية اه، قال العلامة شبلي رَحِمَهُ الله ففيها العمل بالبيّنتين غير ممكن في حق المالك القديم؛ لأن البيع الأول ينفسخ بالثاني، فوجد التعارض، فصرنا إلى الترجيح لزيادة، وفي حق الشفيع لا ينفسخ، فلم يوجد التعارض (الزيلعي ج:۵، ص:۲۴۷)، وقال العلامة التمرتاشي رَحِمَهُ الله: وإن برهنا، فالشفيع أحق؛ لأن بيّنته ملزمة، والبيّنات للإلزام (الدر المختار ج:۵، ص:۱۶۱)، انظر للتوضيح الكامل [القول الراجح ج:۲، من ص ۲۷۰ إلى ص ۲۷۲]

وتښتوي او دارُ الحرب ته يې بوځي او په دارُ الحرب کې يو بل مسلمان تاجر هغه رانيسي او دارُ الاسلام ته يې راولي، اوس مخکينی مالک (خالد) وايي چې تا دا زما غلام په پنځه سوه درهمه رانيولی دی او تاجر مسلمان (مشتري من العدوّ) وايي چې په زر درهمه مې رانيولی دی، نو د ده ګواهي معتبره ده، تاسو او ګورئ! څرنګه چې په دې ټولو صورتونو کې د بائع، وکيل او مشتري من العدوّ بيّنه د اثبات په اعتبار سره غالبه ده، نو په دې وجه د دوی ټولو بيّنه معتبره ده، لهذا په پورتنۍ مسئله کې به هم د مشتري بيّنه معتبره وي، ځکه چې د مشتري په بيّنه کې هم د إثبات اړخ غالب دی.

## د طرفينو دليل

وَلَهُمَا: أَنَّهُ لَا تَنَافِيَ بَيْنَهُمَا او د طرفينو دليل دا دی: چې د دواړو بيّنو [ګواهيو] په مينځ کې هيڅ منافات نشته فَيُجْعَلُ كَأَنَّ الْمَوْجُودَ بَيْعَانِ نو داسې به ګرځول کيږي ګواکي موجود دوه بيع دي [يعني دوه بيع به موجوده منل کيږي] وَلِلشَّفِيعِ أَنْ يَأْخُذَ بِأَيِّهِمَا شَاءَ او شفيع ته اختيار دی چې له دې دواړو څخه د هر يوه په عوض کې وغواړي، [مشفوعه کور] واخلي وَهٰذَا بِخِلَافِ الْبَائِعِ مَعَ الْمُشْتَرِي او دا حکم د بائع او مشتري د خپل مينځوي اختلاف په خلاف دی [په بله وينا دا چې د شفيع او مشتري اختلاف داسې نه دی لکه د بائع او مشتري اختلاف] لِأَنَّهُ لَا يَتَوَالَى بَيْنَهُمَا عَقْدَانِ إِلَّا بِانْفِسَاخِ الْأَوَّلِ ځکه چې د دوی تر مينځ د اول عقد له فسخ کولو څخه دوه عقدونه نسي متوالي [او جاري] کېدای وَهٰهُنَا الْفَسْخُ لَا يَظْهَرُ فِي حَقِّ الشَّفِيعِ او دلته د شفيع په حق کې فسخ نه ښکاره کيږي وَهُوَ التَّخْرِيجُ لِبَيِّنَةِ الْوَكِيلِ او همدا تخريج ده د وکيل د بيّنې لِأَنَّهُ كَالْبَائِعِ ځکه چې وکيل د بائع په شان دی وَالْمُوَكِّلُ كَالْمُشْتَرِي مِنْهُ او مؤکل له هغه څخه د رانيونکي په شان دی كَيْفَ وَأَنَّهَا مَمْنُوعَةٌ عَلَى مَا رُوِيَ عَنْ مُحَمَّدٍ دا [د وکيل د بيّنې قياس د مشتري پر بيّنې] څنګه کېدای سي حال دا چې دا ممنوع دي د هغه روايت مطابق کوم چې له امام محمد رَحِمَهُ الله څخه نقل سوی دی.

**اللغات:** ﴿تنافي﴾ د تفاعل د باب مصدر دی: منافي کېدل (برعکس کېدل)، تضاد. ﴿لا يتوالی﴾ د تفاعل له بابه د نفي صيغه ده: پرلپسې کېدل. ﴿انفساخ﴾ د انفعال د باب مصدر دی: فسخ کېدل، ماتېدل.

**تشريح:** له دې ځايه صاحب د هدايې رَحِمَهُ الله د طرفينو (امام صاحب او امام محمد) رَحِمَهُمَا الله دليل ذکر کوي چې د هغو په نيز د شفيع بيّنه معتبره ده، د دليل حاصل دا دی چې د شفيع او مشتري په

بينه کي هيڅ تعارض نسته، بلکي تطبيق يې ممکن دی او هغه داسي چي په دې مسئله کي دوې بيع ومنل سي، يوه دا چي اول د بائع او شفيع ترمينځ په دوه زره درهمه معامله سوې وه او بيا همداغه معامله په زر درهمه سوې وه، لکه څرنګه چي له ګواهی څخه هم د دې پته لګيږي، نو ځکه اوس به شفيع ته اختيار وي چي د کومي بيع په عوض کي وغواړي، دا مشفوعه کور دي واخلي. (دا دليل مضبوط نه ښکاري او مشکل دی، په ښه غور او تدبّر سره يې مطالعه کړئ!)

وهذا بخلاف إلخ: څرنګه چي امام ابو يوسف رَحِمَهُ الله د خپل مسلک په تائيد کي د قياس په توګه درې مثالونه پيش کړې وه، اوس له دې ځايه د هغه جواب ورکوي، اول مثال دا وو چي امام ابو يوسف رَحِمَهُ الله د شفيع او مشتري مسئله د بائع او مشتري والا پر مسئله قياس کړې وه، حاصل د جواب دا دی چي دغه مسئله د بائع او مشتري او الا پر مسئله قياسول صحيح نه دي؛ ځکه چي د شفيع او مشتري والا په صورت خو کي د دوو بيع جاري کول ممکن دي؛ ځکه دلته د شفيع په حق کي د بيع د فسخ کېدلو سوال هم نه پيدا کيږي، حال دا چي د بائع او مشتري په صورت کي د اولي بيع له فسخ کولو څخه بغير دويمه بيع نه سي جاري کېدلای (يعني د بائع او مشتري ترمينځ پر يوه ځای دوې بيع نه سي کېدای)، نو ځکه هلته به مجبوراً يوه ته ترجيح ورکول کيږي او ترجيح همدا ده چي د چا په بيّنه کي چي د إثبات ارخ غالب وي، د هغه بيّنه به معتبره وي، او د بائع په بيّنه کي دا صفت موجود دی (ځکه چي هلته هغه زيات ثمن ثابتوي)، نو ځکه مورږ هلته د بائع بيّنه معتبره منو، خو څرنګه چي د شفيع او مشتري والا په صورت کي د اول عقد له فسخ کولو څخه بغير د دويم عقد جاري کول ممکن دي، نو ځکه په دې صورت کي مورږ تأويل کوو او د شفيع بيّنه معتبره ګرځوو، نه د بائع (مشتري) بيّنه.

وهو التخريج إلخ: په دې سره د امام ابو يوسف رَحِمَهُ الله د دويم مثال او قياس جواب ورکوي، حاصل يې دا دی چي د شفيع والا مسئله د وکيل او مؤکل والا پر صورت قياسول هم صحيح نه دي؛ ځکه چي د بائع او مشتري د صورت په څير دلته هم د اول عقد له فسخ کېدلو څخه بغير د دويم عقد اجراء ممکنه نه ده، نو ځکه دلته به هم د أكثرُ إثباتاً والا ترجيح پر بنياد د وکيل بيّنه معتبره وي؛ ځکه چي وکيل د بائع په څېر دی او مؤکل د مشتري په څېر دی، او د بائع و مشتري د اختلاف په صورت کي د بائع بيّنه معتبره وي، نو همداسي به دلته هم وي.

كيف وأنها إلخ: د دې مطلب دا دی چي د وکيل د بيّنې په هکله زمورږ دا مخکينی بيان د ظاهر روايت مطابق دی (چي په ظاهر روايت کي د وکيل بيّنه معتبره ګرځول سوې ده)، کنې ورغه ابن سماعه له امام محمد رَحِمَهُ الله څخه دا روايت کړی دی چي د وکيل او د مؤکل د اختلاف په صورت کي د مؤکل بيّنه

معتبره ده، نه دوکیل، لهذا که د دې روایت اعتبار وسي، نو ګرسره د وکیل په مسئله سره د امام ابویوسف رَحِمَهُ الله دلیل نیول او په قیاس کې پېشول نه صحیح کیږي. دا خبره صاحب د هدایې رَحِمَهُ الله داسې کړې ده "کیف وأنها ممنوعة..." چې دا قیاس څنګه صحیح کېدای سي حال دا چې د امام محمد رَحِمَهُ الله د روایت مطابق دا ممنوع دي. (په لنډه توګه دا چې اول تسلیمي جواب دی او دا انکاري جواب دی).

## د امام ابویوسف رَحِمَهُ الله د دریم قیاس جواب

وَأَمَّا الْمُشْتَرِيْ مِنَ الْعَدُوِّ فَقُلْنَا ذُكِرَ فِي السِّيَرِ الْكَبِيْرِ أَنَّ الْبَيِّنَةَ بَيِّنَةُ الْمَالِكِ الْقَدِيْمِ او کوم چې له دښمن [دار الحرب] څخه رانیونکی دی، نو [په دې هکله] موږ وایو چې په سیر کبیر دا ذکر سوي دي چې د مخکیني مالک بیّنه معتبره ده [کوم چې په کم قیمت سره د غلام رانیولو دعویٰ کوي] فَلَنَا أَنْ نَمْنَعَ نو موږ ته دا حق سته چې انکار وکړو [یعني د امام ابویوسف خبره منع کړو او تسلیم یې نه کړو] وَبَعْدَ التَّسْلِيْمِ نَقُوْلُ: لَا يَصِحُّ الثَّانِيْ هُنَالِكَ إِلَّا بِفَسْخِ الْأَوَّلِ او تر تسلیمولو وروسته موږ دا وایو: چې هلته د اول عقد له فسخ کولو څخه بغیر دویم عقد نه صحیح کیږي أَمَّا هٰهُنَا فَبِخِلَافِهِ او پاته سو دلته د هغه په خلاف دي [یعني د شفیع او مشتري په مسئله کې بیا د اول عقد له فسخ کولو څخه بغیر دویم عقد ثابتېدای سي] وَلِأَنَّ بَيِّنَةَ الشَّفِيْعِ مُلْزِمَةٌ وَبَيِّنَةَ الْمُشْتَرِيْ غَيْرُ مُلْزِمَةٍ او څکه چې د شفیع بیّنه لازمونکې ده او د مشتري بیّنه لازمونکې نه ده وَالْبَيِّنَاتُ لِلْإِلْزَامِ او بیّنې د لازمولو لپاره وي.

**اللغات**: ﴿القدیم﴾ مخکنی، پخوانی، ﴿تسلیم﴾ د تفعیل د باب مصدر دی: د دې باب څو معناوې دي چې له هغوی څخه یوه معنیٰ ده: منل او تسلیمول، ﴿ملزمة﴾ د افعال له بابه مؤنث اسم فاعل دی: لازمونکې.

**تشریح**: امام ابویوسف رَحِمَهُ الله د خپل قول په تائید کې دریم قیاس دا کړی وو چې د مشتري من العدو (دویم وار رانیونکی) او مخکیني مالک (اول رانیونکی) تر مینځ د اختلاف په صورت کې د مشتري من العدو بیّنه معتبره ده، په دې عبارت کې صاحب د هدایې رَحِمَهُ الله د هغه د دې قیاس دوه جوابه کړي دي: ① اول انکاري جواب دی، حاصل یې دا دی چې د شفیع او مشتري اختلاف د مشتري من العدو پر مسئله قیاسول صحیح نه دي، څکه چې هغه متفق علیه مسئله نه ده، بلکې په سیر کبیر کې په صراحت سره دا ذکر سوي دي چې که د مخکیني مالک او مشتري من العدو په مینځ کې اختلاف

راسي، نو د مخکيني مالک (مالک قديم) بيّنه معتبره ده، نو ځکه دې وضاحت ته په کتلو سره موږ ستا قياس نه تسليموو.

② تسليمي جواب، حاصل يې دا دی چي که موږ ستا قياس او قول تسليم هم کړو (چي د مشتري من العدوّ بيّنه معتبره ده)، نو هم موږ هغه مخکنی وجه بيانوو چي د دې وجه هغه ده کوم چي مخکې تېره سوه، چي د دواړو تر مينځ تطبيق ممکن نه دی ما سوا له دې چي اول عقد فسخ ومنل سي يعني هلته د اول عقد له فسخ څخه بغير دويم عقد نه سي جاري کېدلای، نو ځکه د مشتري من العدوّ او مالک قديم په مسئله کي به د وجهٔ ترجيح (اکثر إثباتاً) پر بنياد د مشتري من العدو بيّنه معتبره منل کيږي، لېکن د شفيع او مشتري په مسئله کي له څه فسخ څخه بغير د دوو عقدونو جاري کېدل ممکن دي، نو ځکه موږ دلته د تأويل پر بنياد د شفيع بيّنه معتبره منو.

ولأن بيّنة إلخ: دا د طرفينو عقلي دليل دی، حاصل يې دا دی چي بيّنات (ګواهياني) د إلزام يعني د يو شي د لازمولو لپاره وضع سوي دي، او کله چي دوې بيّنې سره جمع سي، نو ترجيح به هغه بيّنې لره وي چي په هغې کي إلزام وي، او دلته د شفيع په بيّنه کي إلزام سته، ځکه د شفيع په بيّنه سره پر مشتري د کور ورسپارل (تسليم الدار) لازم کړی سوي دي، د دې په خلاف د مشتري بيّنه له إلزام څخه خالي ده، ځکه چي شفيع ته (د مشفوعه کور) د اخيستلو او نه اخيستلو اختيار دی، لهذا د إلزام والا بيّنې لره به ترجيح وي او إلزام د شفيع په بيّنه کي دی، نو ځکه صرف هغه به معتبره او راجحه وي.

## د مشتري او بائع د اختلاف په صورت کي د شفيع لپاره قول معتبر

قَالَ: وَإِذَا ادَّعَى الْمُشْتَرِيْ ثَمَنًا وَادَّعَى الْبَائِعُ أَقَلَّ مِنْهُ فرمايي: او کله چي مشتري د يو [زيات] ثمن دعویٰ وکړي او بائع تر هغه د کم ثمن دعویٰ وکړي وَلَمْ يَقْبِضِ الثَّمَنَ حال دا چي بائع [تر اوسه] پر ثمن قبضه نه وي کړې، أَخَذَهَا الشَّفِيعُ بِمَا قَالَهُ الْبَائِعُ نو شفيع به کور په هغه ثمن [قيمت] سره اخلي کوم چي شفيع ويلي وي وَكَانَ ذٰلِكَ حَطًّا عَنِ الْمُشْتَرِيْ او دا به د مشتري له ذمې څخه کمول وي [يعني دا به ګڼل کيږي چي وروسته بائع د مشتري له ذمې څخه څه ثمن (قيمت) کم کړی دی] وَهٰذَا لِأَنَّ الْأَمْرَ إِنْ كَانَ عَلٰى مَا قَالَ الْبَائِعُ فَقَدْ وَجَبَتِ الشُّفْعَةُ بِهِ او دا ځکه چي که خبره داسي وي کوم چي بائع ويلي دي [چي قيمت کم دی] نو شفعه د همهغه مقدار مطابق واجبيږي وَإِنْ كَانَ عَلٰى مَا قَالَ الْمُشْتَرِيْ فَقَدْ حَطَّ الْبَائِعُ بَعْضَ الثَّمَنِ او که خبره داسي وي کوم چي مشتري ويلي دي [چي قيمت کم دی] نو [دا به ګڼل کيږي چي] بائع وروسته د ثمن بعضي مقدار کم کړی دی وَهٰذَا الْحَطُّ يَظْهَرُ فِيْ حَقِّ الشَّفِيعِ او دا کمي

د شفیع په حق کې ښکاره کیږي عَلٰی مَا نُبَیِّنُ اِنْ شَاءَ اللّٰهُ تَعَالٰی لکه څرنګه چې [وروسته] به مونږ انشاء الله د دې بیان وکړو وَلِأَنَّ التَّمَلُّكَ عَلَی الْبَائِعِ بِإِيْجَابِهِ او ځکه چې پر بائع مالک کېدل د هغه د ایجاب په وجه دي [په بله وینا دا چې د بائع د ایجاب (یعني پر بیع د هغه د اقدام کولو) په وجه شفیع د حق شفعه پر بناء د هغه د کور مالک سوی دی، لهذا کله چې دا تملک د بائع د ایجاب په وجه دی فکان القول...] فَكَانَ الْقَوْلُ قَوْلَهُ فِي مِقْدَارِ الثَّمَنِ مَا بَقِيَتْ مُطَالَبَتُهُ نو د ثمن د مقدار په باره کې به د بائع قول معتبر وي تر څو چې د بائع [د ثمن] مطالبه باقي پاته وي فَيَأْخُذُ الشَّفِيْعُ بِقَوْلِهِ نو ځکه شفیع به د بائع د قول مطلق [مشفوعه کور] اخلي.

**اللغات:** ﴿حطًا﴾ د نصر د باب مصدر دی: کمول، ساقطول. ﴿تملّک﴾ د تفعل د باب مصدر دی: مالک کېدل، مالک جوړېدل.

**تشریح: صورت د مسئلې:** دا دی چې زید پر خالد یو کور خرڅ کړی، او حامد د هغه شفیع سو، بیا د ثمن په مقدار کې اختلاف راغلی، بائع (خرڅونکی) یعني زید وایي چې ما دا کور په پنځه زره درهمه ورکړی دی، او مشتري (رانیونکی) یعني خالد وایي چې په شپږ زره درهمه یې راکړی دی (لهذا شفیع [حامد] به ما ته شپږ زره درهمه راکوي)، حال دا چې تر اوسه بائع پر ثمن قبضه نه ده کړې، نو په دې صورت کې به شفیع یعني حامد دا کور د بائع (زید) په بیان سوي قیمت (پنځه زره درهمه) سره اخلي او دا به ګڼل کیږي چې وروسته بائع دا کور په پنځه زره درهمه ورکړی دی.

وهذا لأن الأمر إلخ: د دلیل حاصل دا دی چې دلته دوه صورته دي، یا دا چې د بائع په بیان سوي قیمت سره شفیع دا کور واخلي، یا د مشتري په بیان سوي قیمت سره یې واخلي، او په دواړو کې تطبیق ممکن دی، ځکه که د بائع په بیان سوي قیمت سره یې اخلي، نو هیڅ ستونزه او مشکل نسته، ځکه چې کور د بائع دی نو په هر څو چې د ده خوښه وي خرڅ دې یې کړي، او که د مشتري په بیان سوي قیمت سره شفیع دا کور اخلي، نو دا به ویل کیږي چې اصل معامله خو په لس زره سوې وه، خو بیا بائع د مشتري له ذمې څخه پنځه درهمه کم کړل، او کله چې د مشتري په حق کې پنځه زره درهمه کم سول، نو د شفیع په حق کې هم دا پنځه زره درهمه کمیږي، لهذا شفیع به په همداغه کم قیمت سره کور اخلي.

ولأن التملك إلخ: دا د بائع د قول معتبر کېدلو دویم دلیل دی، حاصل یې دا دی چې شفیع ته د بائع د إیجاب یعني پر بیع د هغه د اقدام کولو (کور خرڅولو) په وجه شفعه حاصلیږي، او څرنګه چې تر اوسه

بائع پر ثمن قبضه هم نه ده کړې، نو ځکه د هغه د مطالبې حق تر اوسه پاتـه دی (چې د خپل ثمن مطالبه وکړي)، لهذا کله چې په خپله بائع د شفعې سبب دی (چې هم دده داقدام کولو په وجه شفیع ته شفعه حاصلیږي)، نو د شفعې په ذریعه داخیستل کېدونکي کور د ثمن په مقدار کي به هم صرف د ده قول معتبر وي.

## د پورتنی مسئلې بل صورت

قَالَ: وَلَوِ ادَّعَى الْبَائِعُ الْأَكْثَرَ فرمايي: او که بائع د زیات ثمن دعوىٰ وکړي يَتَحَالَفَانِ وَيَتَرَادَّانِ نو دواړه به قسم اخلي او عقد به واپس کوي [يعني بيع به ختموي] وَأَيُّهُمَا نَكَلَ او له دواړو څخه چي هر يو له قسم څخه انکار وکړي ظَهَرَ أَنَّ الثَّمَنَ مَا يَقُولُهُ الْآخَرُ نو ښکاره به سي چي ثمن [قيمت] همغه دی کوم چي دا بل يو [قسم اخيستونکی] وايي فَيَأْخُذُهَا الشَّفِيعُ بِذٰلِكَ نو شفيع به په هغه ثمن سره کور اخلي وَإِنْ حَلَفَا او که دواړه قسم اخلي يَفْسَخُ الْقَاضِيُ الْبَيْعَ نو قاضي به بيع فسخ کوي عَلٰى مَا عُرِفَ لکه څرنګه چي دا [په کتاب الدعوىٰ کي] معلومه سوې ده وَيَأْخُذُهَا الشَّفِيعُ بِقَوْلِ الْبَائِعِ او شفيع به د بائع د قول مطابق کور اخلي لِأَنَّ فَسْخَ الْبَيْعِ لَا يُوجِبُ بُطْلَانَ حَقِّ الشَّفِيعِ ځکه چي د بيع فسخ کول د شفيع د حق باطلېدل نه ثابتوي [په بله وينا دا چي د بيع په فسخ کېدلو سره د شفيع حق نه باطليږي].

**اللغات**: ﴿يتحالفان﴾ د تفاعل له بابه د تثنيه مذکر غائب مضارع صيغه ده: يو تر بله قسم سره اخيستل. ﴿يترادان﴾ د تفاعل له بابه مخکنی صيغه ده: يو بل ته (يو تر بله) واپس کول، يو تر بله ردول. ﴿نکل﴾ د نصر د باب ماضي ده، د ضرب او سمع له بابه هم راځي: له قسم څخه انکار کول.

**تشريح**: مخکي دا صورت بيان سو چي بائع د کم قيمت (کم ثمن) دعوىٰ کوي، اوس دا صورت بيانوي چي بائع د زيات قيمت دعوىٰ کوي، نو په دې صورت کي به تر ټولو مخکي مشتري او بائع ته دوو ګواهانو د پېشولو حکم کيږي، ځو که ګواهان پېش نه کړی سي نو له دواړو څخه به قسم اخيستل کيږي، اوس که چيري يو له قسم اخيستو څخه انکار وکړي، نو همدا به ګڼل کيږي چي هغه په خپل قول کي دروغجن دی او کوم چي قسم واخلي (برابره ده هغه مشتري وي او که بائع وي)، هغه په خپل قول کي رښتونی دی، لهذا د هغه قول او دعوىٰ به معتبره منل کيږي او د هغه د بيان سوي قيمت مطابق به شفيع ته مشفوعه کور ور کول کيږي.

لېکن که دواړه قسم واخلي، نو په دې صورت کې به د دوی تر مینځ بیع فسخ کول کیږي. او کله چې بیع فسخ سوه، نو د مشتري حق له مبیع (کور) څخه منقطع او ختم سو. اوس صرف د بائع حق د مبیع سره متعلق دی او مبیع صرف د هغه ملکیت دی. لهذا اوس به شفیع د همدې بائع په بیان سوي قیمت سره کور اخلي.

لأن فسخ البیع إلخ: په دې سره صاحب د هدایې رَحِمَهُ الله د یو إشکال جواب ورکوي، هغه دا چې کله د عاقدَینو (بائع او مشتري) تر مینځ بیع فسخ سوه، نو اوس (شفیع لره) شفعه هم نه حاصلېدل پکار دي، ځکه چې د شفعې د ثبوت لپاره د بیع ثبوت ضروري دی.

د جواب حاصل دا دی چې شفعه خو همغه وخت ثابتیږي کله چې شفیع د بیع په ثبوت خبر سي (چې بائع خو خپل کور خرڅ کړی. نو د خبرېدلو سره سمدستي د هغه حق شفعه ثابتیږي)، او د یو شي فسخ د هغه د ثبوت څرګند دلیل دی (چې دا شی مخکې ثابت سوی دی). لهذا د بیع په ثبوت سره خو شفعه او د شفیع حق مخکې لا ثابت سوی دی، نو تر دې وروسته د بیع په فسخ کېدلو سره ذ هغه حق ختمیږي نه، بلکې نور مضبوطیږي.

## د پورتنۍ مسئلې نور وضاحت

قَالَ: وَإِنْ كَانَ قَبَضَ الثَّمَنَ فرمایي: او که بائع پر ثمن قبضه کړې وي [یعنې له مشتري څخه یې ثمن اخیستی وي] أَخَذَ بِمَا قَالَ الْمُشْتَرِيْ، إِنْ شَاءَ نو شفیع به په هغه ثمن [قیمت] سره کور اخلي کوم چې مشتري ویلی دی، که یې خوښه وي وَلَمْ يَلْتَفِتْ إِلَى قَوْلِ الْبَائِعِ او د بائع قول ته به هیڅ توجّه نه کوي لِأَنَّهُ لَمَّا اسْتَوْفَى الثَّمَنَ ځکه کله چې بائع ثمن ترلاسه کړی انْتَهَىٰ حُكْمُ الْعَقْدِ وَخَرَجَ هُوَ مِنَ الْبَيْنِ وَصَارَ كَالْأَجْنَبِيِّ نو د عقد حکم پوره سو او بائع له منځه ووتی او د اجنبي په څېر وګرځېدی وَبَقِيَ الِاخْتِلَافُ بَيْنَ الْمُشْتَرِيْ وَالشَّفِيعِ او [اوس] د مشتري او شفیع تر مینځ اختلاف پاته سو وَقَدْ بَيَّنَّاهُ او هغه موږ بیان کړی دی.

**اللغات**: ﴿لم یلتفت﴾ د افتعال له بابه د جحد صیغه ده: توجه او پاملرنه کول. ﴿استوفی﴾ د استفعال د باب ماضي ده: پوره اخیستل، ترلاسه کول. ﴿بین﴾ مینځ (منځ).

**تشریح**: د عبارت حاصل دا دی چې مخکېنې تول تفصیلات په هغه صورت کې وه کله چې بائع پر ثمن قبضه نه وه کړې (یعنې چې بائع او مشتري داسې وخت د ثمن په مقدار کې اختلاف وکړي چې تر اوسه بائع له مشتري څخه ثمن [قیمت] نه وي اخیستی او قبضه کړی). لېکن که تر قبضه کورولو وروسته د ثمن

په مقدار کي د بائع او مشتري اختلاف راسي، نو په دې صورت کي د مشتري قول معتبر دی لهذا په دې صورت کي که شفيع د مشفوعه کور اخيستل (رانيول) خوښوي نو د مشتري د قول (بيانِ سوي قيمت) مطابق به يې اخلي، اوس د بائع قول نا معتبر او نا مقبوله دی؛ ځکه پر ثمن له قبضه کولو څخه مخکي د هغه قول په دې وجه معتبر وو چي هغه ته د ثمن د مطالبې حق وو (چي له مشتري څخه د خپل ثمن مطالبه وکړي)، لېکن تر قبضه کولو وروسته عقد پوره سو او بائع له منځه ووتی. نو اوس هغه په دې معامله کي د اجنبي په څېر سو، او د اجنبي کس قول لره هيڅ اعتبار نه وي، نو ځکه د بائع قول لره به هم اعتبار نه وي. او څرنګه چي اوس د مشتري او شفيع تر مينځ اختلاف پاته سو، نو ځکه شفيع صرف د مشتري په بيان سوي قيمت سره کور اخيستلای سي.

او موږ مخکي دا بيان کړه چي که د ثمن د مقدار په هکله د مشتري او شفيع اختلاف سي او يو هم بيّنه پېش نه کړی سي، نو د مشتري قول (مع اليمين) معتبر دی، لهذا دلته هم چي کله بائع له منځه ووتی، نو د مشتري قول به معتبر وي او شفيع به د هغه په ويلِ سوي قيمت سره کور اخلي.

## د پورتنی مسئلې نور وضاحت

وَلَوْكَانَ نَقْدُ الثَّمَنِ غَيْرَ ظَاهِرٍ او که چيري د ثمن ادا‌ينه ناښکاره [ناخرګنده] وي [په بله وينا: که چيري پر ثمن (د بائع) قبضه ناښکاره وي. يعني دا ښکاره نه وي چي بائع پر ثمن قبضه کړې ده. که نه] فَقَالَ الْبَائِعُ: بِعْتُ الدَّارَ بِأَلْفٍ وَقَبَضْتُ الثَّمَنَ او بائع [داسي] ووايي: چي ما په زر درهمه کور خرڅ کړی او پر ثمن مي قبضه وکړه يَأْخُذُهَا الشَّفِيعُ بِأَلْفٍ نو شفيع به کور په زر درهمه اخلي لِأَنَّهُ لَمَّا بَدَأَ بِالْإِقْرَارِ بِالْبَيْعِ ځکه کله چي بائع د بيع په اقرار سره ابتداء وکړه تَعَلَّقَتِ الشُّفْعَةُ بِهِ نو د دې اقرار [بيع بالألف] سره شفعه متعلق سوه [او په کور کي د شفيع حق ثابت سو] فَبِقَوْلِهِ بَعْدَ ذٰلِكَ قَبَضْتُ الثَّمَنَ يُرِيدُ إِسْقَاطَ حَقِّ الشَّفِيعِ نو تر دې وروسته بائع خپل په دې قول "قبضتُ الثّمن" سره د شفيع د حق ساقطولو اراده لري فَيُرَدُّ عَلَيْهِ لهذا دا به پر هغه واپس کول کيږي [او د هغه د قبضې خبره به ردول کيږي] وَلَوْقَالَ: قَبَضْتُ الثَّمَنَ وَهُوَ أَلْفٌ او که چيري بائع [داسي] ووايي: چي ما پر ثمن قبضه وکړه او هغه زر درهمه دي لَمْ يُلْتَفَتْ إِلَىٰ قَوْلِهِ نو د هغه قول ته به توجه نه کيږي [او قول يې معتبر نه دی] لِأَنَّ بِالْأَوَّلِ وَهُوَ الْإِقْرَارُ بِقَبْضِ الثَّمَنِ خَرَجَ مِنَ الْبَيْنِ ځکه چي په اوله جمله يعني پر ثمن د قبضه کولو

په اقرار سره هغه له منځه ووتی وَسَقَطَ اعۡتِبَارُ قَوۡلِهٖ فِي مِقۡدَارِ الثَّمَنِ او د ثمن د مقدار په هکله د هغه د قول اعتبار ختم سو.

**اللغات**: ﴿نقد﴾ د نصر د باب مصدر دی: ادا ینه (نغد اداء کول)، ﴿بدأ﴾ د فتح د باب ماضي ده: شروع کول (پیل او ابتداء کول).

**تشریح**: مخکي ذکر سوه چي که بائع پر ثمن قبضه کړې وي نو بیا د مشتري قول معتبر دی او شفیع به د مشتري د قول مطابق کور اخلي، اوس دلته فرمایي چي که دا خبره ښکاره او معلومه نه سي چي بائع پر ثمن قبضه کړې ده، که نه. او بائع وایي چي ما د زر درهمو په عوض کي خپل کور خرڅ کړی او ثمن مي قبضه کړی (ثمن مي واخیستی)، نو په دې صورت کي که څه هم بائع د ثمن قبضه کولو خبره کړې ده (چي ثمن مي قبضه کړی، لهذا اوس زما قول معتبر نه دی) خو بیا هم شفیع به د هغه په بیان سوي قیمت یعني په زر درهمه سره کور اخلي، ځکه دلته اول بائع د بیع اقرار کړی دئ، او کله چي هغه د بیع اقرار وکړی، نو په دې کور کي د شفیع حق شفعه ثابت سو، او پاته سو د بیع تر اقرار (بعتُ الدار بألفٍ) وروسته چي هغه د قبضې خبره هم کړې ده چي وقبضتُ الثّمن، نو په دې سره هغه چم کوي چي خپله له منځه وځي او شفیع او مشتري په جنجال کي اچول غواړي چي ما خو پر ثمن قبضه کړې ده لهذا زما قول معتبر نه دی، نو شفیع او مشتري دي په مینځ کي سره اخته سي (ځکه چي د بائع تر قبضې وروسته حکم دا دی چي بیا د مشتري قول معتبر دی نو شفیع به د مشتري سره د ثمن په هکله خبره کوي او د هغه د قول مطابق به کور اخلي)، نو صاحب د هدایې فرمایي چي دلته کله بائع اول په زر درهمه سره د خرڅولو خبر ورکړی نو بیا د هغه قَبضتُ الثّمن ویل او له منځه وتل معتبر نه دي، بلکي په همدې زر درهمه به شفیع کور اخلي او د بائع چم او مکر به د هغه پر مخ وهل کیږي.

ولو قبضت الثمن إلخ: فرمایي که بائع له شروع څخه د قبضې خبره وکړي چي قَبَضۡتُ الثَّمَن او د ثمن مقدار بیان کړي، نو څرنګه چي دلته هغه د بیع اقرار نه دی کړی بلکي د ثمن قبضه کولو اقرار یې کړی دی او تر قبضې وروسته بائع له منځه وځي او د مشتري قول معتبر ګیږي، نو ځکه په دې صورت کي د هغه قول معتبر نه دی او شفیع به د مشتري د بیان سوي قیمت مطابق کور اخلي.

❁❁❁

# فَصْلٌ فِیْ مَا يُؤْخَذُ بِهِ الْمَشْفُوْعُ

(دا) فصل په (بيان د) هغه شي (ثمن) کي دی چي د
هغه په ذريعه مشفوع ځای اخيستل کيږي

**تشريح :** مخکي تر دې د مشفوع ځای (جايداد، کور، ځمکي) او داسي نورو احکام بيان سول، اوس له دې ځايه د ثمن په هکله تفصيلات بيانوي، ځرنګه چي مشفوع يعني ځای اصل دی او د مشفوع حاصلولو ذريعه يعني ثمن تابع دی، نو ځکه اصل يې مخکي بيان کړی او تابع وروسته بيانوي.

**که بائع ثمن کم کړي نو له مشتري څخه هم کميږي (ساقطيږي)**

قَالَ: وَإِذَا حَطَّ الْبَائِعُ عَنِ الْمُشْتَرِیْ بَعْضَ الثَّمَنِ فرمايي: او کله چي بائع د مشتري له ذمې څخه څه ثمن کم کړي يَسْقُطُ ذٰلِكَ عَنِ الشَّفِيْعِ نو هغه د شفيع له ذمې څخه هم ساقطيږي وَإِنْ حَطَّ جَمِيْعَ الثَّمَنِ او که بائع ټول ثمن کم کړي [معاف کړي] لَمْ يَسْقُطْ عَنِ الشَّفِيْعِ نو د شفيع له ذمې څخه [هيڅ هم] نه ساقطيږي لِأَنَّ حَطَّ الْبَعْضِ يَلْتَحِقُ بِأَصْلِ الْعَقْدِ ځکه چي د څه ثمن کمي د اصل عقد سره يو ځای کيږي فَيَظْهَرُ فِیْ حَقِّ الشَّفِيْعِ لهذا دا کمي به د شفيع په حق کي ښکاره کيږي لِأَنَّ الثَّمَنَ مَا بَقِیَ ځکه چي [اوس] ثمن هغه دی کوم چي پاته دی وَكَذَا إِذَا حَطَّ بَعْدَ مَا أَخَذَهَا الشَّفِيْعُ بِالثَّمَنِ او همدارنګه کله چي شفيع ثمن کم کړي وروسته تر دې چي شفيع کور په ثمن سره واخلي [يعني چي شفيع له مشتري څخه کور واخلي او مشتري ته ثمن (قيمت) هم ورکړي، بيا تر دې وروسته بائع څه ثمن کم کړي] يَحُطُّ عَنِ الشَّفِيْعِ نو [په دې صورت کي] د شفيع له ذمې څخه هم کميږي حَتّٰى يَرْجِعَ عَلَيْهِ بِذٰلِكَ الْقَدْرِ تر دې چي شفيع به په هغه مقدار سره پر مشتري رجوع کوي [يعني بائع چي څومره مقدار ثمن کم کړی وي، شفيع به هغومره مقدار له مشتري څخه واپس اخلي] بِخِلَافِ حَطِّ الْكُلِّ په خلاف د ټوله ثمن د کمولو [معاف کولو] لِأَنَّهُ لَا يَلْتَحِقُ بِأَصْلِ الْعَقْدِ بِحَالٍ ځکه چي هغه په هيڅ حالت کي هم د اصل عقد سره نه يو ځای کيږي وَقَدْ بَيَّنَّاهُ فِی الْبُيُوْعِ او موږ په کتابُ البيوع کي د دې بيان کړی دی.

**اللغات**: ﴿حطّ﴾ د نصر د باب ماضي ده: کمول (کم کول)، ساقطول. ﴿يلتحق﴾ د افتعال د باب مضارع ده: يو شی د بل شي سره يو ځای کېدل، (ور سره لګېدل)، متصل کېدل.

**تشريح**: **صورت د مسئلې**: دا دی چې زيد خپل ځای پر خالد په پنځه زره درهمه خرڅ کړی، بيا د تبرع او احسان په توګه زيد دوه زره درهمه کم کړل او حامد د دې ځای شفيع دی، نو په دې صورت کي به شفيع يعني حامد دا ځای په درې زره درهمه اخلي، ځکه کله چې د مشتري په حق کي دوه زره کم کړی سوه، نو ګواکي بيع صرف پر درې زره منعقده سوه او همدا درې زره د دې ځای ثمن سو. او شفيع خو د همدې ثمن په عوض کي ځای اخلي، نو ځکه هغه به دا کور په درې زره درهمه اخلي.
لېکن که بائع يعني زيد ټوله ثمن (پنځه زره درهمه) مُعاف کړي، نو په دې صورت کي له شفيع (حامد) څخه هيڅ هم نه کميږي. بلکي هغه به د پوره پنځه زرو په عوض کي ځای اخلي.

په دې دواړو صورتونو کي فرق دا دی چې کله له پنځو زرو څخه دوه زره کم سوه، نو درې زره باقي پاته سوه. او کوم چې کم سوي دي د اصل عقد يعني د پنځو زرو سره د هغه تر يو ځای کولو (يعني د هغه تر کمولو) وروسته هم د ثمن نوم باقي پاته دی (په بله وينا دا چې ما بقي درې زره خو هم ثمن دی). او شفيع د ثمن په عوض کي مشفوعه ځای اخلي او ثمن پاته دی، نو ځکه په دې صورت به کي دا کمي (د بعضي ثمن کمي) د شفيع په حق کي ښکاره کيږي او هغه ته به د همدې کم شده ثمن (درېو زرو) په عوض کي کور حاصليږي.

لېکن کله چې بائع ټوله ثمن معاف کړی، نو اوس دلته د ثمن نوم و نشان پاته نه سو. اوس خو دا ځای د بائع له طرفه يا هبه ومنه يا يې بيع بلا ثمن ومنه. او شفعه (حق شفعه) خو نه په هبه کي حاصليږي او نه په بيع بلا ثمن کي، ځکه چې دا بيع فاسد ده. لهذا که چيري مونږ له شفيع څخه ټوله ثمن ساقط کړو، نو ګرسره د هغه حق شفعه به ختم سي، نو ځکه د شفيع د حق په رعايت کولو سره مونږ دلته د هغه په حق کي د ثمن معافي (بخښنه) معافي نه ده شمېرلې او هغه مو په ټوله ثمن (قيمت) سره د ځای رانيولو مکلف جوړ کړی دی.

**يادونه**: د "يلتحق بأصل العقد" دلفظي ترجمه ده: د اصل عقد سره يو ځای کول. خو مراد ځني دا دي چې کوم اصل قيمت دی له هغه څخه کمول (احسن الهدايه). صاحب د هدايې رَحِمَهُ الله فرمايي چې په دې باره کي مونږ په کتاب البيوع کي تفصيلي خبره کړې ده.

## که مشتري د بائع لپاره په ثمن کي اضافه وکړي، نو پر شفیع دا اضافه سوی ثمن نه لازمیږي

وَإِنْ زَادَ الْمُشْتَرِيْ لِلْبَائِعِ او که مشتري د بائع لپاره [په ثمن کي] څه زیاتوب [اضافه] وکړي لَمْ تَلْزَمِ الزِّيَادَةُ فِيْ حَقِّ الشَّفِيْعِ نو دا زیاتوب د شفیع په حق کي نه لازمیږي لِأَنَّ فِيْ اعْتِبَارِ الزِّيَادَةِ ضَرَرًا بِالشَّفِيْعِ ځکه چي د زیاتوب په اعتبار کولو کي د شفیع نقصان دی لِاسْتِحْقَاقِهِ الْأَخْذَ بِمَا دُوْنَهَا ځکه چي شفیع تر هغه د کم ثمن په عوض کي [دمشفوعه کور] د اخیستلو مستحق دی بِخِلَافِ الْحَطِّ په خلاف [د ثمن] د کمولو لِأَنَّ فِيْهِ مَنْفَعَةً لَهُ ځکه چي په دې کي د شفیع فایده ده وَنَظِيْرُ الزِّيَادَةِ إِذَا جَدَّدَ الْعَقْدَ بِأَكْثَرَ مِنَ الثَّمَنِ الْأَوَّلِ او د زیاتوب [ثمن زیاتولو] مثال دا دی چي کله مشتري له اول ثمن څخه په زیات ثمن عقد نوی کړي [یعني له اولني قیمت څخه په زیات قیمت بل عقد وکړي] لَمْ يَلْزَمِ الشَّفِيْعَ نو [هم] دا زیاتوب پر شفیع نه لازمیږي حَتّٰى كَانَ لَهُ أَنْ يَأْخُذَهَا بِالثَّمَنِ الْأَوَّلِ تر دې چي د هغه لپاره اختیار دی چي دا کور په اول ثمن سره واخلي لِمَا بَيَّنَّا د هغه دلیل په وجه کوم چي موږ بیان کړی كَذَا هٰذَا نو همدارنګه به دا [بغیر له تجدیده زیاتوب] هم داسي وي.

**اللغات**: ﴿زاد﴾ د ضرب د باب ماضي ده: زیاتول، اضافه کول. ﴿نظیر﴾ مثل، مثال.

**تشریح**: مخکي د بائع د تبرّع او احسان بیان وو، په دې عبارت کي د مشتري د تبرّع بیان کوي چي که مشتري د بائع سره احسان وکړي او تر ټاکل سوي ثمن هغه ته زیاتي پیسې ورکړي، مثلاً ثمن پنځه زره درهمه وي او مشتري د احسان په توګه بائع ته شپږ زره درهمه ورکړي، نو دا زیاتوب (اضافه سوی ثمن) پر شفیع نه لازمیږي، یعني که شفیع دا کور اخلي نو فقط په پنځه زره درهمه به یې اخلي، نه په شپږ زره، ځکه چي شفیع په اصل ثمن سره د کور اخیستلو مستحق دی. زیاتوب (اضافي ثمن) خو د مشتري له طرفه تبرّع او احسان دی، که چیري موږ پر شفیع د دې زائد ثمن اداء کول هم لازم کړو، نو هغه ته به ضرر او نقصان ورسیږي.

او څرنګه چي د ثمن په کمولو کي (یعني چي بائع له مشتري څخه بعضي ثمن کم کړي، په دې کي) د شفیع فایده ده، نو ځکه کمي د شفیع په حق کي هم ښکاره کیږي (لکه مخکي چي ذکر سوه)، او بل دا چي په دې صورت کي د یوه نقصان هم نسته، د مشتري هم فایده ده او د شفیع هم، نو ځکه کمي به د دواړو په حق کي ښکاره کیږي.

ونظير الزيادة إلخ: د دې حاصل دا دی چې په مخکينۍ صورت کې د عقد له تجديد (نوي کولو) څخه بغير په ثمن کې اضافه سوې وه، لېکن که بائع او مشتري د عقد تر تجديد وروسته په ثمن کې اضافه وکړي، نو په دې صورت کې هم پر شفيع اضافه سوې ثمن نه لازمېږي، ځکه څرنګه چې د عقد تر تجديد مخکې په دې سره شفيع ته ضرر رسېدی، همداسې د عقد تر تجديد وروسته هم په دې سره هغه ته ضرر او نقصان رسيږي (چې د مخکينۍ عقد د ثمن سره د نوي عقد اضافه سوی ثمن هم ورکړي)، نو ځکه په دې صورت کې به هم هغه صرف د مخکينۍ عقد د ثمن په عوض کې مشفوعه ځای اخلي.

## د سامان په بدله کې د خرڅ کړی سوي کور د شفعې بيان

قَالَ: وَمَنِ اشْتَرَى دَارًا بِعَرَضٍ فرمايي: او څوک چې د سامان په عوض کې کور رانيسي أَخَذَهَا الشَّفِيعُ بِقِيمَتِهِ نو شفيع به دا کور د سامان د قيمت په عوض کې اخلي [رانيسي] لِأَنَّهُ مِنْ ذَوَاتِ الْقِيَمِ ځکه چې سامان له ذوات القيم څخه دی وَإِنِ اشْتَرَاهَا بِمَكِيلٍ أَوْ مَوْزُونٍ او که د مکيلي يا موزوني شي په عوض کې کور رانيسي أَخَذَهَا بِمِثْلِهِ نو شفيع به د هغه شي د مثل په عوض کې کور اخلي [رانيسي] لِأَنَّهُمَا مِنْ ذَوَاتِ الْأَمْثَالِ ځکه چې مکيلي او موزوني شی له ذوات الأمثال څخه دی وَهَذَا لِأَنَّ الشَّرْعَ أَثْبَتَ لِلشَّفِيعِ وِلَايَةَ التَّمَلُّكِ عَلَى الْمُشْتَرِي بِمِثْلِ مَا تَمَلَّكَهُ او د دې وجه دا ده چې شريعت د شفيع لپاره پر مشتري د هغه د ملکيت په مثل سره د تملک [مالک کېدلو] ولايت ثابت کړی دی [په بله وينا: او د دې وجه دا ده چې په کوم شي سره مشتري (د کور) مالک سوی دی شريعت د هغه شي د مثل په ورکولو سره شفيع ته پر مشتري (د کور) د مالک کېدلو ولايت ورکړی دی] فَيُرَاعَى بِالْقَدْرِ الْمُمْكِنِ نو ځکه تر ممکنه مقدار به د دې رعايت کېږي كَمَا فِي الْإِتْلَافِ لکه [ديو شي] د ضايع کولو په صورت کې چې کېږي وَالْعَدَدِيُّ الْمُتَقَارِبُ مِنْ ذَوَاتِ الْأَمْثَالِ او عددی متقارب شی هم له ذوات الأمثال څخه دی [په بله وينا: او هغه شی کوم چې په شمار خرڅېږي او افرادېې يو بل ته نژدې وي، نو هغه هم له ذوات الأمثال څخه دی، يعني مثل به يې ورکول کېږي، نه قيمت] وَإِنْ بَاعَ عَقَارًا بِعَقَارٍ او که د جايداد په بدله کې جايداد خرڅ کړي أَخَذَ الشَّفِيعُ كُلَّ وَاحِدٍ مِنْهُمَا بِقِيمَةِ الْآخَرِ نو شفيع به له دوی څخه هر يو د هغه بل يوه د قيمت په عوض کې اخلي لِأَنَّهُ بَدَلُهُ ځکه چې هر جايداد د بل يوه بدل دی [ځکه له دوی څخه هر يو د بل يوه په بدل کې ورکول سوی دی] وَهُوَ مِنْ ذَوَاتِ الْقِيَمِ او جايداد له ذوات القيم څخه دی فَيَأْخُذُهُ

بِقِيمَتِهِ نو ځکه شفيع به هغه د قيمت په عوض کي اخلي.

**اللغات**: ﴿عَـرَض﴾ او عَـرْض: سـامان، لـه ثمـن او نقـودو (دراهم و دنانيرو) څخـه بغيـر نـور شيان، ﴿مكيل﴾ پيمانه کېدونکی شی، هغه شی کوم چي په ګـيل (معلوم لوښي او ظرف) سره اندازه کيـږي (پيمانه کيږي)، ﴿موزون﴾ هغه شی کوم چي په وزن سره اندازه کيـږي (تلل کيـږي)، ﴿تملّك﴾ د تفعّل د باب مصدر دی: مالک کېدل، مالک جوړېدل، ﴿يراعیٰ﴾ د مفاعلي د باب مضارع مجهوله ده: مراعات کول، رعايت او لحاظ ساتل، ﴿إتلاف﴾ د افعال د باب مصدر دی: تلفول، هلاکول، ضايع کول، ﴿عددي متقارب﴾ هغه شی کوم چي په شمېر سره معلومول کيږي او عموماً په شمېر خرڅول کيږي او افراد يې يو بل ته نژدې، نژدې وي (تفاوت پکښي کم وي)، لکه هګۍ، او داسي نور، ځکه هګۍ يوه له بلې څخه زياته غټه يا کوچنۍ نه وي بلکي هغوی ټوله په اندازه کي متقارب (سره نژدې، نژدې) وي.

**تشريح**: په تېرو صفحاتو کي د هغه شفعي بيان وو چي په هغه کي د نغد ثمن په عوض کي بيع سوې وي، اوس له دې ځايه دا رابښيي چي که څوک له نغدو څخه بغير د يو سامان په عوض کي کور رانيسي، نو حکم دا دی چي که سامان له ذواتُ القيم څخه وي، نو د سامان قيمت ته به خساب کيږي چي څومره قيمت يې جوړيږي شفيع به هغومره قيمت مشتري ته ورکوي او کور به اخلي، او که دا سامان مکيلي يا موزوني شی وي يعني له ذوات الأمثال څخه وي، نو د هغه سامان مثل به ورکوي، مثلاً مشتري د سل منه غنمو په عوض کي کور رانيولی وي، نو شفيع به هغومره شی (غنم) ورکوي؛ د دې وجه دا ده چي د سامان دوه حيثيته دي: ① ذوات القيم، يعني هغه سامان چي مثل يې په بازار کي موجود نه وي، ② ذوات الأمثال، يعني هغه سامان چي بغير له څه تفاوته مثل يې په بازار کي پيدا کيږي، لهذا کله چي د سامان همدا دوه حيثيته دي، نو کوم سامان چي د کوم حيثيت وي، شفيع به هغه اداء کوي.

وهذا إلخ: د دې حاصل دا دی چي (په ذواتُ الأمثال کي) موږ شفيع ځکه د مثل په اداء کولو سره مُکلف کړی دی چي شريعت چي شفيع ته کوم دا حق ورکړی دی چي د مشتري ملکيت (کور) رانيسي او مالک يې سي، دا حق يې په هغه توګه ورکړی دی په کومه توګه چي مشتري دا کور له بائع څخه رانيولی او مالک سوی يې دی (يعني په کومه توګه چي مشتري مشفوعه کور رانيولی دی، په هغه توګه به يې شفيع هم رانيسي)، لهذا تر څو چي ممکنه وي د دې مثل رعايت به کيږي، او رعايت همدا دی چي چيري مثلِ صوري ممکن وي، هلته هغه اداء کړی سي. او په کومه مسئله کي چي مثلِ صوري

ممکن نه وي، هلته مثلِ معنوي يعني قيمت اداء کړی سي. لکه کله چي يو څوک د بل چا يو شی ضايع کړي، نو حکم دا دی چي له ضايع کونکي (مُتلف) څخه به په تاوان کي اولاً د هغه شي مثل اخيستل کيږي، او که مثل يې موجود نه وي، نو د هغه قيمت به څني اخيستل کيږي. همداسي دلته هم چي تر څو شفيع لره د مثلِ صوري اداء کول ممکن وي، هغه به اداء کوي، کنې مثلِ معنوي (قيمت) به اداء کوي.

والعددی إلخ: په دې سره دا راښيي چي عددی متقارب يعني هغه شی او سامان چي په افرادو او د افرادو په قيمت کي يې تفاوت نه وي، فقهاؤ هغه هم په ذواتُ الأمثال کي شمېرلي دي. لهذا که چا د عددی متقارب شي مثلاً د هګيو په عوض کي کور رانيولی وي، نو شفيع به د هغه مثل ورکوي، قيمت به يې نه ورکوي.

وإن باع عقارا إلخ: فرمايي که څوک پر بل چا خپله يو جايداد مثلاً ځمکه خرڅه کړي او په بدله کي د هغه ځمکه واخلي، او د دواړو ځمکو شفيع ګان د خپل شفعي اخيستل وغواړي، نو په دې صورت کي حکم دا دی چي د بائع د ځمکي شفيع به په بدله کي د مشتري د ځمکي قيمت ورکوي (يعني د مشتري د ځمکي د قيمت په عوض کي به خپله مشفوعه ځمکه اخلي) او د مشتري د ځمکي شفيع به په بدله کي د بائع د ځمکي قيمت ورکوي؛ ځکه چي ځمکه له ذواتُ القيم څخه ده، نو ځکه هر شفيع به هغه د خپل قيمت په عوض کي اخلي.

## په قرض سره د خرڅ کړی سوي جايداد د شفعي بيان

قَالَ: وَإِذَا بَاعَ بِثَمَنٍ مُؤَجَّلٍ فرمايي: او که څوک د نېټه داره [قرض والا] ثمن په عوض کي خپل کور خرڅ کړي فَلِلشَّفِيْعِ الْخِيَارُ إِنْ شَاءَ أَخَذَهَا بِثَمَنٍ حَالٍّ نو شفيع ته اختيار دی چي که وغواړي نو په نغد ثمن سره دي دا [مشفوعه] کور واخلي وَإِنْ شَاءَ صَبَرَ حَتّٰى يَنْقَضِيَ الْأَجَلُ ثُمَّ يَأْخُذُهَا او که وغواړي نو صبر دي وکړي تر دې چي تاکل سوې موده [نېټه] تېره سي بيا دي يې واخلي [ومراده الصبر عن الأخذ، أما الطلب عليه (لازم) في الحال حتى لو سكت عنه، بطلت شفعته عند أبي حنيفة ومحمد، خلافا لقول أبي يوسف رَحِمَهُ اللهُ الآخر*] وَلَيْسَ لَهُ أَنْ يَأْخُذَهَا فِي الْحَالِ بِثَمَنٍ مُؤَجَّلٍ او هغه ته دا اختيار نسته چي في الحاله

* القول الراجح: قول أبي حنيفة ومحمد رَحِمَهُمَا اللهُ، قال العلامة ابن نجيم رَحِمَهُ اللهُ: قوله "أو يصبر" عن الأخذ، أما الطلب فلا بدّ منه في الحال، حتى لو سكت ولم يطلب، بطلت شفعته عند أبي حنيفة ومحمد رَحِمَهُمَا اللهُ، وبه كان يقول أبو يوسف أولًا ثم رجع عنه وقال لا تبطل الشفعة (البحر ج:۸، ص:۲۴۵)، فالراجح فيه قول الطرفين، انظر للتوضيح [القول الراجح ج:۲، ص:۲۷۳]

په نښته داره [قرض] ثمن سره هغه دا کور واخلي وَقَالَ زُفَرُ: لَهُ ذٰلِكَ او امام زفر رَحِمَهُ الله فرمايي: چي هغه ته د دې اختيار ستّه وَهُوَقَوْلُ الشَّافِعِيّ فِي الْقَدِيْمِ او همدا د امام شافعي رَحِمَهُ الله مخکينی قول دی لِأَنَّ كَوْنَهُ مُؤَجَّلًا وَصْفٌ فِي الثَّمَنِ ځکه چي د ثمن مؤجل کېدل [قرض والا کېدل] په ثمن کي يو وصف دی كَالزِّيَافَةِ لکه کوټه والی [چي يو وصف دی] وَالْأَخْذُ بِالشُّفْعَةِ بِهِ او په شفعه کي اخيستل د ثمن په بدله کي دي [يعني مشفوعه کور په همدې ثمن سره اخيستل کيږي] فَيَأْخُذُ بِأَصْلِهِ وَ وَصْفِهِ نو ځکه شفيع به [مشفوعه کور] په اصل ثمن او د هغه په وصف دواړو سره اخلي كَمَا فِي الزُّيُوْفِ لکه څرنګه چي په کوټه سکو کي کيږي.

**اللغات:** ﴿مؤجّل﴾ د تفعيل د باب مفعول دی: مؤخر کړی سوی، نښته داره، هغه شی چي د هغه لپاره څه مودت وټاکل سي، قرض والا (پور والا)، ﴿حال﴾ اوسنی، نغد، فوري، ﴿ينقضي﴾ د انفعال د باب مضارع ده: تېرېدل، ختمېدل، ﴿زيافة﴾ کوټه والی، کوټه کېدل (ناچله کېدل)، ﴿زيوف﴾ کوټه دراهم او کوټه پيسې کوم چي نه چليږي.

**تشريح:** تر اوسه خو د نغدي معاملې بيان وو (چي څوک په نغدو پيسو [نقد ثمن] يا نغد سامان سره کور خرڅ کړي يعني له مشتري څخه سمدستي ثمن واخلي)، اوس له دې ځايه د قرض صورت بيانوي، فرمايي چي که څوک په قرض والا ثمن سره پر بل چا کور خرڅ کړي مثلاً يو کال مودت او نښته وټاکي (چي يو کال وروسته به ثمن راکوې)، اوس که د دغه کور شفيع د هغه رانيول او اخيستل وغواړي، نو څه به کوي، په دې سلسله کي دوه مذهبه دي: (۱)... د احنافو وينا دا ده چي په داسي مسئلو کي د شفيع لپاره صرف دوې لاري دي: ① يا هغه دي نغد قيمت اداء کړي او مشفوعه کور دي واخلي، ② يا د ټاکل سوي مودت (مثلاً ديوه کال) تر تېرېدو پوري دي انتظار وکړي، يعني د احنافو په نېز دغه شفيع ته دا اختيار نسته چي د مشتري په څېر دئ هم فی الحاله په قرض ثمن سره دا کور واخلي.

(۲)... دويم مذهب د امام زفر رَحِمَهُ الله دی او همدا د امام شافعي رَحِمَهُ الله قول قديم دی چي شفيع فی الحاله دا کور د قرض ثمن په عوض کي اخيستلای سي.

د امام زفر رَحِمَهُ الله دليل دا دی چي د ثمن مؤجل کېدل (يعني نښته داره او قرض والا کېدل) دا د ثمن وصف دی او وصف د موصوف تابع وي، او شفعه (مشفوعه کور) د همدې ثمن په ذريعه اخيستل کيږي، لهذا په کوم وصف سره چي ثمن پر مشتري لازم وه، په هماغه وصف سره به دا ثمن پر شفيع

هم لازم وي، او تاسو ته معلومه ده چي په دې مسئله کي پر مشتري مؤجل (قرض والا) ثمن لازم وه، يعني د مشتري په حق کي د ثمن اداينه د قرض په وصف سره متصف وه، نو ځکه د شفيع په حق کي به هم دا وصف ثابتيږي او هغه ته به هم په قرض ثمن سره في الحاله د دې کور د اخيستلو اختيار وي.

اصلاً د امام زفر رَحِمَهُ الله مسلک د مخکي په څېر دلته هم مبني بر قياس دی، هغه فرمايي چي څرنګه د دراهمو کوټه والی يو وصف دی، همداسي د ثمن مؤجل والی هم د ثمن يو وصف دی، مثلاً که څوک په کوټه دراهمو سره کور رانيسي، نو شفيع ته په کوټه دراهمو سره د هغه کور د اخيستلو حق سته، لهذا کله چي کوټه والی يو صفت دی او په دې صفت کي شفيع او مشتري دواړه برابر دي، نو په مؤجل کي دواړه څنګه نه سي برابرېدلای! ښکاره خبره ده چي په دې کي به هم دواړه برابر وي، ځکه دا هم يو وصف دی.

## زموږ دليل

وَلَنَا: أَنَّ الْأَجَلَ إِنَّمَا يَثْبُتُ بِالشَّرْطِ او زموږ دليل دا دی: چي اجل په شرط سره ثابتيږي وَلَا شَرْطَ فِيمَا بَيْنَ الشَّفِيعِ وَالْبَائِعِ أَوِ الْمُبْتَاعِ او د شفيع او بائع يا مشتري تر مينځ هيڅ شرط نسته وَلَيْسَ الرِّضَاءُ بِهِ فِي حَقِّ الْمُشْتَرِيْ رِضَاءً بِهِ فِي حَقِّ الشَّفِيعِ او د مشتري په حق کي په قرض راضي کېدل د شفيع په حق کي په قرض راضي کېدل نه دي [په بله وينا: او د مشتري په حق کي (د بائع) په راضي کېدلو سره د شفيع په حق کي راضي کېدل نه لازميږي] لِتَفَاوُتِ النَّاسِ فِي الْمَلَاءَةِ ځکه چي په مالداری کي خلک مختلف وي وَلَيْسَ الْأَجَلُ وَصْفَ الثَّمَنِ او أجل د ثمن وصف نه دی لِأَنَّهُ حَقُّ الْمُشْتَرِي ځکه چي أجل د مشتري حق دی وَلَوْ كَانَ وَصْفًا لَهُ او که چيري أجل د ثمن وصف وای لَتَبِعَهُ فَيَكُونُ حَقًّا لِلْبَائِعِ كَالثَّمَنِ نو هغه به د ثمن تابع کېدای نو د ثمن په څېر به هغه هم د بائع حق کېدای وَصَارَ كَمَا إِذَا اشْتَرَى شَيْئًا بِثَمَنٍ مُؤَجَّلٍ ثُمَّ وَلَّاهُ غَيْرَهُ او دا داسي سوه لکه يو څوک چي د قرض ثمن په عوض کي يو شی رانيسي بيا پر بل چا هغه د بيع توليه په توګه خرڅ کړي لَا يَثْبُتُ الْأَجَلُ إِلَّا بِالذِّكْرِ نو [په داسي صورت کي] له ذکر کولو [او صراحت کولو] څخه بغير أجل نه ثابتيږي كَذَا هٰذَا نو همداسي دا [د شفعي مسئله] هم ده.

**اللغات**: ﴿أجل﴾ تاکل سوی مودت، نېټه. ﴿مبتاع﴾ د افتعال د باب فاعل دی: رانيونکی، مشتري، ﴿ملاءة﴾ مصدر دی، مالداره کېدل. مالداري. ﴿ولّاه﴾ د تفعيل د باب ماضي ده: بيع توليه کول، د توليه په توګه ورکول.

**تشریح**: په تېر عبارت کي د مخکنۍ مسئلې په هکله د امام زفر رَحِمَهُ الله دلیل بیان سو. اوس په دې عبارت کي زموږ د نورو احنافو (امام صاحب او صاحبینو) دلیل بیان سوی دی، حاصل د دلیل دا دی چي أجل د ثمن وصف نه دی، بلکي دا خو یو زائد شی دی کوم چي په شرطولو (شرط لګولو) سره ثابتیږي، او دلته دا شرط د بائع او مشتري تر مینځ دی، لهذا فقط د همدوی په حق کي به ثابتیږي، پاته سو د شفیع او بائع یا د مشتري او شفیع تر مینځ دا ډول هیڅ شرط نه دی لګول سوی، نو ځکه د شفیع په حق کي به دا ښکاره کیږي هم نه، او هغه ته به فی الحاله صرف د نغد قیمت په عوض کي د کور اخیستلو اختیار وي.

ولیس الرضاء إلخ: په دې سره دویم دلیل بیانوي، حاصل یې دا دی چي په شفعه کي مبادلةُ المال بالمال کیږي او د مبادلة المال بالمال په صورت کي د دواړو عاقدینو رضاء ضروري وي، او دا معلومه خبره ده چي یو څوک یو چا ته په قرض ورکولو راضي وي خو بل چا ته په قرض ورکولو راضي نه وي، ځکه چي په غناء او مالداری کي د خلکو حالات مختلف وي، کېدای سي چي بائع چا ته قرض ورکوي، هغه دي غریب وي، نو د داسي صورت حال په خاطر دا ضروري نه ده چي که بائع په یو وجه مشتري ته په قرض ورکولو راضي وي، نو هغه دي شفیع ته هم په قرض ورکولو راضي وي، حال دا چي رضاء ضروري ده، نو ځکه د شفیع په حق کي په قرض ثمن سره فی الحاله د کور اخیستلو هیڅ صورت نسته.

ولیس الأجل إلخ: په دې سره د امام زفر رَحِمَهُ الله د قول او قیاس جواب ورکوي، هغه ویلي وه چي أجل (مؤجل کېدل) د ثمن وصف دی، ... حاصل د جواب دا دی چي أجل د ثمن وصف ګرځول صحیح نه دي، ځکه که دا د ثمن وصف وي، نو څرنګه چي ثمن د بائع حق دی، همداسي به أجل هم د بائع حق وای، ځکه د شي وصف په هر حال کي د هغه شي تابع کیږي، حال دا چي أجل د مشتري حق دی، نه د بائع، لهذا کله چي دا د بائع حق نه دی، نو بیا هغه د ثمن تابع کول او د ثمن وصف ورته ویل هم صحیح نه دي.

وصار کما إلخ: په دې سره د پورتنۍ مسئلې یو مثال پېشوي، حاصل یې دا دی چي که څوک یو شی په قرض رانیسي او بیا یې د بیع تولیه په توګه پر بل مشتري (رانیونکي) خرڅ کړي، نو څرنګه چي دلته د اول مشتري او بائع تر مینځ د أجل او قرض په صراحت سره دا معامله سوې ده، نو ځکه د دوی تر مینځ خو قرض صحیح دی، لېکن د دویم مشتري او دویم بائع (کوم چي اول مشتري دی) تر مینځ د أجل او قرض هیڅ تذکره نه ده سوې، نو ځکه دویم مشتري ته صرف په نغد ثمن سره د هغه شي د اخیستلو اختیار سته، خاص همداسي د شفعي په پورتنۍ مسئله کي هم چي څرنګه د بائع او

مشتري تر مینځ د أجل يادونه سوې ده، نو د مشتري په حق کي خو أجل ثابتيږي، لېکن د بائع او شفيع يا د مشتري او شفيع په معامله کي د أجل هيڅ صراحت او يادونه نه ده سوې، نو ځکه أجل او قرض به هم نه ثابتيږي.

## په قرض سره خرڅ کړی سوی مشفوعه جايداد په نغدو رانيول

ثُمَّ إِنْ أَخَذَهَا بِثَمَنٍ حَالٍّ مِنَ الْبَائِعِ بيا که شفيع دا [مشفوعه] کور د نغد ثمن په عوض کي له بائع څخه واخلي سَقَطَ الثَّمَنُ عَنِ الْمُشْتَرِيْ نو د مشتري له غاړي څخه ثمن ساقطيږي لِمَا بَيَّنَّا مِنْ قَبْلُ د هغه دليل پر بناء کوم مو ړ مخکي بيان کړی وَإِنْ أَخَذَهَا مِنَ الْمُشْتَرِيْ او که شفيع دا کور له مشتري څخه واخلي رَجَعَ الْبَائِعُ عَلَى الْمُشْتَرِيْ بِثَمَنٍ مُؤَجَّلٍ كَمَا كَانَ نو بائع به پر مشتري د مخکي په څېر په قرض ثمن سره رجوع کوي لِأَنَّ الشَّرْطَ الَّذِيْ جَرَى بَيْنَهُمَا لَمْ يَبْطُلْ بِأَخْذِ الشَّفِيْعِ ځکه چي د بائع او مشتري تر مینځ جاري سوی [لګول سوی] شرط د شفيع د [نقداً] اخيستلو په وجه باطل نه سو فَبَقِيَ مُوْجَبُهُ نو د هغه حکم باقي دی فَصَارَ كَمَا إِذَا بَاعَهُ بِثَمَنٍ حَالٍّ وَقَدِ اشْتَرَاهُ مُؤَجَّلًا نو دا داسي سوه لکه يو څوک چي په نغد ثمن سره شی خرڅ کړي حال دا چي هغه په قرض ثمن سره رانيولی وي وَإِنِ اخْتَارَ الِانْتِظَارَ او که شفيع انتظار [او صبر] اختيار کړي لَهُ ذٰلِكَ نو هغه ته د دې اختيار سته لِأَنَّ لَهُ أَنْ لَا يَلْتَزِمَ زِيَادَةَ الضَّرَرِ مِنْ حَيْثُ النَّقْدِيَّةُ ځکه چي هغه ته دا اختيار سته چي د نغد اداء کولو په حيثيت سره اضافي نقصان پر ځان لازم نه کړي.

**اللغات:** ﴿موجب﴾ تقاضا، حکم، ﴿لا يلتزم﴾ د افتعال له بابه د نفي صيغه ده: پر ځان لازمول، پر خپله غاړه اخيستل.

**تشريح:** فرمايي چي که شفيع دا په قرض سره خرڅ کړی سوی کور په نغد ثمن سره واخلي او د هغه دا معامله د بائع سره وسي (يعني بائع ته د مشفوعه کور نغد ثمن [قيمت] ور کړي)، نو په دې صورت کي مشتري له ثمن څخه بري کيږي، دليل مخکي (د باب طلب الشفعه په آخري حصه کي) تېر سوی دی چي د هغه حاصل دا دی چي کله شفيع کور واخيستی نو د مشتري قبضه ممتنع او ناممکنه سوه او د مشتري په حق کي عقد فسخ سو، نو کله چي کرسره عقد فسخ سو، نو هغه به د څه شي ثمن اداء کوي (ځکه د عقد په فسخ کېدلو سره ثمن ساقطيږي)، نو په همدې وجه په پورتني صورت کي د مشتري له ذمې څخه ثمن ساقط سوی دی.

او که شفيع له مشتري څخه دا کور په نغد ثمن سره واخلي (يعني د بائع پر ځای مشتري ته د مشفوعه کور نغد ثمن ورکړي)، نو څرنګه چي په دې صورت کي د بائع ثمن د مشتري پر ذمه قرض وو (ځکه بائع په قرض سره دا کور پر هغه خرڅ کړی وو)، نو ځکه اوس هم دا ثمن د مشتري پر ذمه قرض پاتيږي (لهذا پر هغه لازم نه دي چي في الحاله يې اداء کړي. که څه هم شفيع ته هغه نغد ثمن ورکړی دی)؛ ځکه کله چي د بائع او مشتري په مينځ کي تر يو ټاکل سوي موده پوري د أجل او قرض شرط مذکوره وو (چي ثمن دومره مودت وروسته غواړم تر هغه وخته دي پر تا قرض وي)، نو اوس د شفيع په نغد ثمن سره د دې کور اخيستلو په وجه دا شرط نه ختميږي. بلکي د هغه حکم اوس هم باقي پاتيږي، او کله چي د هغه حکم اوس هم پاته دی، نو د بائع ثمن چي څرنګه مخکي قرض وو، همداسي به اوس هم قرض پاته وي.

د دې مثال داسي دی لکه يو څوک چي له بل چا څخه په قرض يو شی رانيسي او مثلاً پنځه مياشتي مودت و ټاکي (چي مشتري [رانيونکی] به پنځه مياشتي وروسته ثمن ورکوي)، بيا مشتري هغه شی له پنځو مياشتو څخه مخکي پر يو بل چا په نغد ثمن سره خرڅ کړي، نو څرنګه چي اوله معامله په قرض سوې وه. نو ځکه هغه تر پنځو مياشتو پوري هغسي (د مخکي په څېر) په قرض پاتيږي. د اول مشتري د نغد خرڅولو په وجه دا ټاکل سوی مودت نه ختميږي. همداسي د شفعي په پورتنۍ مسئله کي هم چي کله د بائع او مشتري تر مينځ ثمن قرض وو. نو د ټاکل سوي مودت تر تېرېدلو مخکي به ثمن هغسي د مشتري پر ذمه قرض پاته وي. برابره ده شفيع و مشتري ته نغد ثمن ورکړي او که يې نه ورکړي.

وإن اختار إلخ: مخکي ذکر سوه چي که شفيع في الحاله د دې کور رانيول غواړي. نو خو په نغد ثمن سره به يې اخلي. دلته دا ذکر کوي چي که شفيع د بائع او مشتري تر ټاکل سوي موده پوري انتظار کوي. نو هغه ته د دې هم پوره اختيار سته. ځکه کله چي تر مودت تېرېدلو مخکي هم که شفيع کور رانيول غواړي نو نغد ثمن به اداء کوي او تر مودت تېرېدلو وروسته هم داغه قصه ده چي نغد ثمن به اداء کوي (يعني کله چي په دواړو وختونو کي هيڅ فرق نسته چي که هر وخت يې رانيول غواړي نو نغد ثمن به اداء کوي). نو بيا ولي خپل پيسې په دې کور بندوي او پر ځان بې اضافي ضرر اړدي. ځکه د مودت ختمېدلو تر وخته پورې هغه دا پيسې په يو بل فايده من کار کي لګولای سي (چي ګټه او منفعت ځني حاصل کړي). نو په دې وجه شفيع ته اختيار دی چي تر مودت ختمېدلو پوري انتظار وکړي او تر هغه وروسته په نغد ثمن سره دا مشفوعه کور واخلي. في الحاله په نغد سره اخيستل پر هغه لازم نه دي.

## د پورتنۍ مسئلې نور وضاحت

وَقَوْلُهُ فِي الْكِتَابِ ''وَإِنْ شَاءَ صَبَرَ حَتّٰى يَنْقَضِيَ الْأَجَلُ'' مُرَادُهُ الصَّبْرُ عَنِ الْأَخْذِ او په قدوري [متن] کي د امام قدوري رَحِمَهُ الله دا قول "وإن شاء صبر حتى ينقضي الأجل" د دې مراد [د مشفوعه ځای] له اخيستلو څخه صبر کول دي أَمَّا الطَّلَبُ عَلَيْهِ فِي الْحَالِ او کوم چي [د شفعي] طلب کول دي نه هغه

فی الحاله [ضروري] دي حَتّٰى لَوْ سَكَتَ عَنْهُ تر دې چې که شفيع له طلب کولو څخه چپ پاته سي بَطَلَتْ شُفْعَتُهُ عِنْدَ أَبِيْ حَنِيْفَةَ وَمُحَمَّدٍ نو د طرفينو رَحِمَهُمَا اللهُ په نيز د هغه شفعه باطليږي خِلَافًا لِقَوْلِ أَبِيْ يُوْسُفَ الْآخِرِ په خلاف د امام ابو يوسف رَحِمَهُ اللهُ د آخري قول لِأَنَّ حَقَّ الشُّفْعَةِ إِنَّمَا يَثْبُتُ بِالْبَيْعِ ځکه چې د شفعي حق خو په بيع سره ثابتيږي وَالْأَخْذُ يَتَرَاخٰى عَنِ الطَّلَبِ او اخيستل له طلب څخه مؤخر [وروسته] وي [ځکه اول د شفعي طلب کيږي او بيا وروسته مشفوعه کور اخيستل کيږي] وَهُوَ مُتَمَكِّنٌ مِنَ الْأَخْذِ فِي الْحَالِ بِأَنْ يُؤَدِّيَ الثَّمَنَ حَالًا او شفيع فی الحاله پر اخيستلو قادر دی په دې توګه چې نغد ثمن اداء کړي فَيُشْتَرَطُ الطَّلَبُ عِنْدَ الْعِلْمِ بِالْبَيْعِ نو ځکه په بيع د خبريدلو په وخت کي به صرف طلب شرط وي [نه اخيستل].

**اللغات**: ﴿ينقضي﴾ د انفعال د باب مضارع ده: مودت تيريدل، ختميدل. ﴿يتراخٰى﴾ د تفاعل د باب مضارع ده: مؤخر کيدل، وروسته کيدل.

**تشريح**: مخکي چې په متن کي د امام قدوري رَحِمَهُ اللهُ دا قول "وَإِنْ شَاءَ صَبَرَ حَتّٰى يَنْقَضِيَ الْأَجَلُ" ذکر سو، صاحب د هدايې رَحِمَهُ اللهُ دلته د هغه صحيح مفهوم او مطلب بيانوي فرمايي چې د دغه عبارت مطلب دا دی چې شفيع دې د مودت تيريدلو (ختميدلو) تر وخته پوري د مشفوعه کور له اخيستلو څخه صبر وکړي، دا يې مطلب نه دی چې د شفعي له طلب څخه دې صبر او منع وکړي (د شفعي طلب دې نه کوي)، بلکي طلب خو به په بيع د خبريدلو سره سمدستي کوي (يعني چې کله هم شفيع په دې خبر سي چې کور خرڅ سو، نو سمدستي به د شفعي طلب کوي) او دا سمدستي طلب کول د طرفينو رَحِمَهُمَا اللهُ په نيز ضروري دي، لهذا که شفيع څه وخت له هغه څخه چپ پاته سي او غفلت وکړي، نو د هغه حق شفعه باطليږي او ختميږي، همدا د امام ابو يوسف رَحِمَهُ اللهُ مخکينی قول دی.

بيا په آخر کي امام ابو يوسف رَحِمَهُ اللهُ له خپل دغه قول څخه اعراض وکړی او د شفيع لپاره يې له طلب څخه د منع کيدلو اجازت ورکړی، او د هغه د دې آخري قول دليل دا دی چې په شفعه کي اخيستل اصل دي، نه طلب کول، او شفيع په دې وخت کي (يعني د مودت تر ختميدو مخکي) پر اخيستلو قادر نه دی، لهذا د هغه د طلب څه معنی !، ځکه چې په طلب سره د هغه مقصود يعني (د مشفوعه کور) اخيستل نه حاصليږي، نو بيا هغه لره د طلب کولو هم ضرورت نسته.

لأن حق الشفعة إلخ: په دې سره د طرفينو رَحِمَهُمَا الله دليل ذکر کوي، حاصل يې دا دی چې نفسِ شفعه خو په بيع سره ثابتيږي او په بيع د خبرېدلو په وخت کې فوراً (سمدستي) د شفعې طلب کول ضروري دي، لېکن تر طلب وروسته فوراً د شفعې (مشفوعه کول) اخيستل ضروري نه دي، ځکه چې ځينې وخت داسې وي چې له طلب څخه وروسته شفيع ته يو عذر پېښ سي او هغه پر فوراً اخيستلو قادر نه وي. لهذا کله چې شفعه اخيستل له طلب څخه متأخر کېدای سي، نو د مودت تېرېدلو تر وخته پورې د هغه په متأخر کېدلو کې هيڅ حرج نسته. په همدې وجه مونږ د طلب د فوراً واجبېدلو او د تأخير فی الأخذ قائل يو.

وهو متمکن من الأخذ إلخ: دا د امام ابو يوسف رَحِمَهُ الله د دليل جواب دی، د هغه دليل دا وو چې کله اوس شفيع (د مشفوعه کور) پر اخيستلو قادر نه دی، نو د هغه طلب کول بې ځايه او بې فايدې دي، نو په جواب فرمايي کې چې داسې نه ده چې هغه فی الحاله پر اخيستلو قادر نه دی، ځکه تاسو لږ غور وکړئ! چې که شفيع نغد ثمن اداء کړي، نو فی الحاله هغه څوک له اخيستلو څخه منع کولای سي (ځکه تر ثمن اداء کولو وروسته سمدستي هغه د مشفوعه کور مالک کيږي)، لهذا کله چې هغه فی الحاله پر اخيستلو قادر دی، نو د هغه لپاره به طلب هم ضروري وي، کنې په طلب کې په تأخير او ځنډ کولو سره گرسره د هغه حق باطليږي.

## د شراب يا خنزير په بدله کې د خرڅ کړی سوي جايداد د شفعې بيان

قَالَ: وَإِذَا اشْتَرَى ذِمِّيٌّ بِخَمْرٍ أَوْ خِنْزِيرٍ دَارًا فرمايي: او کله چې يو ذمي د شراب يا خنزير په عوض کې کور رانيسي وَشَفِيعُهَا ذِمِّيٌّ او د هغه کور شفيع هم ذمي وي أَخَذَهَا بِمِثْلِ الْخَمْرِ وَقِيمَةِ الْخِنْزِيرِ نو دا ذمي شفيع به د شرابو په مثل او د خنزير په قيمت سره دا کور اخلي لِأَنَّ هٰذَا الْبَيْعَ مَقْضِيٌّ بِالصِّحَّةِ فِيمَا بَيْنَهُمْ ځکه د ذميانو تر مينځ د داسې بيع د صحيح والي فيصله سوې ده [يعني د شراب او خنزير بيع د ذميانو په خپل آپس کې شرعاً صحيح ده] وَحَقُّ الشُّفْعَةِ يَعُمُّ الْمُسْلِمَ وَالذِّمِّيَّ او د شفعې حق مسلمان او ذمي دواړو لره عام دی وَالْخَمْرُ لَهُمْ كَالْخَلِّ لَنَا وَالْخِنْزِيرُ كَالشَّاةِ او شراب د دوی لپاره داسې دي لکه زموږ لپاره سرکه او خنزير لکه پسه فَيَأْخُذُ فِي الْأَوَّلِ بِالْمِثْلِ وَالثَّانِي بِالْقِيمَةِ نو ځکه په اول صورت کې به شفيع د مثل په عوض کې او په دويم صورت کې د قيمت په عوض کې [مشفوعه کور] اخلي.

**اللغات**: ﴿خمر﴾ شراب. ﴿مقضي﴾ د ضرب د باب مفعول دی: فيصله کړی سوی. ﴿شاة﴾ اسمِ جنس دی، پسه (مږ)، مېږه، سېرلی، بزه ټولو ته علی الانفراد شَاة ويل کيږي او مذکر او مؤنث دواړو لره

شامل دي، صاحب د معجم يې داسي تعريف کړی دی: " الشاة: الواحدة من الغنم، للذکر والانثى، ضأناً کانت أو معزاً". (معجم لغة الفقهاء)

**تشريح : صورت د مسئلې**: دا دی چي ذمي يو کور رانيوی او د دې کور شفيع هم ذمي دی، اوس دلته دوه صورتونه دي: ① که ذمي مشتري دا کور د شرابو په عوض کي رانيولی وي، نو ذمي شفيع به هم دا کور صرف د شرابو په عوض کي اخلي، ځکه چي شراب له ذوات الأمثال څخه دي او مخکي ذکر سوه چي حتی الإمکان به مشتري ته ثمنِ مثلي ورکول کيږي، لهذا کله چي په دې صورت کي د مثل ورکول ممکن دي، نو ذمي شفيع به د شرابو د مثل په عوض کي له ذمي مشتري څخه مشفوعه کور اخلي.

② او که مشتري دا کور د خنزير په عوض کي رانيولی وي، نو څرنګه چي خنزير له ذوات الأمثال څخه نه، بلکي له ذوات القيم څخه دی، نو په دې صورت کي مشتري ته د خنزير مثل ورکول ناممکن دي، لهذا ذمي شفيع به د خنزير د قيمت په عوض کي دا کور اخلي.

څرنګه چي په دې مسئله کي مشتري او شفيع دواړه ذميان دي او شراب د دوی لپاره داسي دي لکه زموږ لپاره سرکه، همدارنګه خنزير د ذميانو لپاره داسي دی لکه زموږ لپاره پسه او بزه (وزه)، او دا معلومه خبره ده چي که د دوو مسلمانانو ترمينځ د سرکې يا پسه بيع او معامله وسي، نو څرنګه چي د سرکې مثل موجود دی، لهذا مسلمان شفيع به په نفسِ سرکه سره مشفوعه کور اخلي، او پسه له ذوات القيم څخه دی، نو ځکه د پسه د قيمت په عوض کي به مشفوعه کور اخلي. خاص همداسي د خمر او خنزير مسئله د ذميانو په حق کي ده، لهذا په اول صورت کي به ذمي شفيع د خمر (شرابو) په مثل سره او په دويم صورت کي د خنزير په قيمت سره دا مشفوعه کور اخلي.

## د پورتنی مسئلې نور وضاحت

قَالَ: وَإِنْ كَانَ شَفِيْعُهَا مُسْلِمًا فرمايي: او که د دې کور شفيع مسلمان وي أَخَذَهَا بِقِيمَةِ الْخَمْرِ وَالْخِنْزِيرِ نو دا مسلمان شفيع به د شراب او خنزير په قيمت سره کور اخلي [يعني د دې شيانو قيمت به ورکوي] أَمَّا الْخِنْزِيرُ فَظَاهِرٌ کوم چي خنزير دی نو دا ښکاره ده [چي د هغه قيمت به ورکوي] وَكَذَا الْخَمْرُ او همدارنګه شراب لِامْتِنَاعِ التَّسَلُّمِ وَالتَّسْلِيمِ فِي حَقِّ الْمُسْلِمِ ځکه چي د مسلمان په حق کي د شرابو اخيستل او ورسپارل [ورکول] ممنوع دي فَالْتَحَقَ بِغَيْرِ الْمِثْلِيِّ نو شراب د غير مثلي سره ملحق سوه [يعني د مسلمان په حق کي مثلي پاته نه سوه بلکي له ذوات القيم څخه سوه] وَإِنْ كَانَ شَفِيعُهَا مُسْلِمًا وَذِمِّيًا او

كه د دې كور شفيع [د شفعي طلب كونكى] مسلمان او ذمي دواړه وي أَخَذَ الْمُسْلِمُ نِصْفَهَا بِنِصْفِ قِيمَةِ الْخَمْرِ نو مسلمان به د دې كور نيمه حصه د شرابو د نيم قيمت په عوض كې اخلي وَالذِّمِّيُّ نِصْفَهَا بِنِصْفِ مِثْلِ الْخَمْرِ او ذمي به د هغه نيمه حصه د نيمو شرابو په عوض كې اخلي اِعْتِبَارًا لِلْبَعْضِ بِالْكُلِّ پر كُل د بعضي په قياسولو سره فَلَوْ أَسْلَمَ الذِّمِّيُّ بيا كه ذمي مسلمان سي أَخَذَهَا بِنِصْفِ قِيمَةِ الْخَمْرِ نو هغه به دا كور د شرابو د نيم قيمت په عوض كې اخلي لِعَجْزِهِ عَنْ تَمْلِيكِ الْخَمْرِ ځكه چي [اوس] هغه له مالك جوړولو [وركولو] څخه عاجز دى وَبِالْإِسْلَامِ يَتَأَكَّدُ حَقُّهُ لَا أَنْ يَبْطُلَ او په اسلام راوړلو سره د هغه حق نور مضبوطيږي، نه دا چي باطليږي فَصَارَ كَمَا إِذَا اشْتَرَاهَا بِكُرٍّ مِنْ رُطَبٍ نو داسي سو لكه د تازه خرماوو په عوض كې چي كور رانيسي فَحَضَرَ الشَّفِيعُ بَعْدَ انْقِطَاعِهِ بيا د تازه خرماوو له نېستي كېدلو څخه وروسته شفيع راسي يَأْخُذُ بِقِيمَةِ الرُّطَبِ نو هغه به د تازه خرماوو د قيمت په عوض كې [كور] اخلي كَذَا هٰذَا همداسي دا هم دى.

**اللغات:** ﴿امتناع﴾ د افتعال د باب مصدر دى: منع كېدل (ممنوع كېدل)، ناممكن كېدل. ﴿تسلّم﴾ د تفعّل د باب مصدر دى: اخيستل. ﴿تسليم﴾ د تفعيل د باب مصدر دى: ورسپارل. ﴿كُرّ﴾ دا په عربو كې د يو غټې پيمانې (لوښي) نوم وو چي په هغه سره به غنم، اوربشې او داسې نوره غله پيمانه كېده. مخكې چي د هدايې په حاشيه كې د دې كوم مقدار ليكل سوى وو، د په هغه اعتبار سره يو كُر تقريباً (۲۵۴۷) كېلو كيږي (يعني ۲۵۴۷ سېره په پاكستاني سېر سره)، او د قفيز په حساب شپېته (۶۰) قفيزه كيږي، او بعضو ويلي دي چي يو كُر شلو ښېت قفيزه كيږي. ﴿رطب﴾ تازه او لنده خرما (خيشته خرما)، وچې خرما ته تَمر ويل كيږي. ﴿انقطاع﴾ د انفعال د باب مصدر دى: قطع كېدل (پرېكېدل)، بندېدل، ختمېدل و نيستي كېدل.

**تشريح:** مخكې خو د دې حكم بيان سو چي په شراب يا خنزير سره د رانيول سوي كور شفيع هم ذمي وي، نو هغه به د مثل خمر او د خنزير د قيمت په عوض كې كور اخلي. دلته دا رابنيي چي كه د دې كور شفيع مسلمان وي، نو هغه به د خمر او خنزير په دواړو صورتونو كې د خمر او خنزير د قيمت په عوض كې دا مشفوعه كور اخلي: ځكه خنزير خو ښكاره خبره ده چي له ذوات القيم څخه دى. او خمر كه څه هم مثلي دى، لېكن څرنګه چي د يو مسلمان لپاره د هغه راكړه وركړه جائز نه ده. نو ځكه

د مسلمان په حق کي خمر هم له ذوات القيم څخه شمېرل سوی دی چي له ده څخه به د شرابو قيمت اخيستل کيږي.

بيا وروسته دا رابنيي چي که د دې خرڅ کړی سوي کور دوه شفيع ګان وي، له هغو څخه يو مسلمان وي او بل ذمي وي، نو په دې صورت کي به مسلمان شفيع د خمر او خنزير د نيم قيمت په عوض کي نيم کور اخلي؛ ځکه خنزير خو له مخکي څخه ذات القيمة دی، او پاته سو شراب نو څرنګه چي مسلمان د هغه ورکړه راکړه نه سي کولای، نو د مسلمانانو په حق کي خمر هم ذاتُ القيمة دي (يعني له ذواتُ القيم څخه دي). نو ځکه مسلمان شفيع به دلته د خمر او خنزير په نصف قيمت سره نيم کور اخلي. او دويم شفيع کوم چي ذمي دی، د هغه لپاره حکم دا دی چي هغه به د شرابو په صورت کي د نيمو شرابو مثل ورکوي او د خنزير په صورت کي به د هغه نيم قيمت ورکوي او نيم کور به اخلي.

د دې فرق وجه دا ده چي خنزير خو د ذمي او مسلمان دواړو په حق کي ذاتُ القيمة دی، لېکن خمر صرف د مسلمان په حق کي ذاتُ القيمة دي او د ذمي په حق کي مثلي دی (لکه مخکي چي ذکر سوه)، نو په همدې حساب سره په شفعه کي به مسلمان د دواړو قيمت ورکوي او ذمي به د يوه قيمت او د بل مثل ورکوي؛ اعتباراً للبعض بالکل يعني ځکه چي که مسلمان يوازي د دې ټوله کور شفيع وای، نو په دې صورت کي به هم هغه د خمر او خنزير ټوله قيمت ورکولای يا که يوازي ذمي د دې کور شفيع وای، نو د خمر په صورت کي مثل او د خنزير په صورت کي به يې د هغه قيمت ورکولای، نو همداسي دا حکم په هغه وخت کي هم دی کله چي مسلمان او ذمي دواړه د بعضي کور مثلاً د نيمايي، نيمايي کور شفيع ګان وي.

فلو أسلم إلخ: فرمايي که د مسلمان سره ذمي شفيع هم اسلام راوړي او تر اوسه هغه مشفوعه کور نه وي اخيستی، نو په دې صورت کي چي څرنګه د مسلمان لپاره د نيمو شرابو قيمت ورکول ضروري وه، همداسي به دئ هم اوس د نصف خمر قيمت ورکوي، نه مثلِ خمر؛ ځکه د اسلام راوړلو په وجه د هغه په حق کي د شرابو معامله حرامه سوه، او پاته سو د اسلام په وجه د هغه حق (حقِ شفعه) نه باطليږي، بلکي نور مضبوطيږي (ځکه د ذمي په هکله د بعضو قول دا دی چي هغه ته حقِ شفعه نه حاصليږي، لېکن تر اسلام راوړلو وروسته هغه ته خامخا حاصليږي). نو ځکه اوس به دا نوی مسلمان د شرابو د قيمت په عوض کي خپله حصه اخلي.

(وبالإسلام يتأكد إلخ: صاحب د احسن الهدايې وايي چي اصلاً دا عبارت د يو مقدر اعتراض جواب دی، اعتراض دا دی چي که د دوو غير مسلم کسانو (مثلاً د دوو ذميانو) تر مينځ بيع وسي او په ثمن کي شراب وټاکل سي، بيا له قبضې څخه مخکي يو عاقد (ذمي) مسلمان سي، نو بيع خو فسخ کيږي او ختميږي، لهذا همداسي دلته هم چي کله شفيع اسلام راوړي، نو د هغه حقِ شفعه ختمېدل پکار دي، خو دلته حکم داسي نه دی، د دې څه وجه ده؟.

د جواب حاصل دا دی چي شفعه پر بيع قياسول صحيح نه دي: ځکه تر اسلام راوړلو وروسته د يو مسلمان لپاره د شرابو بيع او راکړه ورکړه جائز نه ده او څرنګه چي دلته شراب په ثمن کي ټاکل سوي دي. نو ځکه دا مسلمان عاقد خو نه پر هغه قبضه کولای سي او نه بل څوک د هغه مالک کولای سي. لهذا کله چي په دې صورت کي د بيع مقصد فوت سو (يعني د بائع لپاره پر مبيع او د مشتري لپاره پر ثمن قبضه کول). نو ځکه بيع فسخ کړی سوه. خو د بيع په فسخ سره د شفعي فسخ کېدل نه لازميږي. ځکه شفعه خو تر بيع وروسته سمدستي ثابتيږي او څرنګه چي د بيع په وخت کي بائع او مشتري دواړه په يوه مذهب وه. نو ځکه اصل بيع صحيح سوې وه او په هماغه وخت سمدستي شفعه واجب سوې وه. لهذا وروسته د بيع فسخ کيدل پر شفعه هيڅ اثر نه کوي. همدې ته يې ويلي دي چي په اسلام سره خو حق مؤکد او مستحکم کيږي، باطليږي نه).

فصار كما إلخ: په دې سره د ذمي د اسلام راوړلو پر صورت يو مثال پېشوي، حاصل يې دا دی چي که مشتري د يوه کُر تازه خرماوو په عوض کي کور رانيسي، او شفيع په هغه وخت کي موجود نه وي، کله چي شفيع راسي او د کور اخيستل وغواړي، نو هغه مهال په بازار کي تازه خرماوي نه ترلاسه کيږي، نو څرنګه چي اوس دا شفيع د خرماوو له ورکولو څخه عاجز او قاصر سو. نو ځکه اوس حکم دا دی چي دئ به د خرماوو په بدله کي د خرماوو قيمت ورکوي او دا مشفوعه کور به اخلي، بالکل همداسي دلته هم چي کله ذمي اسلام راوړی، نو هغه د شرابو له مثل اداء کولو څخه عاجز سو، او له مثل څخه د عاجزه کېدلو په صورت کي قيمت ورکول کيږي، نو ځکه په پورتنی مسئله کي به هغه نوی مسلمان شفيع د شرابو په بدله کي د هغوی قيمت ورکوي او د شرابو د قيمت په عوض کي به مشفوعه کور اخلي.

❀❀❀

# فَصْلٌ

**تشريح:** په دې فصل کې د دې بيان کيږي چې که په مشفوعه جايداد او مشفوعه ځای کې تغيّر و تبدّل راسي مثلاً مشتري يو بل ځای پکښې جوړ کړي نو څه حکم دی؟. او دا ښکاره خبره ده چې عدمِ تغيّر اصل دی او تغيّر عارضي شی دی. نو ځکه يې دا فصل جلا بيان کړی دی.

## په مشفوعه جايداد کې د مشتري د تصرّفاتو بيان

قَالَ: وَإِذَا بَنَى الْمُشْتَرِىْ فِيْهَا أَوْ غَرَسَ ثُمَّ قُضِىَ لِلشَّفِيعِ بِالشُّفْعَةِ فرمايي: او کله چې [په مشفوعه ځمکه کې] مشتري ځای جوړ کړي يا نهالان [نيالګي] پکښې ولګوي بيا د شفيع لپاره د شفعي فيصله وسي فَهُوَ بِالْخِيَارِ إِنْ شَاءَ أَخَذَهَا بِالثَّمَنِ وَقِيمَةِ الْبِنَاءِ وَالْغَرْسِ نو هغه ته اختيار دی که وغواړي نو دا ځمکه دې د ثمن په عوض کې او د جوړ سوي ځای او لګول سوي نهالانو د قيمت په عوض کې واخلي [يعنې د ځمکې قيمت دې هم ورکړي او د بناء او غرس قيمت دې هم ورکړي] وَإِنْ شَاءَ كَلَّفَ الْمُشْتَرِىَ قَلْعَهُ او که وغواړي نو مشتري دې د هغه په کښلو مکلف کړي وَعَنْ أَبِىْ يُوْسُفَ أَنَّهُ لَا يُكَلَّفُ الْقَلْعَ او له امام ابو يوسف رَحِمَهُ الله څخه روايت دی چې مشتري به [د جوړ سوي ځای او نهالانو] په کښلو سره نه مکلف کول کيږي وَيُخَيَّرُ بَيْنَ أَنْ يَأْخُذَ بِالثَّمَنِ وَقِيمَةِ الْبِنَاءِ وَالْغَرْسِ وَبَيْنَ أَنْ يَتْرُكَ [بلکې] شفيع ته به د ثمن او د بناء او نهالانو د قيمت په عوض کې د اخيستلو او پرېښوولو [نه اخيستلو] اختيار ورکول کيږي وَبِهِ قَالَ الشَّافِعِيُّ او همدا امام شافعي رَحِمَهُ الله ويلي دي إِلَّا أَنَّ عِنْدَهُ لَهُ أَنْ يَقْلَعَ وَيُعْطِىَ قِيمَةَ الْبِنَاءِ لېکن د امام شافعي په نېز شفيع ته دا اختيار [هم] سته چې [د بناء...] کښل وکړي او [مشتري ته] د بناء قيمت ورکړي.

**اللغات:** ﴿بَنٰى﴾ د ضرب د باب ماضي ده: جوړول. تعميرول. ﴿غَرَسَ﴾ دا هم د ضرب ماضي ده: نهال (نيالګی) او درخته په ځمکه کې لګول (اينبوول). بوټي اينبوول. ﴿الغَرْس﴾ لګول سوی (اينبوول سوی) نهال او بوټی. لګول سوې درخته. ﴿بناء﴾ جوړ سوی ځای (تعمير کړی سوی). ودانې. عمارت.

﴿كلّف﴾ د تفعيل د باب ماضي ده: مكلف كول، پابند كول، مجبوره كول، تكليف وركول، ﴿قلع﴾ د فتح د باب مصدر دی: کښل، کاږل، (جلا كول او ليري كول).

**تشريح: صورت د مسئلې**: دا دی چې بائع خپله ځمکه خرڅ کړه او مشتري چې هغه رانيوله، نو ځای او وداني يې پکښې جوړه کړه يا يې بوټي او نهالان پکښې ولګول (مخکې تر دې چې په هغه ځمکه کې دیو چا حقِ شفعه ثابت سي)، بيا تر دې وروسته دیو شفيع حقِ شفعه ثابت سو او د هغه لپاره د دې مشفوعه ځمکې فيصله وسوه (چې دا ځمکه دې اوس شفيع ته ورکول سي)، نو شفيع به دغه ځمکه څرنګه اخلي، په دې باره کې درې قوله دي: (۱)... په ظاهر روايت کې دي چې په دې صورت کې شفيع ته دوه اختيار دي: ① يا هغه دې د ځمکې او په ځمکه کې د جوړ سوي ځای او لګول سي نهالانو د پوره قيمت په عوض کې دا مشفوعه ځمکه واخلي، ② يا د ځمکې تر قيمت ورکولو وروسته دې مشتري ته د خپل جوړ سوي ځای او لګول سوي نهالانو د ماتولو او کښلو حکم وکړي او مشفوعه ځمکه دې واخلي.

(۲) دويم قول د امام ابو يوسف رَحِمَهُ الله دی، د هغه په نيز هم شفيع ته دوه اختيار حاصليږي، خو هغه داسې چې ① يا شفيع دې د ځمکې او د ځای او نهالانو (ټولو) د قيمت په عوض کې دا مشفوعه ځمکه واخلي، ② يا بيا دې خپل شفعه پريږدي او د شفعې طلب دې بيا نه کوي، يعني شفيع ته هغه دويم اختيار نسته چې مشتري ته د ځای او داسې نورو د ماتولو او کښلو حکم وکړي.

(۳) درېيم قول د امام شافعي رَحِمَهُ الله دی، د هغه په نيز مشتري ته درې اختيار دي، دوه اختياره خو هغه دي کوم چې امام ابو يوسف رَحِمَهُ الله ورکړي دي چې يا دې د ځمکې او د ځای او نهالانو (ټولو) د قيمت په عوض کې ځمکه واخلي، يا دې شفعه پريږدي، او درېيم د هغه په نيز شفيع ته دا اختيار هم سته چې مشتري ته د ځای او نهالانو د ماتولو او کښلو حکم وکړي خو د دې کښلو په وجه چې د مشتري کوم تاوان وسي، هغه دې شفيع مشتري ته ورکړي.

## د امام ابو يوسف رَحِمَهُ الله دليل

| |
|---|
| لِأَبِي يُوسُفَ أَنَّهُ مُحِقٌّ فِي الْبِنَاءِ دامام ابو يوسف رَحِمَهُ الله دليل دا دی: چې په ځای جوړولو کې مشتري پر حق دی لِأَنَّهُ بَنَاهُ عَلَى أَنَّ الدَّارَ مِلْكُهُ ځکه چې هغه ځای په همدې وجه جوړ کړی دی چې کور [او ځمکه] د هغه ملکيت دی وَالتَّكْلِيفُ بِالْقَلْعِ مِنْ أَحْكَامِ الْعُدْوَانِ او په کښلو سره هغه مکلف کول د ظلم له احکامو څخه دي وَصَارَ كَالْمَوْهُوبِ لَهُ وَالْمُشْتَرِي شِرَاءً فَاسِدًا او دا داسې سو لکه |

هبه کړی سوی شي او په شراء فاسد سره رانيول سوی شی [مثلاً موهوب لهٗ کس د هبې په ځمکه کي يا مشتري د شراء فاسد په ځمکه کي ځای جوړ کړي. نو هغه په کنبلو سره نه مکلف کول کيږي] وَكَمَا إِذَا زَرَعَ الْمُشْتَرِيْ، فَإِنَّهُ لَا يُكَلَّفُ الْقَلْعَ او [داسي سو] لکه مشتري چي [په ځمکه کي] کښت وکړي، نو هغه په کنبلو سره نه مکلف کول کيږي [نو همداسي به دلته شفيع هم په کنبلو سره نه مکلف کيږي] وَهٰذَا لِأَنَّ فِي إِيْجَابِ الْأَخْذِ بِالْقِيمَةِ دَفْعَ أَعْلَى الضَّرَرَيْنِ بِتَحَمُّلِ الْأَدْنٰى او دا ځکه چي د قيمت سره په اخيستلو په واجبولو کي له دوو ضررونو څخه د اعلیٰ [قوي] ضرر ليري کول دي د ادنیٰ [سپک] ضرر په زغملو سره [په بله وينا: او دا په دې وجه چي د قيمت ورکولو په واجبولو کي له دوو تاوانونو څخه د کوچني تاوان په ذريعه د غټ تاوان دفع کول سته] فَيُصَارُ إِلَيْهِ نو ځکه د همدې [قيمت واجبولو] وطرف ته به رجوع کيږي.

**اللغات**: ﴿مُحِق﴾ پر حق، حق بجانب. ﴿بناء﴾ جوړ سوی ځای، وداني، عمارت. ﴿تكليف﴾ د تفعيل د باب مصدر دی: مکلف کول، پابند کول. ﴿عدوان﴾ ظلم و زياتوب، سرکښي. ﴿زرع﴾ د فتح د باب ماضي ده: کرل (تخم کرل)، کښت کول (کښتګري کول). ﴿تحمّل﴾ د تفعّل د باب مصدر دی: برداشت کول، زغمل، پورته کول. ﴿يُصار﴾ د ضرب د باب مضارع مجهوله ده: ګرځېدل. رجوع کول.

**تشريح**: په مخکيني عبارت کي د امام ابو يوسف رَحِمَهُ الله مسلک ذکر سو، اوس دلته د هغه دليل بيانوي، حاصل د دليل يې دا دی چي کله مشتري ثمن اداء کړی او دا ځمکه يې رانيوله نو هغه د دې ځمکي مالک سو، او هر مالک ته په خپل ملکيت کي د تصرّف کولو اختيار وي، لهذا مشتري که ځای او داسي نور پکښي جوړ کړي، نو دا خو د هغه حق دی، ځکه هغه په خپل ملکيت کي جوړ کړی دی، او کله چي هغه په خپل ملکيت کي تصرّف کړی دی، نو بيا هغه ته د ماتولو او کنبلو حکم کول او په دې سره مکلف کول ظلم او نا انصافي ده کوم چي په هيڅ صورت کي هم صحيح نه دي.

وصار كالموهوب إلخ: امام ابو يوسف رَحِمَهُ الله د خپل دليل په تائيد کي درې مثالونه پېش کړي دي، اوس له دې ځايه هغه بيانوي:

①... د اول مثال حاصل دا دیٰ چي که څوک بل چا ته يو شی هبه او هديه کړي او موهوب لهٗ په هغه کي تصرّف وکړي (مثلاً ځمکه ورته هبه کړي او موهوب لهٗ په هغه کي يو ځای جوړ کړي)، نو وروسته که واهب خپل موهوب شی (ځمکه) واپس اخيستل وغواړي، نو هغه ته د دې اختيار نسته چي موهوب لهٗ د خپل تصرّف په ماتولو مکلف کړي (چي ته خپل ځای ونړوه!) او خپل موهوب شی واپس واخلي.

(۲)... که مشتري په شراء فاسد سره یو شی مثلاً ځمکه رانیسي او په هغې کي کور جوړ کړي، نو وروسته بائع ته دا حق او اختیار نسته چي هغه جوړ سوی ځای ونړوي او ځمکه واپس واخلي.

(۳)... که مشتري ځمکه رانیسي او په هغې کي کښت وکري او بیا د هغه ځمکي د شفیع لپاره د ځمکي فیصله وسي، نو شفیع ته دا حق او اختیار نسته چي مشتري د کښت په کښلو مکلف کړي (چي خپل کښت دي وکاږه او زما دا مشفوعه ځمکه ژر خالي کړه!)، بلکي د کښت پخېدلو تر وختـه بـه انتظار کوي، نو تاسو اوګورئ په دغه درېو سره صورتونو کي د قابض (قبضه کونکي) تر تصرف وروسته هغه بل یوه ته دا اختیـار نسـته چي تصرّف ختم کړی او خپـل شی واخلي، همداسي په دغه پـورتنی مسئله کي هم چي کله مشتري ځای او داسي نور جوړ کړه، نو شفیع د هغه په کښلو او ماتولو سره نه سي مکلف کول کېدای، بلکيَ شفیع به یا د دې جوړ سوي ځای او نهالانو سره هغه ځمکه اخلي یا خپل شفعه به پرېږدي.

وهذا لأن إلخ: په دې سره دا رابښیي چي موږ (امام ابو یوسف) چي کوم دا خبره کړې ده چي مشتري به په کښلو سره نه مکلف کوي او شفیع به د جوړ سوي ځای او نهالانو سره سره دا ځمکه اخلي او د هغوی قیمت به ورکوي، د دې وجه دا ده چي په دغه مسئله کي دوه ضررونه سره جمع دي چي په هغوی کي یو قوي ضرر دی او بل سپک دی، که مشتري تـه د هغه د جوړ سوي ځای او نهالانو د ماتولو او کښلو حکم وسي (چي خپل ځای ونړوه یا خپل نهالان وکاږه)، نو د دې ضرر قوي او نقصان یې ډېر دی، او که شفیع ته حکم وسي چي ځای او نهالان د خپل قیمت په عوض کي واخلي، نو د دې ضرر سپک دی، ځکه که څه هم پر شفیع د ځمکي د قیمت سره زائد او اضافي قیمت هم لازمیږي، خو بیر ته د دې قیمت عوض او صله (یعني جوړ سوی ځای او نهالان) هغه ته حاصلیږي، حال دا چي د مشتري لپاره د خپل ځای او نهالانو په کښلو کي سر تر پایه تاوان دی چي هغه ته د دې هیڅ عوض نه حاصلیږي.

لنډه دا چي د مشتري ضرر زیات دی او د شفیع ضرر کم دی، او د فقهي اصول او قاعده دا ده چي د غټ ضرر د لیري کولو او ختمولو لپاره به سپک ضرر برداشت کیږي (إذا اجتمع مفسدتان، رُوعِي أعظمهما ضررًا بارتكاب أخفّهما)، نو ځکه همدا طریقه به دلته اختیارول کیږي چي له غټ ضرر څخه مشتري د ساتلو لپاره به شفیع ته حکم کیږي چي ته د جوړ سوي ځای او لګول سوي نهالانو قیمت اداء کړه او دا مشفوعه ځمکه واخله، کنې شفعه پرېږده!.

## د ظاهر روايت دليل او د امام ابو يوسف رَحِمَهُ الله د قياس جواب

وَوَجْهُ ظَاهِرِ الرِّوَايَةِ او د ظاهر روايت دليل دا دی أَنَّهُ بَنٰى فِيْ مَحِلٍّ تَعَلَّقَ بِهِ حَقٌّ مُتَأَكِّدٌ لِلْغَيْرِ مِنْ غَيْرِ تَسْلِيطٍ مِنْ جِهَةِ مَنْ لَهُ الْحَقُّ چي مشتري په داسي محل کي ځای جوړ کړی دی چي د هغه سره د بل [حقدار] کس [يعني د شفيع] مضبوط حق متعلق دی، د حقدار کس له طرفه له څه تسليط څخه بغير [يعني حقدار کس (چي هغه دلته شفيع دی) و مشتري ته پر ځای جوړولو تسلط او قدرت نه دی ورکړی]

فَيُنْقَضُ نو ځکه به هغه ماتول کيږي كَالرَّاهِنِ إِذَا بَنٰى فِي الْمَرْهُوْنِ لکه راهن چي په مرهون ځای کي يو ځای جوړ کړي وَهٰذَا لِأَنَّ حَقَّهُ أَقْوٰى مِنْ حَقِّ الْمُشْتَرِيْ او دا ځکه چي د شفيع حق د مشتري له حق څخه زيات قوي دی لِأَنَّهُ يَتَقَدَّمُ عَلَيْهِ ځکه چي شفيع پر مشتري مخکي دی وَلِهٰذَا يُنْقَضُ بَيْعُهُ وَهِبَتُهُ وَغَيْرُهُ مِنْ تَصَرُّفَاتِهِ په همدې وجه د مشتري بيع، هبه او د هغه نور تصرفات ماتول کيږي

بِخِلَافِ الْهِبَةِ وَالشِّرَاءِ الْفَاسِدِ عِنْدَ أَبِيْ حَنِيْفَةَ په خلاف د هبې او شراء فاسد د امام صاحب رَحِمَهُ الله په نيز لِأَنَّهُ حَصَلَ بِتَسْلِيطٍ مِنْ جِهَةِ مَنْ لَهُ الْحَقُّ ځکه چي دا [په موهوبه ځمکه او بالشراء الفاسد رانيول سوې ځمکه کي ځای جوړول] د حقدار کس له طرفه د تسليط په وجه حاصل سوي دي [يعني موهوب له او مشتري ته خو د همدې حقدار کس له طرفه پر تصرف کولو (ځای جوړولو) تسلط او قدرت حاصل سوی دی]

وَلِأَنَّ حَقَّ الِاسْتِرْدَادِ فِيْهِمَا ضَعِيفٌ او ځکه چي په هبه او شراء کي د واپس اخيستلو حق ضعيف دی وَلِهٰذَا لَا يَبْقٰى بَعْدَ الْبِنَاءِ په همدې وجه د واپس اخيستلو حق تر ځای جوړولو وروسته ختميږي وَهٰذَا الْحَقُّ يَبْقٰى او دغه حق [حق شفعه تر ځای جوړولو وروسته هم] باقي پاتيږي فَلَا مَعْنٰى لِإِيجَابِ الْقِيمَةِ نو قيمت واجبولو لره هيڅ معنیٰ نسته [او دا بې ځايه خبره ده] كَمَا فِي الِاسْتِحْقَاقِ لکه د استحقاق په صورت کي [چي پر مستحق کس قيمت نه واجبيږي] وَالزَّرْعُ يُقْلَعُ قِيَاسًا وَإِنَّمَا لَا يُقْلَعُ اسْتِحْسَانًا او کښت خو د قياس په اعتبار سره کښل کيږي لېکن د استحسان په توګه هغه نه کښل کيږي لِأَنَّ لَهُ نِهَايَةً مَعْلُومَةً ځکه چي د کښت انتهاء معلومه ده [چي هغه فقط څو مياشتي پاتيږي] وَيَبْقٰى بِالْأَجْرِ او هغه په اُجرت [کرايه] سره باقي پاتېدای سي وَلَيْسَ فِيهِ ضَرَرٌ كَثِيرٌ او په دې کي زيات ضرر هم نسته. وَإِنْ أَخَذَهُ بِالْقِيمَةِ او که شفيع هغه [بناء...] د قيمت په عوض کي واخلي

يَعْتَبِرُ قِيمَتَهُ مَقْلُوعًا نو د هغه د کبنل سوي حالت د قيمت اعتبار به کيږي كَمَا بَيَّنَّاهُ فِي الْغَصْبِ لکه څرنګه چي کتابُ الغصب کي مونږ د دې بيان وکړی.

**اللغات**: ﴿متأکّد﴾ د تفعّل د باب اسم فاعل دی: مضبوط، پوخ. ﴿تسليط﴾ د تفعيل د باب مصدر دی: مسلط کول (ګومارل)، پر يو شي بل چا ته قدرت ورکول، اختيار ورکول، تسلّط او قبضه ورکول. ﴿يُنقض﴾ د نصر د باب مضارع مجهوله ده: ماتول. ﴿يتقدّم﴾ د تفعّل د باب مضارع ده: مخکي کېدل (مُقدّم کېدل). ﴿استرداد﴾ د استفعال د باب مصدر دی: واپس اخيستل. واپس غوښتل، رجوع کول.

**تشريح**: په دې عبارت کي صاحب د هدايې رَحِمَهُ الله د ظاهر روايت دليل او د امام ابو يوسف د قياسونو او مثالونو جواب ورکړی دی، د عبارت حاصل دا دی چي که هم څه مشتري په خپل ملکيت کي ځای جوړ کړی دی، خو بيا هم د دې ملکيت سره د بل چا يعني د شفيع حق متعلق دی. او د فقهي اُصول او قاعده دا ده چي که په يو شي کي د يو سړي حق وي او بيا يو بل څوک د دې حقدار سړي له تسليط او اختيار څخه بغير په هغه شي کي تصرّف وکړي (يعني بغير له دې چي حقدار کس هغه ته د تصرف کولو تسلّط او قدرت ورکړي. خو هغه تصرّف وکړي)، نو د هغه تصرّف ماتول کيږي، لهذا کله چي اُصول او قاعده دا ده نو تاسو اوګورئ! چي په دې ځمکه کي د شفيع حق سته او شفيع مشتري ته د تصرّف کولو تسلّط او قدرت نه دی ورکړی چي ته دلته ځای جوړ کړه لېکن هغه تصرّف وکړی او ځای يې جوړ کړی، لهذا د همدې پورتنۍ قاعدې مطابق به د هغه د ماتولو او نړولو حکم کيږي.

د دې مثال بعينه داسې دی لکه يو څوک چي بل چا ته يو شی مثلاً ځمکه په رهن ورکړي او بيا راهن په دې مرهونه ځمکه کي ځای جوړ کړي، نو که څه هم دا مرهون شی (ځمکه) د راهن ملکيت دی، خو څرنګه چي د هغې سره د مرتهن حق متعلق دی، لهذا د دې حق د متعلق والي په وجه د راهن تصرّف ماتول کيږي، نو همداسې به دلته هم د مشتري تصرّف ماتول کيږي.

وهذا لأن حقه إلخ: په دې سره صاحب د هدايې رَحِمَهُ الله د شفيع حق نور مضبوطوي، فرمايي چي دا د مشتري تصرّف به ځکه ماتول کيږي چي د شفيع حق د مشتري له حق څخه قوي او مقدّم دی. همدا وجه ده چي د شفيع د حق له کبله د مشتري ټوله تصرفات، مثلاً بيع، هبه او داسې نور ختمول کيږي، لهذا کله چي د شفيع د حق په وجه بيع (کوم چي د دوو کسانو تر مينځ معامله وي) ختمول کيږي. نو دلته خو صرف د مشتري معامله ده، لهذا هغه به په درجه اولیٰ ختمول کيږي.

بخلاف الهبة إلخ: امام ابو يوسف رَحِمَهُ الله دا د شفعي مسئله د هبې پر مسئلې قياس کړې وه. صاحب د هدايې له بخلاف الهبة څخه د هغه جواب ورکوي چي دا قياس مع الفارق دی؛ ځکه چي په هبه کي خو موهوب لهٔ د واهب په تسليط سره تصرّف کوي (يعني د واهب له طرفه هغه ته پر تصرف قدرت او تسلط ورکول سوی وي)، حال دا چي مشتري د شفيع له تسليط څخه بغير تصرّف کوي، نو بيا به دا قياس څنګه صحيح وي!.

بخلاف شراء الفاسد: همدارنګه په شراءِ فاسد کي هم تسليط على التصرّف موجود دی (چي مشتري ته د بائع له طرفه پر تصرف تسلط او قدرت ورکول سوی وي)، په خلاف د مشتري او شفيع د مسئلې.

عند أبي حنيفة إلخ: د عند أبي حنيفة په قيد لګولو سره صاحب د هدايې رَحِمَهُ الله دې ته اشاره کوي چي په شراءِ فاسد کي بائع ته د واپس اخيستلو حق او اختيار نه حاصلېدل دا د امام صاحب رَحِمَهُ الله قول دی، کنې د صاحبينو رَحِمَهُمَا الله په نېز حکم دا دی چي که په شراء فاسد کي مشتري تصرّف وکړي مثلاً په شراءِ فاسد سره په رانيول سوې ځمکه کي ځای جوړ کړي. نو بائع ته د هغه د ماتولو او د خپل ځمکي د واپس اخيستلو حق سته.

ولأن حق الاسترداد إلخ: په دې سره د پورتني قياسونو د نا صحيح والي يو بل دليل پېشوي، حاصل يې دا دی چي په هبه او شراءِ فاسد کي د واپس اخيستلو حق ډېر کمزوری دی (چي د موهوب لهٔ او مشتري په لږ تصرّف او ځای جوړلو سره د واپس اخيستلو حق ختميږي)، حال دا چي په شفعه کي د واپس اخيستلو حق ډېر مضبوطه دی (ځکه په هر صورت کي له مشتري څخه مشفوع ځای اخيستل صحيح دي، که څه هم هغه دلته پنځه چته عمارت جوړ کړی وي)، لنډه دا چي په هبه او شراء فاسد کي تر تصرّف او ځای جوړولو وروسته د واپسی حق ختميږي او په شفعه کي باقي پاتيږي، لهذا کله چي شفيع ته په هر صورت کي د واپسی (واپس اخيستلو) حق حاصل دی، نو پر هغه د جوړ سوي ځای او داسي نورو قيمت واجبول او ضروري ګرځول بې ځايه خبره ده.

او د دې مثال داسي وګڼه! چي يو څوک مثلاً ځمکه رانيسي او په هغې کي ځای جوړ کړي او بيا يو بل کس دعویٰ وکړي چي د دې ځمکي مالک او مستحق زه يم او دا ثابته کړي او قاضي د دغه مستحق کس لپاره فيصله وکړي، نو اوس حکم دا دی چي دا مستحق کس به ځمکه اخلي او د مشتري جوړ سوی ځای به نړوي او هغه ته به يوه روپۍ تاوان او قيمت هم نه ورکوي، بلکي مشتري به پر بائع رجوع کوي او له هغه څخه به د ځمکي او خپل جوړ سوي ځای قيمت او تاوان اخلي، نو څرنګه چي په دې مسئله کي د مستحق کس لپاره د مشتري د تصرّف ماتولو (ځای نړولو) او د هيڅ

قيمت نه اداء کولو حکم دی، همداسي به د شفيع د لپاره هم د مشتري د تصرّف ماتولو او د هيڅ تاوان او قيمت نه اداء کولو حکم وي.

والزرع يقلع قياسًا إلخ: امام ابو يوسف رَحِمَهُ الله د شفعي پورتنی مسئله د کښت والا پر مسئله هم قياس کړې وه، د هغه جواب ورکوي چي دا قياس صحيح نه دی، ځکه د کښت په هکله د قياس تقاضا دا ده چي کښت دي وکښل سي او د استحسان تقاضا دا ده چي نه دي کښل کيږي، ځکه د کښت پخېدلو او رسېدلو مودت معلوم دی، حال دا چي د جوړ سوي ځای او لګول سوي نهالانو (درختو) مودت او انتهاء معلومه نه ده، لهذا کله چي د کښت وخت معلوم دی چي مثلاً درې مياشتي بعد يې د پخېدلو او رېبل کېدلو وخت دی او له مشتري څخه د يوې مياشتي اُجرت او کرايه اخيستل کېدای سي، نو په دې کي د شفيع څه زيات نقصان نسته، لنډه دا چي جوړ سوی ځای او لګول سوي نهالان پر کښت قياسول صحيح نه دي.

وإن أخذه بالقيمة إلخ: دا له پورتنی مسئلې څخه جلا مسئله ده، حاصل يې دا دی چي که شفيع په دې راضي سي چي زه دا مشفوعه ځمکه د مشتري د جوړ سوي ځای او نهالانو سره رانيسم او د دې شيانو قيمت ورکوم، نو فرمايي چي خاص د جوړ سوي ځای او لګول سوي نهالانو قيمت معتبر نه دی بلکي د کښل سوي ځای او نهالانو قيمت به ورکوي، يعني چي دا ځای ونړول سي او دا نهالان وکښل سي نو په دې وخت کي چي د هغوی څومره قيمت جوړيږي، شفيع به هغومره قيمت اداء کوي.

## که په مشفوعه ځمکه کي شفيع يو تصرّف وکړي او بيا دا ځمکه د بل چا مستحقه وخيږي نو څه حکم دی؟

وَلَوْ أَخَذَهَا الشَّفِيعُ فَبَنٰى فِيهَا أَوْ غَرَسَ ثُمَّ اُسْتُحِقَّتْ او که شفيع دا ځمکه واخلي او په هغې کي ځای جوړ کړي يا نهالان [نيالګي] پکښې ولګوي بيا دا ځمکه مستحقه وخېږي رَجَعَ بِالثَّمَنِ نو شفيع به [د ځمکي] په ثمن سره رجوع کوي [يعني فقط د ځمکي قيمت به واپس واخلي] لِأَنَّهُ تَبَيَّنَ أَنَّهُ أَخَذَهُ بِغَيْرِ حَقٍّ ځکه ښکاره سوه چي د شفيع اخيستل په نا حقه توګه وه [يعني چي ځمکه د بل چا مستحقه وخته، نو ښکاره سوه چي شفيع دا ځمکه په نا حقه اخيستې وه] وَلَا يَرْجِعُ بِقِيمَةِ الْبِنَاءِ وَالْغَرْسِ لَا عَلَى الْبَائِعِ إِنْ أَخَذَهَا مِنْهُ وَلَا عَلَى الْمُشْتَرِي إِنْ أَخَذَهَا مِنْهُ او د خپل جوړ سوي ځای او لګول سوي نهالانو په قيمت سره به رجوع نه کوي نه پر بائع که له بائع څخه يې ځمکه اخيستې [رانيولې] وي او نه پر مشتري که له مشتري څخه يې ځمکه اخيستې وي وَعَنْ أَبِي يُوسُفَ أَنَّهُ يَرْجِعُ او له امام ابو يو

سف رَحِمَهُ الله څخه روايت دي چي شفيع [د بناء او غرس په قيمت سره] رجوع كولاى سي لِأَنَّهُ مُتَمَلِّكٌ عَلَيْهِ ځكه چي شفيع پر هغه مالک سوی دی [يعني له چا څخه چي شفيع دا ځمکه اخيستې ده (چي هغه بائع يا مشتري دی). شفيع پر هغه مالک سوی يعني له هغه څخه يې ملكيت حاصل کړی دی] فَنَزَلَا مَنْزِلَةَ الْبَائِعِ وَالْمُشْتَرِيْ نو شفيع او هغه كس [له چا څخه چي يې ځمكه اخيستې ده] د بائع او مشتري په منزله سوه وَالْفَرْقُ عَلَى مَا هُوَ الْمَشْهُوْرُ أَنَّ الْمُشْتَرِيَ مَغْرُوْرٌ مِنْ جِهَةِ الْبَائِعِ وَمُسَلَّطٌ عَلَيْهِ مِنْ جِهَتِهِ او د مشهوره روايت مطابق [په دواړو مسئلو كي] فرق دا دی چي مشتري د بائع له طرفه دوکه سوی او د هغه له طرفه پر ځای جوړولو [او نهال اينبوولو] مسلط كړی سوی دی [يعني مشتري ته د همدې بائع له طرفه د ځای جوړولو او نهال اينبوولو تسلط او قدرت وركول سوی دی] وَلَا غُرُوْرَ وَلَا تَسْلِيْطَ فِيْ حَقِّ الشَّفِيْعِ مِنَ الْمُشْتَرِيْ او د شفيع په حق كي د مشتري له طرفه نه دوكه سته او نه تسليط سته [يعني شفيع د مشتري له طرفه نه دوكه سوی دی او نه مسلط كړی سوی دی] لِأَنَّهُ مَجْبُوْرٌ عَلَيْهِ ځكه چي شفيع پر دې [يعني د مشفوعه ځای پر وركولو] مجبوره دی.

**اللغات**: ﴿تبيّن﴾ د تفعّل د باب ماضي ده: څرګندېدل، ښکاره کېدل. ﴿متملّك﴾ د تفعّل د باب فاعل دی: مالک سوی، مالک جوړېدونکی. ﴿غرور﴾ دوکه، فرېب.

**تشريح**: **صورت د مسئلې**: دا دی كه شفيع مشفوعه ځمكه واخلي او په هغه كي يو ځای جوړ كړي يا نهالان پكښېي ولګوي، بيا يو بل كس د دغه ځمكي د استحقاق دعوی وكړي (چي د دې مالک زه يم او خپل استحقاق ثابت كړي)، او قاضي د هغه مستحق كس لپاره د دې ځكمې فيصله وكړي، نو ځمكه د هغه سوه، او شفيع ته به ويل كيږي چي ورو ره! خپل ځای مات او ونړوه يا نهالان وكاږه، او پاته سو د ځای او نهالانو قيمت يا د هغوی د ماتېدلو تاوان به شفيع ته نه وركول كيږي، بلكي هغه ته به صرف د ځمكي قيمت (ثمن) وركول كيږي نو ده كه دا مشفوعه ځمكه له بائع څخه اخيستې وي، نو له هغه څخه به خپل ثمن (د ځمكي قيمت) اخلي او كه ده دا ځمكه له مشتري څخه اخيستی وي نو له هغه څخه به يې اخلي. او پاته سو د ځای او نهالانو قيمت به ده ته نه مستحق كس وركوي او نه بائع او مشتري.

**سوال**: دغه شفيع ته فقط ثمن ولي حاصليږي، د ځای او نهالانو تاوان او قيمت به ولي نه وركول كيږي؟

**جواب**: لأنهٗ تبيّن أنه أخذه بغير حق، يعني كله چي دا ځمكه د بل چا مستحقه وخته، نو ښكاره سوه چي په دې كي د شفيع هيڅ حق نه وو. ګواكي دا شفيع دا ځمكه په ناحقه اخيستې وه، او د

ناحقه اخيستلو په صورت کي تاوان او قيمت خپله ذغمل کيږي، لهذا دا به هم د شفيع خپل تاوان او نقصان وي او بل څوک به هغه نه پورته کوي او نه به يې ورکوي.

لېکن امام ابو يوسف رَحِمَهُ الله فرمايي چي شفيع به دا تاوان له بائع يا مشتري څخه اخلي، يعني که شفيع دا مشفوعه ځمکه له بائع څخه اخيستې وي، نو د ځای او نهالانو تاوان او قيمت به له بائع څخه اخلي، او له مشتري څخه د ځکمي د اخيستلو په صورت کي به يې له مشتري څخه اخلي؛ ځکه شفيع چي کله له بائع يا مشتري څخه ځمکه واخيسته (رانيوله)، نو ګواکي شفيع له هغه څخه ملکيت حاصل کړی، لهذا شفيع او شفيع چي له چا څخه ځکمه اخيستې ده (دوی دواړه) د بائع او مشتري په منزله سوه، او تاسو ته به معلومه وي چي که د بائع او مشتري تر مينځ معامله وسي، بيا مبيعه ځمکه د بل چا مستحقه وخيږي، نو په دې صورت کي مشتري د ځمکي د ثمن سره د خپل ځای او نهالانو قيمت هم له بائع څخه اخلي، نو همداسي به دلته شفيع هم د هغوی قيمت واپس اخلي.

والفرق على إلخ: په دې سره مصنف رَحِمَهُ الله د دې دواړو مسئلو تر مينځ فرق بيانوي چي د بائع او مشتري والا په مسئله کي بائع مشتري ته دوکه ورکړې ده او مشتري ته پر تصرّف کولو (يعني پر ځای جوړولو او نهالانو لګولو) د همدې بائع له طرفه تسلّط او قدرت ورکول سوی دی (يعني همدا بائع هغه پر دې مسلط او قدرت ورکړی دی)، نو په دې وجه به دا مشتري پر بائع رجوع کوي (چي زما د ځای او نهالانو تاوان راکړه!).

مګر د شفيع والا په مسئله کي خو شفيع ته نه مشتري دوکه ورکړې ده او نه شفيع ته د مشتري له طرفه تسلط او قدرت حاصل سوی دی. دوکه يې ځکه نه ده ورکړې چي دا مشفوعه مستحق شده ځمکه خو د مشتري خپله نه ده بلکي هغه هم له بل چا (بائع) څخه رانيولې ده او خپله بائع هغه ته دوکه ورکړې ده، او تسلط او قدرت على التصرف يې ځکه نه دی ورکړی چي شفيع د مشتري له رضاء څخه بغير جبراً د هغه په ملکيت کي شفعه اخلي (په بله وينا دا چي مشتري مجبوراً و شفيع ته مشفوع ځای [ځمکه] ورکوي، نه په خپل اختيار او تسليط سره)، لهذا کله چي دوکه او تسليط دواړه نسته. نو مشتري به د شفيع د جوړ سوي ځای او داسي نورو قيمت او تاوان هم نه ورکوي.

د صاحب د هدايې رَحِمَهُ الله په دغه بيان سوي فرق سره ګواکي د امام ابو يوسف رَحِمَهُ الله د قياس جواب هم وسو چي داسي به نه کيږي چي مشتري او شفيع د بائع او مشتري په منزله وګرځول سي او له هغه څخه تاوان واخيستل سي؛ ځکه د مشتري او بائع په صورت کي دوکه او تسليط دواړه سته او د شفيع والا په صورت کي يو هم نسته، لهذا يو پر بل قياسول هم صحيح نه دي.

## د مشفوعه کور د نړېدلو یا د مشفوعه باغ د وچېدلو او داسي نورو په صورت کي د شفیع لپاره څه حکم دی؟

قَالَ: وَإِذَا انْهَدَمَتِ الدَّارُ أَوِ احْتَرَقَ بِنَاؤُهَا أَوْ جَفَّ شَجَرُ الْبُسْتَانِ بِغَيْرِ فِعْلِ أَحَدٍ فرمایي: او که کور ونړېږي یا یې بناء [ودانی] وسوځي یا د باغ درختي وچي سي دیو چا له کړني څخه بغیر فَالشَّفِيعُ بِالْخِيَارِ إِنْ شَاءَ أَخَذَهَا بِجَمِيعِ الثَّمَنِ نو شفیع لره اختیار دی که وغواړي نو د ټوله ثمن په عوض کي دي دا کور واخلي لِأَنَّ الْبِنَاءَ وَالْغَرْسَ تَابِعٌ ځکه چي بناء او ایښوول سوي درختي [د ځمکي] تابع دي حَتَّى دَخَلَا فِي الْبَيْعِ مِنْ غَيْرِ ذِكْرٍ همدا وجه ده چي بغیر له ذکر کولو هم دوی په بیع کي داخلیږي فَلَا يُقَابِلُهُمَا شَيْءٌ مِنَ الثَّمَنِ مَا لَمْ يَصِرْ مَقْصُودًا نو ځکه د دوی په مقابله کي به هیڅ ثمن [قیمت] نه وي تر څو چي مقصود نه وګرځي [یعني تر څو چي د خودي بناء او درختو خرڅول مقصود نه وي تر هغه وخته دوی جلا قیمت نه لري] وَلِهَذَا يَبِيعُهَا مُرَابَحَةً بِكُلِّ الثَّمَنِ فِي هَذِهِ الصُّورَةِ په همدې وجه شفیع دا کور په دې صورت کي په ټوله ثمن سره د مرابحه په توګه خرڅولای سي [یعني د کور پر ټوله ثمن نوره ربح او ګټه اچولای سي] بِخِلَافِ مَا إِذَا غَرِقَ نِصْفُ الْأَرْضِ په خلاف د هغه صورت کله چي د ځمکي نیمه حصه غرقه سي [تر اوبو لاندي سي] حَيْثُ يَأْخُذُ الْبَاقِيَ بِحِصَّتِهِ ځکه هلته به شفیع پاته ځمکه په خپل حصه سره اخلي [یعني د پاته حصې چي څومره ثمن او قیمت وي، هغومره ثمن به ورکوي. په ټوله ثمن سره به یې نه اخلي] لِأَنَّ الْفَائِتَ بَعْضُ الْأَصْلِ ځکه چي فوته سوې د اصل بعضي حصه ده [یعني ځکه چي دا فوت شُده (غرقه سوې) حصه د اصل مبیع بعضي حصه ده] قَالَ: وَإِنْ شَاءَ تَرَكَ فرمایي: او که شفیع وغواړي نو شفعه دي پرېږدي لِأَنَّ لَهُ أَنْ يَمْتَنِعَ عَنْ تَمَلُّكِ الدَّارِ بِمَالِهِ ځکه شفیع ته دا حق سته چي د خپل مال په بدله کي د کور له مالک جوړېدلو څخه منع سي [یعني شفیع ته دا اختیار سته چي خپل مال صرف نه کړي او کور نه واخلي. یعني پر هغه د مشفوعه کور او ځمکي اخیستل لازم نه دي].

**اللغات**: ﴿انهدمت﴾ د انفعال د باب ماضي ده: نړېدل، لوېدل. ﴿بناء﴾ د کور پر ځمکه جوړ سوي ځایونه، یعني د کور دېوالونه او داسي نور چي ودانی، عمارت او داسي نور ورته وایي. ﴿بستان﴾ باغ، جمع: بَسَاتِين. ﴿تملك﴾ د تفعّل د باب مصدر دی: مالک کېدل، مالک جوړېدل.

**تشريح : صورت د مسئلې :** دا دی چې مشتري يو ځای رانيوی، بيا ديو آسماني آفت په وجه (يعني د بنده له فعل څخه بغير) د هغه کور بناء او دېوالونه ونړېده يا يې بناء وسوځېده، يا مثلاً مشتري يو باغ رانيوی، بيا د هغه درختي وچي او ناکاره سوې، نو اوس د داسي کور يا باغ شفيع ته دوه اختياره حاصلېږي: (١)... اول اختيار دا ورته حاصلېږي چې د ما بقي بناء يا د وچو درختو سره دي دا کور يا باغ د خپل ټوله ثمن په عوض کي واخلي، داسي نه سي کولای چې د کور په صورت کي د نړېدلي بناء په وجه او د باغ په صورت کي د وچو درختو په وجه په ثمن کي څه کمي وکړي؛ ځکه چې بناء يعني پر ځمکه جوړ سوي ځای، همدارنګه پر ځمکه موجوده باغ د وصف په درجه کي دي، همدا وجه ده که په بيع کي د دوی تذکره نه وسي، نو هم په بيع کي داخلېږي، لهذا کله چې دا وصف دي او وصف د موصوف تابع وي (نو دوی د ځمکي تابع دي) او وصف چې تر څو په خپله مقصود نه وګرځي، تر هغه وخته د وصف لپاره هيڅ ثمن نه وي (يعني تر څو چې د خودي وصف خرڅول مقصود او مطلوب نه وي، تر هغه وخته قيمت نه لري)، نو ښکاره خبره ده چې د نړېدلي بناء او وچو درختو لپاره به هيڅ ثمن نه وي، او کله چې د دوی ثمن او قيمت نسته، نو د دې شيانو په ماتېدلو، سوځېدلو او ناکاره کېدلو سره به په اصل ثمن کي کمي وزياتوب هم نه کيږي.

همدا وجه ده که شفيع د غه نړېدلي يا سوځېدلي کور د بيع مرابحه په توګه خرڅول وغواړي، نو هغه ته د دې پوره اختيار سته چې پر ټوله ثمن (اصل ثمن) مرابحه او ګټه وکړي، تاسو اوګورئ! که د وصف په خرابي سره په ثمن کي کمي راتلای، نو دلته به شفيع ته پر ټوله ثمن د مرابحه کولو اختيار نه وای، معلومه سوه چې په وصف کي په کمي وزياتوب سره په ثمن کي هيڅ کمي بيشي نه راځي، لهذا په دې صورت کي هم چې کله په نړېدلو، سوځېدلو يا وچېدلو سره د مبيع وصف متغير سوی دی، نو په ثمن کي به هيڅ کمي بيشي نه کيږي، لهذا که شفيع د مبيع اخيستل وغواړي، نو د ټوله ثمن په عوض کي به يې اخلي.

بخلاف ما إذا غرق إلخ: مخکي د دې بيان وسو چې په وصف کي کمي او خرابي راسي، لېکن که په اصل مبيع کي کمي او خرابي راسي، نو دا پر ثمن اثر کوي او په همدې حساب سره به په ثمن کي هم کمي کيږي، مثلاً يوه سړي لس جريبه ځمکه د لک درهمو په عوض کي رانيوله، بيا سيلاب راغلی او پنځه جريبه يې لاندي او ضايع کړه او دا حصه د درياب په شکل سوه (ګواکي هغه لوی حوض او درياب دی)، نو څرنګه چې اوس په اصل مبيع او اصل شي کي کمي راغله، لهذا اوس که شفيع دا ځمکه اخيستل غواړي، نو هغه به ما بقي پنځه جريبه د پنځوس زرو درهمو په عوض کي اخلي، ځکه کوم پنځه جريبه ځمکه چې غرقه سوې او خرابه سوې ده، هغه د اصل مبيع يوه حصه ده او د اصل مبيع کمي (کمېدل) د ثمن کمي لره متضمن کيږي.

(۲)... قال: وإن شاء ترك إلخ: مخكي ذكر سوه چي په دې مسئله کي د شفيع لپاره دوه اختياره دي. يو اختيار خو مخکي ذکر سو، دويم اختيار دا دی چي که هغه د ټوله ثمن په عوض کي سودا نه کوي، نو شفعه دي پرېږدي، پر هغه د نړېدلي بناء والا کور يا دوچو درختو والا باغ اخيستل لازم او ضروري نه دي، که يې اخلي، نو پوره ثمن به ورکوي، کنې خپل حق شفعه به پرېږدي. ځکه څرنګه چي ده ته دا اختيار سته چي خپل مال صرف کړي او دا کور يا باغ واخلي. همداسي ده ته دا اختيار هم سته چي خپل مال پر صرف او برباد نه کړي او د هغه له اخيستلو څخه منع سي. لهذا کوم صورت چي د هغه زړه وغواړي، هماغه دي اختيار کړي.

## که مشتري د کور وداني او بناء ماته کړي نو څه حکم دی

قَالَ: وَإِنْ نَقَضَ الْمُشْتَرِيْ الْبِنَاءَ فرمايي: او که مشتري [د کور] بناء ماته کړي قِيْلَ لِلشَّفِيْعِ: إِنْ شِئْتَ فَخُذِ الْعَرْصَةَ بِحِصَّتِهَا نو شفيع ته به ويل کيږي: که دي خوښه وي نو خالي ځمکه د خپل حصې په عوض کي واخله! وَإِنْ شِئْتَ فَدَعْ او که دي خوښه وي نو پرېږده يې! لِأَنَّهُ صَارَ مَقْصُوْدًا بِالْإِتْلَافِ ځکه چي د ضايع کولو [ماتولو] په وجه هغه [بناء] مقصود وګرځېده فَيُقَابِلُهُ شَيْءٌ مِنَ الثَّمَنِ نو ځکه د هغه په مقابله کي به څه ثمن وي بِخِلَافِ الْأَوَّلِ په خلاف د اول صورت لِأَنَّ الْهَلَاكَ بِآفَةٍ سَمَاوِيَّةٍ ځکه چي [هلته] هلاکېدل [ضايع کېدل] د آسماني آفت په وجه وه وَلَيْسَ لِلشَّفِيْعِ أَنْ يَأْخُذَ النَّقْضَ او شفيع لره دا اختيار نسته چي ماته سوې حصه واخلي لِأَنَّهُ صَارَ مَفْصُوْلًا ځکه چي اوس هغه جلا کړی سوې ده فَلَمْ يَبْقَ تَبَعًا نو تابع پاته نه سوه.

**اللغات**: ﴿نقض﴾ د نصر د باب ماضي ده: ماتول. ﴿عَرْصة﴾ د کور صحن، غولی، هغه خالي ځای (ميدان) کوم چي د کور په مينځ کي وي، يعني د کور خالي ميدان. ﴿دَعْ﴾ د فتح له بابه د واحد مذکر امرِ حاضر صيغه ده. وَدَعَ يَدَعُ وَدْعًا: پرېښوول (پرېښودل). ﴿إتلاف﴾ د افعال د باب مصدر دی: تلفول. ضايع کول. هلاکول. ﴿النقض﴾ مات سوی شی او ماته سوې حصه، (مات سوي او را لوېدلي څه). ﴿مفصول﴾ د ضرب د باب مفعول دی: جلا کړی سوی (عليحده کړی سوی).

**تشريح**: مخکي دا صورت بيان سو چي په يو آسماني آفت سره (د بنده له فعل څخه بغير) په وصف کي کمي او نقصان راسي. دلته دا فرمايي چي که په خپله مشتري يا بل بنده د کور بناء (يعني دېوالونه او داسي نور) مات کړي. نو په دې صورت کي هم مشتري ته دوه اختياره دي: ① يو دا چي که وغواړي. نو

شفعه دي پريږدي. (۲) خو كه د شفعي اخيستل غواړي (چې زه دا مات سوی مشفوعه كور قبلوم او غواړم يې)، نو له بناء څخه بغير چې د كور د خالي ځمكي څومره ثمن (قيمت) دی، د هغه په عوض كي يې اخيستلای سي (مطلب دا چې په دې صورت كي پر شفيع د ټوله كور ثمن اداء كول نسته. بلكي العرصة بحصتها من الثمن)، ځكه په دې صورت كي مشتري قصداً بناء ماته كړې ده، لهذا دا بناء مقصود بالإتلاف سوه (يعني تلفول او ماتول يې قصداً وسوه)، او وصف چې كله مقصود وګرځي، نو د هغه په مقابله كي ثمن راځي، لهذا د بناء د ماتولو په وجه چې څومره ثمن (قيمت) كم سوی وي، هغه به (د شفيع له ذمې څخه) كميږي، او د ځمكي چې في الحاله څومره قيمت دی، شفيع به د هغه په عوض كي دا كور اخلي.

بخلاف الأول إلخ: او دا دويم صورت د اول صورت بالكل مخالف دی، په اول صورت كي تلفېدل او هلاكېدل د آسماني آفت په وجه وه، د بنده په هغه كي دخل نه وو، لهذا هلته بناء مقصود بالإتلاف نه وه، نو ځكه د هغه په مقابله كي هيڅ ثمن نه كمېدی، لېكن څرنګه چې دلته تلفېدل او ماتېدل د بنده په فعل سره سوي دي او په دې صورت كي بناء مقصود بالإتلاف سوه، نو ځكه د هغه په مقابله كي ثمن كم كړی سو.

وليس للشفيع إلخ: د دې حاصل دا دی چې كه په پورتني صورت كي شفيع وغواړي چې د كور ماته سوې حصه واخلي يعني د كور تر ماتېدلو وروسته چې كومي خښتي يا داسي نور (يا مثلاً تيران) له كور څخه مات او را جلا سي، نو څرنګه چې اوس هغه (د ځمكي) تابع پاته نه سوه، بلكي را جلا سوه، نو ځكه اوس شفيع ته دا اختيار نسته چې د خپل حقِ شفعه په توګه هغه هم واخلي، ها! كه شفيع د جلا قيمت په عوض كي د مشتري په رضاء سره د هغه اخيستل وغواړي، نو اخيستلای يې سي.

**كه مشتري داسي ځمكه رانيسي چې په هغه كي مېوه داره درختي وي نو د شفيع لپاره څه حكم دی؟**

قَالَ: وَمَنِ ابْتَاعَ أَرْضًا وَعَلٰى نَخْلِهَا ثَمَرٌ فرمايي: او كه څوک ځمكه رانيسي او د هغې پر درختو مېوه وي أَخَذَهَا الشَّفِيعُ بِثَمَرِهَا نو شفيع به هغه ځمكه د مېوې سره اخلي وَمَعْنَاهُ إِذَا ذُكِرَ الثَّمَرُ فِي الْبَيْعِ او د دې مطلب دا دی چې كله په بيع كي مېوه ذكر سوې وي [يعني د مشتري او بائع د بيع پر مهال د مېوې تذكره او يادونه سوې وي] لِأَنَّهُ لَا يَدْخُلُ مِنْ غَيْرِ ذِكْرٍ ځكه چې مېوه بغير له ذكر كولو [په بيع كي] نه داخليږي وَهٰذَا الَّذِي ذَكَرَهُ اسْتِحْسَانٌ او امام قدوري رَحِمَهُ الله چې دا كوم څه ذكر كړي دي [دا] استحسان دی وَفِي الْقِيَاسِ لَا يَأْخُذُهُ او په قياس كي دا دي چې شفيع به مېوه نه اخلي لِأَنَّهُ لَيْسَ

بِتَبَعٍ ځکه چي هغه تابع نه ده أَلَا يَرىٰ أَنَّهُ لَا يَدْخُلُ فِي الْبَيْعِ مِنْ غَيْرِ ذِكْرٍ آيا نه ګوري! چي هغه [مېوه] بغير له ذکر کولو په بيع کي نه داخلېږي فَأَشْبَهَ الْمَتَاعَ فِي الدَّارِ نو دا د کور د سامان سره مشابه سوه وَجْهُ الِاسْتِحْسَانِ أَنَّهُ بِاعْتِبَارِ الِاتِّصَالِ صَارَ تَبَعًا لِلْعَقَارِ د استحسان دليل دا دی چي مېوه د اتصال [متصل کېدلو] په اعتبار سره د جايداد [ځمکي] تابع سوه كَالْبِنَاءِ فِي الدَّارِ وَمَا كَانَ مُرَكَّبًا فِيهِ لکه د کور بناء [وداني] او هغه څه کوم چي په کور کي دننه لګول سوي وي فَيَأْخُذُهُ الشَّفِيعُ لهذا شفيع به هغه اخلي.

**اللغات**: ﴿ابتاع﴾ د افتعال د باب ماضي ده: رانيول. ﴿نخل﴾ جمع د نَخْلَةٌ: د خرما درخته (ونه). بعضي شارحينو يې د اختصار پر بناء د مطلق درختي معنیٰ هم کړې ده. ﴿ثمر﴾ جمع د ثَمَرَةٌ ده: مېوه. ﴿تَبَع﴾ تابع. جمع: أَتْبَاع. ﴿اتصال﴾ د افتعال د باب مصدر دی: متصل کېدل (جوختېدل. ور سره لګېدل).

**تشريح**: **صورت د مسئلي**: دا دی که مشتري داسي ځمکه رانيسي چي په هغه کي مېوه داره درختي وي، نو که د بائع او مشتري تر مينځ په منعقد سوې بيع کي د مېوې تذکره سوې وي (مثلاً بائع مشتري ته ويلي وي چي د درختو سره مېوې هم درکوم). نو شفيع به هغه د مېوې سره اخلي (داسي به نه کيږي چي شفيع ته خالي درختي ورکول سي او مېوه ځني وشکول سي)؛ په بيع کي د مېوې د ذکر کېدلو قيد يې ځکه لګولی دی. چي مېوه له صراحتاً ذکر کولو څخه بغير په بيع کي نه داخلېږي. او کله چي د هغې تذکره وسوه. نو په بيع کي داخله سوه. لهذا کله چي مېوه په بيع کي داخله سوه. نو ځکه شفيع به ځمکه او درختي د مېوې سره اخلي.

صاحب د هدايې فرمايي چي د ځمکي په بيع کي د مېوې داخلېدلو مسئله پر استحسان مبني ده. کنې د قياس تقاضا خو دا ده چي شفيع په شفعه کي مېوه تر سره نه سي اخيستلای. ځکه چي مېوه نه د ځمکي تابع ده او نه د ځمکي (جايداد) په څېر غير منقولي شی ده (بلکي له يوه ځايه بل ځای ته نقل کېدای سي). تابع خو ځکه نه ده چي له صراحت څخه بغير دا په بيع کي نه داخلېږي. حالانکي د تابع لپاره د صراحت ضرورت نه پرېوځي (بلکي تابع له صراحتاً ذکر کولو څخه بغير په بيع کي داخلېږي). لهذا مېوه د کور د سامان سره مشابه سوه. نو څرنګه چي د کور سامان له صراحت څخه بغير په بيع کي نه داخلېږي. همداسي مېوه هم له ذکر کولو څخه بغير په بيع کي نه داخلېږي. او کله چي مېوه په بيع کي داخله نه ده. نو بيا به د بيع تابع کيږي هم نه. او بل دا چي شفعه په غير منقولي جايداد (لکه ځمکه.

کور او داسې نورو) کې حاصلیږي. لهذکله چې مېوه نه تابع ده. او نه غیر منقولي ده. نو د قیاس له رویه په هغه کې شفعه نه حاصلېدل پکار دي.

لېکن پر استحسان په عمل کولو سره مېوه د ځمکې او درختو تابع ګرځول سوې ده او په شفعه کې داخله کړی سوې ده. کنې قیاساً خو په هغه کې حق شفعه نه حاصلېدل پکار دي.

د استحسان دلیل دا دی چې څرنګه د کور بناء او په کور کې نصب کرده شیان لکه دېوالي الماری او داسې نور د کور سره د متصل کېدلو په اعتبار سره د کوز تابع دي او د کور سره شفیع هغه هم په شفعه کې اخلي. همداسې مېوه هم د متصل کېدلو په اعتبار سره د ځمکې تابع ده. نو ځکه شفیع به د ځمکې او درختو سره مېوه هم اخلي.

## د پورتنی مسئلې نور وضاحت

| قَالَ: وَكَذٰلِكَ إِنِ ابْتَاعَهَا وَلَيْسَ فِي النَّخِيْلِ ثَمَرٌ فرمايي: او همدارنګه که څوک ځمکه رانیسي او [د رانیولو پر مهال] پر درختو مېوه نه وي فَأَثْمَرَ فِيْ يَدِ الْمُشْتَرِيْ بیا د مشتري په قبضه کې مېوه وکړي يَعْنِيْ يَأْخُذُهُ الشَّفِيْعُ یعني شفیع به هغه مېوه اخلي لِأَنَّهُ مَبِيْعٌ تَبَعًا ځکه تبعاً دا مېوه مبیع ده لِأَنَّ الْبَيْعَ سَرٰى إِلَيْهِ ځکه چې بیع و هغې ته [هم] سرایت کړی دی عَلٰى مَا عُرِفَ فِيْ وَلَدِ الْمَبِيْعِ لکه څرنګه چې دا د مبیع [مینځې...] د بچې په لړ کې پېژندل سوې دي. |
|---|

**اللغات**: ﴿أَثْمَرَ﴾ د افعال د باب ماضي ده: مېوه کول (درخته مېوه داره کېدل). ﴿سرىٰ﴾ د ضرب د باب ماضي ده: سرایت کول. خپرېدل او غوړېدل.

**تشریح**: په مخکنی مسئله کې خو د بیع په وخت کې مېوه موجوده وه. او دلته دا صورت بیانوي چې د بیع په وخت کې مېوه نه وي (یعني د بیع او رانیولو پر مهال درختي مېوه داره نه وي). بلکې د مشتري په قبضه کې مېوه پیدا سي او درختي مېوه داره سي. نو په دې صورت کې به هم شفیع دا مېوه په شفعه کې اخلي: ځکه چې دا مېوه هم د ځمکې تابع ده (ځکه د همدې ځمکې په اوبو سره او د همدې ځمکې په رس څېښلو سره مېوه پیدا سوې ده) نو ځکه بیع په دې مېوُو کې هم سرایت کړی دی نو په بیع کې به داخله وي او شفیع به د ځمکې او درختو سره دا مېوه هم اخلي. د دې مثال داسې دی لکه مشتري چې یو مینځه رانیسي بیا د مشتري له قبضې څخه مخکې هغه مینځه بچی وزېږوي. نو حکم دا دی چې په دې بچي کې بیع سرایت کوي یعني دغه بچی هم د مشتري کېږي نو مشتري به د مینځې سره بچی هم اخلي. همدغسې دلته هم د مشتري په قبضه کې پیدا کېدونکې مېوه به هم شفیع اخلي.

## د پورتنۍ مسئلې نور وضاحت

قَالَ: فَإِنْ جَذَّهُ الْمُشْتَرِيُ فرمايي: كه مشتري مېوه وشكوي [پرېكړي] ثُمَّ جَاءَ الشَّفِيْعُ بيا شفيع راسي [حاضرسي] لَا يَأْخُذُ الثَّمَرَ فِي الْفَصْلَيْنِ جَمِيْعًا نو په دواړو صورتونو كي به شفيع مېوه نه اخلي لِأَنَّهُ لَمْ يَبْقَ تَبَعًا لِلْعَقَارِ وَقْتَ الْأَخْذِ ځكه داخيستلو په وخت كي مېوه د جايداد [ځمكي] تابع پاته نه سوه حَيْثُ صَارَ مَفْصُوْلًا عَنْهُ ځكه چي هغه له جايداد [ځمكي] څخه جلا سوه فَلَا يَأْخُذُهُ نو ځكه شفيع به هغه نه اخلي.

**اللغات**: ﴿جَذَّ﴾ او جَزَّ (په ذال او زاء سره): د نصر د باب ماضي ده: پرېكول، غوځول، شكول. ﴿فصل﴾ د دې لفظ يوه معنیٰ ده: صورت، ﴿عقار﴾ جايداد، يعني ځمكه، كور او داسي نور.

**تشريح**: د عبارت حاصل دا دی چي كه مشتري د شفيع له حاضرېدلو او قابض كېدلو څخه مخكي مېوه له درختو څخه وشكوي (يعني شفيع ته تر اوسه مشفوعه ځمكه او درختي نه وي وركول سوي او هغه د مشتري په قبضه كي وي او مشتري مېوه وشكوي)، نو په دواړو صورتونو كي (يعني برابره ده مېوه له مخكي څخه وي يا د مشتري په قبضه كي پيدا سوې وي. په دې دواړو قسمونو كي) شفيع دا مېوه نه سي اخيستلای؛ ځكه مخكي د استحسان پر بناء د ځمكي په تابع ګرځولو سره مېوه په شفعه كي داخله كړل سوې وه، لېكن د شكول كېدلو په وجه مېوه له ځكمي څخه جلا سوه او د هغې تبعيت (تابع والی) ختم سو، او كله چي تبعيت ختم سو، نو هغه په بيع كي داخله پاته نه سوه، نو ځكه په دې صورت كي شفيع مېوه نه سي اخيستلای.

## د پورتنۍ مسئلې نور وضاحت

قَالَ فِي الْكِتَابِ: فَإِنْ جَذَّهُ الْمُشْتَرِيُ امام قدوري رَحِمَهُ الله په كتاب [مختصر القدوري] كي فرمايلي دي: بيا كه مشتري مېوه وشكوي سَقَطَ عَنِ الشَّفِيعِ حِصَّتُهُ تو له شفيع څخه د مېوې حصه ساقطېږي قَالَ رَضِيَ اللهُ عَنْهُ: وَهٰذَا جَوَابُ الْفَصْلِ الْأَوَّلِ صاحب د هدايې رَحِمَهُ الله فرمايي: چي دا د اول صورت جواب دی لِأَنَّهُ دَخَلَ فِي الْبَيْعِ مَقْصُوْدًا ځكه چي [په اول صورت كي] مېوه مقصوداً داخله سوې ده فَيُقَابِلُهُ شَيْءٌ مِنَ الثَّمَنِ نو ځكه د هغې په مقابله كي به څه ثمن وي أَمَّا فِي الْفَصْلِ الثَّانِي يَأْخُذُ مَا سِوَى الثَّمَرِ بِجَمِيْعِ الثَّمَنِ پاته سو په دويم صورت كي به شفيع د ټوله ثمن په عوض كي له مېوې څخه بغير [پاته مبيع] اخلي لِأَنَّ الثَّمَرَ لَمْ يَكُنْ مَوْجُوْدًا عِنْدَ الْعَقْدِ ځكه [په دې صورت كي] مېوه په عقد كي

موجوده نه وه فَلَا يَكُوْنُ مَبِيعًا إِلَّا تَبْعًا نو دا مبيع به نه وي مګر تابع فَلَا يُقَابِلُهُ شَيْءٌ مِنَ الثَّمَنِ نو ځکه د هغه په مقابله کې به هيڅ ثمن هم نه وي. والله أعلم.

**تشريح**: مسئله دا ده چې که مشتري مېوه وشکوي، نو د هغه په وجه ثمن کمېږي، که نه؟، صاحب د هدايې رَحِمَهُ الله فرمايي چې دلته دوه صورتونه دي، په يوه صورت کې ثمن کمېږي، او په بل صورت کې په ثمن کې هيڅ کمي نه راځي.

(۱) هغه صورت چې په هغه کې د مشتري د مېوې په شکولو سره ثمن کمېږي هغه اول قسم دی، يعني کله چې د بيع او عقد په وخت کې مېوه موجوده وي؛ ځکه کله چې د عقد په وخت کې مېوه موجوده وي، نو په بيع کې د داخلولو لپاره د مېوې صراحت کېږي (يعني د بيع پر مهال د بائع له طرفه د مېوې تذکره کېږي)، او له صراحت څخه وروسته بيا دا مېوه مقصوده ګرځي او په بيع کې داخلېږي (يعني مقصود بالبيع ګرځي)، نو ځکه د هغې په مقابله کې به ثمن هم وي، لهذا کله چې په دې صورت کې د مېوې په مقابله کې ثمن سته (يعني قيمتداره ده)، نو د شکول سوي مېوې په اندازه به ثمن هم ساقطېږي او کمېږي.

(۲) پاتې سو هغه صورت کې چې په هغه کې د مشتري د مېوې په شکولو سره ثمن نه کمېږي، دا دويم قسم دی چې په هغه کې د بيع پر مهال مېوه موجوده نه وي، بلکې د مشتري په قبضه کې مېوه پيدا سي، نو په دې صورت کې به شفيع له شکول مېوې څخه بغير پاتې مبيع (ځمکه او درختې) د ټوله ثمن په عوض کې اخلي (او د شکول سوي مېوې په وجه به ثمن نه کموي)، ځکه کله چې مېوه د بيع په وخت کې موجوده نه وه (بلکې تر بيع وروسته د مشتري په قبضه کې په درختو کې مېوه پيدا سوه)، نو ښکاره خبره ده چې مېوه مقصود بالبيع نه سوه، بلکې تابع پاتې سوه، او د تابع په مقابله کې ثمن نه راځي (لکه مخکې چې هم ضمناً ذکر سوه)، لهذا د تابع په کمېدلو (او شکول کېدلو) سره به ثمن هم نه ساقطېږي، نو ځکه په دې صورت کې به د شکول سوي مېوې په وجه ثمن نه کمېږي او شفيع به د ټوله ثمن په عوض کې شفعه اخلي. فقط والله أعلم وعلمهٗ أتم

# بَابُ مَا تَجِبُ فِيْهِ الشُّفْعَةُ وَمَا لَا تَجِبُ

## (دا) فصل (په بيان) د هغه شيانو (کي) دی چي په هغوی کي شفعه واجبيږي او هغه چي نه (پکښي) واجبيږي

**تشريح:** مخکي تر دې صاحب د هدايې رَحِمَهُ الله په اجمالي توګه د شفعي د وجوب او ثبوت مسائل بيان کړل، اوس له دې ځايه په تفصيلي توګه هغه بيانوي او دا راښيي چي شفعه په کومو شيانو کي ثابتيږي او په کومو کي نه ثابتيږي.

### په کوم جايداد کي د شفعي حق حاصليږي؟

قَالَ: الشُّفْعَةُ وَاجِبَةٌ فِي الْعَقَارِ [امام قدوري رَحِمَهُ الله] فرمايي: چي شفعه په جايداد [ځمکه...] کي ثابته ده وَإِنْ كَانَ مِمَّا لَا يُقْسَمُ که څه هم هغه داسي وي چي تقسيمېدای نه سي وَقَالَ: الشَّافِعِيُّ: لَا شُفْعَةَ فِيمَا لَا يُقْسَمُ او امام شافعي رَحِمَهُ الله فرمايي: چي په نا تقسيمېدونکي [غير مقسوم] جايداد کي شفعه نسته لِأَنَّ الشُّفْعَةَ إِنَّمَا وَجَبَتْ دَفْعًا لِمُؤْنَةِ الْقِسْمَةِ ځکه چي شفعه خو د تقسيم د مشقت دفع کولو لپاره ثابته سوې ده وَهٰذَا لَا يَتَحَقَّقُ فِيمَا لَا يُقْسَمُ او دا په ناتقسيمېدونکي جايداد کي نه ثابتيږي وَلَنَا قَوْلُهُ عَلَيْهِ الصَّلَاةُ وَالسَّلَامُ[1]: "اَلشُّفْعَةُ فِي كُلِّ شَيْءٍ عَقَارٍ أَوْ رَبْعٍ" او زموږ دليل د نبي ﷺ دا فرمان دی: چي شفعه په هر شي کي سته هغه که جايداد [ځمکه] وي او که ځای وي إِلَى غَيْرِ ذٰلِكَ مِنَ الْعُمُومَاتِ او داسي نور عام احاديث [روايات] وَلِأَنَّ الشُّفْعَةَ سَبَبُهَا الِاتِّصَالُ فِي الْمِلْكِ او

---

[1] تخريج: أخرجه الطحاوي في شرح معاني الآثار في كتاب الشفعة، باب الشفعة بالجوار، حديث رقم:۵۸۲۹، صفحه رقم:۲۲۰.

صاحب د اثمار الهدايې رَحمهُ الله فرمايي چي دا حديث له دغه دريو احاديثو څخه را اخيستل سوی دی: ① عن ابن عباس عن النبي ﷺ قال: الشريك شفيع، والشفعة في كل شيء (سنن بيهقي، رقم:۱۱۵۹۸). ② د ربع لفظ له دې حديث څخه را اخيستل سوی دی. عن جابر قال: قضى رسول الله ﷺ بالشفعة في كل شركة لم تقسم ربعة او حائط (مسلم شريف، رقم:۱۶۰۸/ ۲۱۲۸). ③ د عقار لفظ له دې حديث څخه مأخوذ دی: عن أبي هريرة قال قال رسول الله ﷺ: لا شفعة إلا في دار أو عقار (سنن بيهقي، رقم:۱۱۵۹۷)

ځکه چي د شفعې سبب اتصال فی الملک دی وَالْحِكْمَةُ دَفْعُ ضَرَرِ سُوْءِ الْجِوَارِ او د شفعې حکمت د بدي همسايه ګلوی ضرر دفع کول دي عَلٰی مَا مَرَّ لکه [مخکي] چي تېر سو وَأَنَّهُ يَنْتَظِمُ الْقِسْمَيْنِ مَا يُقْسَمُ وَمَا لَا يُقْسَمُ او دا [دفع ضرر] تقسيمېدونکي او نا تقسيمېدونکي دواړه قسمه جايداد لره شامليږي وَهُوَ الْحَمَّامُ وَالرَّحٰی وَالْبِئْرُ وَالطَّرِيْقُ او ناتقسيمېدونکی جايداد [لکه] حمام. ژرنده. څاه او لاره...

**اللغات**: ﴿عقار﴾ غيرِ منقولي جايدادي، لکه ځمکه. کور او داسي نور. ﴿مؤنة﴾ مشقت. زحمت. خرڅ. ﴿رَبْع﴾ (د راء په فتحه سره) ① کور او جاګير. ② د کور شا وخوا والا حصه. ③ محلّة القوم و منزلهم (کلي او محله)، په اصل کي هغه ځای ته ويل کيږي چي خلک د ربيع (پسرلي) په موسم کي پکښي اړوي. جمع: رِبَاع (مصباح اللغات. مصباح منير. معجم وسيط). ﴿حمام﴾ غسل خانه (غسلخانه).

﴿رحی﴾ ژرنده.

**تشريح**: د عبارت حاصل دا دی چي داحنافو په نېز په مقسوم او غيرِ مقسوم هر ډول جايداد او ځمکه کي شفعه ثابتيږي يعني برابره ده ځمکه او ځای د تقسيم قابل وي (تقسيمېدای سي)، مثلاً غټه ځمکه، غټ کور او داسي نور، په دې کي زموږ (او د شوافعو ټولو) په نېز شفعه ثابتيږي. او هغه ځمکه او ځای چي د تقسيم قابل نه وي (يعني په تقسيم سره د هغه منفعت ته ضرر رسيږي)، مثلاً تنګه مشترکه غسل خانه چي که تقسيم کړی سي نو ديوه شريک په حق کي د انتفاع قابله نه پاتيږي، همدارنګه څاه او ژرنده او د هغې ځمکه چي که تقسيم کړی سي نو د هيڅ کار نه پاتيږي همدارنګه تنګه خونه (کمره)، په دې کي هم زموږ په نېز شفعه ثابتيږي او حاصليږي، ليکن د امام شافعي رَحِمَهُ الله په نېز هغه شی کوم چي د تقسيم قابل نه وي (يعني په تقسيم سره د هغه منفعت متأثر کيږي) په هغه کي شفعه نه حاصليږي.

د امام شافعي دليل: دا دی چي شفيع ته ځکه شفعه حاصليږي چي د تقسيم زحمت او مشقت ليري سي لکه مخکي چي ذکر سوه (مثلاً يوه تنګه خونه د دوو شريکانو ترمينځ مشترکه ده. اوس که يو شريک خپله نيمه حصه خرڅه کړي او بل څوک هغه رانيسي، نو دا بل څوک به په پاته شريک خپله حصه تقسيم او جلا کړي نو په دې توګه به پر پاته شريک د تقسيم مشقت او خرڅه پرېوځي او خونه به هم د انتفاع قابله پاته نه سي. لهذا شفعه د دغه تقسيم د مشقت ليري کولو لپاره مشروع سوې ده)، او کوم شی چي د تقسيم قابل نه وي (تقسيمېدای نه سي)، په هغه کي دا مشقت او تکليف نه ثابتيږي، او کله چي دغه علت (د تقسيم مشقت) نه ثابتيږي نو

شفعه به هم نه پکښې ثابتيږي، خلاصه دا چې کله په غيرِ مقسوم جايداد کې دا علت نسته، نو په هغه کې به شفيع ته شفعه نه حاصليږي؛ ځکه قاعدا ده چې "الحكم ينتفي بنفي العلة" يعني د علت په منتفي کېدلو سره حکم هم منتفي کيږي.

زموږ دليل: دا حديث دی "الشفعة في كُلّ إلخ"، په دغه حديث کې په مطلق ځمکه او ځای کې شفعه ثابته کړې سوې ده، برابره ده هغه د تقسيم قابل وي او که نه وي، له دې څخه بغير چې په کتابُ الشفعه کې هم د شفعې په هکله ځومره حديثونه تېر سوي دي. په هغوی ټولو کې مطلق شفعه ثابته کړې سوې ده او دا تفصيل پکښې نسته چې شفعه په قابلِ تقسيم جايداد کې ثابتيږي.

ولأن الشفعة إلخ: دا زموږ عقلي دليل دی، حاصل يې دا دی چې د شفعې د ثابتېدلو سبب د ملکيت اتصال دی (يعني شفعه هغه کس ته حاصليږي چې د هغه د جايداد سره خرڅ کړی سوی جايداد متصل وي يعني د خرڅ کړی سوي جايداد همسايه وي)، او د شفعې حکمت د بد همسايه توب ضرر ليري کول دي (يعني که بد او مُضر سړی راسي او دا خرڅ کړی سوی جايداد رانيسي نو د شفيع همسايه به سې او بد همسايه د نقصان او تاوان جرړه ده، نو په دې وجه شفعه ورته حاصليږي)، او دا دواړه شيان (يعني اتصال الملک او دفع ضرر الجوار) هر ډول جايداد او هر ډول ځمکې او ځای لره شامل دي، برابره ده هغه د تقسيم قابل وي او که نه وي (ځکه په دواړو صورتونو کې د ملکيت اتصال سته او په دواړو کې د بد همسايه په راتللو سره نقصان کيږي، نو ځکه په دواړو صورتونو کې هغه ته حقِ شفعه حاصلېدل پکار دي).

## په کومو شيانو کې شفعه نه حاصليږي؟

قَالَ: وَلَا شُفْعَةَ فِي الْعُرُوضِ وَالسُّفُنِ فرمايي: او په سامانونو او کښتيو کې شفعه نسته لِقَوْلِهِ عَلَيْهِ الصَّلَاةُ وَالسَّلَامُ[1]: «لَا شُفْعَةَ إِلَّا فِي رَبْعٍ أَوْ حَائِطٍ» نبي کريم ﷺ د دې فرمان په وجه: چې شفعه نسته مګر په ځای [جاګير] او دېوال کې وَهُوَ حُجَّةٌ عَلَى مَالِكٍ فِي إِيجَابِهَا فِي السُّفُنِ او دا حديث په کښتيو کې د شفعې ثابتولو په هکله د امام مالک په خلاف حجت دی وَلِأَنَّ الشُّفْعَةَ إِنَّمَا وَجَبَتْ لِدَفْعِ ضَرَرِ سُوءِ الْجِوَارِ عَلَى الدَّوَامِ او ځکه چې شفعه په دائمي توګه د بدي همسايه ګلوۍ د ضرر دفع کولو لپاره

[1] تخريج: أخرجه بزار في مسنده وطحاوي معناه في كتاب الشفعة، حديث رقم: ۵۸۴۹.

صاحب د اثمار الهدايې فرمايي چې د علامه مرغيناني رَحِمَهُ الله مذکوره حديث د دغه دوو حديثونو مجموعه ده: ① عن أبي هريرة قال قال رسول الله ﷺ: لا شفعة إلا في دار أو عقار (سنن بيهقي، رقم: ۱۱۵۹۷)، ② عن جابر قال: قضى رسول الله ﷺ بالشفعة في كل شركة لم تقسم ربعة أو حائط (مسلم شريف، رقم: ۱۶۰۸/ ۴۱۲۸).

ثابته سوې ده وَالْمِلْكُ فِي الْمَنْقُولِ لَا يَدُومُ حَسَبَ دَوَامِهِ فِي الْعَقَارِ او په منقولي شي کي ملکيت دائمي نه وي لکه څرنګه چي په جايداد [ځمکه...] کي دائمي وي فَلَا يُلْحَقُ بِهِ لهذا منقول شی به د جايداد [ځمکي...] سره نه لاحقول کيږي وَفِي بَعْضِ نُسَخِ الْمُخْتَصَرِ: وَلَا شُفْعَةَ فِي الْبِنَاءِ وَالنَّخْلِ إِذَا بِيعَتْ دُونَ الْعَرْصَةِ او د مختصر القدوري په بعضي نسخو کي دي "ولا شفعة في البناء والنخل إذا بيعت دون العرصة" (چي بناء او درختي چي کله [تنها] له ځمکي څخه بغير خرڅ کړل سي، نو په هغوی کي شفعه نسته) وَهُوَ صَحِيحٌ مَذْكُورٌ فِي الْأَصْلِ او همدا صحيح دي او په مبسوط کي [هم] ذکر سوي دي لِأَنَّهُ لَا قَرَارَ لَهُ ځکه چي بناء او درختو لره قرار نسته [بلکي له يوه ځای بل ځاي ته نقل کول يې ممکن دي] فَكَانَ نَقْلِيًّا نو دا به منقولي وي وَهٰذَا بِخِلَافِ الْعُلْوِ او دا د پورتني منزل [بالاخانې] په خلاف دي حَيْثُ يُسْتَحَقُّ بِالشُّفْعَةِ وَيُسْتَحَقُّ بِهِ الشُّفْعَةُ فِي السُّفْلِ ځکه په پورتني منزل کي د شفعي استحقاق ثابتيږي او د هغه په وجه په لانديني منزل کي هم د شفعي استحقاق ثابتيږي [په لنډه توګه دا چي په پاسني منزل [چت] کي هم شفعه حاصليږي او د پاسني منزل په وجه (د پاسني منزل مالک ته) هم شفعه حاصليږي] إِذَا لَمْ يَكُنْ طَرِيقُ الْعُلْوِ فِيهِ [په دې شرط] کله چي په لانديني منزل کي د پاسني منزل لاره نه وي لِأَنَّهُ بِمَا لَهُ مِنْ حَقِّ الْقَرَارِ الْتَحَقَ بِالْعَقَارِ ځکه په دې سبب چي پاسني منزل لره د قرار [بقاء] حق سته هغه د جايداد [ځمکي] سره لاحق سوی دی.

**اللغات**: ﴿عروض﴾ جمع د عَرْضٌ ده: سامان، له دراهم او دنانيرو (نقودو) څخه بغير نور شيان، او د عَرَضٌ جمع أَعْرَاض راځي: سامان (معجم لغة الفقهاء)، ﴿سُفُن﴾ جمع د سَفِيْنَةٌ ده: کښتی، بېړی، ﴿رَبع﴾ کور او جاګير، ﴿جوار﴾ همسايه توب، همسايه ګلوي، ﴿دوام﴾ دائمي کېدل، هميشتوب، ﴿بناء﴾ جوړ سوی ځای، وداني، ﴿نخل﴾ جمع د نخلةٌ ده: د خرما درختي، ونې، ﴿عرصة﴾ خالي ميدان، خالي ځمکه، ﴿علو﴾ په دغه لفظ کي درې لغات دي: عُلْو، عَلْو، عِلْو: پورتنی پوړ، پاسنی منزل (پورتنی [لوړ] ځای چي چت او بالاخانه ورته وايي)، ﴿سفل﴾ په دې لفظ کي دوه لغات دي: سُفْلِ، سِفْل: لانديني منزل، لانديني ځای چي پر هغه د پاسه بل ځای وي.

**تشريح**: مخکي ذکر سوه چي شفعه صرف په غير منقولي شيانو (يعني غير منقوله جايداد) کي ثابتيږي، او څرنګه چي سامان او کښتی (بېړی) له منقولي شيانو څخه دي، نو ځکه په هغوی کي

شفعه نه ثابتېږي. او بل دا چې په حديث پاک کې هم صرف د غيرِ منقولي شيانو تذکره سوې ده. لهذا منقولي شيان لکه کښتۍ او داسې نور به په هغه کې نه داخلول کيږي.

امام مالک رَحِمَهُ الله په کښتۍ او منقولي شيانو کې د شفعې د ثبوت قائل دی. صاحب د هدايې رَحِمَهُ الله فرمايي چې مذکوره حديث د هغه په خلاف څرګند دليل دی چې په منقولاتو کې شفعه نسته. او بل دا چې د شفعې حکمت په دائمي توګه له ضررِ جوار څخه بچ کېدل دي (لکه مخکې چې اشاره ورته وسوه)، او په منقولاتو کې ملکيت دائمي نه پاتيږي. لهذا هلته دا حکمت هم نه ثابتيږي نو په هغوی کې به شفعه نه حاصليږي. وروسته فرمايي چې د قدوري په بعضې نسخو کې د "ولا شفعة فی البناء إلخ" عبارت ذکر سوی دی او هغه صحيح دی، او په مبسوط کې هم د دغه عبارت تذکره سوې ده او په دې صورت کې د شفعې د عدمِ ثبوت وجه دا ده چې په تنها بناء (ودانۍ) او درختو کې دوام او قرار نه پاتيږي. لهذا دا دواړه به د منقولاتو له قبيلې څخه وي او په منقولاتو کې شفعه نه حاصليږي. نو ځکه په دوی کې به هم شفعه نه حاصليږي.

وهذا بخلاف العلو إلخ: دا د يو اعتراض جواب دی. اعتراض دا دی چې کله تاسو په منقولي شيانو کې د شفعې د نه ثابتېدلو قائل ياست، نو بيا که د يو کور فقط پاسنی منزل (پورتنی پوړ [چت]) خرڅيږي، نو تاسو هلته هم شفعه مه ثابتوئ، ځکه چې هغه تنها د بناء حصه ده او يو ډول له منقولاتو څخه ده، لهذا ستاسو په وينا په هغه کې شفعه نه ثابتېدل پکار دي.

د جواب حاصل دا دی چې ستاسو دا اعتراض بالکل پر ځای دی. لېکن نن سبا د لوړو عمارتونو او د پاسني منزلونو معامله او رواج عام سوی دی، او پاسني منزلو (چتونو) لره د قرار او دوام حق حاصل دی. لهذا کله چې پاسني ځايو او منزلو لره د قرار حق حاصل دی. نو دوی د غيرِ منقوله جايداد سره لاحق دي، او په غيرِ منقولاتو کې شفعه حاصليږي. لهذا په دوی کې به هم حاصليږي او پاسنی منزل به د شفعې سبب هم جوړيږي. خو شرط دا دی چې د هغه لاره به په لانديني منزل کې نه وي وتلې (بلکې لاره به يې جلا وي يعني په جلا لاره به استوګن ورداخليږي او راوځي)؛ ځکه دلته د هغه شفعې په هکله بحث کيږي کوم چې د جوار (همسايه توب) په وجه حاصليږي. او په لانديني منزل کې د لارې وتلو په صورت کې د شرکت په وجه شفعه حاصليږي (چې په لاره کې ور سره شريک دی). نه د جوار په وجه. په همدې وجه صاحب د هدايې رَحِمَهُ الله دلته د "إذا لم يكن إلخ" قيد لګولی دی.

## د ذمي کافر لپاره هم د شفعي حق سته (د شفعي استحقاق عام دی)

قَالَ: وَالْمُسْلِمُ وَالذِّمِّيُّ فِي الشُّفْعَةِ سَوَاءٌ فرمايي: او مسلمان او ذمي په شفعه کي سره برابر دي لِلْعُمُومَاتِ داحاديثو د عموم په وجه وَلِأَنَّهُمَا يَسْتَوِيَانِ فِي السَّبَبِ وَالْحِكْمَةِ او ځکه چي دوی دواړه [د شفعي] په سبب او حکمت کي سره برابر دي فَيَسْتَوِيَانِ فِي الِاسْتِحْقَاقِ نو ځکه [د شفعي] په مستحق کېدلو کي به هم سره برابر وي وَلِهَذَا يَسْتَوِي فِيهِ الذَّكَرُ وَالْأُنْثَى وَالصَّغِيرُ وَالْكَبِيرُ وَالْبَاغِيُّ وَالْعَادِلُ وَالْحُرُّ وَالْعَبْدُ إِذَا كَانَ مَأْذُونًا أَوْ مُكَاتَبًا په همدې وجه [د شفعي] په استحقاق کي نارينه او ښځه، کوچنی او غټ، باغي او عادل، آزاد او غلام ټوله سره برابر دي [په دې شرط] چي غلام به مأذون يا مکاتب وي.

**اللغات**: ﴿ذکر﴾ مذکر، نارينه. ﴿انثی﴾ مؤنث، ښځينه. ﴿باغي﴾ سرکښه. ﴿مأذون﴾ هغه غلام چي د تجارت او کاروبار اجازت ورکول سوی وي.

**تشريح**: د عبارت حاصل دا دی چي څرنګه د مسلمان په حق کي شفعه مشروع او ثابته ده، همداسي د ذمي لپاره هم شفعه ثابته ده، او د دغه ثبوت دوې (۲) وجهي دي: ① په احاديثو او رواياتو کي عموم دی چي په هغوی کي د مسلمان تخصيص نسته، ② د شفعي سبب او د هغه حکمت چي څرنګه د مسلمان په حق کي سته، همداسي د ذمي په حق کي هم سته (د شفعي د سبب او حکمت يادونه مخکي وسوه)، لهذا کله چي ذمي د احاديثو په عموم کي داخل دی او په سبب او حکمت کي هم د مسلمان سره برابر دی، نو په شفعه کي به هم د مسلمان برابر او د هغه په څېر وي لهذا ذمي ته به هم شفعه حاصلېږي.

صاحب د هدايې د استحقاق د عاموالي او مساوي والي څو مثالونه ذکر کړي دي چي شفعه څرنګه نارينه ته حاصلېږي، همداسي ښځي ته هم حاصلېږي او څرنګه چي غټ او بالغ کس ته حاصلېږي، همداسي کشر ته هم حاصلېږي او څرنګه چي عادل کس ته حاصلېږي، باغي کس ته هم حاصلېږي او څرنګه چي آزاد ته حاصلېږي، غلام ته هم حاصلېږي. مګر مطلق غلام ته شفعه نه حاصلېږي: ځکه چي په هغه کي د رانيولو او خرڅولو اهليت نه وي (لکه په دربيم هدايه کي چي څو ځله د دې بيان تېر سو)، خو څرنګه چي په مکاتب او مأذون غلام کي د رانيولو او خرڅولو اهليت وي، نو ځکه دلته صاحب د هدايې رَحِمَهُ الله د مکاتب او مأذون قيد لګولی دی.

## په کوم عقد کي د شفعي حق سته او په کوم کي نسته؟

قَالَ: وَإِذَا مَلَكَ الْعَقَارَ بِعِوَضٍ هُوَ مَالٌ فرمايي: او کله چي مشتري په داسي عوض [بدل] سره د جايداد مالک سي کوم چي مال وي وَجَبَتْ فِيهِ الشُّفْعَةُ نو په داسي جايداد کي شفعه ثابتيږي لِأَنَّهُ أَمْكَنَ مُرَاعَاةُ شَرْطِ الشَّرْعِ فِيهِ ځکه چي هغه کي د شريعت د شرط رعايت کول ممکن دی وَهُوَ التَّمَلُّكُ بِمِثْلِ مَا تَمَلَّكَ بِهِ الْمُشْتَرِيْ صُورَةً أَوْ قِيمَةً او هغه مالک کېدل دي [د جايدادي] د هماغه شي په مثل سره چي د هغه په ذريعه مشتري مالک سوی دی برابره ده دا مثل د صورت په اعتبار سره [يعني مثلِ صوري] وي يا د قيمت په اعتبار سره [مثلِ قيمي] وي عَلَىٰ مَا مَرَّ لکه [مخکي] چي تېر سو.

**اللغات:** ﴿عقار﴾ غيرِ منقولي جايداد، لکه ځمکه او کور. ﴿تملّك﴾ د تفعّل د باب مصدر دی: مالک کېدل، مالک جوړېدل.

**تشريح:** څرنګه چي په هبه، صدقه، وراثت او داسي نورو کي د مال معاوضه نسته (يعني له دواړو طرفونو څخه مال نه پکښي ورکول کيږي)، نو ځکه په هغوی کي شفعه هم نه ثابتيږي، همدا وجه ده چي امام قدوري رَحِمَهُ الله د مالي عوض په قيد سره د مشتري د مالک کېدلو قيد لګولی دی (چي د مال په عوض کي به د جايداد مالک سوی وي)؛ ځکه په شفعه کي شريعت دا شرط لګولی دی چي مشتري د کوم شي په عوض کي ځای او ځمکه رانيولی وي، شفيع به د هغه شي د مثل په عوض کي ځای او ځمکه اخلي، لهذا د دې شرط رعايت ضروري دی، او رعايت همغه وخت کيږي کله چي مشتري په مالي عوض سره ځای او ځمکه رانيولې وي (او دا بيا جلا خبره ده چي که دا عوض له ذواتُ القيم څخه وي نو د هغه مثل د هغه قيمت دی او که له ذواتُ الأمثال څخه وي نو مثل يې د هغه په څېر شی دی کوم چي عرفاً د هغه مثل شمېرل کيږي)، لنډه دا چي شفيع به په هر حال کي په عوض سره مشفوعه ځای او ځمکه اخلي، او دا هغه وخت کېدای سي کله چي مشتري هم په عوض سره ځای او ځمکه رانيولې وي، کنې که يو چا بلا عوضه مثلاً د هبې او داسي نورو په ذريعه ځای او ځمکه اخيستې وي، نو شفيع لره په هغه کي هيڅ حق نسته، ځکه چي شرط موجود نه سو، نو شفعه به هم نه پکښي جاري کيږي.

## په کوم ځای او کوم عقد کي شفعه نه واجبيږي؟

قَالَ: وَلَا شُفْعَةَ فِي الدَّارِ الَّتِي يَتَزَوَّجُ الرَّجُلُ عَلَيْهَا [امام قدوري رَحِمَهُ الله] فرمايي: او په هغه کور کي شفعه نسته چي د هغه په عوض کي سړی نکاح کوي أَوْ يُخَالِعُ الْمَرْأَةُ بِهَا يا چي د هغه په ذريعه ښځه خلع کوي أَوْ يَسْتَأْجِرُ بِهَا دَارًا أَوْ غَيْرَهَا يا چي د هغه په ذريعه سړی کور يا داسي بل شی په اجاره [په

کرایه] اخلي أَوْيُصَالِحُ بِهَا عَنْ دَمِ عَمَدٍ یا چي د هغه په ذریعه له قتلِ عمد څخه صلح کوي أَوْيُعْتِقُ عَلَيْهَا عَبْدًا یا چي د هغه په عوض کي غلام آزادوي لِأَنَّ الشُّفْعَةَ عِنْدَنَا إِنَّمَا تَجِبُ فِي مُبَادَلَةِ الْمَالِ بِالْمَالِ ځکه چي شفعه زموږ په نېز د مبادلة المال بالمال په صورت کي ثابتيږي لِمَا بَيَّنَّا د هغه دليل په وجه کوم چي موږ مخکي بيان کړې وَهٰذِهِ الْأَعْوَاضُ لَيْسَتْ بِأَمْوَالٍ او دغه عوضونه مال نه دي فَإِيجَابُ الشُّفْعَةِ فِيهَا خِلَافُ الْمَشْرُوعِ وَقَلْبُ الْمَوْضُوعِ نو په دوی کي شفعه ثابتول د مشروع خلاف او د موضوع چپه اړول دي.

**اللغات:** ﴿يخالع﴾ د مفاعلې د باب مضارع ده: خلع کول. ﴿اعواض﴾ جمع د عوض ده: کوم شی چي د بل شي په بدله کي ورکول کيږي، هغه ته "عوض" وايي، بدل. ﴿إيجاب﴾ د افعال د باب مصدر دی: واجبول، لازمول، ثابتول. ﴿قلب﴾ د ضرب د باب مصدر دی: چپه اړول (د يوشي پورتنی حصه لاندي کول، دننی حصه دباندي کول...).

**تشريح:** مسئله دا ده چي د احنافو په نېز صرف د مبادلة المال بالمال په صورت کي شفعه ثابتيږي (يعني صرف په هغه جايداد کي ثابتيږي چي د هغه په راکړه ورکړه کي له دواړو طرفونو څخه مال ورکول سوی وي)، لهذا په کوم صورت کي چي مبادلة المال بالمال نه وي، په هغه کي زموږ په نېز شفعه نشته، همدا وجه ده ① که خاوند د ښځي په مهر کي يو کور ورکړي (يعني د کور په عوض کي نکاح ور سره وکړي)، ② يا يو ښځه د خپل خاوند سره د کور او ځای په عوض کي خلع وکړي، ③ يا څوک د کور په عوض کي کور يا بل شی په کرايه واخلي، ④ يا څوک د قصاص په بدله کي د مقتول وارثانو ته کور ورکړي، ⑤ يا څوک د کور په عوض کي خپل غلام آزاد کړي (مثلاً غلام ته ووايي چي ما ته فلانکی کور راکه! نو ته آزادي او غلام هغه ورکړي)، نو په دې ټولو صورتونو کي شفعه نه ثابتيږي، ځکه چي زموږ په نېز د شفعي د ثبوت لپاره مبادلة المال بالمال ضروري دي، او دلته چي څومره هم عوضونه دي، هغه مال نه دي (ځکه په اول او دويم صورت کي د ښځي بضع مال متقوم نه دی. او نه د کرايې والا په صورت کي د کور يا بل شي منافع مال دي. او نه دم مال دی. او نه آزادي مال دی)، نو ځکه په دې ټولو صورتونو کي به شفعه نه ثابتيږي.

لما بيّنا إلخ: په دې سره صاحب د هدايې رَحِمَهُ الله د هغه دليل و طرف ته اشاره کړې ده کوم چي مخکي تېر سو چي په شفعه کي شريعت دا شرط لګولی دی چي مشتري به د مال په عوض کي مشفوعه ځای (کور او ځمکه) رانيولې وي چي شفيع د هغه مثل (مال) اداء کړي او ځای واخلي، او چيري چي مال نه وي، نو هلته شفيع هم د مال په عوض کي مشفوعه ځای نه سي اخيستلای، او په مذکوره تمام

صورتونو کي عوضونه مال نه دي، نو ځکه په هغوی کي د مشفوعه ځای اخيستلو هيڅ صورت نه جوړيږي.

برسېره پر دې که په دغه صورتونو کي شفعه ثابته کړی سي نو دا به خلاف مشروع وي او قلب موضوع به لازم سي؛ ځکه چي په دې صورتونو کي د شفيع لپاره د مشتري د مثل اداء کولو او ځای اخيستلو هيڅ صورت نسته.

## په پورتني مسئله کي د امام شافعي رَحِمَهُ الله اختلاف

وَعِنْدَ الشَّافِعِيِّ تَجِبُ فِيهَا الشُّفْعَةُ او د امام شافعي رَحِمَهُ الله په نيز په دغه عوضونو کي شفعه ثابتيږي لِأَنَّ هٰذِهِ الْأَعْوَاضَ مُتَقَوِّمَةٌ عِنْدَهُ ځکه چي د هغه په نيز دا عوضونه قيمتداره دي فَأَمْكَنَ الْأَخْذُ بِقِيمَتِهَا إِنْ تَعَذَّرَ بِمِثْلِهَا نو د دوی د مثل د نا ممکن کېدلو په صورت کي د دوی قيمت اخيستل ممکن دي كَمَا فِي الْبَيْعِ بِالْعَرْضِ لکه د سامان په عوض کي [د جايداد] په بيع کي [چي کيږي] بِخِلَافِ الْهِبَةِ په خلاف د هبې لِأَنَّهُ لَا عِوَضَ فِيهَا رَأْسًا ځکه چي په هغه کي بالکل هيڅ عوض نه وي وَقَوْلُهُ يَتَأَتَّى فِيمَا إِذَا جَعَلَ شِقْصًا مِنْ دَارٍ مَهْرًا أَوْ مَا يُضَاهِيهِ او د امام شافعي دا قول په هغه صورت کي صحيح کيږي [صادقيږي] کله چي خاوند د کور يوه حصه په مهر يا داسي نورو کي ټاکلې [ورکړې] وي لِأَنَّهُ لَا شُفْعَةَ عِنْدَهُ إِلَّا فِيهِ ځکه چي د امام شافعي په نيز صرف په همدې صورت کي شفعه سته وَنَحْنُ نَقُولُ: إِنَّ تَقَوُّمَ مَنَافِعِ الْبُضْعِ فِي النِّكَاحِ وَغَيْرِهَا بِعَقْدِ الْإِجَارَةِ ضَرُورِيٌّ او موږ وايو: چي په نکاح کي د بضعي د منافعو قيمتداره کېدل او [همدارنګه] له هغه څخه بغير د نورو قيمتداره کېدل د عقد اجارې په وجه د ضرورت [او اړتيا] پر بناء دي فَلَا يَظْهَرُ فِي حَقِّ الشُّفْعَةِ نو ځکه دا تقوم [قيمتداره کېدل] به د شفعې په حق کي نه ښکاره کيږي وَكَذَا الدَّمُ وَالْعِتْقُ غَيْرُ مُتَقَوِّمٍ او همدارنګه دم او آزادول قيمتداره نه دي لِأَنَّ الْقِيمَةَ مَا يَقُومُ مَقَامَ غَيْرِهِ فِي الْمَعْنَى الْخَاصِّ الْمَطْلُوبِ ځکه چي قيمت هغه څه دی کوم چي په خاصه معنیٰ [خاص مطلوب] کي د بل شي قائم مقام سي وَلَا يَتَحَقَّقُ فِيهِمَا او دا خبره په دم او آزادي کي ثابته نه ده وَعَلَى هٰذَا إِذَا تَزَوَّجَهَا بِغَيْرِ مَهْرٍ ثُمَّ فَرَضَ لَهَا الدَّارَ مَهْرًا او همدارنګه کله چي سړی د ښځي سره بغير له مهره نکاح وکړي بيا په مهر کي د هغې لپاره کور وټاکي لِأَنَّهُ بِمَنْزِلَةِ الْمَفْرُوضِ فِي الْعَقْدِ فِي كَوْنِهِ مُقَابَلًا بِالْبُضْعِ ځکه چي دا د بضع په مقابل

کېدلو کې د مفروض فی العقد [په عقد نکاح کې د ټاکل سوي] په څېر دي [په آسانه ړينا دا چې تر نکاح وروسته په مهر کې کور ټاکل (ورکول) داسې دي لکه د خودي د نکاح د عقد (تړولو) په وخت کې ټاکل. ځکه دا هم د بضع په مقابله کې دي] بِخِلَافِ مَا إِذَا بَاعَهَا بِمَهْرِ الْمِثْلِ أَوْ بِالْمُسَمّٰى په خلاف د هغه صورت کله چې خاوند د مهرِ مثل يا مهرِ مسمیٰ [ټاکل سوي مهر] په عوض کې کور خرڅ کړی وي [نو شفعه ثابتيږي] لِأَنَّهُ مُبَادَلَةُ مَالٍ بِمَالٍ ځکه چې دا د مال په بدله کې د مال خرڅول دي.

**اللغات:** ﴿متقومة﴾ قيمتداره (قيمت لرونکی). قابلِ قيمت. ﴿شقص﴾ حصه. ټوکړه. ﴿يضاهي﴾ د مفاعلې د باب مضارع ده: مشابه کېدل. ورته کېدل. ﴿المفروض﴾ د فرض د باب مفعول دی: متعين کړی سوی. ټاکل سوی (مقرر کړی سوی).

**تشريح:** څرنګه چې احنافو مذکوره شيان (بضع او داسې نور چې په عوض کې يې کور ورکول سوی دی) مال نه دي. نو ځکه احنافو پکښې د شفعې انکار کړی دی. خو د امام شافعي په نيز دا عوضونه (يعنې بضع اوداسې نور) مال دي. نو ځکه امام شافعي رَحِمَهُ الله په پورتنيو ټولو صورتونو کې د شفعې قائل دی او فرمايي چې څرنګه د سامان په عوض کې د کور خرڅېدلو په صورت کې دمثل ضوري پر ځای قيمت واجبيږي. همداسې په دغه مذکوره شيانو کې که څه هم مثل نا ممکن دی. خو قيمت بيا واجبېدای سي. لهذا د بيع بالعرض په څېر به په دوی کې هم شفعه ثابتيږي.

بخلاف الهبة إلخ: د دې حاصل دا دی چې په هبه کې شوافع هم د احنافو په څېر د شفعې د نه ثابتېدلو قائل دي. ځکه چې شفعه هلته ثابتيږي چيري چې عوض وي. او په هبه کې خو بالکل عوض نسته. نو په هغه کې د شفعې ثابتولو هيڅ لاره نسته.

وقوله يتأتى إلخ: په دې سره صاحب د هدايې دا رانېيي چې په مذکوره عوضونو کې چې امام شافعي رَحِمَهُ الله د شفعې د ثبوت قائل دی. دا صرف په هغه صورت کې کېدای سي کله چې خاوند په مشترک کور کې خپله حصه په مهر او داسې نورو کې ورکړې وي (نو دويم شريک ته په هغه کې شفعه حاصليږي). ځکه د امام شافعي رَحِمَهُ الله په نيز صرف د شرکت پر بنياد شفعه حاصليږي او پاته سو د جوار (همسايه توب) په وجه د هغه په نيز شفعه نه حاصليږي. لهذا که خاوند په مشترک کور کې خپله حصه د مهر او داسې نورو په عوض کې ورکړي. نو د خاوند شريک په هغه کې حق شفعه لري چې د شفعې په توګه دا حصه (له خاوند څخه) واخلي. کنې که کور يوازې د خاوند وي (بل څوک ور

شریک نه وي) او هغه يې د مهر او داسي نورو په عوض کي ورکړي، نو څرنګه چي په دې کي د هيڅ شرکت نسته، نو ځکه په دې صورت کي د امام شافعي رَحِمَهُ الله په نيز شفعه نه ثابتيږي.

ونحن نقول إلخ: په دې سره صاحب د هدايې رَحِمَهُ الله د احنافو يوه توجيه او د امام شافعي رَحِمَهُ الله د دليل جواب ورکوي، حاصل يې دا دی چي موږ دا مذکوره عوضونه مال متقوّم نه دي شمېرلي (چي دا هر يو قيمتداره مال نه دی)، په خلاف د امام شافعي رَحِمَهُ الله چي هغه دا متقوّم ګڼي، په همدې وجه موږ په مذکوره صورتونو کي د شفعې قائل نه يو او امام شافعي رَحِمَهُ الله شفعه پکښې ثابتوي، او پاته سو دا خبره چي موږ بضع د دخول په حالت کي متقوّم (قيمتداره) شمېرلې ده همدارنګه منافع مو په عقد اجاره کي متقوّم شمېرلي دي، دا ځکه چي اصل خو همدا ده چي دا عوضونه مال نه دي، لېکن د بضع د احترام او اړتيا په وجه همدارنګه د اجارې د اړتيا په وجه يعني د ضرورت پر بناء موږ دا شيان متقوّم شمېرلي دي، او "الضّرورة تقدّر بقدرها" چي ضرورت صرف د ضرورت او اړتيا په اندازه ثابتيږي، لهذا کله چي د دې عوضونو متقوّم کېدل د ضرورت پر بناء دي، نو د مذکوره قاعدې په وجه به په شفعه کي دوی متقوّم نه منل کيږي او کله چي متقوّم نه دي، نو شفعه به هم نه پکښې ثابتيږي.

وکذا الدم إلخ: فرمايي چي د دمِ عمد او آزادۍ په صورت کي هم د شفعې د نه ثابتېدلو وجه د دوی نا متقوّم کېدل دي چي دوی قيمتداره نه دي، ځکه چي قيمت هغه شي ته وايي کوم چي په خاص مطلوب يعني ماليت کي د بل شي قائم مقام او نائب کېدای سي، او په دم او عتق کي له سره ماليت سته نه، لهذا کله چي ماليت پکښې نسته، نو بيا به دوی متقوّم هم نه وي.

وعلى هذا إلخ: د دې حاصل دا دی چي که څوک بغير له مهره د يو ښځي سره نکاح وکړي او تر نکاح وروسته په مهر کي يو کور د هغې لپاره وټاکي (چي په مهر کي دا کور درکوم)، نو دا وروسته ټاکل به داسي ګڼل کيږي ګواکي هغه د نکاح تړلو په وخت کي کور په مهر کي ټاکلی دی، نو ځکه په دواړو صورتونو کي شفعه نه ثابتيږي؛ ځکه څرنګه چي د نکاح تړلو په وخت کي دا ټاکل سوی کور د بضع په مقابله کي دی، همداسي له نکاح تړلو څخه وروسته (بعد العقد) هم د بضع په مقابله کي دی، او په دواړو صورتونو کي مبادلة المال بالمال نسته، نو ځکه په دواړو کي به شفعه نه ثابتيږي.

بخلاف ما إذا باعها إلخ: د مخکيني صورت په خلاف بل صورت ذکر کوي، حاصل يې دا دی چي که څوک د ښځي سره نکاح وکړي او په مهر کي مثلاً لس زره روپۍ وټاکي يا هيڅ هم نه وټاکي او تاسو ته به معلومه وي چي د هيڅ نه ټاکلو په صورت کي مهر مثل واجبيږي، بيا خاوند د دې ټاکل سوي مهر (لس زره) يا مهرِ مثل په عوض کي پر هغه ښځي کور خرڅ کړي، نو په دې کور کي شفعه

ثابتيږي. ځکه چې د شفعې د ثبوت لپاره مبادلة المال بالمال ضروري دی او هغه دلته سته (ځکه د خاوند له طرفه کور دی او د ښځې له طرفه مهر دی چې دواړه مالونه دي). نو ځکه دلته به شفعه ثابتيږي.

## په مهر کې د ټاکل سوي کور يو خاص صورت او په هغه کې د شفعې حکم

وَلَوْ تَزَوَّجَهَا عَلٰى دَارٍ عَلٰى أَنْ تَرُدَّ عَلَيْهِ أَلْفًا او که ديو ښځې سره د کور په عوض کې پر دې شرط نکاح وکړي چې ښځه به هغه ته [مثلا] زر درهمه واپس کوي فَلَا شُفْعَةَ فِيْ جَمِيْعِ الدَّارِ عِنْدَ أَبِيْ حَنِيْفَةَ نو د امام صاحب رَحِمَهُ الله په نيز په ټوله کور کې شفعه نسته وَقَالَا: ۞ تَجِبُ فِيْ حِصَّةِ الْأَلْفِ او صاحبين رَحِمَهُمَا الله فرمايي چې د زرو درهمو والا په حصه کې شفعه ثابتيږي لِأَنَّهُ مُبَادَلَةٌ مَالِيَّةٌ فِيْ حَقِّهِ ځکه چې دا د خاوند په حق کې مالي تبادله [مبادلة المال بالمال] ده وَهُوَ يَقُوْلُ مَعْنَى الْبَيْعِ فِيْهِ تَابِعٌ او امام صاحب رَحِمَهُ الله فرمايي چې د بيع معنی په دې کې تابع ده وَلِهٰذَا يَنْعَقِدُ بِلَفْظِ النِّكَاحِ وَلَا يَفْسُدُ بِشَرْطِ النِّكَاحِ فِيْهِ په همدې وجه د نکاح په لفظ سره بيع منعقد کيږي او په بيع کې د نکاح په شرط لګولو سره هغه نه فاسديږي وَلَا شُفْعَةَ فِي الْأَصْلِ او په اصل کې شفعه نسته فَكَذَا فِي التَّبَعِ نو همداسې به په تابع کې هم نه وي وَلِأَنَّ الشُّفْعَةَ شُرِعَتْ فِي الْمُبَادَلَةِ الْمَالِيَّةِ الْمَقْصُوْدَةِ او ځکه چې شفعه په هغه مالي مبادله کې مشروع ده کوم چې مقصود وي حَتّٰى أَنَّ الْمُضَارِبَ إِذَا بَاعَ دَارًا وَفِيْهَا رِبْحٌ همدا وجه ده که چيرې مضارب يو کور خرڅ کړي او په هغه کې نفع وي لَا يَسْتَحِقُّ رَبُّ الْمَالِ الشُّفْعَةَ فِيْ حِصَّةِ الرِّبْحِ نو ربُّ المال د نفعې په حصه کې د شفعې نه مستحق کيږي لِكَوْنِهِ تَابِعًا فِيْهِ ځکه چې نفع په دې کې تابع ده.

**اللغات**: ﴿تردّ﴾ د نصر د باب واحد مؤنث غائب مضارع صيغه ده: واپس کول. ردول. ﴿ربح﴾ نفع. ګټه.

**تشريح: مسئله**: دا ده چې کوم کور او ځای په مهر کې ورکول سوی وي، په هغه کې د احنافو په نيز بالاتفاق شفعه نسته، لېکن که څوک په مهر کې کور وټاکي مګر دا شرط هم ور سره ولګوي چې مهر خو دا ټوله کور دی لېکن ښځه به ما ته زر درهمه واپس راکوي. اوس په دې صورت کې د شفعې د ثابتېدلو په هکله د امام صاحب او صاحبينو اختلاف دی.

---

۞ القول الراجح: قول أبي حنيفة رحمه الله. انظر للتفصيل بالتوضيح [القول الراجح ج:۲، ص:۲۷۳]

د امام صاحب رَحِمَهُ الله په نيز د دغه کور په هيڅ حصه کي هم شفعه نه ثابتيږي. صاحبين رَحِمَهُمَا الله فرمايي چي دلته د کور دوې حصې دي: ① يوه هغه کوم چي خاوند په مهر کي ټاکلې ده، ② او دويمه هغه چي په عوض کي يې خاوند له ښځي څخه زر درهمه غوښتي دي، د مهر والا په حصه کي موږ دلته هم د مخکي په څېر شفعه نه ثابتوو، لېکن څرنګه چي د زرو درهمو والا حصه کي مالي مبادله (بيع) سته (يعني ګواکي هغه حصه خاوند په زر درهمه سره پر ښځي خرڅه کړه)، نو ځکه په هغه کي به شفعه ثابتيږي.

د امام صاحب دليل دا دی چي صحيح ده! دلته مالي مبادله يعني بيع سته، خو تاسو اوګورئ! چي دلته دا بيع تابع ده، او د دې وجه دا ده چي په لفظ نکاح سره هم دلته بيع منعقد کيږي، حال دا چي په لفظ نکاح سره بيع نه منعقد کيږي، په همدې توګه د نکاح په شرط لګولو سره دلته بيع فاسديږي هم نه، حال دا چي په شرط فاسد سره بيع فاسديږي، معلومه سوه چي دلته بيع تابع ده او نکاح متبوع او اصل ده، او په اصل يعني نکاح (مهر والا حصه) کي شفعه نسته، نو بيا په فرع او تابع يعني بيع کي به هم شفعه نه ثابتيږي او حاصليږي.

ولأن الشفعة إلخ: دا د امام صاحب رَحِمَهُ الله دويم دليل دی، حاصل يې دا دی چي شفعه په هغه مالي مبادله کي ثابتيږي چي هلته خودي دا مالي مبادله (بيع) مقصود وي، او په مذکوره صورت کي نکاح مقصود ده، مالي مبادله يعني بيع مقصود نه ده، لهذا کله چي بيع مقصود نه ده، نو بيا په هغه کي به شفعه هم نه ثابتيږي. او د دې مثال داسي دی لکه څوک چي مضارب ته د تجارت لپاره مثلاً زر درهمه ورکړي، او مضارب تجارت په وکړي او پنځه سوه درهمه ګټه وکړي، بيا مضارب د پنځلس سوه درهمو په عوض کي يو کور رانيسي، بيا وروسته په همدې پنځلس سوه درهمه بيرته هغه کور خرڅ کړي، نو په دې صورت کي ربُ المال ته شفعه نه حاصليږي چي شفعه (مشفوعه کور) واخلي، نه په رأسُ المال يعني د زر درهمو والا په حصه کي شفعه ورته حاصليږي، او نه د ګټي (پنځه سوه درهمو والا) په حصه کي، د رأسُ المال والا په حصه کي خو ځکه نه ورته حاصليږي چي مضاربت د وکالت په څېر دي، يعني په مضاربت کي ربُ المال د مؤکل په درجه کي وي او مضارب د وکيل په درجه کي وي، او د وکيل بيع خودي د مؤکل بيع ده (يعني د وکيل رانيول او خرڅول داسي دي لکه خپله مؤکل چي يې کوي)، لهذا که دلته شفعه ثابته کړی سي، نو په خپله بيع کي به د شفعي اخيستل لازم سئ (يعني ګواکي هغه خپل رانيول سوی کور د شفعي په توګه بيا رانيوی لکوم چي عقلاً او نقلاً دواړه ډوله صحيح نه دي، او د ګټي په حصه کي ځکه شفعه نه ثابتيږي او حاصليږي چي هغه تابع ده، مقصود خو مال

مضاربت دی او په مقصود يعني مالِ مضاربت کي شفعه نه حاصليږي، لهذا په تابع کي به هم نه حاصليږي.

## د انکار يا اقرار په صورت کي پر کور صلح وکړي نو د شفعي حکم

قَالَ: أَوْ يُصَالِحُ عَلَيْهَا بِإِنْكَارٍ [امام قدوري رَحِمَهُ الله] فرمايي: يا هغه کور چي سړی د هغه په هکله په انکار سره صلح وکړي (نو په هغه کي شفعه نسته) [يعني يو شوک ديو چا (مثلاً د زيد) په کور دعویٰ وکړي چي دا کور زما دی او زيد د دې انکار کوي چي نه! ستا نه دی خو بيا هم زيد د هغه (مدعي) سره پر يو شي صلح وکړي، نو په داسي کور کي هم شفعه نسته] فَإِنْ صَالَحَ عَلَيْهَا بِإِقْرَارٍ او که چيري يې د کور په عوض کي په اِقرار سره صلح کړې وي وَجَبَتِ الشُّفْعَةُ نو شفعه ثابتيږي قَالَ رَضِيَ اللهُ عَنْهُ: هٰكَذَا ذُكِرَ فِي أَكْثَرِ نُسَخِ الْمُخْتَصَرِ صاحب د هدايې رَحِمَهُ الله فرمايي: چي د مختصر القدوري په زياتره نسخو کي همدغه عبارت ذکر سوی دی وَالصَّحِيحُ أَوْ يُصَالِحُ عَنْهَا بِإِنْكَارٍ مَكَانَ قَوْلِهِ أَوْ يُصَالِحُ عَلَيْهَا خو د "يصالح عليها" پر ځای د "يصالح عنها بإنكار" عبارت صحيح دی لِأَنَّهُ إِذَا صَالَحَ عَنْهَا بِإِنْكَارٍ ځکه کله چي ده [صلح کونکي] د کور په هکله په انکار سره صلح وکړه بَقِيَ الدَّارُ فِي يَدِهِ فَهُوَ يَزْعُمُ أَنَّهَا لَمْ تَزَلْ عَنْ مِلْكِهِ نو کور د ده په قبضه کي باقي پاته سو او دئ دا ګومان کوي چي له کور څخه د ده ملکيت زائل نه سو وَكَذَا إِذَا صَالَحَ عَنْهَا بِسُكُوتٍ او همدارنګه کله چي دئ په سکوت سره د کور په هکله صلح وکړي [نو شفعه نه ثابتيږي] لِأَنَّهُ يَحْتَمِلُ أَنَّهُ بَذَلَ الْمَالَ افْتِدَاءً لِيَمِينِهِ وَقَطْعًا لِشَغَبِ خَصْمِهِ ځکه چي دا احتمال لري [يعني په دې صورت کي دا احتمال سته] چي ده د خپل قسم په فديه کي او د خپل خصم [مقابل] د شور [او جنجال] ختمولو لپاره مال مصرف کړی وي كَمَا إِذَا أَنْكَرَ صَرِيحًا لکه په هغه صورت کي چي ده صراحتاً انکار کړی وي بِخِلَافِ مَا إِذَا صَالَحَ عَنْهَا بِإِقْرَارٍ په خلاف د هغه صورت کله چي يې د کور په هکله په اقرار سره صلح کړې وي [نو شفعه ثابتيږي] لِأَنَّهُ مُعْتَرِفٌ بِالْمِلْكِ لِلْمُدَّعِي ځکه چي [په دې صورت کي] دئ د مدعی د ملکيت اعتراف کوي وَإِنَّمَا اسْتَفَادَهُ بِالصُّلْحِ او ده دا ملکيت [کور] د صلح په ذريعه حاصل کړی دی فَكَانَ مُبَادَلَةً مَالِيَّةً نو دا به مالي مبادله [مبادلة المال بالمال] وي أَمَّا إِذَا صَالَحَ عَلَيْهَا بِإِقْرَارٍ أَوْ سُكُوتٍ أَوْ إِنْكَارٍ ليکن که ده د کور په عوض

كي په اقرار. يا سكوت يا انكار سره صلح كړې وي وَجَبَتْ الشُّفْعَةُ فِي جَمِيعِ ذٰلِكَ نو په دې ټولو صورتونو كي شفعه ثابتيږي لِأَنَّهُ أَخَذَهَا عِوَضًا عَنْ حَقِّهِ فِي زَعْمِهِ ځکه چي ده د خپل ګومان مطابق كور د خپل حق په عوض كي اخيستى دى إِذَا لَمْ يَكُنْ مِنْ جِنْسِهِ | په دې شرط | چي كله هغه د حق | كور | له جنس څخه نه وي فَيُعَامَلُ بِزَعْمِهِ نو د ده د ګومان مطابق به معامله كول كيږي.

**اللغات**: ﴿يزعم﴾ د مضارع صيغه ده. له نصر او فتح دواړو بابونو څخه راتلاى سي: ګومان كول (احسن الهدايه).

﴿بذل﴾ د نصر له بابه د ماضي صيغه ده: خرچول. مصرفول. وركول. ﴿افتداء﴾ د افتعال مصدر دى : فديه وركول. ﴿شغب﴾ شر او فساد. شور او جنجال. ﴿خصم﴾ فريق مخالف. مقابل.

**تشريح**: صاحب د هدايې رَحِمَهُ الله فرمايي چي د قدوري په اكثره نسخو كي د "يُصَالِحُ عَلَيْهَا" عبارت مذكوره دى. حال دا چي صحيح "يُصَالِحُ عَنْهَا" دى. د "يُصالح عليها" په صورت كي خو په ټولو صورتونو كي شفعه ثابتيږي. يعني برابره ده انكار والا صورت وي او كه د اقرار يا سكوت والا صورت وي. چي د تشريح په آخر كي به ذكر سي.

د عبارت حاصل دا دى چي زيد په يو كور كي اوسيږي. خالد دا دعوىٰ وكړه چي دا كور زما دى. بيا زيد د هغه سره مثلاً په زر درهمه صلح وكړه. تر دې وروسته يو چا مثلاً عُمر په هغه كي د شفعي دعوىٰ وكړه چي زه د دې كور شفيع يم. نو آيا هغه ته شفعه حاصليږي، كه نه؟ په دې هكله تفصيل دى. كه چيري زيد دا مدعي خالد په خپل دعوىٰ كي دروغجن ګڼلى وي (چي دا كور د خالد نه دى. دروغ وايي. محض د جنجال دفع كولو په غرض يې پر زر درهمه صلح ور سره كړې وي). نو په دې صورت كي عُمر (شفيع) ته شفعه نه حاصليږي: ځکه مدعىٰ عليه يعني زيد چي كله انكار وكړى او دعوىٰ يې غلطه او دروغجنه ثابته كړه، نو ګواكي هغه د بيع يعني د مبادلة المال بالمال د وجود انكار وكړى. او كله چي دلته مالي مبادله نسته، نو بيا شفعه هم نه ثابتيږي.

همدارنګه كه زيد د مدعي يعني د خالد د دعوې په هكله سكوت اختيار كړى وي يعني د دعوې انكار يا اثبات يې نه وي كړى او په پټه خوله يې پر زر درهمه صلح ور سره كړې وي، نو په دې صورت كي هم عُمر ته شفعه نه حاصليږي: ځکه چي په اول يعني د انكار په صورت كي (چي خالد په خپله دعوىٰ كي دروغجن دى) زيد دا ثابتوي چي دا كور زما ملكيت دى، خو صرف د جنګ او جنجال دفع كولو په خاطر ما هغه ته زر درهمه وركړي دي چي زوى مړى چپ سي او له شر څخه يې خوندي سم (لكه څرنګه چي دا د شريفو خلكو عادت دى). او په دويم يعني د سكوت په صورت كي كه څه هم زيد په

ښکاره د خالد د دعوې تکذيب نه کوي، خو د هغه سکوت دا ښيي چي هغه له قسم ځخه د خالد د خوندي کولو او د هغه د شر او جنجال ختمولو په خاطر زر درهمه ورکړي دي او له هغه ځخه يې ځان خلاص کړی دی، نو دا صورت به د اول يعني د صراحتاً انکار والا صورت سره لاحقول کيږي. او ځرنګه چي د انکار په صورت کي شفعه نه حاصليږي، همداسي به دلته هم شفعه نه حاصليږي.

بخلاف ما إذا صالح إلخ: په دې سره صاحب د هدايې رَحِمَهُ الله درېيم صورت ذکر کوي. هغه دا چي مدعیٰ عليه يعني زيد د مدعي يعني د خالد سره (پر زر درهمه) صلح هم وکړي او د هغه د دعوې تصديق هم وکړي چي هو! دا کور ستا دی. دا زر درهمه واخله بيا ما او تا سره خلاص يو چي بيا رنځ ونه لرې. نو ځرنګه چي په دې صورت کي مدعیٰ عليه (زيد) د مدعي (خالد) د ملکيت اقرار کونکی دی او بيا د زر درهمه په ورکولو سره دا ثابتونکی دی چي دلته مالي مبادله موجوده ده. او کله چي په دې صورت کي مالي مبادله سته. نو شفعه به هم ثابتيږي. لهذا په دې درېيم صورت کي به شفيع (عمر) ته شفعه حاصليږي (يعني دا مشفوعه مصالح عنها کور به هغه ته ورکول کيږي).

أما إذا صالح عليها إلخ: مخکي خو دا مسئله وه چي دعویٰ د کور په هکله وي او صلح پر بل شي يعني پر درهمو سوېږيه. دلته دا راښيي چي که دعویٰ له کور ځخه بغير د بل جنس (بل شي) په باره کي وي. مثلاً د زيد په لاس کي يوه قيمتي غوا ده او خالد په هغه دعویٰ وکړه چي دا زما غوا ده. بيا زيد پر کور (د کور په عوض کي) صلح ور سره وکړه يعني په صلح کي يې کور ورکړی. نو برابره ده زيد د مدعي (خالد) د دعوې انکار کړی وي يا يې سکوت اختيار کړی وي يا يې اقرار کړی وي، په دريو سره صورتونو کي په دغه کور کي شفعه ثابتيږي او شفيع لره شفعه حاصليږي. ځکه ښکاره خبره ده چي دا کور د مدعي (خالد) د حق عوض دی يعني مدعي چي د کوم حق دعویٰ کوي چي دا غوا زما ملکيت دی، هغه ته د دغه حق په عوض کي کور ورکول سوی دی نو مالي مبادله موجوده سوه (ځکه د غوا په بدله کي کور ورکول سوی دی چي دا ګواکي بيع او مالي مبادله ده)، نو ځکه په دې صورت کي شفعه ثابتيږي.

ها! که دعویٰ د کور په باره کي وي (لکه مخکيني صورت) او په صلح کي هم کور ورکول سي، نو په دې صورت کي د بيع معنیٰ يعني مالي مبادله موجوده نه سوه. نو ځکه موږ وويل چي په دې صورت کي شفعه نه ثابتيږي.

خلاصه د کلام دا چي د شفعي د ثابتېدلو مدار د مدعي (خالد) پر ګومان دی که چيري هغه دا کور (کوم چي هغه ته په صلح کي ورکول سوی دی) د خپل حق له جنس ځخه نه وګڼي. نو شفعه سته. کنې نسته.

## په هبه کړی سوي جايداد کي د شفعي حکم

قَالَ: وَلَا شُفْعَةَ فِي هِبَةٍ فرمايي: او په هبه کي شفعه نسته لِمَا ذَكَرْنَا د هغه دليل په وجه کوم چي موږ ذکر کړی إِلَّا أَنْ تَكُونَ بِعِوَضٍ مَشْرُوطٍ مګر دا چي هبه په شرط کړی سوی عوض سره وي لِأَنَّهُ بَيْعٌ انْتِهَاءً ځکه چي داسي هبه د انتهاء په اعتبار سره بيع ده وَلَا بُدَّ مِنَ الْقَبْضِ وَأَنْ لَا يَكُونَ الْمَوْهُوبُ وَلَا عِوَضُهُ شَائِعًا او ضروري ده قبضه او دا چي هبه کړی سوی شی او د هغه عوض به شائع [نا تقسيم شده] نه وي [بلکي مقسوم (تقسيم شده) به وي يعني بل څوک به په هغه کي شريک نه وي] لِأَنَّهُ هِبَةٌ ابْتِدَاءً ځکه چي دا ابتداءً هبه ده وَقَدْ قَرَّرْنَاهُ فِي كِتَابِ الْهِبَةِ او په کتابُ الهبه موږ کي د دې بيان کړی دی بِخِلَافِ مَا إِذَا لَمْ يَكُنِ الْعِوَضُ مَشْرُوطًا فِي الْعَقْدِ په خلاف د هغه صورت کله چي عوض په عقدِ هبه کي شرط کړی سوی نه وي لِأَنَّ كُلَّ وَاحِدٍ مِنْهُمَا هِبَةٌ مُطْلَقَةٌ ځکه چي [په دې صورت کي] هبه او عوض دواړه مطلق هبه دي إِلَّا أَنَّهُ أُثِيبَ مِنْهَا فَامْتَنَعَ الرُّجُوعُ مګر کله چي د دې هبې عوض ورکول سو نو رجوع کول ممتنع [ناممکن] سوه.

**اللغات**: ﴿شائع﴾ د ضرب د باب فاعل دی، خپله معنی يې ده: منتشر، خپور، اصطلاحي معنی يې ده: مشترک شی کوم چي تر اوسه تقسيم سوی نه وي، نا تقسيم شده (غيرِ مقسوم).

**تشريح**: **مسئله**: دا ده که څوک بل چا ته يو جايداد (مثلاً کور، ځمکه او داسي نور) هبه کړي، نو په داسي جايداد کي د شفعي حق نسته او د شفعي طلبګار ته شفعه نه پکښني حاصليږي، ځکه د شفعي لپاره مالي مبادله ضروري ده (چي له دواړو طرفونو څخه به مال وي يعني له يوه طرفه جايداد او له بله طرفه پيسې)، حال دا چي په هبه کي مالي مبادله نسته، په همدې وجه په هبه کړی سوي ځای کي شفعه نه حاصليږي.

إلا أن تكون إلخ: په دې سره دا راښيي چي که څوک بل چا ته يو جايداد هبه کړي خو دا شرط هم ولګوي چي ته (موهوب لهٗ) به ما (واهب) ته مثلاً زر درهمه هبه کوې، نو په دې صورت کي په هغه کي شفعه ثابتيږي، ځکه د هبه بشرط العوض دوه حيثيتونه دي: ① ابتداءً هغه هبه ده، ② خو انتهاءً بيع ده، لهذا کله چي په هبه بشرط العوض کي دوه حيثيتونه دي، نو د دواړو لحاظ به کيږي، څرنګه چي هغه ابتداءً هبه ده، نو ځکه په هغه کي به د هبې احکام جاري کيږي او څرنګه چي په هبه کي قبضه ضروري ده، نو همداسي به په هغه (هبه بشرط العوض) کي هم قبضه ضروري وي، همدا ډول په هبه کي

د موهوب او د هغه د عوض مقسوم کېدل ضروري دي (چي هغه به تقسيم شده وي يعني د بل چا شرکت به پکښي نه وي کنې قبضه نه سي پر کېدای او هبه باطلېږي]، نو همداسي به په هبه بشرط العوض کي هم دا خبره ضروري وي.

او انتهاءً (د آخري حالت په اعتبار سره) دا بيع ده، ځکه چي په دې (هبه بشرط العوض) کي د عوض ورکولو شرط لګول سوی دی (چي ما ته به زر درهمه راکوې)، نو کله چي انتهاءً دا بيع ده، نو په دې کي به د بيع احکام جاري کېږي او د بيع په صورت کي شفعه حاصلېږي، لهذا د هبه بشرط العوض په صورت کي به هم شفعه حاصلېږي (په کتابُ الهبة کي د دې مکمل تحقيق تېر سوی دی).

**بخلاف ما إذا إلخ:** د دې خاصل دا دی چي کله د عقد هبه پر مهال د عوض شرط لګول سوی وي نو شفعه ثابتېږي، لېکن که د عقد پر مهال عوض ورکول مشروط نه وي او تر عقد وروسته موهوب لهٗ (له خپل ځانه) واهب ته د هبې عوض ورکړي، نو په دې صورت کي شفعه نه ثابتېږي؛ ځکه چي اوس هبه او عوض دواړه فقط هبه دي، د مالي مبادلې هېڅ صورت نسته، او موهوب لهٗ چي واهب ته د هبې عوض ورکړی، د دې فايده دا ده چي په دې سره د واهب د استرداد (واپس اخيستلو) حق ختم سو (يعني تر دې وروسته واهب پر موهوب لهٗ رجوع نه سي کولای چي موهوب جايداد واپس ځني واخلي)، لأنّ العوض يقطع حق الرجوع.

## د بيع بشرط الخيار په صورت کي د شفعي حکم

| |
|---|
| قَالَ: وَمَنْ بَاعَ بِشَرْطِ الْخِيَارِ فرمايي: او څوک چي په خيار شرط سره خرڅول وکړي [يعني په خيار شرط سره جايداد (ځمکه يا کور...) خرڅ کړي] فَلَا شُفْعَةَ لِلشَّفِيعِ نو د شفيع لپاره شفعه نسته لِأَنَّهُ يَمْنَعُ زَوَالَ الْمِلْكِ عَنِ الْبَائِعِ ځکه چي دا [د بائع خيار شرط] د بائع د ملکيت زائلېدل منع کوي فَإِنْ أَسْقَطَ الْخِيَارَ بيا که بائع خيار ساقط کړی وَجَبَتِ الشُّفْعَةُ نو شفعه ثابتېږي لِأَنَّهُ زَالَ الْمَانِعُ عَنِ الزَّوَالِ ځکه چي [د ملکيت] د زائلېدلو منع کونکی شی [يعني خيار] زائل سو وَيُشْتَرَطُ الطَّلَبُ عِنْدَ سُقُوطِ الْخِيَارِ فِي الصَّحِيحِ او د صحيح قول مطابق د خيار ساقطېدلو په وخت کي طلب شرط دی لِأَنَّ الْبَيْعَ يَصِيرُ سَبَبًا لِزَوَالِ الْمِلْكِ عِنْدَ ذٰلِكَ ځکه چي په همدې وخت کي بيع د ملکيت زائلېدلو سبب جوړېږي. |

**اصول:** تر تشريح مخکي دا اصول په ياد لرئ! چي که په بيع کي بائع لره خيار وي (يعني بائع خيار شرط اخيستی وي چي که مي په درېو ورځو کي دننه دا بيع او سودا خوښه سوه نو مبيع ستا ده، کنې مبيع به واپس راکوې!)، نو په دې صورت کي مبيع د بائع له ملکيت څخه نه وځي (يعني د بائع ملکيت نه زائلېږي)، او

که مشتري لره خيار وي. نو مبيع د بائع له مکيت څخه وځي. بيا د مشتري په ملکيت کي داخليږي. که نه. په دې کي د امام صاحب او صاحبينو اختلاف دی. امام صاحب فرمايي چي نه داخليږي او صاحبين فرمايي چي داخليږي.

**تشريح**: **مسئله**: دا ده که څوک په خيار شرط سره خپله ځمکه خرڅ کړي. نو تر څو چي خيار باقي پاته وي. شفيع ته شفعه نه حاصليږي، ځکه د شفعي د ثبوت لپاره دا ضروري دي چي بيع به داسي وي کوم چي د شفعي سبب جوړېدای سي. او څرنګه چي د خيار په موجوديت کي مبيع د همدې بائع په ملکيت کي پاتيږي او د بائع ملکيت نه زائليږي (لکه اصول چي ذکر سو). نو ځکه د خيار په موجوديت کي بيع د شفعي سبب نه سي جوړېدای. او کله چي سبب موجود نه سو. نو مسبب يعني شفعه به څنګه ثابت سي!.

لېکن که بائع خپل خيار (اختيار) ساقط کړي يا د خيار مودت ختم سي. نو څرنګه چي اوس مبيع د بائع له ملکيت څخه ووتل. نو ځکه په دې صورت کي بيع د شفعي سبب جوړيږي او شفعه ثابتيږي.

ويشترط إلخ: په دې سره صاحب د هدايي رَحِمَهُ الله دا رانبيي چي که څه هم بعضي مشائخو ويلي دي چي په بيع بشرط الخيار کي د بيع په وخت کي (د شفعي) طلب شرط دی. لېکن صحيح خبره دا ده چي د خيار د سقوط (ساقطېدلو) په وخت کي طلب شرط دی، ځکه د همدې خيار تر سقوط وروسته بيع د بائع د ملکيت زائلېدلو سبب جوړيږي. لهذا تر هغه مخکي د طلب په شرطولو کي څه فايده نسته.

## د شراء بالخيار په صورت کي د شفعي حکم

وَإِنِ اشْتَرَى بِشَرْطِ الْخِيَارِ او که مشتري په خيار شرط سره رانيول وکړي وَجَبَتِ الشُّفْعَةُ نو شفعه ثابتيږي لِأَنَّهُ لَا يَمْنَعُ زَوَالَ الْمِلْكِ عَنِ الْبَائِعِ بِالِاتِّفَاقِ ځکه چي دا بالاتفاق له بائع څخه د ملکيت زائلېدل نه منع کوي وَالشُّفْعَةُ تَبْتَنِي عَلَيْهِ او شفعه د همدې ملکيت پر زائلېدلو مبني ده عَلَى مَا مَرَّ لکه [مخکي] چي تېر سوه وَإِذَا أَخَذَهَا فِي الثَّلَاثِ او کله چي شفيع په درېو ورځو کي دننه شفعه واخلي وَجَبَ الْبَيْعُ نو بيع لازميږي لِعَجْزِ الْمُشْتَرِي عَنِ الرَّدِّ ځکه چي [اوس] مشتري له واپس کولو څخه عاجز سو وَلَا خِيَارَ لِلشَّفِيعِ او شفيع ته خيار نه حاصليږي لِأَنَّهُ يَثْبُتُ بِالشَّرْطِ ځکه چي خيار په شرطولو سره ثابتيږي وَهُوَ لِلْمُشْتَرِي دُونَ الشَّفِيعِ او هغه د مشتري لپاره وو. نه د شفيع لپاره وَإِنْ بِيعَتْ دَارٌ إِلَى جَنْبِهَا او که د دې کور څنګ ته يو کور خرڅ سي وَالْخِيَارُ لِأَحَدِهِمَا او په دوی دواړو

[بائع او مشتري کې] دیوه لپاره خیار هم وي فَلَهُ الْأَخْذُ بِالشُّفْعَةِ نو د هغه لپاره په شفعه سره د اخیستلو حق سته أَمَّا لِلْبَائِعِ فَظَاهِرٌ پاته سو د بائع لپاره خو ښکاره دی لِبَقَاءِ مِلْكِهِ فِي الَّتِي يَشْفَعُ بِهَا ځکه چې د ده ملکیت باقي دی په هغه کور کې چې دئ د هغه په ذریعه شفعه اخلي وَكَذَا إِذَا كَانَ لِلْمُشْتَرِي او همدارنګه کله چې خیار د مشتري لپاره وي وَفِيهِ إِشْكَالٌ أَوْضَحْنَاهُ فِي الْبُيُوعِ او په دې کې یو اشکال [او خند] دی چې هغه موږ په کتاب البیوع کې څرګند کړی دی فَلَا نُعِيدُهُ نو ځکه موږ هغه بیا نه راګرځوو وَإِذَا أَخَذَهَا او کله چې مشتري دا کور واخلي كَانَ إِجَازَةً مِنْهُ لِلْبَيْعِ نو دا به د هغه له طرفه د بیع اجازت وي بِخِلَافِ مَا إِذَا اشْتَرَاهَا وَلَمْ يَرَهَا په خلاف د هغه صورت کله چې مشتري کور رانیسي حال دا چې هغه یې نه وي لیدلی حَيْثُ لَا يَبْطُلُ خِيَارُهُ بِأَخْذِ مَا بِيعَ بِجَنْبِهَا بِالشُّفْعَةِ نو په دې صورت کې د هغه خیار [خیار رؤیت] نه باطلیږي په شفعه سره د هغه کور د اخیستلو په وجه کوم چې د رانیول سوي کور تر څنګ خرڅ سوی وي لِأَنَّ خِيَارَ الرُّؤْيَةِ لَا يَبْطُلُ بِصَرِيحِ الْإِبْطَالِ ځکه چې خیار رؤیت په صراحتاً باطلولو سره هم نه باطلیږي فَكَيْفَ بِدَلَالَتِهِ نو د ابطال په دلالت سره به څنګه باطل سي ثُمَّ إِذَا حَضَرَ شَفِيعُ الدَّارِ الْأُولَى بیا چې کله د اول کور شفیع راسي لَهُ أَنْ يَأْخُذَهَا دُونَ الثَّانِيَةِ نو هغه ته د همدې اول کور د اخیستلو اختیار سته، نه د دویم کور لِانْعِدَامِ مِلْكِهِ فِي الْأُولَى حِينَ بِيعَتِ الثَّانِيَةُ ځکه چې په اول کور کې د دغه شفیع ملکیت معدوم وو کله چې دویم کور خرڅیدی [یعني د دویم کور د خرڅیدلو پر مهال په اول کور کې د ده ملکیت نه وو].

**اللغات:** ﴿تبتنى﴾ د افتعال د باب مضارع ده: مبني کېدل. ﴿جنب﴾ بغل، څنګ.

**تشریح:** په مخکنی مسئله کې د بائع د خیار صورت بیان سو. او دلته د مشتري د خیار بیان دی او مخکې دا اصول هم تاسو ووایی چې د مشتري د خیار په صورت کې مبیع د بائع له ملکیت څخه وځي او د بائع ملکیت زائلیږي. نو معلومه سوه چې په دې صورت کې شفعه حاصلیږي. ځکه د شفعې مدار د بائع د ملکیت پر زوال دی.

خلاصه دا چې کله مشتري د خپل ځان لپاره خیا واخلي. نو هغه ته دا اختیار دی چې په دریو ورځو کې دننه. دننه که وغواړي بیع دې رد کړي او که وغواړي بیع دې لازم او نافذ کړي، لیکن که په

دريو ورځو کي دننه شفيع دغه کور په شفعه سره واخلي، نو اوس بيع خود بخوده لازمه سوه، ځکه اوس مشتري د بيع پر ردولو قادر پاته نه سو.

لوس پر دې سوال کيږي چي دلته چي کوم خيار د مشتري لپاره ثابت دی، آيا دا خيار به د شفيع لپاره هم وي، که نه؟، نو په جواب کي فرمايي چي نه! د مشتري خيار شفيع ته نه حاصليږي؛ ځکه خيارِ شرط په شرطولو سره حاصليږي او دا معامله د بائع او مشتري تر مينځ سوې ده نه د بائع او شفيع تر مينځ (يعني خيارِ شرط د ځان لپاره مشتري شرط کړی دی نه شفيع).

وإن بيعت إلخ: له دې ځايه يوه بله مسئله بيانوي، حاصل يې دا دی چي د دوو خلکو تر مينځ ديو ځای يا کور بيع وسوه او له دوی دواړو څخه يوه د ځان لپاره د خيار شرط ولګوی (خيار يې واخيستی)، بيا له خيار ختمېدلو څخه مخکي د هغه ځای يا کور څنګ ته يو بل دويم کور خرڅ سو، نو په دې صورت کي چي د کوم عاقد لپاره خيار ثابت وي (يعني کوم يوه چي د خيار شرط لګولی وي هغه که مشتري وي او که بائع وي)، شفعه هغه ته حاصليږي.

پاته سوه دا خبره چي بائع ته ولي حاصليږي، نو د دې جواب ښکاره دی چي کله د بائع لپاره خيار ثابت وي، نو ځای د هغه په ملکيت کي پاته وي لهذا شفعه به هغه ته حاصليږي، همدارنګه که خيار د مشتري لپاره ثابت وي نو مشتري ته به هم شفعه حاصليږي.

وفيه إشكال إلخ: د مشتري لپاره د خيار ثابتېدلو په صورت کي مشتري ته د شفعي حاصلېدلو په هکله صاحب د هدايې فرمايي "وفيه إشكالٌ أوضحناه في كتاب البيوع فلا نعيده"، اشکال دا دی چي دا خبره خو د صاحبينو د مسلک مطابق صحيح ده، ځکه د دوی په نيز حکم دا دی چي کله مبيع (ځای) د بائع له ملکيته ووځي نو د مشتري په ملکيت کي داخليږي (لکه څرنګه چي مخکي اُصول ذکر سو)، نو د دوی په نيز اوس د ځای مالک مشتري دی. خو د امام صاحب رَحِمَهُ الله په نيز که څه هم مبيع د بائع له ملکيته ووځي مګر د مشتري په ملکيت نه داخليږي، او شفعه د ملکيت پر بنياد حاصليږي، نو بيا دلته شفيع (مشتري) ته ولي شفعه حاصليږي، دا اشکال دی.

د دغه اشکال جواب دا دی چي کله مشتري د شفعي (مشفوعه کور) پر اخيستلو اقدام وکړی، نو دغه اقدام د دې خبري دليل دی چي هغه خيار ساقط کړی او بيع يې نافذ او پر ځان لازم کړه، او په دې صورت کي خو ښکاره خبره ده چي ځای د مشتري په ملکيت کي داخل سو او هم هغه يې مالک دی.

(او دغه اشکال او جواب مصنف رَحِمَهُ الله په هدايه کي نه دي بيان کړي، کېدای سي په کفاية المنتهي کي يې بيان کړي وي).

وإذا أخذها إلخ: يعني كله چې مشتري په شفعه سره کور واخلي (پر شفعه اقدام وکړي)، نو دا د هغه له طرفه د بيع اجازت دی (چې هغه بيع نافذ او لازم کړه).

بخلاف إلخ: ها! كله چې مشتري دا دويم (مشفوعه) کور په شفعه سره واخلي او رانيول سوی ځای يا کور تر اوسه مشتري نه وي ليدلی، اوس هغه ووينې، نو ده ته خيارِ رؤيت حاصليږي او په شفعه سره د کور اخيستلو په وجه د ده خيارِ رؤيت نه باطليږي، ځکه خيارِ رؤيت په صراحتاً باطلولو سره هم نه باطليږي او په شفعه سره کور اخيستل خو د خيار رؤيت د إبطال (باطلولو) محض دليل دی، لهذا کوم حق چې په صراحتاً باطلولو سره نه باطليږي، نو هغه به د إبطال په دلالت سره څنګه باطل سي!.

ثم إذا حضر الشفيع إلخ: د دې حاصل دا دی چې که مشتري دا دويم (مشفوعه) کور په شفعه سره واخلي، بيا د هغه اول ځای يا اول کور شفيع راسي کوم چې مشتري رانيولی دی (چې د هغه په وجه مشتري ته په دې دويم [مشفوعه] کور کې شفعه حاصل سوې ده) او د شفعې دعویٰ وکړي، نو دغه شفيع ته صرف په اولني ځای او کور کې شفعه حاصليږي، نه په دويم کور کې، ځکه کله چې دا دويم کور خرڅېدی، په هغه وخت کې د شفيع ملکيت معدوم وو، لهذا اوس هغه ته په دې دويم کور کې شفعه هم نه سي حاصلېدای.

## په بيع فاسد کې د شفعې حکم

قَالَ: وَمَنِ ابْتَاعَ دَارًا شِرَاءً فَاسِدًا فرمايي: او که څوک په شراءِ فاسد سره يو کور رانيسي فَلَا شُفْعَةَ فِيهَا نو په هغه کې شفعه نسته [نه تر قبضې مخکې او نه وروسته] أَمَّا قَبْلَ الْقَبْضِ فَلِعَدَمِ زَوَالِ مِلْكِ الْبَائِعِ پاته سو تر قبضې مخکې ځکه [شفعه پکښې نسته] چې د بائع ملکيت زائل سوی نه دی وَبَعْدَ الْقَبْضِ لِاحْتِمَالِ الْفَسْخِ او تر قبضې وروسته د فسخ د احتمال په وجه وَحَقُّ الْفَسْخِ ثَابِتٌ بِالشَّرْعِ لِدَفْعِ الْفَسَادِ او د فسخ حق په شريعت سره ثابت دی د فساد ليرې کولو لپاره وَفِي إِثْبَاتِ حَقِّ الشُّفْعَةِ تَقْرِيرُ الْفَسَادِ او د حقِ شفعه په ثابتولو کې د فساد مضبوطول سته [يعني بعد القبض د شفعې په ثابتولو کې فساد ثابتيږي] فَلَا يَجُوزُ نو ځکه دا جائز نه دي بِخِلَافِ مَا إِذَا كَانَ الْخِيَارُ لِلْمُشْتَرِي فِي الْبَيْعِ الصَّحِيحِ په خلاف د هغه صورت کله چې په بيع صحيح کې د مشتري لپاره خيار ثابت وي لِأَنَّهُ صَارَ أَخَصَّ بِهِ تَصَرُّفًا ځکه چې مشتري مخصوص دی د مبيع سره د تصرف په اعتبار سره [يعني ځکه په بيع صحيح کې مشتري په تصرّف کولو سره

مخصوص دی] وَفِي الْبَيْعِ الْفَاسِدِ مَمْنُوعٌ عَنْهُ او په بیع فاسد کي مشتري له تصرف کولو څخه منع کړی سوی دی.

**اللغات**: ﴿ابتاع﴾ د افتعال د باب ماضي ده: رانيول. ﴿دفع﴾ د فتح د باب مصدر دی: ليري کول.

**تشریح**: دا خو تاسي ته معلومه ده چي په بیع کي د فاسد شرط په لګولو سره بیع فاسدیږي. صورت د مسئلې دا دی چي که څوک يو کور رانيسي او فاسد شرط ولګوي چي د هغه په وجه بیع فاسده سي نو برابره ده هغه پر دغه کور قبضه کړي وي، که نه وي په دواړو صورتونو کي شفيع ته شفعه نه حاصليږي، تر قبضې مخکي خو ځکه نه ورته حاصليږي چي تر اوسه د بائع ملکيت ختم سوی نه دی او مخکي ذکر سوه چي د شفعي د ثبوت لپاره دا ضروري ده چي د بائع ملکيت به (له مبيع څخه) زائل او ختم سوی وي. او تر قبضې وروسته د شفعي د نه ثابتېدلو علت دا دی چي دلته د فاسد شرط په وجه په بیع کي فساد داخل سوی دی او د فسخ (ماتېدلو) احتمال پيدا سوی دی او شريعت د فساد ختمولو حکم کړی دی. لهذا که شفعه ثابته کړو نو د ختمولو پر ځای به د فساد نور مضبوطول لازم سي. نو ځکه بعد القبض هم شفعه نه ورته حاصليږي.

بخلاف ما إذا إلخ: دا د يو اعتراض جواب دی، اعتراض دا دی چي څرنګه په بیع فاسد کي د بیع د فسخ (ماتېدلو) احتمال سته، همداسي که په بیع صحيح کي هم مشتري د ځان لپاره خيار شرط کړي، نو هلته هم دا احتمال سته چي مشتري به بیع فسخ کړي. لهذا څرنګه چي په بیع فاسد کي د فسخ د احتمال پر بناء شفعه نه حاصليږي، همداسي په بیع صحيح کي هم د دغه احتمال په وجه شفعه نه حاصلېدل پکار دي، حال دا چي هلته خو شفعه حاصليږي. د دې څه وجه ده؟.

د جواب حاصل دا دی چي بیع فاسد پر بیع صحيح قياسول صحيح نه دي: ځکه په بیع صحيح کي د خيار باوجود مشتري ته د تصرف مکمل اختيار دی، او په بیع فاسد کي مشتري له تصرف څخه منع کړی سوی دی، نو کله چي په دواړو صورتونو کي دومره فرق دی، نو بيا يو پر بل قياسول بالکل صحيح نه دي.

## د پورتنی مسئلې نور وضاحت

قَالَ: فَإِنْ سَقَطَ حَقُّ الْفَسْخِ فرمايي: بيا که د فسخ حق ساقط سي وَجَبَتِ الشُّفْعَةُ نو شفعه ثابتيږي لِزَوَالِ الْمَانِعِ ځکه چي مانع زائل سو وَإِنْ بِيعَتْ دَارٌ بِجَنْبِهَا وَهِيَ فِي يَدِ الْبَائِعِ بَعْدُ او که د دغه کور څنګ ته يو کور خرڅ سي حال دا چي دا کور تر اوسه د بائع په قبضه کي وي فَلَهُ الشُّفْعَةُ نو د هغه لپاره شفعه سته لِبَقَاءِ مِلْكِهِ ځکه چي د هغه ملکيت باقي پاته دی وَإِنْ سَلَّمَهَا إِلَى الْمُشْتَرِيْ او که

بائع دا کور مشتري ته سپارلی وي فَهُوَ شَفِيعُهَا نو همدا مشتري د هغه [خرڅ کړی سوي] کور شفيع کيږي لِأَنَّ الْمِلْكَ لَهُ ځکه چي ملکيت د ده لپاره دی ثُمَّ إِنْ سَلَّمَ الْبَائِعُ قَبْلَ الْحُكْمِ بِالشُّفْعَةِ لَهُ بيا که د بائع لپاره د شفعي تر فيصلې مخکي بائع کور [ومشتري ته] سپارلی وي بَطَلَتْ شُفْعَتُهُ نو د ده [بائع] شفعه باطليږي كَمَا إِذَا بَاعَ لکه کله چي ده کور خرڅ کړی وي بِخِلَافِ مَا إِذَا سَلَّمَ بَعْدَهُ په خلاف د هغه صورت کله چي تر فيصلې وروسته بائع ورسپارلی وي لِأَنَّ بَقَاءَ مِلْكِهِ فِي الدَّارِ الَّتِي يَشْفَعُ بِهَا بَعْدَ الْحُكْمِ بِالشُّفْعَةِ لَيْسَ بِشَرْطٍ ځکه د شفعي تر فيصلې وروسته په هغه کور کي (چي د هغه په وجه بائع د شفعي طلب کوي) د ده ملکيت باقي پاتېدل ضروري نه دي فَبَقِيَتِ الْمَأْخُوذَةُ بِالشُّفْعَةِ عَلَى مِلْكِهِ نو په شفعه سره اخيستل سوی کور به د ده په ملکيت کې باقي پاتيږي وَإِنِ اسْتَرَدَّهَا الْبَائِعُ مِنَ الْمُشْتَرِي قَبْلَ الْحُكْمِ بِالشُّفْعَةِ لَهُ او که د مشتري لپاره د شفعي تر فيصلې مخکي بائع له هغه ځخه خپل کور واپس واخلي بَطَلَتْ نو د مشتري شفعه باطليږي لِانْقِطَاعِ مِلْكِهِ عَنِ الَّتِي يَشْفَعُ بِهَا قَبْلَ الْحُكْمِ بِالشُّفْعَةِ ځکه د شفعي تر فيصلې مخکي چي د کوم کور په ذريعه هغه د شفعي طلب کوی [شفعه ورته حاصليږي] په هغه کور کي د ده ملکيت ختم سو وَإِنِ اسْتَرَدَّهَا بَعْدَ الْحُكْمِ او که د شفعي تر فيصلې وروسته بائع کور واپس واخلي بَقِيَتِ الثَّانِيَةُ عَلَى مِلْكِهِ نو دويم کور د مشتري په ملکيت کي باقي پاتيږي لِمَا بَيَّنَّا د هغه دليل په وجه کوم چي موږ بيان کړی.

**اللغات**: ﴿استردّ﴾ د استفعال د باب ماضي ده: واپس اخيستل. ﴿انقطاع﴾ د انفعال د باب مصدر دی: قطع کېدل، ختمېدل.

**تشريح**: دلته دا خبره په ياد لرئ چي مذکوره ټوله بحث د بيع فاسد په هکله دی، فرمايي چي که په بيع فاسد کي د فسخ احتمال ختم سي (په دې توګه چي مشتري هغه کور پر بل چا خرڅ کړي)، نو ځرنګه چي اوس د بائع د ملکيت منع کونکی شی زائل سو، نو ځکه اوس به په دې کور کي شفعه ثابتيږي.

وان بيعت إلخ: د دې حاصل دا دی چي که بائع په شرط فاسد سره کور خرڅ کړي او تر اوسه يې هغه مشتري ته سپارلی نه وي چي په دې دوران کي د هغه کور څنګ ته بل دويم کور خرڅ سي، نو ځرنګه چي اول کور تر اوسه د بائع په ملکيت کي دی، نو ځکه اوس د دې دويم کور د شفعي حق همدې بائع

ته حاصل دی (بائع يې شفيع دی)، لېکن که بائع هغه کور مشتري ته سپارلی وي، څرنګه چې اوس د بائع ملکيت زائل او ختم سو او د مشتري ملکيت راغلی، نو ځکه اوس په دويم کور کې د شفعي حق مشتري ته حاصل دی.

ثم إن سلم إلخ: د دې حاصل دا دی چې بائع په شرطِ فاسد سره کور خرڅ کړی او کور تر اوسه د هغه په قبضه کې دی، بيا د هغه کور څنګ ته بل دويم کور خرڅ سو او بائع د ځان لپاره د شفعي دعویٰ وکړه (چې د دې کور شفيع زه يم)، مګر مخکې تر دې چې قاضي د بائع لپاره د شفعي فيصله وکړي بائع هغه خرڅ کړی سوی کور مشتري ته وسپاری، نو څرنګه چې په دې صورت کې د قاضي د قضاء (فيصلې) پر وخت په اول کور کې د بائع ملکيت نسته، نو ځکه اوس هغه ته شفعه نه حاصلېږي، لېکن که بائع د ځان لپاره د شفعي تر قضاء وروسته هغه کور مشتري ته سپارلی وي، نو بيا هغه ته شفعه حاصلېږي، ځکه چې د قاضي د قضاء پر وخت په اول کور کې د ده ملکيت بحاله دی، او د شفعي تر قضاء وروسته د ده د ملکيت باقي پاتېدل ضروري نه دي.

وإن استردّها إلخ: په دې سره د مخکنۍ مسئلې صورت بيان سوی دی، يعني بائع کور ومشتري ته وسپاری، بيا د هغه کور تر څرنګ يو بل کور خرڅ سو او مشتري د ځان لپاره د شفعي دعویٰ وکړه لېکن د قاضي تر قضاء مخکې بائع له مشتري څخه اولنی کور واپس واخيستی، نو څرنګه چې په دې صورت کې د شفعي د قضاء پر وخت په اول کور کې د مشتري ملکيت ختم او زائل دی، نو ځکه د دغه اول کور (دارِ اول) په وجه هغه ته په دې بل کور (دارِ ثاني) کې شفعه نه سي حاصلېدای. لېکن که د مشتري په حق کې د شفعي قضاء (فيصله) وسي او تر دې وروسته بائع اول کور واپس واخلي، نو څرنګه چې په دې صورت کې د قضاء پر مهال په اول کور کې د مشتري ملکيت قائم دی، نو ځکه اوس د دغه اول کور په وجه هغه ته په دې بل کور (دارِ ثاني) کې شفعه حاصلېږي.

## د جايداد د تقسيم په صورت کې د شفعي حکم

قَالَ: وَإِذَا اقْتَسَمَ الشُّرَكَاءُ الْعَقَارَ فرمايي: او کله چې شريکان جايداد تقسيم کړي فَلَا شُفْعَةَ لِجَارِهِمْ بِالْقِسْمَةِ نو د دوی همسايه ته د تقسيم پر بنياد شفعه نه حاصلېږي لِأَنَّ الْقِسْمَةَ فِيهَا مَعْنَى الْإِفْرَازِ ځکه چې په تقسيم کې د جلا کولو معنیٰ سته [چې دوی خپلې حصې جلا کړي، او په دې کې د بيع معنیٰ نسته] وَلِهٰذَا يَجْرِي فِيهَا الْجَبْرُ په همدې وجه په تقسيم کې مجبوره کول جاري دي وَالشُّفْعَةُ مَا شُرِعَتْ إِلَّا فِي الْمُبَادَلَةِ الْمُطْلَقَةِ او شفعه صرف په مطلقه مالي مبادله کې مشروع سوې ده.

**اللغات:** ﴿اقتسم﴾ تقسيم او وېش كول، تقسيمول. ﴿إفراز﴾ د افعال د باب مصدر دی: جلا كول (جلا كول)، عليحده كول. ﴿جَبْر﴾ د نصر د باب مصدر دی: مجبوره كول.

**تشريح:** مخكې دا خبره تېره سوه چې د شفعې استحقاق د بيع پر بنياد ثابتيږي. لهذا كه يو جايداد مثلاً ځمكه د څو شريكانو تر مينځ مشتركه وي او بيا دا شريكان هغه سره تقسيم كړي (يعني هر يو خپله حصه جلا كړي)، نو په دې صورت كې د دوی همسايه ته شفعه نه حاصليږي، ځكه د شفعې د استحقاق لپاره بيع ضروري ده او دلته بيع سوې نه ده، بلكې تقسيم (وېش) سوی دی، نو ځكه په دې صورت كې به شفعه هم نه حاصليږي.

بيا صاحب د هدايې د بيع او تقسيم تر مينځ فرق څرګند كړی دی چې په بيع كې خپل مينځوی رضاء ضروري ده (چې عاقدين به په بيع راضي وي)، حال دا چې په تقسيم او وېش كې له جبر او إكراه څخه هم كار اخيستل كيږي. مطلب دا چې شفعه په "مبادلة المال بالتراضی" كې مشروع ده او په تقسيم كې مالي مبادله نسته بلكې د حقوقو او حصو وېش او جدايي ده.

### د بيع د فسخ (ماتېدلو) په صورت كې د شفعې حكم

قَالَ: وَإِذَا اشْتَرٰى دَارًا فرمايي: او كله چې مشتري يو كور رانيسي فَسَلَّمَ الشَّفِيْعُ الشُّفْعَةَ نو شفيع له شفعې څخه لاس په سر سي [خپل حق شفعه پرېږدي] ثُمَّ رَدَّهَا الْمُشْتَرِيْ بِخِيَارِ رُؤْيَةٍ أَوْ شَرْطٍ أَوْ بِعَيْبٍ بِقَضَاءِ قَاضٍ بيا مشتري هغه كور په خيارِ رؤيت يا خيارِ شرط يا د يو عيب په وجه د قاضي په فيصله سره واپس كړي فَلَا شُفْعَةَ لِلشَّفِيْعِ نو اوس شفيع لره شفعه نسته لِأَنَّهُ فَسْخٌ مِنْ كُلِّ وَجْهٍ ځكه چې دا رِدّ [واپس كول] په هر اعتبار سره فسخ [د بيع ماتول] دي فَعَادَ إِلٰى قَدِيْمِ مِلْكِهِ لهذا مبيع [كور] د بائع پخواني ملكيت ته واپس سو وَالشُّفْعَةُ فِيْ إِنْشَاءِ الْعَقْدِ او شفعه د عقد په نوي كولو [يعني عقد جديد] كې حاصليږي وَلَا فَرْقَ فِيْ هٰذَا بَيْنَ الْقَبْضِ وَعَدَمِهِ او په دې صورت كې [پر مبيع كور] د قبضه كولو يا نه كولو تر مينځ هيڅ فرق نسته.

**اللغات:** ﴿فَسَلَّمَ﴾ فاء د عطف ده او سَلَّمَ د تفعيل د باب ماضي ده، د دې باب ډېرې معناوې دي چې د صلې په بدلون سره يې معنیٰ هم بدليږي، مثلاً: ورسپارل، وركول، راضي كېدل، خالص كول، پر ځان قدرت وركول او داسې نور، خو څرنګه چې يې دلته صله لفظاً نه ده ذكر سوې، نو ځكه د يو معنیٰ

تعيين يې نه سي کېداى، اُردو شارحينو دلته د پرېښوولو او لاس په سر کېدلو معنىٰ کړې ده والله أعلم.

**تشريح: مسئله**: دا ده چي زيد له حامد څخه يو کور رانيوى او د هغه کور شفيع (د شفعي حقدار) خالد دى. خو خالد د خپل حق شفعه له اخيستو څخه انکار وکړى (چي زه يې نه غواړم). بيا څو ورځي ووسته زيد په خيار رؤيت يا خيار شرط يا د يو عيب په وجه هغه کور بائع يعني حامد ته واپس کړى او دا واپس کول د قاضي په فيصله سره وسوه. نو تر دې وروسته که شفيع (خالد) له حامد څخه د شفعي مطالبه وکړي (چي اوس يې زه غواړم). نو هغه ته شفعه نه حاصليږي. ځکه د مبيع (کور) په واپس کېدلو سره هر ډول بيع فسخ سوه او څرنګه چي مخکي هغه کور د حامد (بائع) وو. همداسي اوس هم هغسي د حامد په قبضه کي دى، او کله چي کور هغسي د مالک په قبضه کي پاته وي نو د بيع د نا موجود والي په وجه په هغه کي شفعه نه حاصليږي. نو همداسي به دلته هم نه حاصليږي: ځکه چي شفعه خو په عقد جديد او بيع جديد کي کيږي. او د فسخ کېدلو (ماتېدلو) په وجه دلته له سره عقد ختم سو. او دا رد (واپس کول) د شفيع په حق کي بيع جديد ګرځول او د هغه لپاره شفعه ثابتول دا نه سي کېداى.

ولا فرق إلخ: په دې سره دا راښيي چي برابره ده مشتري پر مبيع (کور) تر قبضه کولو وروسته هغه واپس کړى وي، يا يې تر قبضې مخکي واپس کړى وي، په هر حال کي شفيع ته وروسته شفعه نه حاصليږي.

## د پورتنى مسئلې نور وضاحت

وَإِنْ رَدَّهَا بِعَيْبٍ بِغَيْرِ قَضَاءٍ او که مشتري د عيب په وجه د قاضي له فيصلې څخه بغير کور واپس کړي أَوْ تَقَايَلَا الْبَيْعَ يا بائع او مشتري د بيع اقاله وکړي فَلِلشَّفِيعِ الشُّفْعَةُ نو [په دې صورت کي] شفيع لره شفعه نسته لِأَنَّهُ فَسْخٌ فِي حَقِّهِمَا ځکه چي دا [رد او اقاله] د بائع او مشتري دواړو په حق کي فسخ ده لِوِلَايَتِهِمَا عَلَىٰ أَنْفُسِهِمَا ځکه دوى دواړو لره پر خپل ځان ولايت حاصل دى وَقَدْ قَصَدَا الْفَسْخَ او دوى د بيع د فسخ [ماتولو] اراده کړې ده وَهُوَ بَيْعٌ جَدِيدٌ فِي حَقِّ ثَالِثٍ او دا د دريم کس په حق کي نوې بيع ده لِوُجُودِ حَدِّ الْبَيْعِ ځکه چي [په دې صورت کي] د بيع تعريف موجود دى: وَهُوَ مُبَادَلَةُ الْمَالِ بِالْمَالِ بِالتَّرَاضِي او هغه [د بيع تعريف] مال په مال سره بدلول دي په رضاء سره وَالشَّفِيعُ

ثَالِثٌ او همدا شفيع درېيم دی وَمُرَادُهُ الرَّدُّ بِالْعَيْبِ بَعْدَ الْقَبْضِ او [په اِنْ رَدَّهَا بِعَيْبٍ سره] دامام قدوري رَحِمَهُ الله مراد تر قبضې وروسته د عيب په وجه واپس کول دي لِأَنَّ قَبْلَهُ فَسْخٌ مِنَ الْأَصْلِ وَإِنْ كَانَ بِغَيْرِ قَضَاءٍ ځکه چي تر قبضې مخکي واپس کول له أصله فسخ کول دي عَلَى مَا عُرِفَ لکه څرنګه چي پېژندل سوې ده.

**اللغات:** ﴿تقايلا﴾ د تفاعل له بابه د تثنيه مذکر غائب ماضي صيغه ده: اقاله کول. بيع په رضا سره ماتول (فسخ کول). يعني اقاله دې ته وايي چي بائع او مشتري يو د بل په رضا سره بيع ماته کړي.

﴿حد﴾ تعريف. ﴿التراضي﴾ د تفاعل د باب مصدر دی: يو تر بله راضي کېدل (د دواړو طرفونو راضي کېدل).

**تشريح:** په مخکيني عبارت کي دا صورت بيان سو چي مشتري د قاضي په قضاء (فيصله) سره کور واپس کړی وي، دلته دا رابنيي چي که مشتري رانيول سوی کور د يو عيب په وجه د قاضي له فيصلې څخه بغير واپس کړي. يا بائع او مشتري د بيع اقاله وکړي. نو په دې دواړو صورتونو کي شفيع ته شفعه حاصلېږي؛ ځکه بائع او مشتري دواړو لره فقط پر خپل ځان د ولايت حق حاصل دی. نه پر بل چا، لهذا د دوی فيصله د همدوی په حق کي ثابتېږي او فقط تر همدوی پوري محدوده پاتېږي، د درېيم کس وطرف ته نه متعدي کېږي. او څرنګه چي دوی دواړو د فسخ اراده کړې ده. نو ځکه فقط د همدوی په حق کي فسخ ده، د درېيم کس په حق کي د دوی دا فعل بيع جديد ګڼل کېږي؛ ځکه چي دلته په تراضي سره د مبادلة المال بالمال صورت موجود دی. لهذا کله چي د درېيم په حق کي دا بيع جديد ده او درېيم کس همدا شفيع دی. نو ځکه هغه ته به شفعه حاصلېږي.

**ومراده إلخ:** صاحب د هدايې فرمايي چي په "الردّ بالعيب" سره د امام قدوري رَحِمَهُ الله مراد ردّ بعد القبض دی، کنې ردّ قبل القبض خو د هر چا په حق کي فسخ ده، برابره ده هغه د قاضي په قضاء سره وسي او که بغير له قضاء، او کله چي هغه د هر چا په حق کي فسخ ده. نو د شفيع په حق کي به هم فسخ وي او هغه ته به په دې صورت کي شفعه نه حاصلېږي.

## په تقسيم کي او د خيار رؤيت په صورت کي د شفعي د عدم وجوب دليل

وَفِي الْجَامِعِ الصَّغِيرِ: وَلَا شُفْعَةَ فِي قِسْمَةٍ وَلَا خِيَارِ رُؤْيَةٍ او په جامع صغير کي دي: چي په تقسيم او خيار رؤيت کي شفعه نسته وَهُوَ بِكَسْرِ الرَّاءِ او خيار [دلته] د راء په کسره سره دی وَمَعْنَاهُ لَا شُفْعَةَ بِسَبَبِ الرَّدِّ بِخِيَارِ الرُّؤْيَةِ او د دې مطلب دا دی چي د خيار رؤيت پر بناء د [مبيع] واپس کولو په سبب سره شفعه نسته لِمَا بَيَّنَّاهُ د هغه دليل په وجه کوم چي موږ بيان کړی وَلَا تَصِحُّ الرِّوَايَةُ بِالْفَتْحِ

عَطْفًا عَلَى الشُّفْعَةِ او پر شفعه په عطف کولو سره د خِیَار د مفتوح ویلو روایت صحیح نه دی لِأَنَّ الرِّوَايَةَ مَحْفُوظَةٌ فِي كِتَابِ الْقِسْمَةِ أَنَّهُ يَثْبُتُ فِي الْقِسْمَةِ خِيَارُ الرُّؤْيَةِ وَخِيَارُ الشَّرْطِ ځکه د مبسوط په کتابُ القسمة کي دا روایت محفوظ دی چي په تقسیم کي خیارِ رؤیت او خیارِ شرط دواړه ثابتیږي لِأَنَّهُمَا يَثْبُتَانِ لِخَلَلٍ فِي الرِّضَاءِ فِيمَا يَتَعَلَّقُ لُزُومُهُ بِالرِّضَاءِ ځکه چي دا دواړه خيارونه په رضاء کي د يو خلل [واقع کېدلو] په وجه ثابتيږي په داسي عقد کي چي د هغه لزوم د رضاء سره متعلق وي وَهٰذَا الْمَعْنٰى مَوْجُودٌ فِي الْقِسْمَةِ او دا معنیٰ په تقسيم کي موجوده ده [نو ځکه په تقسيم کي به هم خيارِ رؤيت او خيارِ شرط ثابتيږي]. والله أعلم

**تشريح :** دلته صاحب د هدايې رَحِمَهُ الله د جامع صغير د مذکوره عبارت په پښتولو سره په تقسيم کي د شفعي د نه ثابتېدلو په هکله د خپل قول نور تائيد کوي (کوم چي مخکي ده وفرمايل چي د وېش او تقسيم په صورت کي شفعه نسته)، فرمايي په جامع صغير کي هم دا خبره سوې ده چي د وېش او تقسيم او خيارِ رؤيت په صورت کي شفعه نه حاصليږي.

بيا فرمايي چي د خِيَارِ راء مکسوره ويل صحيح دي چي په دې صورت کي يې مطلب دا دی چي که د خيارِ رؤيت پر بناء بائع ته کور واپس کړی سي، نو په هغه کور کي هم شفيع ته شفعه نه حاصليږي، ځکه د خيارِ رؤيت په وجه په واپس کولو سره ګواکي اصل بيع ختم سوه.

او پاته سو خِيَارَ پر وَلَا شُفْعَةَ عطف کول او مفتوح ويل صحيح نه دي. ځکه که پر شفعه عطف سي نو معنیٰ به يې وي چي په تقسيم کي نه شفعه سته او نه خيارِ رؤيت (يعني که جايداد تقسيم کړی سي نو په هغه کي شريک ته خيارِ رؤيت نه حاصليږي)، حال دا چي دا عبارت صحيح نه دي، ځکه د مبسوط په کتابُ القسمة کي دي چي په تقسيم کي خيارِ رؤيت او خيارِ شرط دواړه ثابتيږي (د خيارِ رؤيت مثال دا چي مثلاً يوه ځمکه د څو شريکانو تر مينځ مشترکه وي او په دوی کي يو شريک غائب وي او حاضر شريکان ځمکه سره تقسيم کړي او د غائب شريک لپاره هم خپله حصه ورکړي چي غائب شريک هغه نه وي ليدلې، بيا چي کله هغه حاضر سي او په دې تقسيم راضي نه سي نو هغه ته اختيار دی چي تر ليدلو وروسته دا حصه نه واخلي. لنده دا چي په تقسيم کي خيارِ رؤيت او خيارِ شرط دواړه ثابتيږي)، ځکه دا دواړه خياره هغه وخت ثابتيږي چي په داسي معامله کي يو خلل پيدا سي کوم چي د عاقدينو پر رضاء موقوفه وي. او تقسيم هم د رضاء سره متعلق دی. لهذا دا دواړه خياره به په تقسيم کي ثابتيږي. او کله چي دا په تقسيم کي ثابتيږي. نو د خِيَار د مفتوح ويلو په صورت کي به په کتابُ القسمة کي د دوی عدمِ ثبوت لازم سي کوم چي صحيح نه دي. نو په همدې وجه خِيَار مفتوح ويل صحيح نه دي. (احسن الهدايه)

# بَابُ مَا تَبْطُلُ بِهِ الشُّفْعَةُ

(دا) باب د هغه شيانو (په بيان کي) دی
چی په هغوی سره شفعه باطليږي

**تشريح**: ښکاره خبره ده چي د شي ثبوت مخکي وي او بطلان يې وروسته وي، په همدې وجه صاحب د هدايې رَحِمَهُ الله د شفعي د ثبوت باب مخکي بيان کړی او تر هغه وروسته يې د بطلان باب بيانوي.

## د طلب مواثبت په پرېښوولو سره د شفعي د باطلېدلو بيان

قَالَ: وَإِذَا تَرَكَ الشَّفِيعُ الْإِشْهَادَ حِينَ عَلِمَ بِالْبَيْعِ وَهُوَ يَقْدِرُ عَلَى ذٰلِكَ فرمايي: او کله چي شفيع إشهاد [گواه پېشول] پرېږدي هغه وخت چي په بيع خبر سي او حال دا چی هغه پر دې [إشهاد] قدرت لري بَطَلَتْ شُفْعَتُهُ نو د هغه شفعه باطليږي لِإِعْرَاضِهِ عَنِ الطَّلَبِ له طلب څخه د هغه د اعراض کولو په وجه وَهٰذَا لِأَنَّ الْإِعْرَاضَ إِنَّمَا يَتَحَقَّقُ حَالَةَ الْاِخْتِيَارِ او دا [د قدرت لرلو شرط] ځکه دی چي اعراض صرف د اختيار په حالت کي ثابتيږي وَهِيَ عِنْدَ الْقُدْرَةِ او دا [د اختيار حالت] د قدرت په وخت کي وي وَكَذٰلِكَ إِنْ أَشْهَدَ فِي الْمَجْلِسِ وَلَمْ يَشْهَدْ عَلَى أَحَدِ الْمُتَبَايِعَيْنِ وَلَا عِنْدَ الْعَقَارِ او همدارنګه که شفيع په مجلس کي گواه پېش کړي [لېکن] په عاقدينو کي د يوه سره گواه پېش نه کړي او نه د [مشفوعه] جايداد سره [گواه پېش کړي] وَقَدْ أَوْضَحْنَاهُ فِيمَا تَقَدَّمَ او موږ په ماقبل کي د دې وضاحت کړی دی.

**اللغات**: ﴿إشهاد﴾ د افعال د باب مصدر دی: گواه جوړول، گواه دزول، گواه پېشول. ﴿إعراض﴾ مخکنی صيغه ده: مخ اړول، توجه نه کول (نه قبلول)، ﴿متبايعين﴾ د تفاعل تثنيه اسم فاعل دی: يو د بل سره بيع کونکی، بائع او مشتري. ﴿عقار﴾ غير منقوله جايداد.

**يادونه**: په متن کي له إشهاد څخه مراد طلب إشهاد او طلب تقرير نه دی، بلکي طلب مواثبه ځني مراد دی.

**تشريح**: مخکي دا خبره ذکره سوه چي کله شفيع د جايداد په بيع خبر سي (چي زما همسايه يا شريک خو خپل کور خرڅ کړی) نو سمدستي (فوراً) پر شفيع طلب مواثبه ضروري دی، دلته دا خبره بيانوي چي که پر طلب مواثبه د قدرت لرلو باوجود شفيع هغه پرېږدي، نو شفعه (حق شفعه) يې باطليږي، ځکه د طلب مواثبه پرېښوول د إعراض عن الطلب دليل دی.

صاحب د هدايې فرمايي چې پر طلب مواثبه د قادر کېدلو شرط ځکه لګول سوی دی چې إعراض يو اختياري شی دی کوم چې فقط د قدرت په وخت کي ثابتيږي، کنې که يو څوک په لمانځه کي وي او په همدې دوران کي هغه په بيع خبر سي، نو ښکاره خبره ده چې د هغه په دغه إعراض سره شفعه نه باطليږي؛ ځکه د لمانځه په دوران کي هغه پر طلب مواثبه قادر نه دی.

وكذلك إلخ: په دې سره دا راښيي چې د شفعې د ثبوت د مضبوطتيا لپاره د طلب مواثبه سره، سره طلب اشهاد هم ضروري دی، همدا وجه ده که شفيع طلب مواثبه خو وکړي، لېکن په عاقدينو کي د يوه عاقد سره يا د مشفوعه کور يا مشفوعه ځمکي سره پر خپل طلب ګواه پېش نه کړي، نو د طلب اشهاد د نشتوالي په وجه په دې صورت کي هم د هغه شفعه باطليږي.

## د عوض اخيستلو په بدله کي د شفعي پر ښوولو حکم او تفصيل

قَالَ: وَإِنْ صَالَحَ مِنْ شُفْعَتِهِ عَلَى عِوَضٍ فرمايي: که شفيع د خپل شفعي [حق شفعه] په بدل کي پر يو عوض صلح وکړي بَطَلَتْ شُفْعَتُهُ نو د ده شفعه باطليږي وَرَدَّ الْعِوَضَ او عوض به واپس کوي لِأَنَّ حَقَّ الشُّفْعَةِ لَيْسَ بِحَقٍّ مُتَقَرِّرٍ فِي الْمَحَلِّ ځکه چې حق شفعه خو داسي حق نه دی کوم چې په محل کي د ننه ثابت وي بَلْ هُوَ مُجَرَّدُ حَقِّ التَّمَلُّكِ بلکي حق شفعه خو محض د مالک جوړېدلو حق دی [يعني د هغه په ذريعه شفيع محض د مشفوعه ځای مالک جوړېدای سي] فَلَا يَصِحُّ الِاعْتِيَاضُ عَنْهُ لهذا د هغه عوض اخيستل صحيح نه دي وَلَا يَتَعَلَّقُ إِسْقَاطُهُ بِالْجَائِزِ مِنَ الشَّرْطِ او د حق شفعه ساقطول د جائز شرط سره نه متعلق کيږي فَبِالْفَاسِدِ أَوْلَى نو د شرط فاسد سره خو به په درجه اولیٰ [نه متعلق کيږي] فَيَبْطُلَ الشَّرْطُ وَيَصِحَّ الْإِسْقَاطُ لهذا شرط به باطليږي او د حق ساقطول به صحيح کيږي وَكَذَا لَوْ بَاعَ شُفْعَتَهُ بِمَالٍ او همدارنګه که شفيع د مال په عوض کي خپل شفعه [حق شفعه] خرڅ کړي لِمَا بَيَّنَّا د هغه دليل په وجه کوم چې موږ بيان کړی بِخِلَافِ الْقِصَاصِ په خلاف د قصاص لِأَنَّهُ حَقٌّ مُتَقَرِّرٌ ځکه چې قصاص يو ثابت سوی حق دی وَبِخِلَافِ الطَّلَاقِ وَالْعَتَاقِ په خلاف د طلاق او عتاق لِأَنَّهُ اعْتِيَاضٌ عَنْ مِلْكٍ فِي الْمَحَلِّ ځکه دا عوض اخيستل دي په محل کي د ننه ملکيت.

**اللغات**: ﴿اعتياض﴾ د افتعال د باب مصدر دی: عوض اخيستل.

**تشریح: صورت د مسئلې**: دا دی که شفیع د مشتري سره صلح وکړه چې ته ما ته (مثلاً) سل درهمه عوض راکړه نو زه د خپل شفعې تر سر تېرېږم او خپل حق شفعه نه غواړم. او مشتري په دې راضي سو او هغه ته یې سل درهمه ورکړه، نو اوس څه حکم دی؟. فرمایي چې په دې صورت کې د هغه شفعه باطلیږي او کوم عوض چې هغه اخیستی دی هغه به هم بیرته مشتري ته واپس کوي: ځکه چې عوض د هغه شي اخیستل صحیح دي کوم چې په محل کې ثابت وي. او شفیع ته صرف د مشفوعه کور د مالک جوړېدلو حق سته. په محل او کور کې د هغه حق ثابت نه دی. لهذا کله چې په محل کې د هغه حق ثابت نه دی. نو هغه ته د مشفوعه کور د عوض اخیستلو حق هم نسته او په عوض کې اخیستل سوی شی (سل درهمه) به بیرته واپس کوي.

ولا یتعلق إلخ: مخکې په دې ځای پوه کړئ چې شرط جائز هغه شرط دی چې په هغه کې د مال ذکر (یادونه) نه وسي، او شرط فاسد هغه شرط ته ویل کیږي چې په هغه کې د مال ذکر وسي. اوس که په شرط جائز کې مثلاً شفیع داسې ووایې چې ما پر دې شرط خپل حق شفعه ساقط کړی چې مشتري به زما څخه ثمن نه اخلي. یا داسې ووایې چې ما پر دې شرط خپل حق شفعه ساقط کړی چې مشتري به ما ته سل درهمه راکوي، نو په دې دواړو صورتونو کې د هغه شرط باطلیږي او د هغه د خپل حق ساقطول ثابتیږي: ځکه کله چې شرط جائز د هغه د حق إسقاط نه منع کوي. نو شرط فاسد خو یې په درجه اولی نه منع کوي.

وکذا لو باع إلخ: د دې مطلب دا دی چې څرنګه پر مال د صلح کولو په صورت کې شفعه باطلیږي او د عوض واپس کول لازمیږي. همداسې د شفعې د خرڅولو په صورت کې هم شفعه باطلیږي او د مال واپس کول لازمیږي. دلیل همغه دی کوم چې څه مخکې ذکر سو.

بخلاف القصاص إلخ: دا د یو مقدر سوال جواب دی. سوال دا دی چې څرنګه حق شفعه مال نه دی. همداسې حق قصاص هم مال نه دی. لیکن د حق قصاص عوض اخیستل صحیح دي. نو د حق شفعه عوض اخیستل ولې نه دي صحیح؟.

د دې په جواب کې فرمایي چې قصاص یو متقرر حق دی او شفعه غیر متقرر حق دی. او د متقرر حق عوض اخیستل صحیح دي نه د غیر متقرر. او همدا حال د طلاق او عتاق دی. یعنې که خاوند د مال په عوض کې ښځې ته طلاق ورکړي. یا مالک د مال په عوض کې غلام آزاد کړي. نو په دې صورتونو کې عوض اخیستل صحیح دي: ځکه د خاوند او مالک دواړو حق په محل کې ثابت دی. او په محل کې د ثابت شده حق عوض اخیستل صحیح دي. په خلاف د شفیع. ځکه چې د هغه حق فقط په مالک جوړېدلو کې دی. په محل کې د هغه هیڅ حق نسته. نو ځکه د هغه لپاره عوض اخیستل هم صحیح نه دي.

## د پورتنۍ مسئلې مثال

وَنَظِيرُهُ إِذَا قَالَ لِلْمُخَيَّرَةِ: اِخْتَارِيْنِي بِأَلْفٍ او د دې مثال دا دی چې کله خاوند خپلې مخیّره ښځې ته وواېي: چې ته [مثلاً] د زر درهمو په عوض کې ما اختيار کړه أَوْ قَالَ الْعِنِّينُ لِامْرَأَتِهِ: اِخْتَارِيْ تَرْكَ الْفَسْخِ بِأَلْفٍ يا عنين خپلې ښځې ته وواېي: چې ته د زر درهمو په عوض کې د فسخ پرېښوول اختيار کړه فَاخْتَارَتْ او ښځه يې اختيار کړي سَقَطَ الْخِيَارُ وَلَا يَثْبُتُ الْعِوَضُ نو د هغې خيار [اختيار] ساقطيږي او عوض نه ثابتيږي وَالْكَفَالَةُ بِالنَّفْسِ فِي هٰذَا بِمَنْزِلَةِ الشُّفْعَةِ فِي رِوَايَةٍ او د يوه روايت مطابق كفاله بالنفس په دې هكله د شفعې په درجه کې ده وَفِي أُخْرٰى لَا تَبْطُلُ الْكَفَالَةُ وَلَا يَجِبُ الْمَالُ او په يو بل روايت کې دي چې كفاله نه باطليږي او مال [عوض] نه ثابتيږي وَقِيْلَ: هٰذِهِ رِوَايَةٌ فِي الشُّفْعَةِ او ويل سوي دي: چې دا په شفعه کې يو روايت دی وَقِيْلَ: هِيَ فِي الْكَفَالَةِ خَاصَّةً او ويل سوي دي: چې دا خاص په كفاله کې دی وَقَدْ عُرِفَ فِي مَوْضِعِهِ او دا پر خپل ځای [په مبسوط کې] پېژندل سوي دي.

**اللغات:** ﴿مخيّره﴾ هغه ښځه چې خاوند د طلاق اختيار ورکړی وي، ﴿عِنِّين﴾ (بكسر العين والنون المشددة) له وطي او جماع څخه عاجز، هغه سړی کوم چې پر جماع کولو قدرت نه لري، نامرد (معجم لغة الفقهاء)، ﴿كفاله بالنفس﴾ د يو چا د نفس كفيل کېدل (د يو چا د حاضرولو ذمه واري اخيستل).

**تشريح:** له دې ځايه صاحب د هدايې د مخکنۍ مسئلې دوه مثالونه ذکر کوي چې په هغه کې د حقدار حق هم ختميږي او عوض هم نه ورکول کيږي.

(۱)... خاوند خپلې ښځې ته د "اِخْتَارِيْ نَفْسَكِ" په ذريعه اختيار ورکړی، بيا خاوند خطره محسوسه کړه چې هسې نه ښځه خپل نفس (يعني طلاق) اختيار کړي او طلاق بائن واقع سي، نو ده ښځې ته وويل چې طلاقه ايله کوه ما د زرو درهمو په عوض کې اختيار کړه، او ښځې خاوند اختيار کړی، نو د ښځې خيار ساقطيږي او هغې ته عوض (زر درهمه) هم نه حاصليږي (عوض به نه ورکول کيږي).

(۲)... يو کس عنين دی. مخکې تاسو ولوستل چې د عنين ښځې ته د نکاح ماتولو (فسخِ نکاح) اختيار حاصليږي، خو عنين خپلې ښځې ته خواست وکړی چې ته دا زر درهمه واخله او زما په نکاح کې اووسه، ښځې دا ورسره خوښه کړه، نو د هغې د فسخِ نکاح اختيار ختميږي او عوض يعني زر درهمه هم نه ور ته حاصليږي بلکې د لاسه يې وځي.

بالکل همداسې په شفعه کې هم د صلح کولو یا د شفعې خرڅولو په صورت کې حق هم ختمیږي او عوض هم د لاسه وځي.

والکفالة بالنفس إلخ: که یو څوک د بل چا د حاضرولو کفیل سو (مثلاً زید و خالد ته وویل چې ته اوس حامد پرېږده، د شنبې په ورځ یې زه د قاضي مخته در ته حاضروم)، بیا څه وخت وروسته دا کفیل (زید) و مکفول لهٗ (خالد) ته وویل چې ته دا سل درهمه واخله او ما له خپل ذمه وارۍ او کفالت څخه بري کړه، اوس که مکفول لهٗ په دې راضي سي، نو د یوه روایت مطابق د شفیع په څېر مکفول لهٗ هم تاواني کیږي، یعني ده ته مال (سل درهمه) نه حاصلیږي او کفیل یې د لاسه وځي (کفیل بري کیږي)

وفی أخرىٰ إلخ: بل روایت دا دی چې د مکفول لهٗ تر راضي کېدلو وروسته که څه هم مال (عوض) نه ثابتیږي، خو کفاله هم نه ختمیږي، یعني کفیل نه بري کیږي.

بعضي حضراتو دا روایت په شفعه کې هم نقل کړی دی چې همداسې په شفعه کې که څه هم شفیع ته مال (عوض) نه حاصلیږي، مګر د هغه حق شفعه هغسې باقي پاتیږي.

بل قول دا دی چې دا روایت فقط د کفالې سره خاص دی چې هلته که څه هم مال نه ثابتیږي، مګر د کفیل ذمه باقي پاتیږي، په آخر کې صاحب د هدایې رَحِمَهُ الله فرمایي چې په مبسوط کې د دې مسئلې تفصیلات بیان سوي دي، د نور معلومات لپاره دې هغه مطالعه کړی سي.

## د شفیع په مرګ سره د شفعې د باطلېدلو بیان

قَالَ: وَإِذَا مَاتَ الشَّفِيعُ فرمایي: او کله چې شفیع مړ سي بَطَلَتْ شُفْعَتُهُ نو د هغه شفعه باطلیږي وَقَالَ الشَّافِعِيُّ: تُوْرَثُ عَنْهُ او امام شافعي رَحِمَهُ الله فرمایي: چې شفعه د هغه له طرفه میراث کیږي [یعني د شفیع وارثانو ته د میراث په توګه حاصلیږي] قَالَ رَضِيَ اللهُ عَنْهُ: مَعْنَاهُ إِذَا مَاتَ بَعْدَ الْبَيْعِ قَبْلَ الْقَضَاءِ بِالشُّفْعَةِ صاحب د هدایې رَحِمَهُ الله فرمایي: د امام قدوري رَحِمَهُ الله د قول مطلب دا دی چې کله شفیع تر بیع وروسته د شفعې له فیصلې څخه مخکې مړ سي أَمَّا إِذَا مَاتَ بَعْدَ قَضَاءِ الْقَاضِيْ قَبْلَ نَقْدِ الثَّمَنِ وَقَبْضِهِ لیکن که هغه د قاضي تر فیصلې وروسته د ثمن له اداء کولو او پر مبیع له قبضه کولو څخه مخکې مړ سي فَالْبَيْعُ لَازِمٌ لِوَرَثَتِهِ نو بیع د هغه د وارثانو لپاره لازم ده وَهٰذَا نَظِيْرُ الِاخْتِلَافِ فِيْ خِيَارِ الشَّرْطِ او دا [اختلاف] په خیارِ شرط کې د اختلاف مثال دی [یعني د خیارِ شرط د اختلاف په څېر دی] وَقَدْ مَرَّ فِي الْبُيُوْعِ او هغه په کتابُ البیوع کې تېر سوی دی وَلِأَنَّهُ بِالْمَوْتِ يَزُوْلُ

مِلْكُهُ عَنْ دَارِهِ او ځکه چي د مرګ په وجه له خپل کور څخه د شفیع ملکیت زائلیږي وَيَثْبُتُ الْمِلْكُ لِلْوَارِثِ بَعْدَ الْبَيْعِ او تر بیع وروسته د وارث لپاره ملکیت ثابتیږي وَقِيَامُهُ وَقْتَ الْبَيْعِ وَبَقَاؤُهُ لِلشَّفِيعِ إِلَى وَقْتِ الْقَضَاءِ شَرْطٌ او د بیع په وخت کي د ملکیت قائموالی [موجودیت] او د فیصلې تر وخته د شفیع لپاره د ملکیت باقي والی شرط دی فَلَا يَسْتَوْجِبُ الشُّفْعَةَ بِدُونِهِ لهذا له دې شرط [ملکیت] څخه بغیر به هغه د شفعي نه مستحق کیږي.

**اللغات:** ﴿تورث﴾ د مضارع مجهول صیغه ده: میراث کېدل، په میراث کي حاصلېدل. ﴿لا یستوجب﴾ د استفعال له بابه د نفي صیغه ده: تقاضا کول، مستحق کېدل، حق لرل. (احسن الهدایه)

**تشریح: صورت د مسئلې:** دا دی چي زید دیو کور شفیع دی او هغه کور خرڅ سو. زید د شفعي دعویٰ وکړه او له قاضي څخه یې غوښتنه وکړه چي همدا زه د دې کور شفیع یم لهذا زما په حق کي دې د شفعي فیصله وسي، خو قاضي تر اوسه د هغه په حق کي فیصله نه وه کړې چي هغه مړ سو. نو آیا په دې صورت کي دا شفعه د هغه د وارثانو (میراث خورو) وطرف ته منتقل کیږي. که نه؟.

امام شافعي رَحِمَهُ الله فرمایي چي شفعه مطلقاً د وارثانو وطرف ته منتقل کیږي. برابره ده د قاضي له قضاء (فیصلې) څخه مخکي مړ سوی وي او که وروسته. احناف وایي چي که د قاضي تر قضاء مخکي مړ سي، نو د هغه شفعه باطلیږي او د وارثانو وطرف ته نه منتقل کیږي. لېکن که چیري قاضي د هغه لپاره د شفعي فیصله وکړي. بیا له ثمن اداء کولو یا پر مبیع (کور) له قبضه کولو څخه مخکي مړ سي، نو څرنګه چي په دې صورت کي شفعه د شفیع لپاره ثابته سوې ده. نو ځکه اوس د هغه د وارثانو وطرف ته منتقل کیږي.

وهٰذا إلخ: صاحب د هدایې فرمایي چي زموږ او د شوافعو تر مېنځ دغه اختلاف د خیار شرط د اختلاف په شېر دی. یعني که څوک په خیار شرط سره یو شی رانیسي یا یې خرڅ کړي او بیا د خیار شرط د مودت له پوره کېدلو څخه مخکي هغه مړ سي. نو د امام شافعي رَحِمَهُ الله په نېز دا خیار د وارثانو طرف ته منتقل کیږي او زموږ په نېز نه منتقل کیږي. همداسي دلته هم دي چي د شوافعو په نېز شفعه وارثانو ته د میراث په توګه حاصلیږي او زموږ په نېز نه حاصلیږي.

ولأن بالموت إلخ: دا زموږ عقلي دلیل دی (په دې هکله چي مړه شفیع او د هغه وارثانو ته شفعه نه حاصلیږي). حاصل یې دا دی چي د کوم کور په وجه چي شفیع ته شفعه حاصلیږي. دا ضروري ده چي شفیع به د بیع په وخت کي د هغه کور مالک وي تر دې چي د شفعي د قضاء (فیصلې) تر وخته پوري به هغه

کور د شفیع په ملکیت کې باقي پاته وي (لکه څرنګه چې مخکې هم دا ذکر سوی دی)، او په پورتني صورت کې که څه هم د بیع په وخت کې شفیع د هغه کور مالک دی، خو د شفعې د قضاء پر وخت په هغه کور کې د ده ملکیت ختم سوی دی، نو ځکه هغه ته به شفعه نه حاصلیږي، او وارثانو ته به ځکه نه حاصلیږي چې د قاضي د قضاء پر وخت که څه هم په کور کې د دوی ملکیت دی، خو د بیع په وخت کې د دوی ملکیت معدوم وو، ځکه په هغه وخت کې خو د شفیع ملکیت وو (کوم چې اوس مړی سوی دی)، او د شفعې د استحقاق لپاره په دې دواړو وختونو (وقت بیع، وقت قضاء) کې ملکیت ضروري دی کوم چې د وارثانو په حق کې معدوم دي، نو ځکه دوی ته به هم شفعه نه حاصلیږي.

## د مشتري په مرګ سره د شفعې نه باطلېدلو بیان

وَإِنْ مَاتَ الْمُشْتَرِيْ او که مشتري مړ سي لَمْ تَبْطُلْ نو شفعه نه باطلیږي لِأَنَّ الْمُسْتَحِقَّ بَاقٍ ځکه چې د شفعې حقدار کس [شفیع] باقي دی وَلَمْ يَتَغَيَّرْ سَبَبُ حَقِّهِ او د هغه د حق سبب هم نه دی بدل سوی وَلَا يُبَاعُ فِيْ دَيْنِ الْمُشْتَرِيْ وَوَصِيَّتِهِ او د مشتري په قرض او وصیت کې مشفوعه کور نه سي خرڅول کېدای وَلَوْ بَاعَهُ الْقَاضِيْ أَوِ الْوَصِيُّ او که قاضي یا وصي هغه خرڅ کړي أَوْ أَوْصَى الْمُشْتَرِيْ فِيْهَا بِوَصِيَّةٍ یا مشتري د هغه کور په باره کې یو وصیت وکړي فَلِلشَّفِيْعِ أَنْ يُبْطِلَهُ وَيَأْخُذَ الدَّارَ نو شفیع لپاره دا حق سته چې هغه باطل کړي او کور واخلي لِتَقَدُّمِ حَقِّهِ ځکه چې د شفیع حق مخکې دی وَلِهٰذَا يُنْقَضُ تَصَرُّفُهُ فِيْ حَيَاتِهِ په همدې وجه د مشتري په ژوند کې هم د هغه تصرف ماتول کیږي.

**اللغات:** ﴿دَيْن﴾ قرض، ﴿ينقض﴾ د نصر د باب مضارع ده: ماتول.

**تشریح:** په مخکیني عبارت کې د شفیع د مرګ بیان وو، دلته دا بیانوي چې که مشتري مړ سي، نو په دې صورت کې په هر حال شفیع ته شفعه حاصلیږي، برابره ده د قاضي تر قضاء مخکې وي او که وروسته، ځکه په دې صورت کې د شفعې حقدار یعني شفیع ژوندی دی او د هغه د حق شفعې سبب هم هغسې باقي دی، نو هغه ته به شفعه هم حاصلیږي.

او که مشتري په داسې حالت کې مړ سي چې پر هغه قرض باندې وي، یا مشتري په دې کور کې مثلاً د مسجد یا د بل خای جوړولو وصیت کړی وي، نو څه حکم دی؟

فرمایي چې کور به نه خرڅول کیږي چې د مشتري قرض په اداء کړی سي او نه به په دې کور کې د مشتري وصیت نافذیږي؛ ځکه چې له قرض او وصیت ټولو څخه د شفیع ملکیت مقدم دی.

لهذا اول به کور شفیع ته ورکول کیږي، بیا به د شفیع په اداء کړی سوي پیسو سره د مشتري قرض او د هغه وصیت پوره کول کیږي.

لهذا کله چي د مشفوعه کور خرڅول ممنوع دي، نو که یو وصي یا قاضي هغه خرڅ کړي یا د مشتري وصیت په هغه کي نافذ کړي، نو شفیع ته د دې ټولو تصرّفاتو د ختمولو او د خپل حقِ شفعه د اخیستلو اختیار سته، ځکه چي د شفیع حق هم مخکي دی او خودي د مشتري په ژوند کي په مشفوعه کور کي د هغه د تصرفاتو ماتولو هم شفیع ته اختیار وو، نو ځکه د مشتري تر مرګ وروسته به هم شفیع ته له مشتري ځخه بغیر د بل چا د تصرفاتو د ختمولو او د خپل حق اخیستلو پوره اختیار وي.

## که شفیع د شفعي تر فیصلي مخکي خپل جایداد خرڅ کړي نو د شفعي حکم

قَالَ: وَإِذَا بَاعَ الشَّفِيْعُ مَا يَشْفَعُ بِهِ قَبْلَ أَنْ يُقْضٰى لَهُ بِالشُّفْعَةِ فرمایي: او کله چي شفیع هغه کور خرڅ کړي چي د هغه په وجه دئ شفیع جوړیږي [شفعه ورته حاصلیږي] مخکي تر دې چي د ده لپاره د شفعي فیصله وسي بَطَلَتْ شُفْعَتُهُ نو شفعه یې باطلیږي لِزَوَالِ سَبَبِ الْاِسْتِحْقَاقِ قَبْلَ التَّمَلُّكِ ځکه چي له مالک جوړېدلو ځخه مخکي د شفیع د استحقاق سبب ختم سو وَهُوَ الْاِتِّصَالُ بِمِلْكِهِ او هغه د شفیع د ملکیت سره [د مشفوعه کور] متصل کېدل دي وَلِهٰذَا يَزُوْلُ بِهِ په همدې وجه د خپل کور خرڅولو په وجه د شفیع د استحقاق سبب ختمیږي وَإِنْ لَمْ يَعْلَمْ بِشِرَاءِ الْمَشْفُوْعَةِ که څه هم شفیع د مشفوعه کور په رانیول کېدلو [خرڅېدلو] خبر نه وي كَمَا إِذَا سَلَّمَ صَرِيْحًا لکه [په هغه صورت کي] کله چي شفیع صراحتاً شفعه پرېږدي أَوْ أَبْرَأَ عَنِ الدَّيْنِ وَهُوَ لَا يَعْلَمُ بِهِ یا [لکه کله چي] قرضخواه مقروض بري کړي او هغه په قرض خبر نه وي وَهٰذَا بِخِلَافِ مَا إِذَا بَاعَ الشَّفِيْعُ دَارَهُ بِشَرْطِ الْخِيَارِ لَهُ او دا [مسئله] د هغه صورت په خلاف ده چي کله شفیع کور د ځان لپاره په خیار شرط [اخیستلو] سره خرڅ کړي لِأَنَّهُ يَمْنَعُ الزَّوَالَ ځکه چي دا [د بائع خیار] د ملکیت زائلېدل منع کوي فَبَقِيَ الْاِتِّصَالُ نو اتصال باقي پاته سو.

**اللغات**: ﴿يشفع﴾ د فتح د باب مضارع ده: شفیع کېدل، شفیع جوړېدل، صاحب د احسن الهدایه معنیٰ کړې ده: د شفعي دعویٰ کول او د شفعي مستحق کېدل (مراد یې یو دی)، ﴿تملّك﴾ د تفعّل د باب مصدر دی: مالک جوړېدل، مالک کېدل، ﴿سلّم﴾ د تفعیل د باب ماضي ده، اُردو شارحینو دلته د دې

لفظ معنیٰ کړې ده؛ (له شفعي شخه) لاس په سر کېدل، (خپل حقِ شفعه) پرېښوول. ﴿أبرأ﴾ د افعال د باب ماضي ده: بري کول، معافول.

**تشریح: صورت د مسئلې**: دا دی چې زید دیو کور مالک دی او د هغه څنګ ته د حامد کور دی چې زید د هغه شفیع دی، اوس که حامد خپل کور خرڅ کړی او تر اوسه د زید (شفیع) لپاره قاضي د شفعي فیصله نه وه کړې چې هغه هم خپل کور خرڅ کړی، نو په دې صورت کې زید (شفیع) ته شفعه نه حاصلیږي؛ ځکه د مشفوعه کور له مالک جوړېدلو څخه مخکې د زید (شفیع) د استحقاق سبب ختم سو، چې هغه (د استحقاق سبب) د حامد د ملکیت (کور) سره د زید د ملکیت متصل کېدل وه کوم چې په خرڅولو سره ختم سو، او څو صفحې مخکې دا خبره تېره سوه چې دا شرط او ضروري ده چې د شفعي د قضاء تر وخته به د شفیع کور د شفیع په ملکیت کې پاته وي او دلته دا شرط معدوم سو، نو ځکه دلته د هغه حقِ شفعه باطلیږي او شفعه نه ورته حاصلیږي.

ولهذا یزول إلخ: په دې سره دا راښیي چې د استحقاق د سبب زائلېدل د مستحق شي زائلېدلو لره مستلزم دي، همدا وجه ده که حامد خپل کور خرڅ کړی او زید په دې خبر نه سو، بیا زید هم خپل کور خرڅ کړي، نو د هغه حقِ شفعه ختمیږي، ځکه چې د خپل حق ساقطولو لپاره په مُسقِط (ساقطونکي سبب) خبرېدل ضروري نه دي، او کله چې د مُسقِط علم ضروري نه دی، نو له هغه شخه بغیر هم خپل حق ساقطېدای سي. لهذا که په شراء له خبرېدلو څخه بغیر زید خپل کور خرڅ کړي، نو دا د هغه په حق کې عذر نه ګڼل کیږي، بلکې دا داسې ده لکه د مشفوعه کور تر خرڅولو وروسته چې شفیع صراحتاً خپل حقِ شفعه ساقط کړی وي، ښکاره خبره ده چې په دې صورت کې هغه ته شفعه نه حاصلیږي، هکذا في الأولی.

أو أبرأ إلخ: په دې سره هم دا خبره ثابتوي چې د شي د إسقاط لپاره د مُسقِط علم ضروري نه دی. مثلاً د خالد پر زید قرض باندې دی، خو خالد (قرضخواه) ته دا یاد نه دي او په دې خبر نه دی، بیا خالد زید (مقروض) له قرض څخه بری کړی، نو هغه بري کیږي، همداسې په شفعه کې هم دي، چې د نا خبرتیا (عدم علم) باوجود حقِ شفعه ساقطیږي.

وهذا بخلاف إلخ: د دې حاصل دا دی چې شفیع د مشفوعه کور څنګ ته خپل کور خرڅ کړی، لېکن هغه د ځان لپاره په دې بیع کې خیارِ شرط ولګوی، نو د خیارِ شرط په وجه هغه کور تر اوسه د شفیع په ملکیت کې دی لهذا د مشفوعه کور سره د ده اتصال باقي دی. او د همدې اتصال پر بنیاد شفعه ور کول کیږي، نو ځکه ده ته به شفعه حاصلیږي. ځکه چې خیار د بائع ملکیت نه زائلوي (لکه مخکې چې ذکر سوه).

## د مشتري وکيل يا د بائع وکيل شفيع جوړېدلای سي، که نه؟ (تفصيلي حکم)

قَالَ: وَوَكِيْلُ الْبَائِعِ إِذَا بَاعَ وَهُوَ الشَّفِيْعُ فرمايي: او د بائع وکيل چي [مشفوعه جايداد] خرڅ کړي حال دا چي شفيع هم هغه [وکيل] وي فَلَا شُفْعَةَ لَهُ نو د هغه لپاره شفعه نسته وَوَكِيْلُ الْمُشْتَرِيْ إِذَا ابْتَاعَ او د مشتري وکيل چي کله [مشفوعه جايداد] رانيسي فَلَهُ الشُّفْعَةُ نو د هغه لپاره شفعه سته وَالْأَصْلُ أَنَّ مَنْ بَاعَ أَوْ بِيْعَ لَهُ او اُصول [قاعده کليه] دا ده چي کوم کس [مشفوعه جايداد] خرڅ کړي يا د چا لپاره چي خرڅ کړی سي لَا شُفْعَةَ لَهُ نو د هغه لپاره شفعه نسته وَمَنِ اشْتَرَى أَوْ ابْتِيْعَ لَهُ او کوم کس چي [جايداد] رانيسي يا د چا لپاره چي رانيول سي فَلَهُ الشُّفْعَةُ نو د هغه لپاره شفعه سته لِأَنَّ الْأَوَّلَ بِأَخْذِ الْمَشْفُوعَةِ يَسْعَىٰ فِيْ نَقْضِ مَا تَمَّ مِنْ جِهَتِهِ وَهُوَ الْبَيْعُ ځکه چي اول کس د مشفوعه جايداد په اخيستلو سره د هغه شي د ماتولو کوشش کوي کوم چي د ده له طرفه پوره سوی دی او هغه بيع ده وَالْمُشْتَرِيْ لَا يَنْقُضُ شِرَاءَهُ بِالْأَخْذِ بِالشُّفْعَةِ او مشتري د شفعي [مشفوعه جايداد] په اخيستلو سره خپل شراء نه ماتوي لِأَنَّهُ مِثْلُ الشِّرَاءِ ځکه چي شفعه اخيستل هم د رانيولو په مثل سره دي وَكَذٰلِكَ لَوْ ضَمِنَ الدَّرْكَ عَنِ الْبَائِعِ وَهُوَ الشَّفِيْعُ او همدارنګه که څوک د بائع له طرفه د تاوان ضامن [ذمه وار] سي فَلَا شُفْعَةَ لَهُ نو د هغه لپاره شفعه نسته وَكَذٰلِكَ إِذَا بَاعَ وَشَرَطَ الْخِيَارَ لِغَيْرِهِ او همدارنګه کله چي بائع [مشفوعه جايداد] خرڅ کړي او د بل کس لپاره خيار شرط کړي [واخلي] فَأَمْضَى "الْمَشْرُوطُ لَهُ الْخِيَارُ" الْبَيْعَ وَهُوَ الشَّفِيْعُ بيا هغه بل کس "چي د هغه لپاره خيار شرط کړی سوی دی" بيع نافذ کړي حال دا چي شفيع هم هغه وي فَلَا شُفْعَةَ لَهُ نو د هغه لپاره شفعه نسته لِأَنَّ الْبَيْعَ تَمَّ بِإِمْضَائِهِ ځکه چي د هغه په نافذولو سره بيع پوره سوه بِخِلَافِ جَانِبِ الْمَشْرُوطِ لَهُ الْخِيَارُ مِنْ جَانِبِ الْمُشْتَرِيْ په خلاف د هغه کس د جانبه [د بيع نافذولو] چي د مشتري له جانبه د هغه لپاره خيار شرط کړی سوی وي.

**اللغات:** ﴿ابتاع﴾ د افتعال د باب ماضي ده: رانيول. ﴿يسعى﴾ د فتح د باب مضارع ده: کوشش (کوښښ) کول. ﴿شراء﴾ د ضرب د باب مصدر دی: دا لفظ له اضدادو څخه دی. يعني اصل معنیٰ يې "رانيول" ده لېکن خيني وخت د "خرڅولو" معنیٰ هم ورکوي. همدارنګه د بيع لفظ هم له اضدادو څخه دی (مصباح منير). ﴿درك﴾ صاحب د احسن الهدايې د دې معنیٰ په تاوان او زر تلافي سره کړې ده. ﴿أمضى﴾ د افعال د باب ماضي ده: جاري کول. نافذول.

**تشريح**: دعبارت تر حل مخکي په دې يوه اصول خان پوه کړئ! چې بيع وايې "ورکولو" ته. برابره د مالک له طرفه وي يا د هغه د وکيل له طرفه وي. او په شراء کې د "اخيستلو" معنىٰ موجوده ده. برابره ده د مالک له طرفه وي او که د هغه د وکيل له طرفه (په لنډه توګه دا چې د بيع معنىٰ ده ورکول او د شراء معنىٰ ده اخيستل). او بل دا چې په عقد واحد کې يو شوک يوازې د يوه کس له طرفه (هغه که بائع او که مشتري وي) دا اخيستلو او بيا د هغه شي د ورکولو کار نه سي کولای. يعني دا خو کېدای سي چې مبيع ورکړي او ثمن واخلي (يعني د ثمن په عوض کې مبيع ورکړي) يا د دې برعکس. مګر دا نه سي کېدای چې مبيع ورکړي او بيا همداغه مبيع واپس ځني واخلي. (احسن الهدايه)

**صورت د مسئلې**: دا دی چې زيد خپل يو جايداد مثلاً خپل کور خرڅوي او د هغه د خرڅولو لپاره يې خالد وکيل جوړ کړی چې ته دا را خرڅ کړه او خالد هغه خرڅ کړی. وروسته ښکاره سوه چې همدا خالد د دې (زيد د) کور شفيع وو. لهذا کله چې همدا خالد د دې کور شفيع وو. نو هغه ته تر وکيل جوړېدلو مخکې د خپل شفعې په هکله سوچ کول پکار وو. لېکن کله چې هغه په دې هکله سوچ نه وکړی او کور يې خرڅ کړی. نو ګواکې هغه بيع پوره کړه. اوس هغه ته شفعه نه حاصلېږي. ځکه که اوس هم خالد ته شفعه ورکول سي. نو همدا به لازمه سي چې کومه بيع خالد د وکيل په توګه کړې ده اوس دې هغه ماته کړي او دا صحيح نه دي. نو ځکه په مذکوره صورت کې د شفيع (خالد) حقِ شفعه ختمېږي.

ومن اشترىٰ إلخ: د دې حاصل دا دی چې مثلاً حامد د کور رانيولو لپاره خالد وکيل جوړ کړی. او د هغه کور شفيع همدا خالد د وو. نو دلته حکم دا دی چې که څه هم خالد کور رانيسي. نو هم د هغه حقِ شفعه باقي پاتېږي. ځکه چې د مشتري په شراء کې هم دا اخيستلو معنىٰ سته او په شفعه کې هم دا معنىٰ سته. لهذا دلته وکيل ته د شفعې ورکولو په صورت کې د بيع او معاملې ماتېدل نه لازمېږي. نو ځکه په دې صورت کې شفيع ته شفعه حاصلېږي.

وکذلك إلخ: د دې حاصل دا دی چې حامد د يو کور رانيول غواړي. مګر پر بائع (عمرو) د هغه باور نسته. اوس خالد د بائع له طرفه د کور يا د هغه د قيمت ضامن (ذمه وار) سو. خو د دې کور شفيع همدا خالد وو. نو په دې صورت کې هغه ته شفعه نه حاصلېږي. ځکه په دې صورت کې هم بيع د ضامن يعني د خالد (کوم چې شفيع دی) له طرفه پوره سوې ده. ځکه چې د همده پر باور حامد هغه کور رانيولی دی. لهذا اوس که مونږ ضامن (خالد) ته په شفعه سره هغه کور ورکړو. نو د همده د پوره شي (بيع) ماتېدل به لازم سي. کوم چې صحيح نه دي.

وكذلك إذا باع إلخ: په دې سره دا بيانوي چې که يو چا کور خرڅ کړي او د خپل يو ملګري لپاره يې کوم چې د دې کور شفيع هم دی د خيار شرط ولګوی، بيا هغه ملګري خيارِ شرط ختم کړي او بيع يې مکمله او نافذه کړه، نو دلته هم د هغه شفعه ختميږي؛ لأنّه يسعٰى إلخ.

بخلاف المشروط إلخ: د دې حاصل دا دی چې مشتري يو کور رانيوی او د يو داسې سړي لپاره يې د خيارِ شرط ولګوی کوم چې د دې کور شفيع هم دی، بيا هغه سړي (شفيع) بيع نافذه کړه، نو په دې صورت کې هغه ته شفعه حاصليږي؛ ځکه د مشتري د وکيل په څېر دغه سړي ته هم په شفعه ورکولو کې د بيع او معاملې ماتېدل نه لازميږي؛ ځکه چې شراء او شفعه دواړه د انجام په اعتبار په يوه معنیٰ (داخيستلو په معنی) سره دي.

## د غلط قيمت اوربدلو پر بناء د شفعي پرېښودلو بيان

قَالَ: وَإِذَا بَلَغَ الشَّفِيْعَ أَنَّهَا بِيْعَتْ بِأَلْفِ دِرْهَمٍ فرمايي: او کله چې شفيع ته دا خبر ورسېدی چې [مشفوعه] کور په زر درهمه خرڅ سوی دی فَسَلَّمَ نو هغه شفعه پرېښودله ثُمَّ عَلِمَ أَنَّهَا بِيْعَتْ بِأَقَلَّ أَوْ بِحِنْطَةٍ أَوْ شَعِيْرٍ قِيْمَتُهَا أَلْفٌ أَوْ أَكْثَرُ بيا خبر سو چې کور تر زر درهمو په کمه خرڅ سوی دی يا د غنمو يا اوربشو په بدله کې خرڅ سوی دی چې د هغه قيمت زر يا تر دې زيات دی فَتَسْلِيْمُهُ بَاطِلٌ وَلَهُ الشُّفْعَةُ نو د هغه شفعه پرېښوول [له شفعي ځخه لاس په سر کېدل] باطل دي لِأَنَّهُ إِنَّمَا سَلَّمَ لِاسْتِكْثَارِ الثَّمَنِ فِي الْأَوَّلِ ځکه چې په اول صورت کې خو شفيع د ثمن د زيات ګڼلو په وجه شفعه پرې ايښې ده وَلِتَعَذُّرِ الْجِنْسِ الَّذِيْ بَلَغَهُ وَتَيَسُّرِ مَا بِيْعَ بِهِ فِي الثَّانِيْ او په دويم صورت کې د جنس د متعذر کېدلو د خبر رسېدلو په وجه او د هغه شي [ثمن] د آسانه کېدلو په وجه چې د هغه په ذريعه بيع سوې ده [په لنډه وينا دا چې په دويم صورت کې د جنس د متعذر کېدلو او د ثمن د سهل کېدلو د خبر په وجه هغه شفعي پرې ايښې ده] إِذِ الْجِنْسُ مُخْتَلِفٌ ځکه چې جنس مختلف دی وَكَذَا كُلُّ مَكِيْلٍ أَوْ مَوْزُوْنٍ أَوْ عَدَدِيٍّ مُتَقَارِبٍ او همداسي هر مکيلي يا موزوني يا عددی متقارب شی [دغه حکم لري].

**اللغات**: ﴿سلّم﴾ د تفعيل د باب ماضي ده، سَلَّمَ يُسَلِّمُ تَسْلِيْمًا: د دې باب څو معناوي دي چې مشهوره معنیٰ يې "ورسپارل" ده، او دلته شارحينو د دې لفظ معني کړې ده: (له شفعي ځخه) لاس په سر کېدل يعني خپل حقِ شفعه پرېښوول، ﴿أقلّ﴾ د اسم تفضيل صيغه ده: کمتر، لږ، ﴿اسكثار﴾ د

استفعال مصدر دی: زیات کښل، ﴿مکیل﴾ کَیلي شی، یعني کوم شی چي پیمانه کیږي او په پیمانه سره اندازه کیږي او خرڅیږي، ﴿موزون﴾ وزني شی، یعني کوم شی چي تلل کیږي او په وزن او تللو سره خرڅیږي، ﴿عددی متقارب﴾ هغه شی کوم چي په شمېر سره معلومول کیږي او عموماً په شمېر خرڅول کیږي او افراد یې یو بل ته نژدې، نژدې وي (تفاوت پکښې کم وي)، لکه هګۍ او داسي نور.

**تشریح: صورت د مسئلې**: دا دی چي مثلاً زید شفیع دی، خالد راغلی هغه ته یې دا خبر ورکړی چي ستا څنګ والا کور په زر درهمه خرڅ سو، د دې په اورېدو سره زید خپل شفعه پرېښوله (چي په دومره پیسو خوزه دا کور نه سم رانیولای)، بیا معلومه سوه چي خالد غلط خبر ورکړی دی، کور اصلاً په پنځه سوه درهمه خرڅ سوی دی، یا مثلاً وروسته معلومه سوه چي د کور اصل ثمن دراهم نه وه. بلکي اوربشي یا غنم وه چي د هغه قیمت زر درهمه وو، نو په دې دواړو صورتونو کي شفعه پرېښوول (چي شفیع شفعه پرېښوله دا) لغو کیږي او شفعه ورته حاصلیږي؛ ځکه چي په اول صورت کي هغه د زیات قیمت په ګومان شفعه پرې ایښې وه، حال دا چي معامله تر هغه په کم قیمت سوې وه.

او په دویم صورت کي هم هغه ځکه شفعه پرې ایښې وه چي قیمت زیات دی زر درهمه به له کومي خوا کړم، مګر کله چي ورته معلومه سوه چي اصل ثمن اوربشي یا غنم وه، نو اوس د هغه پرېښول لغو او باطل ګرځي او بیر ته شفعه ورته حاصلیږي؛ ځکه د بزګر او داسي نورو لپاره د نغد ثمن په مقابله کي غله اداء کول زیات آسانه وي، نو ځکه په دې صورت کي هم هغه ته حقِ شفعه حاصلیږي، تر إِذِ الجنس... إلخ پوري صاحب د هدایې همدغه خبري بیان کړي دي. وروسته دا فرمایي چي د هر مکیلي یا موزوني یا عددی متقارب شي هم دغه حکم دی. یعني که مثلاً په دې شیانو کي شفیع ته د نغد قیمت خبر ورکول سي او شفیع خپل شفعه پرېږدي، بیا معلومه سي چي اصل ثمن خو فلانکی مکیلي یا موزوني یا عددی متقارب شی دی، نو په دې ټولو صورتونو کي هم شفیع ته د مخکي په څېر شفعه حاصلیږي.

## د پورتنی مسئلې بل صورت

| |
|---|
| بِخِلَافِ مَا إِذَا عَلِمَ أَنَّهَا بِيْعَتْ بِعَرَضٍ قِيمَتُهُ أَلْفٌ أَوْ أَكْثَرُ په خلاف د هغه صورت کله چي شفیع خبر سي چي کور د سامان په بدله کي خرڅ سوی دی چي د هغه قیمت زر درهمه یا زیات دی لِأَنَّ الْوَاجِبَ فِيهِ الْقِيمَةُ ځکه چي په سامان کي صرف قیمت واجب دی وَهِيَ دَرَاهِمُ أَوْ دَنَانِيرُ او هغه درهم او دینار دي وَإِنْ بَانَ أَنَّهَا بِيْعَتْ بِدَنَانِيرَ قِيمَتُهَا أَلْفٌ او که ښکاره سي چي کور د دینارو په بدله |

کي خرڅ سوی دی چي د هغه قیمت زر درهمه دی فَلَا شُفْعَةَ لَهُ نو د شفیع لپاره شفعه نسته وَكَذَا إِذَا كَانَتْ أَكْثَرَ او همدارنګه کله چي هغه تر زر درهمو زیات وي وَقَالَ زُفَرُ: لَهُ الشُّفْعَةُ لِاخْتِلَافِ الْجِنْسِ او امام زفر رَحِمَهُ الله فرمايي: چي د جنس مختلف کېدلو په وجه د هغه لپاره شفعه شته وَلَنَا: أَنَّ الْجِنْسَ مُتَّحِدٌ فِي حَقِّ الثَّمَنِيَّةِ او زموږ دلیل دا دی: چي د ثمن والي په حق کي جنس متحد دی.

**اللغات**: ﴿عَرَض﴾ او عَرْض: سامان. له دراهم او دنانیرو څخه بغیر نور شیان.

**تشریح: صورت د مسئلي**: دا دی چي کور د يو داسي سامان په عوض کي خرڅ کړل سو چي د هغه قیمت زر درهمه وو. او شفیع ته اول د زر درهمه قیمت خبر ورسېدی او هغه شفعه پرېښووله. بیا وروسته شفیع خبر سو چي کور خو د سامان په عوض کي خرڅ سوی وو او د سامان قیمت زر درهمه وو. فرمايي چي په دې صورت کي د هغه پرېښوول (له شفعي څخه لاس په سر کېدل) صحیح او معتبر دي او هغه ته شفعه نه حاصلیږي. ځکه چي دلته شفیع ته د قیمت خبر رسېدلی دی او که اول وار په سامان خبر سوي وای نو هم به ده قیمت ورکولای. لهذا دلته اصل شی قیمت سو او دلته ده مخکي لا برائت کړی دی (شفعه يې پرې ایښې ده). نو ځکه ده ته شفعه نه حاصلیږي.

يو صورت دا دی چي شفیع ته اول په زر درهمه د کور خرڅېدلو خبر ورسېدی. بیا هغه ته معلومه سوه چي کور مثلاً په ١٠٠ دینارو خرڅ سوی دی چي د هغوی قیمت زر درهمه یا تر دې زیات دی. او ده مخکي لا شفعه پرې ایښې وه. نو زموږ په نېز په دې صورت کي هم د ده شفعه پرېښول معتبر دي او وروسته ده ته شفعه نه حاصلیږي؛ ځکه چي دینار او درهم د ثمنیت په اعتبار سره متحدُ الجنس دي. امام زفر او امام ثلاثه رَحِمَهُمُ الله فرمايي چي په درهم او دینار کي اختلاف جنس دی. نو د دوی په ثمنیت کي به هم اختلاف وي. لهذا د دوی په نېز د شفیع شفعه نه لغو کیږي بلکي ده ته خپل شفعه حاصلیږي.

## د مشتري یا مبیع په هکله د غلط معلومات اورېدلو پر بناء د شفعي پرېښودلو بیان

قَالَ: وَإِذَا قِيلَ لَهُ إِنَّ الْمُشْتَرِيَ فُلَانٌ فرمايي: او کله چي شفیع ته وویل سوه چي فلانکی کس [د جایداد] رانیونکی دی فَسَلَّمَ الشُّفْعَةَ نو هغه شفعه پرېښووله ثُمَّ عَلِمَ أَنَّهُ غَيْرُهُ بیا خبر سو چي رانیونکی له هغه څخه بغیر بل څوک دی فَلَهُ الشُّفْعَةُ نو د هغه لپاره شفعه سته لِتَفَاوُتِ الْجِوَارِ د همسایه توب د متفاوت کېدلو په وجه وَلَوْ عَلِمَ أَنَّ الْمُشْتَرِيَ هُوَ مَعَ غَيْرِهِ او که خبر سو چي رانیونکی هغه فلانکی دی سره د بل چا فَلَهُ أَنْ يَأْخُذَ

القول الراجح: قول علمائنا الثلاثة رَحِمَهُمُ الله، انظر للتفصیل والتوضیح [القول الراجح ج:٢، ص:٢٧٤]

نَصِيبَ غَيْرِهِ نو شفيع ته دا اختيار سته چي د دې بل چا حصه واخلي لِأَنَّ التَّسْلِيمَ لَمْ يُوجَدْ فِي حَقِّهِ ځکه چي تسليم [يعني شفعه پرېښوول] د دې بل چا په حق کي نه دي وَلَوْ بَلَغَهُ شِرَاءُ النِّصْفِ او که شفيع ته د نيم کور د رانيول کېدلو [خرڅېدلو] خبر ورسېدی فَسَلَّمَ نو هغه شفعه پرېښووله ثُمَّ ظَهَرَ شِرَاءُ الْجَمِيعِ بيا د ټوله کور رانيول کېدل ښکاره سوه فَلَهُ الشُّفْعَةُ نو د هغه لپاره شفعه سته لِأَنَّ التَّسْلِيمَ لِضَرَرِ الشَّرِكَةِ ځکه چي شفعه پرېښوول د شرکت د ضرر په وجه وه وَلَا شَرِكَةَ او [دلته] شرکت سته نه وَفِي عَكْسِهِ لَا شُفْعَةَ فِي ظَاهِرِ الرِّوَايَةِ او د ظاهر روايت مطابق د دې په برعکس صورت کي شفعه نسته [يعني چي شفيع ته اول دا خبر ورسېدی چي ټوله کور خرڅ سوی دی نو هغه شفعه پرېښووله، وروسته خبر سو چي نيم کور خرڅ سوی دی نو ظاهر روايت دا دی چي شفعه نه ورته حاصلېږي] لِأَنَّ التَّسْلِيمَ فِي الْكُلِّ تَسْلِيمٌ فِي أَبْعَاضِهِ ځکه چي په کُل [ټوله کور] کي شفعه پرېښوول د هغه په بعضي حصو کي هم شفعه پرېښوول دي [يعني کله چي يو وار په ټوله کور کي شفعه پرېښوول سوه، نو د کور په بعض کي هم پرېښوول موجود سوه].

**اللغات**: ﴿تفاوت﴾ د تفاعل مصدر دی: يو له بل څخه جلا کېدل، توپير پکښي راتلل، ﴿جوار﴾ همسايه توب، همسايه ګلوي. ﴿تسليم﴾ د تفعيل مصدر دی، مخکي يې وضاحت وسو چي دلته يې معنیٰ ده: له شفعي څخه لاس په سر کېدل، شفعه (حق شفعه) پرېښوول. ﴿أبعاض﴾ جمع د بعض ده: حصه.

**تشريح**: تر دې مخکي خو د قيمت د تفاوت او فرق بيان وو، له دې ځايه د مشتري د تفاوت څو صورتونه بيانوي.

(١)... يو کس راغلی شفيع ته يې خبر ورکړی چي ستا څنګ والا کور خرڅ سوی دی او فلانکي سړي مثلاً زيد رانيولی دی (چي هغه ډېر بد معاش او لوڅک سړی دی)، شفيع چي د زيد نوم واورېدی نو شفعه يې پرېښووله، بيا وروسته معلومه سوه چي هغه کور خو حامد رانيولی دی (کوم چي ډېر شريف سړی دی). نو په دې صورت کي شفيع ته شفعه حاصلېږي؛ ځکه په همسايه توب کي تفاوت وي، کېدای سي شفيع ته د يو چا همسايه توب خوښ وي او شفعه واخلي او د يو چا همسايه توب نه خوښوي او شفعه پرېږدي، لنډه دا چي په دې صورت کي هغه ته شفعه حاصلېږي.

(٢)... دويم صورت دا دی چي شفيع ته اولاً دا معلومه سوه چي کور صرف زيد رانيولی دی، نو هغه شفعه پرېښووله، بيا وروسته هغه ته معلومه سوه چي د زيد سره حامد هم دا کور رانيولی دی، نو اوس د حامد په حصه کي شفيع ته شفعه حاصلېږي؛ ځکه شفيع چي شفعه پرې اېښې ده هغه يې صرف د زيد په حق کي پرې اېښې ده.

(٣)... يو صورت دا دی چي شفيع ته اول د نيم کور خرڅېدلو خبر ورسېدی او هغه شفعه پرېښووله، بيا وروسته معلومه سوه چي ټوله کور خرڅ سوی دی، نو په دې صورت کي هم هغه ته شفعه حاصلېږي، ځکه

دلته شفيع اول د شركت د ضرر او جنجال څخه د خلاصون لپاره شفعه پرې ايښې وه. او بيا ورته معلومه سوه چې شركت نسته. لهذا كله چې شركت نسته. نو د شفعې د پرېښوولو (تسليم) علت موجود نه سو. او د پرېښوولو د علت د نشتوالي په صورت كې شفعه حاصليږي. لهذا دلته به هم هغه ته شفعه حاصليږي.

(۴)... دا صورت د مخكيني صورت بر عكس دى. يعني اول شفيع ته معلومه سوه چې ټوله كور خرڅ سوى دى او هغه شفعه پرېښووله. بيا خبر سو چې صرف نيم كور خرڅ سوى دى. نو په دې صورت كې هغه ته شفعه نه حاصليږي؛ ځكه چې په ټوله كور كې د شفعې په پرېښوولو سره په نيم كور كې هم د شفعې پرېښوول لازميږي او صرف همدا نيم كور خرڅ سوى دى. لهذا كله چې هغه د ټوله كور په ضمن كې د دې نصف كور شفعه هم پرې ايښې ده. نو ښكاره خبره ده چې هغه ته به شفعه نه حاصليږي.

# فصل

## دا فصل د شفعې ساقطولو د حيلو په بيان كې دى

**تشريح**: ځيني وخت يو شفيع دومره بد مزاجه، بد اخلاقه او مضر وي چې بالكل د ګذارې نه وي او كه هغه ته د شفعې حق (مشفوعه كور) وركول سي نو نژدې همسايه ګان ډېر ور سره په تكليف كيږي. نو په دغه فصل كې صاحب د هدايې رَحِمَهُ الله څه داسې حيلې او چلونه بيان كړي دي چې په هغه سره د شفيع حقِ شفعه له منځه ځي او باطليږي.

### د شفعې ساقطولو حيله

قَالَ: وَإِذَا بَاعَ دَارًا إِلَّا مِقْدَارَ ذِرَاعٍ مِنْهَا فِي طُولِ الْحَدِّ الَّذِي يَلِي الشَّفِيْعَ فرمايي: او كه چا كور خرڅ كړى مګر له هغه څخه يې د يو ذارع په اندازه د هغه حصې په طول كې (خرڅ نه كړى) كوم چې د شفيع [د كور] سره متصل ده فَلَا شُفْعَةَ لَهُ نو د هغه لپاره شفعه نسته لِانْقِطَاعِ الْجِوَارِ د همسايه توب د منقطع كېدلو په وجه وَهٰذِهٖ حِيلَةٌ او دا يو حيله ده وَكَذَا إِذَا وَهَبَ مِنْهُ هٰذَا الْمِقْدَارَ وَسَلَّمَهُ إِلَيْهِ او همدا رنګه كله چې هغه دومره اندازه حصه مشتري ته هبه كړي او هغه ته يې وسپاري [نو د شفيع لپاره شفعه نسته] لِمَا بَيَّنَّا د هغه دليل په وجه كوم چې مونږ بيان كړى.

**اللغات:** ﴿ذراع﴾ شرعي ګز. ﴿يلي﴾ د حسب د باب مضارع ده: متصل کېدل، څرمه کېدل.
﴿حيلة﴾ چل (چم)، تدبير.

**تشريح:** د حق شفعي د ساقطولو او باطلولو يوه حيله دا ده چي کله بائع کور خرڅوي نو د کور هغه حصه کوم چي د شفيع د کور سره متصل ده هلته دي مثلاً د يوه ذراع په اندازه يوه اوږده تراډه پرېږدي مثلاً په لاندي نقشه کي:




په داسي کولو سره صرف په دې اوږده تراډه کي د شفيع حق پاتيږي (کوم چي د شفيع رغبت نه ورته کيږي)، او په پاته کور کي هغه ته شفعه نه حاصليږي، بيا که تر دې اولي بيع وروسته بائع دا تراډه هم پريو چا خرڅه کړي، نو بيا هم هغه شفيع ته شفعه نه حاصليږي بلکي مشتري ته حاصليږي (کوم چي له تراډي څخه بغير پاته کور رانيولی وو)، ځکه چي شفيع که څه هم د دغه حصې همسايه دی لېکن مشتري بيا د بائع سره په دې کور کي شريک دی، او شريک پر همسايه مخکي وي.

وكذلك إلخ: فرمايي همدارنګه که بائع د يوه ذراع په اندازه حصه کوم چي د شفيع د کور سره متصله ده يو چا ته هبه کړي، بيا نور کور خرڅ کړي، نو په دې صورت کي هم شفيع ته شفعه نه حاصليږي، ځکه د کور هغه حصه کوم چي د شفيع د کور سره متصله ده، هغه هبه کړل سوې ده او په هبه کي شفعه نه حاصليږي، او کومه حصه چي خرڅه کړل سوې ده، هغه د شفيع د کور سره متصله نه بلکي منقطعه او جلا ده (چي د هغه په وجه د بائع او شفيع تر مينځ همسايه توب منقطع سوی دی). نو ښکاره ده چي په هغه کي هيڅ شفعه نه ورته حاصليږي. صاحب د هدايې رَحِمَهُ الله په لِمَا بَيَّنَّا سره د همدغه انقطاعِ جوار او عدمِ اتصال وطرف ته اشاره کړې ده.

## د شفعي ساقطولو بله حيله

قَالَ: وَإِذَا ابْتَاعَ مِنْهَا سَهْمًا بِثَمَنٍ ثُمَّ ابْتَاعَ بَقِيَّتَهَا فرمايي: او کله چي څوک د کور يوه حصه په ثمن سره رانيسي بيا د هغه کور پاته حصه [په جلا ثمن سره رانيسي] فَالشُّفْعَةُ لِلْجَارِ فِي السَّهْمِ الْأَوَّلِ دُونَ الثَّانِي نو همسايه لره په اوله حصه کي شفعه سته، نه په دويمه حصه کي لِأَنَّ الشَّفِيعَ جَارٌ فِيهِمَا

ځکه چي شفيع خو په دواړو حصه کي همسايه دی إِلَّا أَنَّ الْمُشْتَرِيَ فِي الثَّانِي شَرِيكٌ خو په دويمه حصه کي بيا مشتري شريک دی [او شريک تر همسايه زيات حقداره دی] فَيَتَقَدَّمُ عَلَيْهِ نو هغه به پر شفيع مخکي وي فَإِنْ أَرَادَ الْحِيلَةَ او که د حيلې کولو اراده وکړي ابْتَاعَ السَّهْمَ بِالثَّمَنِ إِلَّا دِرْهَمًا مَثَلًا نو د کور يوه حصه دي مثلاً له يوه درهم څخه بغير نور په ټوله قيمت سره رانيسي وَالْبَاقِي بِالْبَاقِي او نوره حصه دي په پاته قيمت سره واخلي.

**اللغات:** ﴿سهم﴾ حصه، جمع: سِهَام. ﴿ثمن﴾ قيمت.

**تشريح: صورت د مسئلې:** دا دی چي مشتري (مثلاً خالد) د کور يوه حصه رانيوله او تر دې وروسته يې بيا د هغه کور پاته حصه رانيوله، مثلاً داسي:




نو اوس شفيع فقط په اوله حصه کي د شفعي دعوىٰ کولای سي د جوار (همسايه توب) په وجه، او په دويمه حصه کي هغه ته شفعه نه حاصليږي، ځکه که څه هم شفيع په دا دويمه پاته حصه کي هم همسايه دی، خو مشتري بيا په هغه کي شريک دی (ځکه اوله حصه د مشتري په ملکيت کي راغلې ده)، او د شريک په موجوديت کي همسايه له حقِ شفعه څخه محروميږي او شريک ته حاصليږي، نو همداسي به دلته هم کيږي.

فإن أراد إلخ: له دې ځايه د شفعي د ساقطولو يو بهترينه حيله بيانوي، صورت يې دا دی چي مثلاً د کور قيمت پنځوس زره درهمه دی، نو رانيونکي (مشتري) ته پکار دي چي د کور يوه حصه ډېر ګرانه مثلاً په نهه څلوېښت زره رانيسي او بيا دي پاته حصه په زر درهمه رانيسي، نو دلته که څه هم په اول وار رانيول سوې حصه کي شفيع ته شفعه حاصليږي، خو د ډېر ګران والي په وجه به شفيع ځېله شاته سي چي دا خو د سرو زرو په بيه ده څه دماغ خو مي نه دی خراب چي دومره پيسې پر ور کوم، او پاته سو په دويمه حصه کي بيا مشتري شريک جوړيږي او شريک تر همسايه مخکي وی لهذا دا حصه به هم د هغه د لاسه ووځي (نو په دې توګه به له شرير مضر شفيع څخه خلاصون تر لاسه سي).

## د ثمن (قيمت) په عوض کي د بل شي ورکولو حيله

وَإِنِ ابْتَاعَهَا بِثَمَنٍ ثُمَّ دَفَعَ إِلَيْهِ ثَوْبًا عِوَضًا عَنْهُ او که کور د ثمن په بدله کي رانيسي بيا د ثمن په عوض کي بائع ته کپړه ورکړي فَالشُّفْعَةُ بِالثَّمَنِ دُوْنَ الثَّوْبِ نو شفعه به د ثمن په بدله کي وي، نه د کپړې لِأَنَّهُ عَقْدٌ آخَرُ ځکه چي دا [کپړه ورکول] بل عقد دی وَالثَّمَنُ هُوَ الْعِوَضُ عَنِ الدَّارِ او همدا ثمن د کور عوض دی [نه کپړه] قَالَ رَضِيَ اللهُ عَنْهُ: وَهٰذِهِ حِيلَةٌ أُخْرَى تَعُمُّ الْجِوَارَ وَالشِّرْكَةَ صاحب د هدايې رَحِمَهُ الله فرمايي: چي دا يو بله حيله ده کوم چي همسايه توب او شرکت دواړو لره عام ده فَيُبَاعُ بِأَضْعَافِ قِيمَتِهِ وَيُعْطٰى بِهَا ثَوْبٌ بِقَدْرِ قِيمَتِهِ نو کور دي له خپل قيمت څخه په څو چنده زيات خرڅ کړی سي او د هغه د قيمت په اندازه کپړه دي ورکول سي إِلَّا أَنَّهُ لَوِ اسْتُحِقَّتِ الْمَشْفُوعَةُ ليکن که مشفوعه حصه [ديو چا] مستحقه ثابته سي يَبْقٰى كُلُّ الثَّمَنِ عَلٰى مُشْتَرِي الثَّوْبِ نو د کپړې پر رانيونکي ټوله ثمن باقي پاتيږي لِقِيَامِ الْبَيْعِ الثَّانِيْ ځکه چي دويمه بيع تر اوسه باقي ده فَيَتَضَرَّرُ بِهِ نو په دې سره به بائع ته ضرر ورسيږي وَالْأَوْجَهُ أَنْ يُبَاعَ بِالدَّرَاهِمِ الثَّمَنِ دِيْنَارٌ او زياته غوره دا ده چي د ثمن والا دراهم په دينار سره خرڅ کړی سي [په بله وينا دا چي د مذکوره حيلې غوره صورت دا دی چي بائع په ثمن کي تاکل سوي دراهم پر مشتري په مناسب دنانيرو سره خرڅ کړي چي تفصيل به يې په تشريح کي ذکر سي] حَتّٰى إِذَا اسْتُحِقَّ الْمَشْفُوْعُ تر دې چي که هغه مشفوع کور مستحق ثابت سي يَبْطُلُ الصَّرْفُ نو بيع صرف به باطله سي فَيَجِبُ رَدُّ الدِّيْنَارِ لَا غَيْرُ نو [پر بائع] به فقط د دينار واپس کول لازم سي، نه د نورو.

**اللغات:** ﴿أضعاف﴾ جمع د ضِعْفٌ ده: څو چنده. ﴿استحقت﴾ د استفعال له باب څخه واحده مؤنثه غائبه ماضي مجهوله صيغه ده: يو شی د بل چا مستحق ختل، د بل چا حق پکښي ثابتېدل (د بل چا کېدل)، مستحق کېدل. ﴿الصَّرْف﴾ بيع صَرف، نغد مال په نغد مال سره بدلول (مبادلة النقد بالنقد).

**تشريح: صورت د مسئلې:** دا دی چي مشتري له بائع څخه مثلاً په پنځوس زر درهمه کور را نيوی، بيا يې د دې پنځوس زرو په عوض کي هغه ته د لس زرو کپړه ورکړه، نو اوس که شفيع دا کور په شفعه سره اخيستل غواړي نو په پنځوس زره به يې اخلي، نه په کپړه سره، ځکه د کور اصل ثمن خو پنځوس زره درهمه دي، کپړه نه ده، د کپړې ورکړه راکړه خو د بائع او مشتري تر مينځ د عقد ثاني حيثيت لري، اصل معامله خو د پنځوس زرو ده، او ښکاره خبره ده چي شفيع به په دومره ګران قيمت

څرنګه کور اخلي، صاحب د هدایې فرمایي چې دا یو عامه حیله ده کوم چې همسایه او شریک دواړه پر شا کولو او د شفعې پرېښوولو ته مجبوره کوي.

(په آسانه وینا د مذکوره عبارت حاصل دا دی چې که بائع وغواړي چې د خپل (بد او مضر) شریک یا همسایه د شفعې حق ساقط کړي [چې د هغه له بدۍ او ضرر څخه نژدې همسایه ګان خوندي سي] نو کور دې له خپل قیمت څخه په څو چنده زیات قِیمت پر مشتري خرڅ کړي مثلاً د کور اصل قیمت لس زره درهمه دی بائع دې هغه په پنځوس زره درهمه پر خرڅ کړي او مشتري ته دې ووایې چې ته د دومره ثمن په عوض کي دا بیع قبوله کړه خو وروسته ما ته د دغه ثمن په عوض کي د لس زره درهمو کپړه [یا بل شی] راکړه چې بیا به زما وستا بیع او سودا پر هغه وسي. څو په دې توګه به زما د بد همسایه یا شریک مخ له شفعې څخه واوړي او د هغه پر ځای به تا ته شفعه حاصله سي؛ ځکه ښکاره خبره ده چې که د کور قیمت څو چنده زیات کړی سي نو بیا یې شفیع [همسایه او شریک] بالکل نه رانیسي).

إلا أنه إلخ: له دې ځایه د دغه پورتنی حیلې یو خرابي بیانوي (هغه دا چې د دې حیلې په صورت کي د بائع د ډېر تاواني کېدلو امکان سته)، حاصل یې دا دی چې صحیح ده د څو چنده ثمن ټاکلو او بیا د کپړې ټاکلو په وجه به شفیع پر شا سي، لېکن که دا کور د یو چا مستحق وختی (یعني یو چا دعوی وکړه چې دا کور زما دی او خپل استحقاق یې ثابت هم کړی) او قاضي د هغه لپاره فیصله وکړه او کور یې له مشتري څخه واخیستی او هغه مستحق کس ته یې ورکړی، نو اوس حکم دا دی چې بائع به مشتري ته اصل ثمن یعني پنځوس زره درهمه ورکوي، نه کپړه (خو که مشتري شرافت وکړي او فقط د خپل کپړې طلب وکړي، نو بیا به بائع کپړه ورکوي، یعني دا داصل ثمن ورکولو حکم په هغه صورت کي دی چې مشتري د کپړې په اخیستلو نه راضي کیږي بلکي اصل ثمن غواړي، نو بیا به بائع اصل ثمن [پنځوس زره درهمه] ورکوي)، ځکه چې د کپړې معامله خو عقدِ ثانی دی او استحقاق په عقد اول کي سوی دی، او ښکاره خبره ده چې په دې کي د بائع غټ تاوان دی چې هغه به اصل ثمن واپس ورکوي (ځکه مشتري هغه ته اصل ثمن نه دی ورکړی بلکي کپړه یې ورکړې ده او بائع غریب به اوس کپړه نه بلکي اصل ثمن ورکوي). لهذا دا حیله په سوچ او تحقیق سره اختیارول پکار دي (چې آیا دا کور خو به اصلاً د بل چا نه وي).

والأوجه إلخ: په دغه عبارتِ سره د مذکوره حیلې یو غوره صورت بیانوي چې په هغه کي بائع له تاوان څخه خوندي کیږي (په بله وینا دا چې په دې عبارت سره په مذکوره حیله کي د بائع د خلاصون لپاره بله حیله بیانوي)، حاصل یې دا دی چې دلته بائع او مشتري چې څومره ثمن ټاکلی دی مثلاً پنځوس زره درهمه، بائع دې دغه دراهم پر مشتري په دومره دینارو سره خرڅ کړي کوم چې د کور اصل قیمت دی مثلاً د کور اصل قیمت لس زر درهمه دی نو لس زره درهمو ته دې حساب وکړي چې څو دیناره کیږي مثلاً هغه سل دیناره کیږي، نو لنډه دا چې بائع او مشتري دې د سلو دینارو په عوض کي د اصل ثمن (پنځوس زره درهمو) تبادله سره وکړي (یا په آسانه وینا دا چې بائع دې له مشتري څخه فی الحاله د پنځوس

زره درهمو پر ځای سل دیناره واخلي) چې دا په یو توګه بیعِ صَرف ده، نو اوس د دې فایده دا ده چې که شفیع دا کور اخلي، نو په پنځوس زر درهمه به یې اخلي (کوم چې اصلِ ثمن دی). او که دا کور د بل چا مستحق وخیږي، نو څرنګه چې د مستحق ختلو په وجه پر مشتري ګرسره ثمن واجب پاته نه سو چې بائع هغه واپس ورکړي نو په دې توګه بائع له اصل ثمن څخه خلاص سو. فقط هغه سل دیناره د بائع پر ذمه پاته سوه کوم چې د اصل ثمن په عوض کي مشتري هغه ته وَرکړي وه (یعني کوم چې دوی بیع صَرف پر کړې وه)، او تاسو ته معلومه ده چې په بیع صَرف کي پر دواړو ثمنینو قبضه شرط ده او دلته قبضه سوې نه وه (بلکي پنځوس زره درهمه خو تر اوسه د مشتري پر ذمه پاته وه او بائع ته یې ورکړي نه وه)، نو بیع صَرف هم باطله سوه، لهذا اوس به بائع فقط هغه مقدار واپس ورکوي کوم چې ده ته ورکول سوی وو چې هغه دلته سل دیناره دي، نو په دې توګه مار هم مړ سو او لکړه هم ماته نه سوه یعني د شفیع له ضرر څخه هم حفاظت وسو او د بائع ضرر هم لیري سو. (همدا د فتح القدیر د عبارت حاصل دی کوم چې موږ په آسانه پښتو تفصیلاً بیان کړی (فتح القدیر ج: ۷. ص: ۱۴۴۹)).

## د شفعي د ساقطولو حیلې شرعي حیثیت

قَالَ: وَلَاتُكْرَهُ الْحِيْلَةُ فِيْ إِسْقَاطِ الشُّفْعَةِ عِنْدَ أَبِيْ يُوْسُفَ فرمایي: او د امام ابو یوسف رَحِمَهُ الله په نیز د شفعي د ساقطولو لپاره حیله کول مکروه نه دي وَتُكْرَهُ عِنْدَ مُحَمَّدٍ ❁ او د امام محمد رَحِمَهُ الله په نیز مکروه دي لِأَنَّ الشُّفْعَةَ إِنَّمَا وَجَبَتْ لِدَفْعِ الضَّرَرِ ځکه چې شفعه د ضرر دفع کولو [لیري کولو] لپاره ثابته سوې ده وَلَوْ أَبَحْنَا الْحِيْلَةَ مَا دَفَعْنَاهُ او که موږ حیله روا وګرځوو نو ضرر مو دفع نه کړی سو [یعني د حیلې په صورت کي ضرر نه دفع کیږي] وَلِأَبِيْ يُوْسُفَ: أَنَّهُ مَنْعٌ عَنْ إِثْبَاتِ الْحَقِّ د امام ابو یوسف رَحِمَهُ الله دلیل دا دی: چې حیله د حق د ثابتولو منع کول دي [یعني حیله د دې لپاره ده چې د شفیع حق (حقِ شفعه) ثابت نه سي او داسي نه ده چې حیله د شفیع د ثابت سوي حق ساقطول دي] فَلَا يُعَدُّ ضَرَرًا نو ځکه

❁ القول الراجح: قول أبي يوسف رَحِمَهُ الله، قال العلامة الحصكفي رَحِمَهُ الله: وتكره الحيلة لإسقاط الشفعة بعد ثبوتها وفاقًا (عند الجميع)...أما الحيلة لدفع ثبوتها ابتداءً فعند أ[بي] يوسف رَحِمَهُ الله لا تكره وعند محمد رَحِمَهُ الله تكره، ويفتى بقول أبي يوسف رَحِمَهُ الله في الشفعة (الدر المختار ج:۵، ص:۱۷۳)، وقال شمس الأئمة السرخسي رَحِمَهُ الله: لا بأس بالاحتيال لإبطال حق الشفعة على كل حال.... وبعد وجوب الشفعة لا يكره الاحتيال أيضًا، لأن الحتيال لدفع الضرر عن نفسه،لا لإضرار بالعير...(نتائج الأفكار ج:۸، ص:۳۴۷)

والحاصل أنى الفتوٰى في الحيلة لإسقاط الشفعة على قول أبي يوسف رَحِمَهُ الله، والفتوٰى في الحيلة لإسقاط الزكاة على قول محمد رَحِمَهُ الله يعني تكره الحيلة لإسقاط الزكاة ولا تكره لإسقاط الشفعة. [القول الراجح ج:۲، ص:۲۷۵ - ۲۷۶]

دا به ضرر نه شمېرل کیږي وَعَلٰی هٰذَا الْخِلَافِ الْحِيْلَةُ فِي إِسْقَاطِ الزَّكَاةِ او د زکاة ساقطولو حیله هم پر دغه اختلاف ده.

**اللغات**: ﴿إسقاط﴾ د افعال مصدر دی: ساقطول. ﴿أبحنا﴾ د افعال له بابه جمع متکلم ماضي صیغه ده، أَبَاحَ يُبِيْحُ إِبَاحَةً: مباح کول، روا ګرځول (روا کول). ﴿ضرر﴾ نقصان.

**تشريح**: د شفعي د حیلې مختلفه صورتونه ستاسي مخته تېر سوه، دلته دا بیانوي چي آیا دغه د شفعي د ساقطولو او باطلولو حیله اختیارول صحیح هم دي، که نه؟.

د عبارت حاصل دا دی چي امام محمد رَحِمَهُ الله دا مکروه بولي؛ د هغه دلیل دا دی چي شفعه د شفیع د ضرر دفع کولو لپاره مشروع سوې ده (لکه مخکي چي د دې تفصیل تېر سو)، او په حیله کي د شفیع د حق ساقطول لازمیږي، نو د ضرر دفع به له کومه وسي!، دا خو په خپله یو ډول ضرر دی، نو ځکه مکروه ده.

امام ابو یوسف رَحِمَهُ الله د حیلې اختیارولو اجازت ورکړی دی؛ او دلیل یې دا دی چي دا هغه وخت ضرر شمېرل کیږي چي د شفیع ثابت سوی حق ساقط کړی سي، او دلته (د حیلې په صورت کي) تر اوسه د شفیع حق ثابت سوی نه دی بلکي مخکي یې د حیلې په ذریعه د هغه ثابتېدلو امکان ختم کړی، لهذا دا خو ضرر نه سو، نو ځکه د شفیع د حق ختمولو لپاره د حیلې اختیارول روا دي او مکروه نه دي.

او د زکاة ساقطولو لپاره حیله کول هم پر دغه اختلاف دي چي د امام ابو یوسف رَحِمَهُ الله په نېز مکروه نه دي او د امام محمد رَحِمَهُ الله په نېز مکروه دي.

په مجمع الأنهر کي ذکر سوي دي چي د شفعي له ثابتېدلو څخه مخکي د امام ابو یوسف رَحِمَهُ الله پر قول فتویٰ ده چي حیله مکروه نه ده او تر ثابتېدلو وروسته بالاجماع مکروه ده. بیا یې ویلي دي چي زما په نېز غوره دا ده چي د شفعي ساقطولو حیله مکروه نه ده او د زکاة ساقطولو حیله مکروه ده (ځکه په دې کي د غریبانو نقصان دی).

❁❁❁

# مَسَائِلُ مُتَفَرِّقَةٌ

## بېلا بېلې مسئلې

### که د جایداد رانیونکي یا خرخونکي څو کسان وي نو د شفعې څه حکم دی؟

قَالَ: وَإِذَا اشْتَرٰى خَمْسَةُ نَفَرٍ دَارًا مِنْ رَجُلٍ [امام محمد رَحِمَهُ الله په جامع صغیر کې] فرمایي: او کله چې پنځه کسان [په ګډه] له یوه سړي څخه کور رانیسي فَلِلشَّفِيْعِ أَنْ يَأْخُذَ نَصِيْبَ أَحَدِهِمْ نو شفیع لره دا اختیار سته چې په دوی کې د یوه حصه واخلي وَإِنِ اشْتَرَاهَا رَجُلٌ مِنْ خَمْسَةٍ او که یو سړی له پنځو کسانو څخه کور رانیسي أَخَذَهَا كُلَّهَا أَوْ تَرَكَهَا نو شفیع به ټوله کور اخلي یا به یې پرېږدي وَالْفَرْقُ أَنَّ فِي الْوَجْهِ الثَّانِي بِأَخْذِ الْبَعْضِ تَتَفَرَّقُ الصَّفْقَةُ عَلَى الْمُشْتَرِيْ او [په دې دواړو صورتونو کې] فرق دا دی چې په دویم صورت کې د کور د یو حصې په اخیستلو سره پر مشتري صفقه [عقد] متفرق کېږي فَيَتَضَرَّرُ بِهِ زِيَادَةَ الضَّرَرِ او په دې سره هغه ته زائد ضرر رسیږي وَفِي الْوَجْهِ الْأَوَّلِ يَقُوْمُ الشَّفِيْعُ مَقَامَ أَحَدِهِمْ او په اول صورت کې شفیع په دوی کې د یوه قائم مقام کېږي فَلَا تَتَفَرَّقُ الصَّفْقَةُ نو [په دې صورت کې] صفقه نه متفرّق کېږي.

**اللغات**: ﴿نصیب﴾ حصه، برخه. ﴿صفقة﴾ عقد، معامله.

**تشریح: صورت د مسئلې**: دا دی که زید له پنځو کسانو څخه یو کور رانیوی او د دغه کور شفیع وویل چې زه فقط د یوه کس حصه رانیسم او پاته حصې نه غواړم، نو په دې کې د مشتري (زید) ضرر دی؛ ځکه چې د مشتري دغومره کور او ځای پکار وو کوم چې یې رانیولی دی، اوس که له دې څخه یوه حصه شفیع ته ورکول سي، نو مشتري غریب به د دې حصې په اندازه د یو بل ځای رانیولو ته مجبوره سي چې ضرورت یې پوره سي، نو په دې سره پر مشتري د صفقې متفرق کېدل لازمیږي، او مخکې (په هدایه جلد ثالث) کې څو ځله ذکر سوه چې تفرق صفقه ممنوع دي، نو ځکه په دې صورت کې د شفیع لپاره حکم دا دی چې یا ټوله کور دې واخلي یا ټوله دې پرېږدي، فقط د یوه کس حصه نه سي اخیستلای.

او بل صورت دا دی چي زید مثلاً پر پنځو کسانو خپل کور خرڅ کړی، نو په دې صورت کې شفیع ته دا حق هم سته چي ټوله کور واخلي او دا حق هم ورته سته چي له دې پنځو کسانو څخه صرف دیوه حصه واخلي او د هغه قائم مقام سي؛ ځکه په دې صورت کي تفرّق صفقه نه لازمیږي. او مشترین (رانیونکي کسان) له مخکي څخه متفرق دی چي په دوی کي دیوه کس قائم مقام شفیع سو، لهذا کله چي په دې صورت کي تفرّق صفقه نسته. نو په دې کي به د مشتري ضرر هم نه وي. او کله چي د مشتري ضرر پکښې نسته، نو ځکه شفیع ته به فقط دیوه کس د حصې اخیستلو اختیار هم وي.

## د پورتنۍ مسئلې نور وضاحت

وَلَا فَرْقَ فِي هٰذَا بَيْنَ مَا إِذَا كَانَ قَبْلَ الْقَبْضِ أَوْ بَعْدَهُ او په دې کي [چي شفیع دیوه کس حصه واخلي] تر قبضې د مخه یا وروسته تر مینځ هیڅ فرق نسته هُوَ الصَّحِيحُ همدا صحیح قول دی إِلَّا أَنَّ قَبْلَ الْقَبْضِ لَا يُمْكِنُهُ أَخْذُ نَصِيبِ أَحَدِهِمْ إِذَا نَقَدَ مَا عَلَيْهِ مَا لَمْ يَنْقُدِ الْآخَرُ حِصَّتَهُ مگر تر قبضې مخکي د ده لپاره په دوی کي دیوه کس حصه اخیستل ممکن نه دي کله چي پر خپل ذمه واجب سوی ثمن اداء کړي [تر هغه وخته ممکن نه دي] تر څو چي بل یو خپل حصه [د ثمن] اداء نه کړي كَيْلَا يُؤَدِّيَ إِلَى تَفْرِيقِ الْيَدِ عَلَى الْبَائِعِ بِمَنْزِلَةِ أَحَدِ الْمُشْتَرِيَيْنِ د دې لپاره چي دئ له دوو مشتریانو څخه دیوه مشتري په درجه کېدلو سره پر بائع د قبضې د تفریق سبب جوړ نه سي بِخِلَافِ مَا بَعْدَ الْقَبْضِ په خلاف تر قبضې وروسته لِأَنَّهُ سَقَطَتْ يَدُ الْبَائِعِ ځکه چي [په دې وخت کي] د بائع قبضه ساقطه سوې ده وَسَوَاءٌ سَمَّى لِكُلِّ بَعْضٍ ثَمَنًا أَوْ كَانَ الثَّمَنُ جُمْلَةً او برابره ده بائع د هري حصې لپاره [جلا جلا] ثمن بیان کړي یا ثمن مجموعي وي [یعني د ټولو قیمت پر یوه ځای (مجموعتاً) بیان کړي] لِأَنَّ الْعِبْرَةَ فِي هٰذَا لِتَفَرُّقِ الصَّفْقَةِ ځکه چي په دې کي د صفقې متفرّق کېدلو لره اعتبار دی لَا لِلثَّمَنِ نه ثمن لره وَهٰهُنَا تَفْرِيعَاتٌ ذَكَرْنَاهَا فِي كِفَايَةِ الْمُنْتَهِي او دلته نور تفریعات هم سته کوم چي موږ په کفایت المنتهي کي ذکر کړي دي.

**اللغات**: ﴿الید﴾ قبضه. ﴿سمّی﴾ د تفعیل د باب ماضي ده: نومول، بیانول، متعینول او مقررول.

**تشریح**: صاحب د هدایې رَحِمَهُ الله فرمایي چي کومه مسئله مخکي بیان سوه د هغې همداغه حکم دی (کوم چي مخکي ذکر سو). برابره ده مشتري کس تر اوسه قبضه کړې وي او که نه وي، په دواړو

خو دومره فرق سته چي که مشتري (رانيونکي) څو کسان وي او تر اوسه دوی پر مبيع (کور) قبضه نه وي کړې چي په دې دوران کي شفيع له دوی څخه ديوه حصه (په شفعه سره) رانيسي او بائع ته خپل ثمن ورکړي (کوم چي د شفيع پر ذمه واجب دی)، نو تر څو چي نور شريکان د خپلو حصو ثمن اداء نه کړي تر هغه وخته بائع ته دا حق سته چي له شفيع څخه خپله حصه را وګرځوي او هغه ته يې نه وسپاري (که څه هم شفيع ثمن اداء کړی دی)، د دې لپاره چي پر بائع د قبضې تفريق لازم نه سي (او د قبضې متفرق کېدلو له بوج څخه بائع خوندي کړی سي). لکه کله چي مشتري (رانيونکي) دوه کسان وي نو هلته هم دغه حکم دی.

او که چيري مشتري قبضه کړې وي، نو بيا شفيع تر ثمن اداء کولو وروسته خپله حصه له بائع څخه اخيستلای سي، برابره ده بائع د هري حصې ثمن جلا بيان کړی وي يا يې د ټوله کور مجموعي يو ثمن بيان کړی وي. په دواړو صورتونو کي دغه حکم دی.

دلته يو سوال وارديږي چي که ثمن مجموعي وي، نو بيا د هغه تفرقه لازميږي او تاسو واياست چي په دواړو کي هيڅ فرق نسته؟

د دې جواب دا دی چي دلته د صفقې اتحاد لره اعتبار دی، نه د ثمن اتحاد لره. نو (د مشتري په حق کي) تفرق صفقه مُضر دی. نه تفرقِ ثمن.

صاحب د هدايې رَحِمَهُ الله فرمايي چي د دې مسئلې نور تفريعات او مثالونه موږ په کفاية المنتهٰي کي بيان کړي دي.

## د مشترک کور د يوې حصې خرڅولو په صورت کي د شفعي تفصيلي حکم

قَالَ: وَمَنِ اشْتَرٰى نِصْفَ دَارٍ غَيْرِ مَقْسُوْمٍ فرمايي: او که څوک د ناتقسيم سوي کور نصف [نيمه حصه] رانيسي فَقَاسَمَهُ الْبَائِعُ بيا د هغه سره بائع تقسيم وکړي أَخَذَ الشَّفِيْعُ النِّصْفَ الَّذِیْ صَارَ لِلْمُشْتَرِیْ نو شفيع به هغه نصف اخلي کوم چي د مشتري دی أَوْيَدَعُ يا به يې پرېږدي لِأَنَّ الْقِسْمَةَ مِنْ تَمَامِ الْقَبْضِ ځکه چي تقسيم د قبضې له پوره والي [پوره کونکي] څخه دی [يعني دلته تقسيم د قبضې پوره کوونکی دی] لِمَا فِيْهِ مِنْ تَكْمِيْلِ الْاِنْتِفَاعِ ځکه چي په هغه کي د انتفاع بشپړ تيا ده [ځکه له تقسيم څخه بغير مشتري له خپل حصې څخه نفع نه سي اخيستلای] وَلِهٰذَا يَتِمُّ الْقَبْضُ بِالْقِسْمَةِ فِی الْهِبَةِ همدا وجه په ده چي په هبه کي په تقسيم سره قبضه پوره کيږي وَالشَّفِيْعُ لَا يَنْقُضُ الْقَبْضَ او شفيع قبضه نه سي ماتولای وَإِنْ كَانَ لَهُ نَفْعٌ فِيْهِ بِعَوْدِ الْعُهْدَةِ عَلَى الْبَائِعِ که څه هم په دې [قبضه ماتولو] کي د شفيع فايده ده پر بائع د بيع د ذمه واری په راجع کېدلو سره [په بله وينا دا چي که څه هم د مشتري په

قبضه ماتولو کي، شفيع فايده ده چي د هغه بيع به براه راست د بائع سره شمارل کيږي، لهذا که څه هم د هغه فايده پکښې سته لېکن هغه قبضه نه سي ماتولای] فَكَذَا لَا يَنْقُضُ مَا هُوَ مِنْ تَمَامِهِ نو همداسي به هغه څه هم نه سي ماتولای کوم چي د قبضې له پوره والي [پوره کونکي] څخه دی [چي هغه تقسيم دی] بِخِلَافِ مَا إِذَا بَاعَ أَحَدُ الشَّرِيكَيْنِ نَصِيبَهُ مِنَ الدَّارِ الْمُشْتَرَكَةِ په خلاف د هغه صورت کله چي يو شريک له مشترک کور څخه خپله حصه خرڅه کړي وَقَاسَمَ الْمُشْتَرِي الَّذِي لَمْ يَبِعْ او مشتري د هغه شريک سره تقسيم وکړي کوم چي خپله حصه نه وي خرڅه کړې حَيْثُ يَكُونُ لِلشَّفِيعِ نَقْضُهُ نو [په دې صورت کې] شفيع لره د تقسيم ماتولو اختيار سته لِأَنَّ الْعَقْدَ مَا وَقَعَ مَعَ الَّذِي قَاسَمَ ځکه مشتري چي د چا سره تقسيم کړی دی عقد د هغه سره نه دی واقع سوی فَلَمْ تَكُنِ الْقِسْمَةُ مِنْ تَمَامِ الْقَبْضِ الَّذِي هُوَ حُكْمُ الْعَقْدِ نو ځکه [دلته] تقسيم د قبضې له تماميت څخه نه سو هغه قبضه کوم چي د عقد حکم دی بَلْ هُوَ تَصَرُّفٌ بِحُكْمِ الْمِلْكِ بلکي دا د ملکيت په حکم سره [د مشتري] تصرّف دی فَيَنْقُضُهُ الشَّفِيعُ كَمَا يَنْقُضُ بَيْعَهُ وَهِبَتَهُ نو دا [د مشتري] تصرّف شفيع ماتولای سي لکه څرنګه چي د مشتري بيع او هبه ماتولای سي.

**اللغات**: ﴿قَاسَمَ﴾ د مفاعلې د باب ماضي ده: يو د بل سره تقسيم (وېش) کول. ﴿صار﴾ د ضرب د باب ماضي ده: کېدل، ګرځېدل... ﴿عَوْد﴾ د ضرب مصدر دی: راګرځېدل، واپس کېدل. ﴿عهدة﴾ ذمه واري، مدار. ﴿تمام﴾ د ضرب مصدر دی: پوره والی، بشپړ والی، پوره کېدل.

**تشريح: صورت د مسئلې**: دا دی چي زيد د کور نصف (نيمه حصه) يعني نيم کور پر خالد خرڅ کړی او دا کوم نصف چي يې پر خرڅ کړی دا غير مقسوم دی (يعني تر اوسه يې تقسيم کړی او وېشلی نه دی چي دا نيمه حصه يې ستا ده او دا بله زما ده)، بيا مشتري (خالد) او بائع (زيد) تقسيم او وېش سره وکړی (يعني د مشتري نيمه حصه يې ور جلا کړه چي د دې طرف نيمه حصه ستا ده...)، نو اوس د دغه کور شفيع ته صرف دا اختيار سته چي کومه حصه و کوم طرف ته هم د مشتري په حصه کي راغلې ده، هغه دې په (په شفعه سره) واخلي، کنې شفعه دې پرېږدي (يعني دا سي نه سي کولای چي خاص هغه نيمه حصه واخلي کوم چي د ده د کور سره متصل ده بلکي صرف د مشتري حصه به اخلي هغه که هر طرف ته وي).

او که شفيع دا وغواړي چي دغه د مشتري تقسيم (يا په بله وينا د مشتري قبضه) مات کړم او زه په خپله د بائع (زيد) سره تقسيم وکړم، نو شفيع ته د دې اختيار نسته؛ که څه هم په دې کي د شفيع

فايده ده چي د بيع مدار او ذمه واري به د بائع وطرف ته سي (يا په بله وينا دا چي د بيع مدار به پر بائع سي)؛ ځکه د بيع مدار مخکي د مشتري وطرف ته وو، او اوس چي خودي شفيع د بائع سره تقسيم وکړي، نو د بيع مدار به د بائع وطرف ته وګرځي او داسي به وي لکه شفيع چي په خپله د بائع سره بيع کړې ده (يعني ګواکي خودي شفيع مشتری دی) نو په دې کي د شفيع فايده دا ده چي شفيع به د خپلي خوښي مطابق هغه حصه واخلي کوم چي د شفيع د ځمکي سره متصل ده.

لنډه دا چي که څه هم په دې تقسيم ماتولو کي د شفيع فايده سته، خو شفيع ته بالکل د دې حق نسته چي (د بائع او مشتري تر مينځ سوی) دا تقسيم مات کړي؛ ځکه چي تقسيم د قبضې پوره کونکی (مُتمّم) دی يعني په تقسيم سره (د مشتري) قبضه پوره سوې ده (ځکه تر څو چي کور تقسيم سوی نه وي تر هغه وخته مشتري پر خپله حصه قبضه نه سي کولای چي نفع ځني واخلي، بلکي تر تقسيم او وېش وروسته چي کله دده حصه معلومه کړی سي نو بيا قبضه پر کولای سي، نو ګواکي په تقسيم سره د مشتري قبضه صحيح او پوره سوه)، او قاعده دا ده چي شفيع (د مشتري) قبضه او د قبضې پوره کونکی سبب (چي هغه دلته تقسيم دی) نه سي ماتولای، نو په دې وجه شفيع ته د تقسيم ماتولو اختيار نسته، بلکي کومه حصه چي د مشتري په جانب کي راغلې ده فقط هغه اخيستلای سي، لهذا که شفيع هغه حصه نه غواړي، نو شفعه به پرېږدي.

ولهذا إلخ: څه مخکي صاحب د هدايې وفرمايل چي تقسيم د قبضې پوره کونکی (متمّم) دی (يعني په وېش او تقسيم سره قبضه پوره سوې ده)، اوس په دغه عبارت (و لهذا إلخ) سره د هغه يو مثال بيانوي چي مثلاً که يو څوک خپل ځمکه حامد ته هبه کړي، نو تر څو چي هغه (واهب) ځمکه تقسيم نه کړي او د موهوب لهٗ (حامد) حصه معلومه نه کړي، پر هغه ځمکه د موهوب لهٗ قبضه نه پوره کيږي يعني په قبضه کي يې نه راځي (او هبه نه ثابتيږي)، نو څرنګه چي په هبه کي په تقسيم سره قبضه پوره کيږي، همداسي په بيع کي هم په تقسيم او وېش سره قبضه پوره کيږي.

بخلاف إلخ: د مخکيني صورت بالمقابل يو بل صورت بيانوي، فرمايي څرنګه چي په مخکيني صورت کي د بائع او مشتري تر مينځ تقسيم (وېش) سوی دی، په همدې وجه هلته شفيع ته د تقسيم ماتولو اختيار نه دی ورکول سوی، لېکن که له دوو شريکانو څخه يو شريک خپله حصه مثلاً پر خالد خرڅه کړي او مشتري (خالد) د هغه بل شريک سره تقسيم وکړي کوم چي خپله حصه نه ده خرڅه کړې او خرڅونکی شريک پرېږدي، نو په دې صورت کي شفيع ته د تقسيم ماتولو اختيار سته؛ ځکه چي دلته تقسيم د قبضې پوره کونکی (متمّم) نه دی؛ ځکه دلته تقسيم د بائع له طرفه نه دی سوی، بلکي د داسي کس له طرفه سوی دی کوم چي له عقد څخه خارج او اجنبي دی، او مخکي ذکر سوه چي شفيع ته د مشتري د هر تصرّف ماتولو او ختمولو اختيار سته برابره ده هغه بيع وي او که هبه

او داسي نور وي (ماسوا د مشتري له قبضې او هغه چي د قبضې متمم وي)، او دلته تقسيم هم يو ډول تصرف دی، نو ځکه شفيع ته به د هغه د ماتولو هم اختيار وي.

**يادونه**: بخلاف ما إذا باع إلخ: د دې صورت دا دی چي که يو شريک خپله حصه خرڅه کړه او دويم شريک د شفعي له طلب څخه اعراض وکړی چي زه خپل شفعه نه غواړم، نو په دې صورت کي همسايه (جار) ته حق شفعه رسيږي، کنې که شريک خپل شفعه نه پريږدي نو په دې صورت کي شريک في الحقوق (مثلاً په لاره کي شريک) او همسايه ته شفعه نه حاصليږي، لکه مخکي چي د دې تفصيلات تېر سوي دي.

## په پورتنۍ مسئله کي يو وضاحت

ثُمَّ إِطْلَاقُ الْجَوَابِ فِي الْكِتَابِ يَدُلُّ عَلَىٰ أَنَّ الشَّفِيعَ يَأْخُذُ النِّصْفَ الَّذِي صَارَ لِلْمُشْتَرِي فِي أَيِّ جَانِبٍ كَانَ بيا په کتاب [جامع صغير کي] د حکم مطلق کېدل پر دې دلالت کوي چي شفيع به د مشتري والا نصف اخلي برابره ده هغه په هر طرف کي وي وَهُوَ الْمَرْوِيُّ عَنْ أَبِي يُوسُفَ او همدا له امام ابو يوسف رَحِمَهُ الله څخه نقل سوي دي لِأَنَّ الْمُشْتَرِيَ لَا يَمْلِكُ إِبْطَالَ حَقِّهِ بِالْقِسْمَةِ ځکه چي مشتري په تقسيم کولو سره د هغه د حق باطلولو ملکيت [اختيار] نه لري وَعَنْ أَبِي حَنِيفَةَ أَنَّهُ إِنَّمَا يَأْخُذُهُ إِذَا وَقَعَ فِي جَانِبِ الدَّارِ الَّتِي يَشْفَعُ بِهَا او له امام صاحب رَحِمَهُ الله څخه نقل سوي دي چي شفيع دا نصف همغه وخت اخيستلای سي کله چي دا د هغه کور په طرف [څنګ] کي واقع وي چي د هغه په وجه شفيع د شفعي حقدار جوړيږي [يعني چي د شفيع د کور په طرف کي واقع وي] لِأَنَّهُ لَا يَبْقَىٰ جَارًا فِيمَا يَقَعُ فِي الْجَانِبِ الْآخَرِ ځکه چي شفيع په هغه صورت کي همسايه نه پاتيږي کله چي دا نصف په بل طرف کي واقع وي.

**اللغات**: ﴿إطلاق﴾ د افعال د باب مصدر دی: مطلق کېدل، مطلق والی.

**تشريح**: صاحب د هدايې رَحِمَهُ الله فرمايي چي په جامع صغير کي چي کوم دا "أخذ الشفيع النصف الذی صار للمشتری" مطلق راغلي دي (چي د تېر عبارت په متن کي ذکر سوه)، له دغه اطلاق څخه دا معلوميږي چي برابره ده د مشتري رانيول سوی نصف (نيمه حصه) د شفيع د کور وطرف ته وي يا بل طرف ته وي، په هر صورت کي شفيع هغه نصف (په شفعه سره) اخيستلای سي.

او له امام ابو يوسف رَحِمَهُ الله څخه همدا نقل سوي دي او همدا غوره او مختاره ده، چي د شفيع د حق باطلول لازم نه سي، کنې بيا دا کېدای سي چي بائع او مشتري دواړه اتفاق وکړي او د مشتري

حصه د شفیع د کور له طرف څخه جلا په بل طرف کې وټاکې، نو په دې کې د شفیع د حقِ شفعه إبطال (باطلول) سته، او تاسو ته معلومه ده چې تر إثبات وروسته د حق إبطال نه کیږي. او پاتـه سو پـه حیله کې د حقِ شفعه تر إثبات مخکې د هغه د إسقاط تدبیر کېدی، نه د حقِ شفعه تر إثبات وروسته (لکه مخکې چې هم دا خبره ضمناً ذکر سوه).

او له امام صاحب رَحِمَهُ الله څخه دا نقل سوي دي چې که د مشتري نصف د شفیع په طرف کې وي نو شفیع هغه (په شفعه سره) اخیستلای سي او که په بل طرف کې وي نو بیا یې نه سي اخیستلای؛ ځکه چې په دې صورت کې شفیع همسایه (جار) نه پاتیږي، حال دا چې هغه د همدې همسایه والي (جوار) پر بنیاد شفعه اخلي.

## د مأذون غلام أو مالک تر مینځ د شفعي بیان

| |
|---|
| قَالَ: وَمَنْ بَاعَ دَارًا وَلَهُ عَبْدٌ مَأْذُوْنٌ عَلَيْهِ دَيْنٌ فرمایي: او که څوک کور خرڅ کړي او د هغه یو مأذون غلام وي چې په هغه قرض باندي وي فَلَهُ الشُّفْعَةُ نو هغه غلام لره شفعه سته وَكَذَا إِذَا كَانَ الْعَبْدُ هُوَ الْبَائِعُ او همدارنګه کله چې غلام بائع وي فَلِمَوْلَاهُ الشُّفْعَةُ نو د هغه مالک لره شفعه سته لِأَنَّ الْأَخْذَ بِالشُّفْعَةِ تَمَلُّكٌ بِالثَّمَنِ ځکه چې په شفعه سره اخیستل په ثمن سره مالک جوړېدل دي [یعني د شفعي په ذریعه کور اخیستل ګواکې هغه په قیمت رانیول دي] فَيُنَزَّلُ مَنْزِلَةَ الشِّرَاءِ نو ځکه دا [په شفعه سره اخیستل] به د رانیولو په منزله ګرځول کیږي وَهٰذَا لِأَنَّهُ مُفِيْدٌ او دا ځکه چې دا [په شفعه سره اخیستل] مفید دي لِأَنَّهُ يَتَصَرَّفُ لِلْغُرَمَاءِ ځکه چې هغه [غلام] د خپلو قرضخواهانو لپاره تصرف کوي بِخِلَافِ مَا إِذَا لَمْ يَكُنْ عَلَيْهِ دَيْنٌ په خلاف د هغه صورت کله چې پر غلام قرض نه وي لِأَنَّهُ يَبِيْعُهُ لِمَوْلَاهُ ځکه چې [په دې صورت کې] غلام د خپل مالک لپاره خرڅول کوي وَلَا شُفْعَةَ لِمَنْ بِيْعَ لَهُ او د چا لپاره چې خرڅ کړی سي د هغه لپاره شفعه نسته. |

**اللغات**: ﴿غرماء﴾ جمع د غَرِيْمٌ ده: قرضخواه، قرض غوښتونکی یعني د قرض مالک. ﴿يُنـزّل﴾ د تفعیل د باب مضارع مجهوله ده: شوه کول (صحیح همدا ده چې په دې معنیٰ د تفعیل له بابه مستعمل دی). يُنزّل منزلةً: یو شی د بل په درجه کې شوه کول (د بل شي په منزله ګرځول). یو څه د بل څه پر ځای ایښوول، د بل شي قائم مقام کول. ﴿الْمَنْزِلَة﴾ مکان او مرتبه، درجه.

**یادونه**: مأذون غلام هغه غلام تـه وایي چې مالک د تجارت او کاروبار اجازت ورکړی وي. د داسې غلام خرڅول و رانیول (بیع و شراء) جائز دي، او بل دا چې کوم څه د مأذون غلام په قبضه کې دي هغه

ټوله د ده د مالک (مولیٰ) دي، د ده بيع و شراء او د ده شرط ټوله د مالک لپاره واقع کيږي او د ده قرض به مالک اداء کوي، دا په هغه وخت کي کله چي پر مأذون غلام دينِ مستغرق يعني دومره قرض نه وي کوم چي د ده پر رقبه محيط وي (يعني دومره قرض چي د ده تر قيمت زيات وي)، کنې که پر هغه دومره قرض وي، نو پر مالک ضروري نه ده چي د ده قرض اداء کړي، خو که هغه يې اداء کړي نو صحيح ده، کنې هغه به دا غلام خرڅوي او قرض به په اداء کوي، او پر غلام د قرض باندي کېدلو په صورت کي د غلام بيع وشراء د مالک لپاره نه بلکي د قرضخواهانو (غرماؤ) لپاره واقع کيږي. دا تفصيل په یاد لرئ!.

**تشريح: صورت د مسئلې:** دا دی چي مأذون غلام يو کور د تجارت په غرض رانيولی دی اوس هغه خرڅوي او د هغه په جوار کي د ذه د مالک کور دی، نو آيا مالک ته شفعه حاصليږي، که نه؟، په دې هکله حکم دا دی چي که دا مأذون غلام مقروض وي (يعني دينِ مستغرق پر وي) نو مالک ته شفعه حاصليږي همدارنګه د مالک د کور خرڅولو په صورت کي مأذون غلام ته هم شفعه حاصليږي. او که مأذون غلام مقروض نه وي نو مالک ته شفعه نه حاصليږي همدارنګه د مالک د خرڅولو په صورت کي ده ته هم شفعه نه حاصليږي. ځکه چي په اول صورت کي (يعني چي دئ مقروض وي) د ده بيع و شراء د مالک لپاره نه دي نو له شفعي ځخه هيڅ مانع نسته، او په دويم صورت کي د ده بيع وشراء د مالک لپاره دي نو ځکه مالک ته شفعه نه حاصليږي.

لېکن د شرط په صورت کي بيا په دې دويم صورت کي هم مالک ته شفعه حاصليږي چي د دې تفصيل مخکي د قاعده کليه په ضمن کي تېر سو چي په هغه کي ذکر سوي وه چي د چا لپاره (مشفوعه جايداد) خرڅ کړی سي د هغه لپاره شفعه نسته. او د چا لپاره چي رانيول سي د هغه لپاره شفعه سته.

لأن الأخذ بالشفعة إلخ: د پورتنۍ مسئلې دليل دا دی چي په شفعه سره اخيستل د شراء (رانيولو) په درجه کي دي ځکه څرنګه چي په شراء کي ثمن ورکول کيږي او مبيع اخيستل کيږي. همداسي په شفعه کي هم کيږي. او کله چي پر غلام دينِ مستغرق وي، نو په دې وخت کي د ده او مالک (تر مينځ) يو د بل سره بيع و شراء کول صحيح دي، نو همداسي به د دوی يو له بل ځخه شفعه اخيستل هم صحيح او جائز وي.

## د کوچني هلک (صغير) له طرفه د هغه د پلار يا وصي د شفعي پرېښودلو حکم

قَالَ: وَتَسْلِيْمُ الْأَبِ وَالْوَصِيِّ الشُّفْعَةَ عَلَى الصَّغِيْرِ جَائِزٌ عِنْدَ أَبِيْ حَنِيْفَةَ وَأَبِيْ يُوْسُفَ فرمايي: او د کوچني له طرفه د پلار يا وصي شفعه پرېښودل د شيخينو رَحِمَهُمَا الله په نېز جائز دي وَقَالَ مُحَمَّدٌ وَزُفَرُ رَحِمَهُمَا اللهُ: هُوَ عَلَى شُفْعَتِهِ إِذَا بَلَغَ امام محمد او امام زفر رَحِمَهُمَا الله فرمايي: چي کوچنی پر خپل شفعه [حقِ شفعه] پاتېږي کله چي بالغ سي قَالُوْا: وَعَلَى هٰذَا الْخِلَافِ إِذَا بَلَغَهُمَا شِرَاءُ دَارٍ بِجِوَارِ دَارِ الصَّبِيِّ مشايخو فرمايلي دي: چي پر همدغه اختلاف دا مسئله هم ده چي کله پلار او وصي ته د کوچني د څنګ والا کور د شراء [خرڅېدلو] خبر

ورکول سي فَلَمْ يَطْلُبَا الشُّفْعَةَ لېکن دوی شفعه طلبه نه کړي وَعَلٰى هٰذَا الْخِلَافِ تَسْلِيْمُ الْوَكِيْلِ بِطَلَبِ الشُّفْعَةِ فِي رِوَايَةِ كِتَابِ الْوَكَالَةِ او [د مبسوط] د كتابُ الوكالة د روايت مطابق د طلبِ شفعه د وکیل شفعه پرېښوول هم پر دغه اختلاف دي وَهُوَ الصَّحِيْحُ او همدا صحيح ده لِمُحَمَّدٍ وَزُفَرَ: أَنَّهُ حَقٌّ ثَابِتٌ لِلصَّغِيْرِ د امام محمد او امام زفر رَحِمَهُمَا الله دليل دا دی: چې شفعه د کوچني لپاره ثابت سوی حق دی فَلَا يَمْلِكَانِ إِبْطَالَهُ نو ځکه پلار او وصي به د هغه د باطلولو ملکيت نه لري كَدِيَتِهِ وَقَوَدِهِ لکه د کوچني ديت او قصاص [چې پلار او وصي يې د باطلولو ملکيت نه لري] وَلِأَنَّهُ شُرِعَ لِدَفْعِ الضَّرَرِ ځکه چې حقِ شفعه د ضرر ليرې کولو لپاره مشروع سوې ده فَكَانَ إِبْطَالُهُ إِضْرَارًا بِهِ نو د هغه باطلول کوچني ته ضرر رسول دي.

**اللغات:** ﴿تسليم﴾ د تفعيل د باب مصدر دی: مخکي ښو ځله د دې تفصيل تېر سوی دی چې دلته د دې لفظ معنیٰ راځي: خپل حقِ شفعه پرېښوول، له خپل شفعي څخه لاس په سر کېدل. ﴿شراء﴾ د ضرب د باب مصدر دی: دا لفظ له اضدادو څخه دی، يعني اصل معنیٰ يې "رانيول" ده خو بعضي وخت د "خرڅولو" معنیٰ هم ورکوي، همدارنګه د بيع لفظ هم له اضدادو څخه دی. ﴿قود﴾ مراد: قصاص (احسن الهدايه). ﴿يملكان﴾ د ضرب له بابه د تثنيه غائب مضارع صيغه ده: مالک کېدل، ملکيت او اختيار لرل. ﴿إبطال﴾ د افعال د باب مصدر دی: باطلول او ختمول.

**تشريح: صورت د مسئلې:** دا دی چې يو کوچني هلک ته د خپل مور په ميراث کي يو کور رسېدلی دی، اتفاقاً د هغه کور څنګ ته يو کور خرڅ سو او دې کوچني هلک ته حقِ شفعه حاصل سو، لېکن د ده پلار يا (د پلار په ناموجوديت کي) وصي شفعه پرېښووله، نو آيا واقعي د ده حقِ شفعه ختمېږي؟، په دې باره کي اختلاف دی، امام صاحب او امام ابو يوسف رَحِمَهُ الله فرمايي چې د پلار يا وصي په تسليم (شفعه پرېښوولو) سره د کوچني حق ختمېږي، امام محمد او امام زفر رَحِمَهُمَا الله فرمايي چې د کوچني حق نه ختمېږي او تر بالغ کېدو وروسته هغه ته خپل حقِ شفعه حاصلېږي. پر همدغه اختلاف هغه صورت هم متفرع دی چې د کوچني هلک د کور څنګ ته متصل بل کور خرڅ سي خو پلار يا وصي طلبِ شفعه نه وکړي. همدارنګه هغه مسئله هم ده چې که يو څوک بل کس د طلبِ شفعه وکيل جوړ کړي او وکيل يې طلب نه وکړي (شفعه پرېږدي)، نو د شيخينو رَحِمَهُمَا الله په نېز په دې ټولو صورتونو کي شفعه باطله ده او د امام محمد او امام زفر رَحِمَهُمَا الله په نېز باقي ده او باطلول يې صحيح نه دي.

لمحمد إلخ: له دې ځايه د دوی دليل ذکر سوی دی، حاصل يې دا دی چي شفعه د شريعت له طرفه يو ثابت سوی حق دی، او کوم حق چي د شريعت له طرفه ثابت وي، بل څوک د هغه د باطلولو ملکيت (اختيار) نه لري، مثلاً قصاص او ديت د شريعت له طرفه ثابت سوي حقوق دي چي له حقداره کس (صاحب حق) څخه بغير بل څوک هغه نه سي باطلولای، لهذا شفعه هم پلار يا وصي نه سي باطلولای. او بل دا چي د شفعي مقصد خو د ضرر ليري کول دي (لکه مخکي چي ذکر سوه)، لهذا د شفعي په باطلولو سره کوچني ته ضرر رسيږي، نو ځکه زموږ (د امام محمد او امام زفر) په نيز دلته د هغه باطلول صحيح نه دي.

## په پورتني مسئله کي د شيخينو رَحِمَهُمَا الله دليل

| |
|---|
| وَلَهُمَا: أَنَّهُ فِيْ مَعْنَى التِّجَارَةِ د شيخينو رَحِمَهُمَا الله دليل دا دی: چي په شفعه سره اخيستل د تجارت په معنیٰ سره دي فَيَمْلِكَانِ تَرْكَهُ نو ځکه پلار او وصي به د شفعي پرېښوولو ملکيت [اختيار] لري أَلَا تَرَى أَنَّ مَنْ أَوْجَبَ بَيْعًا لِلصَّبِيِّ آيا ته نه ګوري! چي څوک د کوچني لپاره د بيع ايجاب وکړي صَحَّ رَدُّهُ مِنَ الْأَبِ وَالْوَصِيِّ نو د پلار او وصي له طرفه د هغه ردول صحيح دي وَلِأَنَّهُ دَائِرٌ بَيْنَ النَّفْعِ وَالضَّرَرِ او ځکه چي دا [شفعه اخيستل او پرېښوول] د نفع او نقصان تر مينځ دائر دي وَقَدْ يَكُوْنُ النَّظَرُ فِيْ تَرْكِهِ او ځيني وخت شفقت [او د کوچني مصلحت] د شفعي په پرېښوولو کي وي لِيَبْقَى الثَّمَنُ عَلَى مِلْكِهِ د دې لپاره چي ثمن د کوچني په ملکيت کي پاته سي وَالْوِلَايَةُ نَظَرِيَّةٌ او دا ولايت مبني پر شفقت [او مصلحت] دی فَيَمْلِكَانِهِ نو ځکه پلار او وصي به د شفعي پرېښوولو ملکيت لري وَسُكُوتُهُمَا كَإِبْطَالِهِمَا او د پلار او وصي سکوت [له طلب شفعه څخه چپ پاتېدل] د صراحتاً باطلولو په څېر دی لِكَوْنِهِ دَلِيْلَ الْإِعْرَاضِ ځکه چي سکوت د اعراض دليل دی. |

**اللغات:** ﴿دائر﴾ د دوو شيانو تر مينځ کېدونکی. جاري. ﴿النظر﴾ شارحينو د دې لفظ دوې معناوي ذکر کړي دي: مصلحت (ښېګڼه). شفقت. ﴿نظرية﴾ پر مصلحت مبني. پر شفقت مبني.

**تشريح:** په دې عبارت کي صاحب د هدايې د شيخينو دليل ذکر کړی دی، حاصل يې دا دی چي په شفعه کي (د قيمت ورکولو او کور اخيستلو په اعتبار سره) د تجارت معنیٰ سته او په تجارت کي د نفعې او نقصان (ګټې او تاوان) دواړو احتمال سته. او (پلار او وصي ته) پر کوچني ځکه ولايت حاصليږي چي د کوچني سره د شفقت چلند وسي او د هغه لپاره داسي معامله وکړی سي چي د هغه مصلحت او ښېګڼه

پکښې وي، او ځينې وخت د شفعي په پرېښوولو کې شفقت او د کوچني مصلحت وي؛ نو ځکه پلار او وصي لره به دا حق حاصل وي چې شفعه اخيستل پرېږدي.

وسكوتهما إلخ: او د صراحتاً باطلولو او شفعي پرېښوولو چې څرنګه حکم دی، د سکوت هم هغه حکم دی (يعني که پلار ويا وصي له طلبِ شفعه څخه چپ پاته سي او خاموشي اختيار کړي، نو هم د کوچني حقِ شفعه ساقطيږي او باطليږي)؛ ځکه چې سکوت د اعراض دليل دی او شفعه په اعراض سره باطليږي.

## د پورتني مسئلې بل صورت

وَهٰذَا إِذَا بِيعَتْ بِمِثْلِ قِيمَتِهَا او دا اختلاف هغه وخت دی کله چې کور په خپل مثلي قيمت سره خرڅ سي فَإِنْ بِيعَتْ بِأَكْثَرَ مِنْ قِيمَتِهَا بِمَا لَا يَتَغَابَنُ النَّاسُ فِيهِ لېکن که کور تر خپل قيمت په زياته خرڅ سي [يعني] په دومره زيات قيمت چې خلک په هغه کې نقصان نه زغمي [يا په بله وينا دا چې خلک په هغه کې دوکه نه خوري] قِيلَ: جَازَ التَّسْلِيمُ بِالْإِجْمَاعِ نو ويل سوي دي: چې [په دې صورت کې] بالاتفاق [د پلار او وصي لپاره] شفعه پرېښوول جائز دي لِأَنَّهُ تَمَحَّضَ نَظَرًا ځکه چې اوس دا [شفعه پرېښوول، د کوچني لپاره] خالص مصلحت سو وَقِيلَ: لَا يَصِحُّ بِالِاتِّفَاقِ او ويل سوي دي [يعني دويم قول دا دی]: چې [په دې صورت کې د پلار او وصي لپاره] بالاتفاق شفعه پرېښوول صحيح نه دي لِأَنَّهُ لَا يَمْلِكُ الْأَخْذَ ځکه چې په دوی دواړو کې يو په شفعه سره د اخيستلو مالک نه دی فَلَا يَمْلِكُ التَّسْلِيمَ نو د شفعي د پرېښوولو به هم ملکيت نه لري كَالْأَجْنَبِيِّ لکه اجنبي [پردی] کس وَإِنْ بِيعَتْ بِأَقَلَّ مِنْ قِيمَتِهَا مُحَابَاةً كَثِيرَةً او که په زيات رعايت کولو سره کور تر خپل قيمت ډېر په کمه خرڅ سي فَعَنْ أَبِي حَنِيفَةَ أَنَّهُ لَا يَصِحُّ التَّسْلِيمُ مِنْهُمَا نو له امام صاحب رَحِمَهُ الله څخه روايت دی چې د دواړو له طرفه شفعه پرېښوول صحيح نه دي وَلَا رِوَايَةَ عَنْ أَبِي يُوسُفَ او له امام ابو يوسف رَحِمَهُ الله څخه [په دې باره کې] هيڅ روايت نسته.

**اللغات**: ﴿لا يتغابن﴾ د تفاعل له بابه د نفي صيغه ده. تَغَابَنَ يَتَغَابَنُ تَغَابُنًا: د دغه باب خپله معنیٰ ده: يو بل ته نقصان رسول، يو بل ته دوکه ورکول. لېکن شارحينو يې دا معناوي هم کړي دي: نقصان زغمل (تاوان برداشت کول). دوکه خوړل (دوکه کېدل). ﴿تمحض﴾ د تفعل د باب ماضي معلومه ده: محض کېدل، خالص کېدل. ﴿التسليم﴾ د تفعيل د باب مصدر دی: مه کې د دې

تفصیل ټېر سو چې دلته د دې لفظ معنیٰ ده: خپل حق شفعه پرېښوول, له خپل شفعي څخه لاس په سر کېدل. «محاباة» د مفاعلې د باب مصدر دی, د دې لفظ څو معناوي دي: یو چا ته میلان کول, یو څوک په مال سره خاصول, د یو چا سره په ثمن (قیمت) یا مبیع کې رعایت کول, یعني یو شی په ډېر کم قیمت سره خرڅول, له عام رېټ (نرخ) څخه ډېر په کمه ورکول.

**تشریح:** صاحب د هدایې رَحِمَهُ الله فرمایي چې د شیخینو او امام محمد... رَحِمَهُمُ الله ترمینځ دا مخکینی اختلاف په هغه صورت کې دی کله چې (د صغیر د کور څنګ والا) کور په دومره قیمت خرڅ سوی وي څومره چې د هغه خپل قیمت او مالیت وي یا په بله وینا دا چې کور په خپل مناسب قیمت خرڅ سوی وي, لېکن که کور له خپل مناسب قیمت څخه ډېر ګران خرڅ سوی وي, نو په دې صورت کې دوه قولونه دي: ① بالاتفاق شفعه پرېښوول صحیح دي؛ ځکه په دې صورت کې شفقت او د کوچني ښېګڼه د شفعي په پرېښوولو کې ده, ځکه په ډېر ګران قیمت سره د کور په رانیولو کې د کوچني زیات تاوان دی, ② دویم قول دا دی چې بالاتفاق شفعه پرېښوول صحیح نه دي, بلکي د کوچني حق شفعه هغسې باقي پاتېږي؛ ځکه شفعه پرېښوول فرع ده د شفعي اخیستلو, یعني کوم څوک چې د شفعي (مشفوعه ځای) د اخیستلو اختیار لري, همهغه شفعه پرېښوولای سي, او دلته د زیات تاوان (غبنِ فاحش) په وجه پلار او وصي لره د شفعي اخیستلو اختیار نسته, نو اوس دوی دواړه د اجنبي کس په څېر دي, نو څرنګه چې د اجنبي تسلیم (شفعه پرېښوول) صحیح نه دی (یعني څرنګه چې دا صحیح او پر ځای نه دي چې اجنبي کس د کوچني له طرفه شفعه پرېږدي), همداسې به د پلار او وصي تسلیم هم صحیح نه وي.

وان بیعت بأقل إلخ: او که کور له خپل مناسب قیمت څخه په ډېر کم قیمت خرڅ سوی وي, مثلاً د کور قیمت شل زره درهمه وي او بائع هغه رعایتاً په پنځه زره درهمه خرڅ کړی وي, نو اوس څه حکم دی؟, فرمایي چې په دې صورت کې د امام صاحب رَحِمَهُ الله په نېز د پلار او وصي تسلیم (شفعه پرېښوول) صحیح نه دي؛ ځکه چې په دې کې د کوچني ښکاره تاوان دی. او پاته سو له امام ابو یوسف رَحِمَهُ الله څخه په دې هکله هیڅ روایت نه دی نقل سوی, خو غالب ګومان همدا دی چې د هغه رایه به هم دا وي چې شفعه دې نه پرېښوول کېږي. والله أعلم بالصواب

❀❀❀

# كِتَابُ الْقِسْمَةِ

## (دا) کتاب د "تقسیم" (په بیان کي) دی

**تشریح**: تر کتابُ الشفعه وروسته مصنف رَحِمَهُ الله کتابُ القسمة بیانوي، وجه د مناسبت یې دا ده چې څرنګه په شفعه کي شفیع جبراً د مشتري د جایداد مالک کیږي، همداسي په تقسیم کي شریک (په ځیني صورتونو کي) د بل شریک د حصې مالک کیږي.

او په شفعه کي انسان د کُل مالک کیږي او په قسمت کي د جزء (حصې) مالک کیږي، او کُل له جزء څخه مخکي دی، نو ځکه کتابُ الشفعه مخکي او کتابُ القسمة وروسته بیان کړی سوی دی.

**د قسمت لغوي او اصطلاحي معنیٰ**: لغوي معنیٰ یې ده: وېش او تقسیم، او اصطلاحي معنیٰ یې ده: د یو ځای یا د یو شي حصې سره جلا کول او تقسیمول. (احسن الهدایه)

**د قسمت سبب**: دا دی چي شریک دا مطالبه وکړي چي ما ته له دي خپل ملکیت څخه د نفع اخیستلو حق او حصه راکول سي چي په هغه کي بل څوک را سره شریک نه وي، لهذا که شریک مطالبه نه وکړي، نو قسمت نه صحیح نه کیږي.

**د قسمت رکن او شرط**: د قسمت رکن هغه فعل دی چي د هغه په ذریعه د حصو تر مینځ جلایي او تمیز واقع کیږي لکه ګزول، ګامول او داسي نور. او د قسمت شرط دا دی چي په تقسیم سره به منفعت نه ختمیږي، همدا وجه ده چي په کومو شیانو کي تقسیم د منفعت لپاره مضر وي، په هغوی کي قسمت مشروع نه دی، مثلاً دېوال، څاه، حمام او داسي نور.

### په مشترک شي کي د تقسیم شرعي حیثیت او تفصیل

قَالَ: اَلْقِسْمَةُ فِي الْأَعْيَانِ الْمُشْتَرَكَةِ مَشْرُوعَةٌ فرمایي: په مشترکه شیانو کي تقسیم کول مشروع دي لِأَنَّ النَّبِيَّ ﷺ [1] بَاشَرَهَا فِي الْمَغَانِمِ وَالْمَوَارِيْثِ ځکه نبي کریم په غنیمتونو او میراثونو کي تقسیم کړی دی وَجَرَى التَّوَارُثُ بِهَا مِنْ غَيْرِ نَكِيْرٍ او بغیر له نکیره په همدې سره توارث جاري سوی دی [یعني بغیر له څه نیوکي او انکاره دا د تقسیم معامله له هغه زماني څخه تر اوسه روانه ده] ثُمَّ هِيَ لَا تَعْرَى عَنْ مَعْنَى الْمُبَادَلَةِ بیا تقسیم د مبادله له معنیٰ څخه خالي نه دی لِأَنَّ مَا يَجْتَمِعُ لِأَحَدِهِمَا بَعْضُهُ كَانَ لَهُ وَبَعْضُهُ كَانَ لِصَاحِبِهِ

---

[1] تخریج: أخرجه أبو داؤد في كتاب الفرائض، باب ما جاء في ميراث الصلب، حديث رقم: ۲۸۹۱.

ځکه په دوو شریکانو کې چې دیوه لپاره کومه حصه جمع کیږي په هغه کې بعضې خو د هغه وي او بعضې د هغه د ملګري شریک وي فَهُوَيَأْخُذُهُ عِوَضًا عَمَّا بَقِيَ مِنْ حَقِّهِ فِي نَصِيبِ صَاحِبِهِ نو هغه دا اخلي د هغه حق په عوض کې کوم چې د ده د ملګري په حصه کې پاته وي [یا په بله وینا دا چې هغه دا حصه د خپل هغه حصې په بدله کې اخلي کوم چې د ده ملګري شریک په حصه کې پاته وي] فَكَانَ مُبَادَلَةً وَإِفْرَازًا نو ځکه دا مبادله سوه او افراز [او د خپلې حصې را جلا کول] سو [یعنې په تقسیم کې دا د مبادلې معنیٰ سوه چې د یوې حصې په بدله کې بله حصه اخیستل کیږي همدارنګه د افراز معنیٰ هم په پکښې سته چې په تقسیم کې خپله حصه را جلا کیږي او اخیستل کیږي] وَالْإِفْرَازُ هُوَالظَّاهِرُفِي الْمَكِيلَاتِ وَالْمَوْزُونَاتِ او په کَیلي او وزني شیانو کې افراز ښکاره دی [په بله وینا دا چې په مکیلاتو او موزوناتو کې د افراز معنیٰ غالبه ده] لِعَدَمِ التَّفَاوُتِ د تفاوت د نشتوالي [یعنې ځکه چې د دوی په خپل آپس کې تفاوت او توپیر نسته] حَتّٰى كَانَ لِأَحَدِهِمَا أَنْ يَأْخُذَ نَصِيبَهُ حَالَ غَيْبَةِ صَاحِبِهِ همدا وجه ده چې په دواړو [شریکانو] کې یوه ته د دې اختیار سته چې د خپل ملګري شریک په غائب والي [ناموجودیت] کې خپله حصه واخلي.

**اللغات**: ﴿اعیان﴾ جمع د عَین دی: متعیّن شی، عیني شی، کوم شی چې مخته موجود وي او په لاس سره مسه کېدای سي او محفوظ کېدای سي، لکه ځمکه، آس او داسي نور. نو هغه ته "عین" وایي چې جمع یې "أَعْيَان" راځي، ﴿باشر﴾ د مفاعلې د باب ماضي ده: یو کار په خپله کول، ﴿توارث﴾ د تفاعل د باب مصدر دی: یو د بل وارث کېدل، له مخکني زمانې څخه یو له بل څخه لاس ته راوړل، پرلپسې د یو امر واقع کېدل، ﴿مغانم﴾ جمع د مَغْنَم ده: د غنیمت شیان، ﴿مواریث﴾ جمع د مِیْرَاث ده: ترکه، میراث، ﴿افراز﴾ د افعال د باب مصدر دی: جلا کول، علیحده کول، ﴿مکیلات﴾ کَیلي (مکیلي) شیان، یعنې کوم شیان چې په پیمانه سره اندازه کیږي او خرڅیږي، لکه غنم، وریجې او داسي نور چې پخوا به دا په پیمانه (معلوم لوښي) سره اندازه کېدل، ﴿موزونات﴾ وزني (موزوني) شیان، یعنې کوم شیان چې تلل کیږي او په وزن او تول سره خرڅیږي، لکه سره او سپین زره، چینه او داسي نور، مکیلات او موزونات ته مثلیات هم ویل کیږي ځکه چې په دوی کې تفاوت کم وي (مثلاً غنم چې په خپل آپس کې د دوی ډیر کم تفاوت سته).

**تشریح**: د عبارت حاصل دا دی چې که یو عیني شی د دوو یا څو کسانو تر مینځ مشترک وي د هغه تقسیمول او حصه دارانو ته خپله حصه ورکول مشروع او جائز دي چې د نبوت له زمانې څخه تر نن ورځي پوري دا معامله را روانه ده او نبي کریم ﷺ د غنیمت او میراث تقسیمولو په وخت کې همداسي کړي دي.

ثم هي إلخ: د دې حاصل دا دی چې په هر تقسیم (وېش) کې د مبادله او افراز دواړو معنیٰ موجوده وي، د مبادلې مطلب دا دی "يو د بل د حصو سره بدلول" او د افراز مطلب "صرف خپله حصه (خپل حق) اخيستل"، مثلاً دوو كسانو "زيد او خالد" په ګډه يو كور رانيوی، ښكاره خبره ده چې د دې كور په هره حصه كې دوی دواړه شريكان دي، بيا چې كله دوی وېش او تقسيم وكړي نو د كور يوه حصه او طرف يوه شريک "زيد" ته حاصله سو او بله حصه يې بل شريک "خالد" ته حاصله سوه، حال دا چې مخكې دوی دواړه د كور په هر طرف او هره حصه كې سره شريكان وه، لهذا زيد ته چې كومه حصه رسېدلې ده په هغه كې د خالد حصه وه او د خالد والا په حصه كې د زيد حصه وه اوس ګواكې په تقسيم كولو سره زيد په خپله حصه كې د خالد حصه راوستله او د هغه د حصې په بدله كې زيد خپل هغه حصه وركړه كوم چې د خالد په طرف كې د خالد په حصه كې راغلې ده، نو دا په تقسيم كې د مبادلې معنیٰ سوه، لنډه دا چې په تقسيم (قسمت) كې د افراز او مبادلې دواړو اړخ سته.

والإفراز هوالظاهر إلخ: څرنګه چې په كيلي شيانو لكه غنم، وريجې او په وزني شيانو لكه چينه او داسې نورو كې تفاوت او توپير كم وي، نو ځكه په دوی كې د افراز معنیٰ غالبه او ښكاره ده، يعنې دوی د تقسيم پر مهال به دا معنیٰ اخيستل كيږي چې شريک خپل حصه واخيسته، بدله يې نه كړه، همدا وجه ده كه يو كيلي يا وزني شی مثلاً غنم د دوو كسانو تر مينځ مشترک وي او بيا يو شريک حاضر سي چې خپله حصه واخلي او بل شريک غائب وي (موجود نه وي)، نو حاضر شريک خپله حصه اخيستلای سي، لهذا كه چيري د مبادلې معنیٰ پكښې غالبه وای، نو د خپل حصې اخيستلو په وخت كې به د هغه غائب شريک اجازت ته ضرورت وای ځكه د شريک په غيبوبت كې حصه نه سي اخيستل كېدای، لېكن دلته د افراز معنیٰ غالبه ده، نو ځكه د شريک په غيبوبت او نا موجود والي كې هم حصه اخيستلای سي.

## د پورتنی مسئلې نور وضاحت

وَلَوِاشْتَرَيَاهُ فَاقْتَسَمَاهُ او كه چيري دوه كسان يو مثلی [يعنې كيلي يا وزني] شی رانيسي بيا يې تقسيم كړي يَبِيْعُ أَحَدُهُمَا نَصِيبَهُ مُرَابَحَةً بِنِصْفِ الثَّمَنِ نو په دوی كې يو خپله حصه په نيم قيمت سره د مرابحه په توګه خرڅولای سي وَمَعْنَى الْمُبَادَلَةِ هُوَالظَّاهِرُفِى الْحَيَوَانَاتِ وَالْعُرُوضِ او په حيوانانو او سامانو كې د مبادلې معنیٰ ښكاره [غالبه] ده لِلتَّفَاوُتِ د تفاوت په وجه [چې په دوی كې تفاوت زيات وي] حَتَّى لَا يَكُوْنَ لِأَحَدِهِمَا أَخْذُ نَصِيبِهِ عِنْدَ غَيْبَةِ الْآخَرِ همدا وجه ده چې په دواړو

[شريكانو] کې يوه ته د دې اختيار نسته چې د بل يوه په غائب والي کې خپله حصه واخلي وَلَوْ اشْتَرَيَاهُ فَاقْتَسَمَاهُ او كه دوی يو حيوان يا سامان رانيسي بيا يې سره تقسيم كړي لَايَبِيْعُ أَحَدُهُمَا نَصِيبَهُ مُرَابَحَةً بَعْدَ الْقِسْمَةِ نو تر تقسيم وروسته په دوی کې يو خپله حصه په بيع مرابحه سره نه سي خرڅولای.

**اللغات**: ﴿مرابحة﴾ د مفاعلې د باب مصدر دی، بيع مرابحه، يعني يو شی په خپل اصل قيمت سره پر معلومه نفع خرڅول (مثلاً بائع مشتري ته ووايي چې دا سامان ما ته په شپېته درهمه پرووت دی [يعني د دغه سامان اصل قيمت شپېته درهمه دی] او پر هغه زه نور لس درهمه نفع اچوم او په اويا درهمه يې درکوم. ﴿حيوانات﴾ لکه غوا، غويی، آس او داسې نور. ﴿عروض﴾ سامان. ﴿غيبة﴾ غائب والی، ناموجود والی.

**تشريح**: مخکې ذكر سوه چې د افراز په صورت کې (يعني په کومو شيانو کې چې د افراز معنیٰ غالبه وي كوم چې مثلي شيان دي، په هغه کې) سړی خپله حصه اخيستلای سي او په هغه کې د بل كس (بل شريک) ګډون نه وي، نو كه دوه كسان په ګډه يو مثلي شی (مثلاً غنم) رانيسي بيا يې سره تقسيم كړي يعني هر يوه خپله حصه جلا كړي، نو اوس كه يو شريک وغواړي چې خپله حصه پر نصف ثمن د مرابحې په توګه خرڅه كړي (يعني پر نصف ثمن نوره نفع واچوي)، نو دا جائز دي؛ ځکه چې هر يوه خپله حصه (عينِ حصه) اخيستې ده كوم چې دوی رانيولې وه نو ځکه مذکوره بيع جائز ده.

ومعنى المبادلة إلخ: مخکې ذكر سوه چې په کيلي او وزني شيانو کې افراز غالب وي، لېكن په حيوانانو او سامانو کې بيا د مبادلې معنیٰ غالبه وي، او تاسو وپېژندل چې د مبادلې والا په صورت کې د هر شريک حصه د بل شريک د حصې په بدله کې وي، نو كه د مبادلې په صورت کې مثلاً يو سامان دوه كسان په ګډه رانيسي او بيا يې سره تقسيم كړي، نو اوس كه يو شريک خپله حصه مرابحتاً خرڅه كړي نو جائز نه دي؛ ځکه هغه خاص خپله حصه نه ده خرڅه كړې بلكې د بل شريک د حصې شموليت او ګډون پکښې سته ځکه چې د هغه په بدله کې ده (يا په بله وينا داسې هم ويل كېدای سي چې مرابحه پر هغه مبيع كېدای سي كوم چې رانيول سوې وي، او دلته رانيول نه دي سوي بلكې د حصو تبادله سوې ده)، همدارنګه يو شريک د بل شريک په ناموجوديت (غيبوبت) کې خپله حصه نه سي اخيستلای، ځکه چې دا مبادله او تبادله ده يعني د هر يوه حصه د بل د حصې په بدله او عوض کې ده، او تاسو ته معلومه ده چې د بل چا په ناموجوديت کې د هغه په حق او عوض کې تصرّف كول صحيح نه دي.

## په تقسیم کې د قاضي د جبر حکم او تفصیل

إِلَّا أَنَّهَا إِذَا كَانَتْ مِنْ جِنْسٍ وَاحِدٍ لېکن که هغوی [يعني حيوانات او سامانونه] له يوه جنس څخه وي أَجْبَرَ الْقَاضِيْ عَلَى الْقِسْمَةِ عِنْدَ طَلَبِ أَحَدِ الشُّرَكَاءِ نو له شريکانو څخه د يوه شريک د طلب [مطالبې] په وخت کې به قاضي [تقسيم نه کونکی شريک] پر تقسيم مجبوره کوي لِأَنَّ فِيهِ مَعْنَى الْإِفْرَازِ ځکه چې په دې کې د افراز معنىٰ موجوده ده لِتَقَارُبِ الْمَقَاصِدِ د مقاصدو د نژدېکت په وجه [چې مقاصد يې يو بل ته نژدې، نژدې دي] وَالْمُبَادَلَةُ مِمَّا يَجْرِي فِيهِ الْجَبْرُ او مبادله له هغه شيانو څخه ده چې په هغوی کې جبر جاري کېدای سي كَمَا فِي قَضَاءِ الدَّيْنِ لکه د قرض په اداء کولو کې [چې جاري کېدای سي] وَهٰذَا لِأَنَّ أَحَدَهُمْ بِطَلَبِ الْقِسْمَةِ يَسْأَلُ الْقَاضِيَ أَنْ يَخُصَّهُ بِالْاِنْتِفَاعِ بِنَصِيبِهِ وَيَمْنَعَ الْغَيْرَ عَنِ الْاِنْتِفَاعِ بِمِلْكِهِ او دا ځکه چې په شريکانو کې يو د تقسيم په طلب [مطالبه] کولو سره له قاضي څخه دا غوښتنه [خواښت] کوي چې هغه دې د خپل حصې په نفع اخيستلو سره خاص کړي او نور دې د هغه د ملکيت له نفع اخيستلو څخه منع کړي فَيَجِبُ عَلَى الْقَاضِي إِجَابَتُهُ نو ځکه پر قاضي د هغه د غوښتنې قبلول ضروري دي وَإِنْ كَانَتْ أَجْنَاسًا مُخْتَلِفَةً او که هغوی مختلف الاجناس وي لَا يُجْبِرُ الْقَاضِيْ عَلَى قِسْمَتِهَا نو قاضي د هغوی پر تقسيم جبر نه سي کولای [تقسيم نه کونکی شريک نه سي مجبوره کولای] لِتَعَذُّرِ الْمُعَادَلَةِ بِاعْتِبَارِ فُحْشِ التَّفَاوُتِ فِي الْمَقَاصِدِ ځکه په مقاصدو کې د زيات تفاوت په وجه برابري کول مشکل دي وَلَوْ تَرَاضَوْا عَلَيْهَا او که چيري شريکان په تقسيم راضي سي جَازَ نو بيا تقسيم جائز دی لِأَنَّ الْحَقَّ لَهُمْ ځکه چې حق د همدوی دی.

**اللغات**: ﴿أجبر﴾ د افعال د باب ماضي ده: مجبوره کول، اړ ايستل. ﴿إفراز﴾ (خپله حصه) جلا کول. ﴿تَقَارُب﴾ د تفاعل د باب مصدر دی: يو بل ته نژدې کېدل. ﴿المعادلة﴾ د مفاعلې د باب مصدر دی. د دې باب يوه معنىٰ ده: د دوو تر مينځ برابري او انصاف کول. ﴿تَعذُّر﴾ د تفعّل د باب مصدر دی: د دې باب دوې معناوې راځي: ناممکن کېدل، مشکل (ستونزمن) کېدل. ﴿فحش﴾ د کرُم د باب مصدر دی: زياتېدل، زياتوالی (زښتوالی).

**تشريح**: مخکي صاحب د هدايې ووېل چي په حيواناتو او سامانو کي د مبادلې معنیٰ غالبه ده، پر هغه دا اشکال کيږي چي کله په دوی کي د مبادلې معنیٰ سته، نو که مثلاً د حيواناتو په صورت کي يو شريک په تقسيم راضي نه وي، نو قاضي ته پکار دي چي هغه پر تقسيم مجبوره نه کړي؟. د دې په جواب کي فرمايي چي د حيواناتو او سامانو دوه حيثيتونه دي: ① متحد الاجناس، ② مختلف الاجناس، که چيري حيوانات متحد الاجناس وي مثلاً ټوله آسونه وي يا ټوله پسونه يا غوياڼ وي، نو ځرنګه چي د دوی مقاصد متقارب دي او تفاوت ډېر کم دی، نو ځکه که يو شريک د تقسيم مطالبه وکړي او بل شريک راضي نه وي، نو قاضي به دا بل شريک راضي کوي که څه هم جبراً وي.

**والمبادلة إلخ**: دا هم د پورتني اشکال جواب دی چي ستا سو دا وينا چي په مبادله کي جبر نه کيږي موږ نه تسليمو، ځکه د قرض په اداء کولو کي هم د مبادلې صورت سته (مثلاً څوک چي سل روپۍ په قرض واخلي، نو د اداء کولو په وخت کي خاص هغه نوټ او روپۍ نه ورکوي بلکي د هغه په بدله کي نوري روپۍ ورکوي)، او د قرض په صورت کي که مقروض قرض نه ورکوي نو قاضي هغه پر اداء کولو مجبوره کوي تر دې چي بندي کولای يې سي، نو همداسي به دلته هم جبر کيږي.

**وهذا لأن أحدهم إلخ**: په تقسيم کي د قاضي د جبر يوه بله وجه بيانوي، هغه دا چي کله په داسي شيانو کي کوم چي قريب المقاصد وي (يعني تفاوت پکښي کم وي) يو شريک د خپلي حصې د تقسيم مطالبه وکړي، نو د هغه مقصد او غوښتنه خو همدا وي چي زما خپله حصه دي را جلا کړی سي او زه دي د هغه د منفعت مالک جوړ کړی سم او نور دي په هغه کي نه را سره شريکول کيږي، او دئ په خپل دغه مطالبه کي حق بجانب (پر حق) دی، او دا معلومه ده چي قاضي د دې لپاره مقرر سوی وي چي خلګو ته خپل حقوق ورکړي، نو ځکه حتي الامکان به قاضي د ده حق ورکوي.

**وإن کانت إلخ**: په دې سره دا رانبيي چي که مثلاً حيواناڼ مختلف الاجناس وي، مثلاً پسونه، غوياڼ، اوښاڼ سره ګډ وي، نو په دې صورت کي قاضي يو شريک پر تقسيم نه سي مجبوره کولای؛ ځکه چي په دې صورت کي په مقاصدو او افرادو کي زيات تفاوت دی او د شريکانو په حق کي برابري (مساوات) نه سي کېدای حال دا چي برابري ضروري ده، نو ځکه په دې صورت کي تقسيم بالجبر نه سي کېدای، ها! که ټوله شريکان په تقسيم راضي سي، نو بيا خو به حتماً تقسيم کيږي؛ ځکه حق د همدوی دی، او په هره معامله کي د حقدار (صاحب حق) په رضاء سره کار ترسره کيږي، نو همداسي به دلته هم کيږي.

## د خلګو تر مينځ د تقسيم کولو لپاره د تقسيم کونکي (قاسِم) د ټاکلو حکم او تفصيل

قَالَ: وَيَنْبَغِيْ لِلْقَاضِيْ أَنْ يَنْصِبَ قَاسِمًا يَرْزُقُهُ مِنْ بَيْتِ الْمَالِ فرمايي: او قاضي ته پکار دي چي يو تقسيم کونکی کس ودروي [وټاکي] چي هغه ته له بيتُ المال څخه روزينه [تنخا] ورکوي لِيَقْسِمَ بَيْنَ النَّاسِ بِغَيْرِ أَجْرٍ د دې لپاره چي هغه د خلګو تر مينځ بې له أجرته تقسيم کوي لِأَنَّ الْقِسْمَةَ مِنْ جِنْسِ عَمَلِ الْقَضَاءِ مِنْ حَيْثُ أَنَّهُ يَتِمُّ بِهِ قَطْعُ الْمُنَازَعَةِ ځکه چي تقسيم د قضاء [قضاوت] د کار له جنس څخه دی په دې حيثيت سره چي د همدې تقسيم په ذريعه د جنګ [او دعوې] ختمول تاميزېږي فَأَشْبَهَ رِزْقَ الْقَاضِيْ نو دا د قاضي د روزينې [تنخا] سره مشابه سو وَلِأَنَّ مَنْفَعَةَ نَصْبِ الْقَاسِمِ تَعُمُّ الْعَامَّةَ او ځکه چي د تقسيم کونکي د درولو [ټاکلو] منفعت تمام خلګو لره عام دی فَتَكُوْنَ كِفَايَتُهُ فِيْ مَالِهِمْ نو د تقسيم کونکي کفايت به هم د دوی له مال څخه کيږي غُرْمًا بِالْغُنْمِ په توګه د دې چي تاوان د نفع په عوض کي دی [يا په بله وينا دا چي ګټه په تاوان وي. مطلب دا چي کله د تقسيم نفع او فايده شريکانو ته حاصليږي، نو د هغه تاوان (أجرت) به هم پر دوی وي لأنّ الغرم بالغنم. (دا يو محاوره ده چي څو ځله مخکي تېره سوې ده)]

**اللغات**: ﴿ينصب﴾ د مضارع صيغه ده له ضرب او نصر دواړو بابونو څخه راځي: د دې څو معناوي دي چي يوه معنی يې ده: درول، مراد ځني ټاکل او مقرر کول دي، ﴿قاسم﴾ د ضرب له بابه د فاعل صيغه ده: تقسيمونکی، وېشونکی، ﴿يرزق﴾ د نصر د باب مضارع ده: روزينه او تنخا ورکول، ﴿منازعة﴾ د مفاعلې د باب مصدر دی: جنګ، جنګړه (اختلاف او جنجال)، ﴿غرم﴾ تاوان، جرمانه، ﴿الغنم﴾ غنيمت، نفع.

**تشريح**: د عبارت حاصل دا دی چي د خلګو د مشترک جايداد، مشترک سامان او داسي نورو د تقسيم (وېش) لپاره يو کس مقرر کول پکار دي کوم چي بلا أجرته دا کار کوي؛ ځکه چي تقسيم کول د قاضي له أمورو څخه دي، څو څرنګه چي قاضي هر وخت د دعوو په حل او فيصلو مصروفه وي. نو ځکه مناسب همدا ده چي هغه يو بل څوک د دې کار لپاره وټاکي او له بيتُ المال څخه د هغه لپاره تنخا مقرره کړي. له بيت المال څخه د تنخا ورکولو وجه دا ده چي تقسيم کونکي کس (قاسِم) ته هر سړی مجبوره وي. او أصول دا دی چي څوک له چا څخه کار واخلي أجرت دي هغه ورکړي، او

بیتُ المال د خلکو (مسلمانانو) یو قسم بانک دی، نو ځکه د خلکو د کار اُجرت به له همدې بانک څخه اداء کول کیږي.

## د عارضي تقسیم کونکي په ذریعه د تقسیم حکم

قَالَ: فَإِنْ لَمْ يَفْعَلْ فرمایي: خو که قاضي داسې نه کوي نَصَبَ قَاسِمًا يُقْسِمُ بِالْأَجْرِ نو یو تقسیم کونکی کس دې ودروي کوم چې په اُجرت سره تقسیم کوي مَعْنَاهُ بِأَجْرٍ عَلَى الْمُتَقَاسِمِيْنَ ددې مطلب دا دی چې پر تقسیم کونکو [شریکانو] په اُجرت سره لِأَنَّ النَّفْعَ لَهُمْ عَلَى الْخُصُوْصِ ځکه چې نفع خصوصاً د دوی ده وَيُقَدِّرُ أَجْرَ مِثْلِهِ كَيْلَا يَتَحَكَّمَ بِالزِّيَادَةِ او قاضي دې د تقسیم کونکي اُجرت مثلي مقرر کړي د دې لپاره چې هغه [دخپل خوښې مطابق] د زیاتوب فیصله [او مطالبه] نه وکړي وَالْأَفْضَلُ أَنْ يَرْزُقَهُ مِنْ بَيْتِ الْمَالِ او غوره دا ده چې هغه ته له بیت المال څخه روزینه [تنخا] ورکړي لِأَنَّهُ أَرْفَقُ بِالنَّاسِ ځکه چې دا د خلکو سره زیاته آساني ده [یا په بله وینا دا چې په دې کې د خلکو سره زیاته نرمي او آساني ده] وَأَبْعَدُ عَنِ التُّهْمَةِ [همدارنګه] دا له تهمت څخه لیرې ده وَيَجِبُ أَنْ يَكُوْنَ عَدْلًا مَأْمُوْنًا عَالِمًا بِالْقِسْمَةِ او ضروري ده چې دا تقسیم کونکی به عادل، امانتدار او په تقسیم پوهېدونکی وي لِأَنَّهُ مِنْ جِنْسِ عَمَلِ الْقَضَاءِ ځکه چې تقسیم کول د قضاوت د کار له جنس څخه دي وَلِأَنَّهُ لَا بُدَّ مِنَ الْقُدْرَةِ او ځکه چې قدرت لرل [قادر کېدل] ضروري دي وَهِيَ بِالْعِلْمِ او هغه په پوهې [او خبرتیا] سره وي وَمِنَ الْاِعْتِمَادِ عَلَى قَوْلِهِ او [همدارنګه] د هغه پر خبره عتماد هم ضروري دی وَهُوَ بِالْأَمَانَةِ او دا په امانتدارۍ سره وي.

**اللغات**: ﴿متقاسمین﴾ د تفاعل له بابه د جمع مذکر اسم فاعل صیغه ده: هغه شریکان کوم چې یو د بل سره تقسیم کوي (کوم چې یو تر بله حصې سره جلا کوي)، ﴿یقدّر﴾ د تفعیل د باب مضارع ده: اندازه کول، مقرر کول، ﴿یتحکم﴾ د تفعّل د باب مضارع ده: حکم جاري کول، د خپل رایې او خوښې مطابق فیصله کول، د خپل خواهش مطابق تصرّف کول (مصباح اللغات)، ﴿أرفق﴾ د اسم تفضیل صیغه ده: زیات نرم او زیات نفع مند، زیات آسان، ﴿عدل﴾ عادل، منصف.

**تشریح**: **صورت د مسئلې**: دا دی که قاضي د بیت المال له طرفه یو تقسیم کونکی (قاسم) نه وي ټاکلای، نو هغه ته پکار دي چې یو معتبر او معتمد کس پر دې کار وټاکي چې هغه له خلکو څخه د

اُجرت اخیستلو په عوض کي د دوی تر مینځ د تقسیم (وېش) کولو فریضه سر ته رسوي، او اُجرت به خلک ځکه ورکوي چي کار د همدوی دی، نو چا ته چي فایده حاصلیږي، اُجرت او خرچه هم د هغه له طرفه کېدل پکار دي. اُو بل قاضي ته پکار دي چي د دغه تقسیم کونکي لپاره یو مثلي اُجرت (مثلاً که دومره ځمکه او کور وي نو پنځه سوه روپۍ او که تر دې غټ وي نو زر روپۍ) وټاکي، د دې لپاره چي دا تقسیم کونکی له خلکو څخه د زیاتو پیسو مطالبه نه وکړی سي، خو غوره همدا دا ده چي د تقسیم کونکي تنخا له بیت المال څخه وټاکل سي؛ ځکه چي په دې کي د خلکو لپاره زیاته آساني ده او بل دا چي د څه تهمت او د کمي و زیاتوب شبهه به هم نه کیږي.

ويجب إلخ: د دې حاصل دا دی چي څرنګه دا تقسیم د قاضي عمل دی، نو ځکه تقسیم کونکي کس به د قاضي د اوصافو حامل وي، مثلاً انصاف داره، امانت داره او په تقسیم پوهېدونکي به وي؛ په تقسیم واقف کېدل ځکه شرط دي چي پر تقسیم قدرت لرل ضروري دی او دا په علم او واقفیت سره حاصلیږي. او څرنګه چي پر تقسیم کونکي د خلکو اعتماد کول او خبره یې منل ضروري دي، او دا هلته ممکنه ده چي هغه امانتداره وي او له خیانت څخه ځان ساتونکی وي، نو ځکه د تقسیم کونکي لپاره د امانتدارۍ خیال ساتل هم ضروري دي چي هغه به امین وي. (احسن الهدایه)

## د تقسیم کونکي په ټاکلو کي د خلکو د رضا حکم

وَلَا يُجْبِرُ الْقَاضِيْ النَّاسَ عَلٰى قَاسِمٍ وَّاحِدٍ او قاضي به خلک پر یوه تقسیم کونکي نه مجبوره کوي مَعْنَاهُ لَا يُجْبِرُهُمْ عَلٰى أَنْ يَّسْتَأْجِرُوْهُ د دې مطلب دا دی چي هغه به خلک پر دې نه مجبوره کوي چي دوی [خاص] دغه تقسیم کونکی په اُجرت ونیسي لِأَنَّهُ لَا جَبْرَ عَلَى الْعُقُوْدِ ځکه چي پر عقودو [معاملاتو] مجبوره کول نسته وَلِأَنَّهُ لَوْ تَعَيَّنَ لَتَحَكَّمَ بِالزِّيَادَةِ عَلٰى أَجْرِ مِثْلِهِ او ځکه چي که یو تقسیم کونکی متعیّن سي نو هغه به پر خپل اُجرت مثلي د زیات اُجرت فیصله [مطالبه] وکړي وَلَوِ اصْطَلَحُوْا فَاقْتَسَمُوْا او که شریکان خپله اتفاق وکړي او تقسیم وکړي جَازَ نو جائز دي إِلَّا إِذَا كَانَ فِيهِمْ صَغِيْرٌ مګر که په دوی [شریکانو] کي یو کوچنی هلک وي فَيُحْتَاجُ إِلٰى أَمْرِ الْقَاضِيْ نو بیا د قاضي فیصلې ته ارتیا ده لِأَنَّهُ لَا وِلَايَةَ لَهُمْ عَلَيْهِ ځکه چي پر صغیر دوی ته د ولایت حق نسته.

**اللغات**: ﴿يستأجروا﴾ د استفعال د باب مضارع ده: په اُجرت او مزدوري نیول، په اُجرت اخیستل.
﴿تحكّم﴾ د دې باب معنیٰ د تېر عبارت په لغاتو کي ذکر سوه. ﴿اصطلحوا﴾ د افتعال له بابه د جمع مذکر غائب ماضي صیغه ده: پر یو څه اتفاق کول (چي مثلاً څو خلک د یو کار پر کولو اتفاق او اتحاد وکړي).

**تشريح**: **صورت د مسئلې**: دا دی چې قاضي ته پکار دی (د خلګو ترمينځ) يو تقسيم کونکی کس وټاکي، لېکن د دې کار لپاره يوازي يو کس خاصول پکار نه دي او نه خلګ پر دې مجبوره کول پکار دي؛ ځکه په عقودو او معاملاتو کي جبر نه کيږي، او د عدمِ تخصيص يوه وجه دا هم ده چې کله تقسيم کونکی يوازي يو کس وي، نو هغه به د خلګو له مجبوری څخه غلطه فايده اخلي او له دوی څخه به زياتي پيسې اخلي، نو ځکه غوره همدا ده چې له يوه څخه زيات تقسيم کونکي وي.

**ولو اصطلحوا إلخ**: د دې حاصل دا دی چې که ټوله شريکان په خپل مينځوي اتفاق سره (په رضا) خپل مينځ کي تقسيم وکړي، نو بيا نه قاضي ته ضرورت سته او نه تقسيم کونکي (قاسِم) ته؛ ځکه چې قسمت يو ډول معامله ده. او معاملات په رضا او خوښۍ سره تر سره کيږي، ها! که چيري يو کوچنی هم په شريکانو کي داخل وي. نو ښکاره ده چې نورو شريکانو ته پر هغه ولايت نسته؛ نو په دې صورت کي قاضي ته ضرورت پرېوځي؛ ځکه چې د قاضي ولايت عام او تام وي.

**د تقسيم کونکو د اجتماع ممانعت**

وَلَا يَتْرُكُ الْقُسَّامَ يَشْتَرِكُوْنَ او قاضي به تقسيم کونکي کسان دې ته نه پرېږدي چې په شرکت د تقسيم کار وکړي كَيْلَا تَصِيْرَ الْأُجْرَةُ غَالِيَةً بِتَوَاكُلِهِمْ د دې لپاره چې د دوی د خپل مينځوي اتفاق په وجه اُجرت ګران نه وګرځي وَعِنْدَ عَدَمِ الشَّرِكَةِ يَتَبَادَرُ كُلٌّ مِنْهُمْ إِلَيْهِ خِيْفَةَ الْفَوْتِ او د نه شرکت کولو په صورت کي به هر تقسيم کونکی د فوتېدلو له بيري د تقسيم وطرف ته وړاندېتوب کوي فَيَرْخُصُ الْأَجْرَ نو اُجرت به ارزانه سي.

**اللغات**: ﴿قُسّام﴾ جمع د قَاسِمْ ده: تقسيم کونکي. ﴿غالية﴾ ګران. ﴿تواكل﴾ د تفاعل د باب مصدر دی.
① تَوَاكَلَ الْقَوْمُ: د بعضي پر بعضو اعتماد کول. ② تَوَاكَلُوْه: پرېښوول. مدد نه کول (مصباح اللغات). ﴿يتبادر﴾ د تفاعل د باب مضارع ده: وړاندېتوب کول. فوراً متوجه کېدل. ﴿خيفة﴾ بيره. اندېښنه.

**تشريح**: د عبارت حاصل دا دی چې قاضي به تقسيم کونکي حضرات له دې څخه منع کوي چې دوی په ګډه خپل جلا يو شرکت او کمپنۍ جوړه کړي او په شراکت کار (تقسيم) کوي. بلکي هر تقسيم کونکی به په خپل جلا اُجرت سره کار کوي؛ ځکه که دوی په ګډه د يوه شرکت او کمپنۍ په توګه کار کوي، نو ټوله به په اتفاق يو نرخ (ريټ) چلوي او په ګران نرخ به کار کوي. لېکن د جلا جلا کار کولو په صورت کي به هر يو د کار پېښېدلو پر موقع له دې بيري وړاندېتوب کوي چې هسې نه که زه دا پرېږدم نو په بل يوه به تقسيم وکړي او زما څخه به دا کار او اُجرت فوت سي. نو له دې بيري به د اُجرت (مزدوری) حاصلولو په خاطر په ارزانه کار کوي چې په دې سره به عوامو ته فايده ورسيږي. نو

ځکه قاضي ته پکار دي چي تقسيم کونکي عاملين دي د شرکت او کمپنی جوړولو او په شراکت سره کار کولو ته نه پرېږدي.

## د تقسيم د أجرت ورکولو په هکله تفصيل

قَالَ: وَأُجْرَةُ الْقِسْمَةِ عَلَى عَدَدِ الرُّءُوسِ عِنْدَ أَبِي حَنِيفَةَ فرمايي: او د تقسيم أجرت د سرونو [يعني د حصه دارانو] د تعداد په اعتبار سره دی د امام صاحب رَحِمَهُ الله په نېز وَقَالَا۞: عَلَى قَدْرِ الْأَنْصِبَاءِ او صاحبين رَحِمَهُمَا الله فرمايي: چي [دهغو] د حصو په اندازه دی لِأَنَّهُ مُؤْنَةُ الْمِلْكِ ځکه چي أجرت د ملکيت بدله ده فَيَتَقَدَّرُ بِقَدْرِهِ نو د همدې ملکيت په اندازه به ثابتيږي كَأُجْرَةِ الْكَيَّالِ وَالْوَزَّانِ لکه د پيمانه کونکي او وزن کونکي أجرت وَحَفْرِ الْبِئْرِ الْمُشْتَرَكَةِ وَنَفَقَةِ الْمَمْلُوكِ الْمُشْتَرَكِ او [لکه] د مشترک څاه د کيندلو او د مشترک غلام د نفقې أجرت.

**اللغات:** ﴿انصباء﴾ جمع د نَصِيبٌ ده: حصه، برخه. ﴿مؤنة﴾ خرچه او بدل، لګښت، مشقت، د يو شي د پاتېدلو او بقاء چي کوم خرچ او سبب وي هغه ته مؤنت ويل کيږي. ﴿كيّال﴾ د ضرب له بابه د اسم فاعل صيغه ده: پيمانه کونکی (په لوښي سره د غلې وزن معلونکی). ﴿وزان﴾ مخکنی صيغه ده: وزن کونکی، تولونکی. ﴿حفر﴾ د ضرب د باب مصدر دی: کيندل، کنېل (کارل).

**تشريح: صورت د مسئلې:** دا دی چي کله تقسيم کونکی کس (قاسم) د شريکانو حصې ور تقسيم کړي او خپل کار سر ته ورسوي، نو اوس به هغه ته أجرت په کوم حساب سره ورکول کيږي. د امام صاحب رَحِمَهُ الله فرمان دا دی چي څومره شريکان وي، ټوله به برابر أجرت ورکوي. صاحبين رَحِمَهُمَا الله فرمايي چي نه! بلکي د شريکانو د حصو او ملکيت په اندازه أجرت واجبيږي، مثلاً د دريو کسانو ترمينځ يو کور مشترک دی چي په هغه کي څلورمه حصه د يوه کس ده او په پاته کور کي نيمه حصه د دويم کس ده او نيمه د درېيم کس ده او د تقسيم أجرت مثلاً پنځه سوه روپۍ ټاکل سوي دي، نو د نيمي، نيمي حصې والا شريکان به د صاحبينو په نېز هر يو دوه سوه روپۍ ورکوي او د څلورمي حصې والا به سل روپۍ ورکوي. او د امام صاحب رَحِمَهُ الله په نېز به په دې دريو سره شريکانو کي هر يو ۱۶۶ روپۍ ورکوي (ځکه ۵۰۰ چي پر دريو کسانو تقسيم کړل سي نو تقريباً څه اټانی د پاسه ۱۶۶ کيږي).

---

۞ أقول الراجع: قول الإمام أبو حنيفة رَحِمَهُ الله، كما قال العلامة الحصكفي رَحِمَهُ الله: وهو أي ما يقدر على عدد الرؤوس عنده ... لأن المقصود عليه التمييز لا غير (رد المحتار ج:۵، ص:۱۸۰)

د صاحبينو دليل دا دی چي أجرت دا د ملکيت [يا په بله وينا د حصې] مؤنت او خرچه ده، نو ځکه د ملکيت په تناسب سره به هغه اندازه کيږي (يعني د هريوه په ملکيت کي چي څومره حصه ده د هغه په اندازه أجرت به تاکل کيږي)، لکه څرنګه چي څو شريکان په ګډه خپل يو مشترک کيلي شی (مثلاً غنم) په چا پيمانه کړي يا خپل وزني شی په چا وتلي، نو د ټولو د حصو او ملکيت په اعتبار سره أجرت واجبيږي، يا مثلاً که څو کسان په ګډه مشترک څاه وکيندي، نو په دې وخت کي هم د حصو په اعتبار سره أجرت واجبيږي، يا که يو غلام د څو کسانو تر مينځ مشترک وي، نو په دې صورت کي هم د دوی د حصو په اندازه نفقه واجبيږي. تاسي او ګورئ! په دې ټولو کي به د دوی د حصو په اندازه سره أجرت واجبږي.

## په پورتني مسئله کي د امام صاحب دليل

وَلِأَبِي حَنِيفَةَ: أَنَّ الْأَجْرَ مُقَابَلٌ بِالتَّمْيِيزِ او د امام صاحب رَحِمَهُ الله دليل دا دی: چي [دلته] أجرت د حصې جلا کولو په مقابله [په بدله] کي دی وَأَنَّهُ لَا يَتَفَاوَتُ او په هغه [جلا کولو] کي تفاوت نه وي [يعني په جلا کولو کي فرق او توپير نسته] وَرُبَّمَا يَصْعُبُ الْحِسَابُ بِالنَّظَرِ إِلَى الْقَلِيلِ او ځيني وخت په قليل [لږ حصه] کي په غور کولو سره هم حساب مشکل کيږي وَقَدْ يَنْعَكِسُ الْأَمْرُ او ځيني وخت د دې برعکس وي فَتَعَذَّرَ اعْتِبَارُهُ لهذا د هغه [حصې] اعتبار کول مشکل دي فَيَتَعَلَّقُ الْحُكْمُ بِأَصْلِ التَّمْيِيزِ نو حکم به د اصل جلا کولو سره متعلق کيږي بِخِلَافِ حَفْرِ الْبِئْرِ په خلاف د څاه کيندلو لِأَنَّ الْأَجْرَ مُقَابَلٌ بِنَقْلِ التُّرَابِ ځکه چي [د څاه کيندلو په صورت کي] أجرت د خاوري د نقلولو [وړلو] په بدله کي دی وَهُوَ يَتَفَاوَتُ او په هغه [خاوره نقلولو] کي تفاوت وي وَالْكَيْلُ وَالْوَزْنُ إِنْ كَانَ لِلْقِسْمَةِ قِيلَ: هُوَ عَلَى الْخِلَافِ او پيمانه او وزن که چيري د تقسيم لپاره وي نو ويل سوي دي: چي هغه پر [همدغه] اختلاف دي وَإِنْ لَمْ يَكُنْ لِلْقِسْمَةِ او که چيري د تقسيم لپاره نه وي فَالْأَجْرُ مُقَابَلٌ بِعَمَلِ الْكَيْلِ وَالْوَزْنِ نو أجرت به د کيل کولو او وزن کولو په بدله کي وي وَهُوَ يَتَفَاوَتُ او په هغه کي تفاوت وي وَهُوَ الْعُذْرُ لَوْ أُطْلِقَ وَلَا يُفَصَّلُ او همدا عذر دی که چيري مطلق وويل سي او تفصيل يې نه وسي [يا په بله وينا دا چي که چيري د مطلق تقسيم کولو مطالبه وکړي او تفصيل نه وکړي. نو دا عذر دی (انعار الهدايه)] وَعَنْهُ أَنَّهُ عَلَى الطَّالِبِ دُونَ الْمُمْتَنِعِ او له امام صاحب رَحِمَهُ الله څخه روايت دا دی چي أجرت

د تقسيم پر طلب کونکي دی نه پر منع کېدونکی [د تقسیم پر انکار کونکي] لِنَفْعِهِ وَمَضَرَّةِ الْمُمْتَنِعِ ځکه چې [په دې تقسیم کي] د طلب کونکي نفع ده او د منع کېدنکي تاوان دی.

**اللغات**: ﴿تمییز﴾ د تفعیل د باب مصدر دی: سره جلا کول، علیحده کول. ﴿لا یتفاوت﴾ د تفاعل له بابه د نفي صیغه ده: متفاوت کېدل، مختلف کېدل، فرق او توپیر پکښې راتلل. ﴿یصعب﴾ د نصر مضارع ده: سختېدل، مشکل کېدل. ﴿تعذر﴾ د تفعّل د باب ماضي ده: مشکل کېدل، نا ممکن کېدل. ﴿ممتنع﴾ د افتعال د باب فاعل دی: منع کېدونکی.

**تشریح**: د امام صاحب رَحِمَهُ الله د دلیل حاصل دا دی چې أجرت د ملکیت خرچه او بدل (عوض) ګرځول صحیح نه دي، بلکي أجرت د حصو د جلا کولو بدل دی، او په جلا کولو کي تفاوت او کمي بیشي نه وي، لهذا په أجرت کي به هم کمي بیشي نه کیږي او ټوله شریکان به برابر أجرت ورکوي. او د دې وجه دا ده چې ځیني وخت د صاحب قلیل (لږ حصې والا) حساب هم مشکل وخیږي او په هغه کي د صاحب کثیر له حساب او تقسیم ځنځه زیات وخت ولګیږي. نو ځکه د حصې او ملکیت د قلت او کثرت (لږوالي او ډېرښت) اعتبار به نه کیږي، بلکي د تمییز او جلا کولو اعتبار به کیږي.

بخلاف حفر البئر إلخ: په مخکښني عبارت کي صاحبینو رَحِمَهُمَا الله د تقسیم د أجرت مسئله د ځاه کیندلو پر أجرت قیاس کړې وه (چې دا أجرت د شریکانو د حصو په اعتبار سره واجبیږي)، صاحب د هدایې رَحِمَهُ الله په بخلاف إلخ سره د هغه جواب ورکوي، د جواب حاصل دا دی چې د ځاه په کیندلو کي أجرت د کیندلو بدل نه وي، بلکي د خاوري د منتقل کولو بدل وي، او د خاورو په نقل او حمل کي تفاوت وي، نو ځکه هلته به أجرت هم متفاوت وي. (په بله وینا دا چې د هر شریک چې څومره حصه وي، ښکاره خبره ده چې ځاه کیندونکی د همهغه حصې په اعتبار سره خاوره منتقل کوي، نو ځکه د هغه په حساب سره به أجرت لازمیږي)

والکیل والوزن إلخ: صاحبینو پر کَیل او وزن هم د تقسیم أجرت قیاس کړی وو، د هغه په جواب کي فرمایي چې د کیل او وزن دوه حیثیتونه دي: ① یو دا چې هغه د تقسیم لپاره وي (یعني د دې لپاره څپل مشترک شی پیمانه کړي یا یې وتلي چې په خپل مینځ کي یې تقسیم کړي او هر یو خپله حصه واخلي)، ② دویم دا چې د تقسیم لپاره نه وي، که چیري هغه د تقسیم لپاره وي، نو دا هم پر همهغه اختلاف دي یعني د امام صاحب رَحِمَهُ الله په نېز د عدد رؤس په حساب سره أجرت واجبیږي او د صاحبینو رَحِمَهُمَا الله په نېز د ملکیت په اندازه سره، لهذا کله چې دا مسئله د امام صاحب رَحِمَهُ الله په نېز تسلیم شده نه ده، نو پر دې قیاس کول صحیح نه دي.

او كه چيري د تقسيم لپاره نه وي، بلكي د مقدار او داسي نورو د معلومولو لپاره وي، نو په دې صورت كي أجرت د كيل او وزن د عمل په مقابله كي راځي، او څرنګه چي په دې عمل كي تفاوت دی، نو ځكه په أجرت كي به هم تفاوت او فرق وي.

وهوالعذر إلخ: په دې سره د كيل او وزن د قياس يو بل جواب وركوي، حاصل يې دا دی چي كه دا معلومه نه كړی سي چي كَيل او وزن كول د تقسيم لپاره دي يا د مقدار معلومولو لپاره دي، نو څرنګه چي دلته جهالت راغلی، لهذا د جهالت د عذر پر بناء به پر ظاهري سبب حكم كيږي، يعني د چا لپاره چي څومره كَيل يا وزن وكړي، په همغه اعتبار سره به پر هغه أجرت لازميږي، لنډه دا چي د عذر والا په مسئله سره صاحبين دليل نه سي نيولای (پر دې خبره چي د حصو په اعتبار سره به أجرت لازميږي).

وعنه إلخ: له دې ځايه يو بله مسئله بيان سوې ده، حاصل يې دا دی چي له أمام صاحب رَحِمَهُ الله څخه يو روايت دا دی چي كوم شريک د تقسيم مطالبه او غوښتنه وكړي، تو له أجرت به هغه وركوي، د تقسيم پر انكار كونكي او منع كونكي أجرت نه واجبيږي؛ ځكه چي په دې تقسيم كي د مطالبه كونكي نفع ده او د تقسيم د ناخوښونكي او منع كونكي لپاره نفع نه بلكي نقصان دی، او تاسو ته معلومه ده چي تاوان او أجرت د منفعت مطابق لازميږي، لهذا دلته هم چي كوم يوه ته فايده رسيږي، همهغه به أجرت وركوي.

## د تقسيم د طلب كولو پر اوونه

قَالَ: وَإِذَا حَضَرَ الشُّرَكَاءُ عِنْدَ الْقَاضِيْ وَفِي أَيْدِيهِمْ دَارٌ أَوْ ضَيْعَةٌ فرمايي: او كله چي د قاضي سره شريكان حاضر سي او د دوی په قبضه كور يا ځمكه وي وَادَّعَوْا أَنَّهُمْ وَرِثُوهَا عَنْ فُلَانٍ او دوی دعوىٰ وكړي چي دا [ځمكه يا كور] له فلانكي كس څخه دوی په ميراث كي حاصل كړې دی لَمْ يَقْسِمْهَا الْقَاضِيْ عِنْدَ أَبِي حَنِيفَةَ حَتَّى يُقِيمُوا الْبَيِّنَةَ عَلَى مَوْتِهِ وَعَدَدِ وَرَثَتِهِ نو د امام صاحب رَحِمَهُ الله په نېز به قاضي هغه نه تقسيموي تر دې چي دوی د هغه فلانكي كس پر مرګ او د هغه د وارثانو پر شمېر بيّنه [ګواهي] پېش نه كړي وَقَالَ صَاحِبَاهُ: يَقْسِمُهَا بِاعْتِرَافِهِمْ او صاحبين رَحِمَهُمَا الله فرمايي: چي قاضي به د دوی پر اعتراف هغه [ځمكه يا كور] تقسيموي وَيَذْكُرُ فِي كِتَابِ الْقِسْمَةِ أَنَّهُ قَسَمَهَا بِقَوْلِهِمْ او دا به د تقسيم په كتاب [ريجسټر] كي ذكر كوي [درج كوي] چي قاضي د شريكانو په قول [په وينا] هغه تقسيم كړې دی وَإِنْ كَانَ الْمَالُ الْمُشْتَرَكُ مَا سِوَى الْعَقَارِ وَادَّعَوْا أَنَّهُ مِيرَاثٌ او كه چيري مشترک مال له جايداد څخه بغير بل شی وي او شريكان د هغه د ميراث كېدلو دعوىٰ وكړي [چي دا مور ته له

فلانکي شخه په میراث کي حاصل سوي دي] قَسَمَهُ فِي قَوْلِهِمْ جَمِيعًا نو د ټولو د قول مطابق [بالاتفاق] به قاضي هغه تقسيموي وَلَوِ ادَّعَوْا فِي الْعَقَارِ أَنَّهُمْ اشْتَرَوْهُ او که شریکان د جایداد په باره کي دا دعویٰ وکړي چي دوی هغه رانیولی دی [یعني د جایداد د رانیولو دعویٰ وکړي، نه د میراث کېدلو] قَسَمَهُ بَيْنَهُمْ نو قاضي به هغه د دوی په مینځ کي تقسیموي.

**اللغات**: ﴿ضیعة﴾ فصل داره او غله داره ځمکه، ﴿ورثوا﴾ د سمع له بابه د جمع مذکر غائب ماضي صیغه ده: وارث کېدل، یو شی په میراث کي حاصلول، ﴿عقار﴾ جایداد.

**تشریح**: **صورت د مسئلي**: ګڼا دی چي یو جایداد مثلاً یو کور د څو شریکانو په قبضه کي دی، او دوی قاضي ته راغلل او دعویٰ یې وکړه چي دا کور موږ ته له فلانکي سړي (مثلاً خالد) څخه په میراث کي حاصل سوی دی، اوس ته دا زموږ په مینځ کي تقسیم کړه!، نو په دې مسئله کي د امام صاحب رَحِمَهُ الله مسلک دا دی چي تر څو دا خلک د مُورث (خالد) پر مرګ او د هغه د وارثانو پر شمېر بیّنه (ګواهي) پېش نه کړي، تر هغه وخته به قاضي دا کور د دوی په مینځ کي نه تقسیموي.

صاحبین رَحِمَهُمَا الله فرمایي چي قاضي به محض د دوی پر دغه اقرار کور تقسیموي، خو د یادابنت لپاره به په ریجسټر (یا په بله وینا د قضاوت په کتابچه) کي دا دعوه او فیصله درج او ثبت کړي.

**وإن كان إلخ**: پورته د غیر منقولي جایداد صورت بیان سو، او له دې ځایه دا بیانوي چي که څو شریکان د منقولي شي (مثلاً د سل منه غنمو) په میراث کي د حاصلېدلو او د هغه د تقسیم مطالبه وکړي، یا د یو شي د رانیولو او د هغه د تقسیم مطالبه وکړي، نو په دې دواړو صورتونو کي د امام صاحب او صاحبینو رَحِمَهُمُ الله ټولو په نېز حکم دا دی چي قاضي به دا شی بغیر له بیّنه تقسیموي.

## د صاحبینو دلیل

لَهُمَا: أَنَّ الْيَدَ دَلِيلُ الْمِلْكِ وَالْإِقْرَارَ أَمَارَةُ الصِّدْقِ د صاحبینو دلیل دا دی: چي قبضه د ملکیت دلیل ده او اقرار د رښتنوالي علامت دی وَلَا مُنَازِعَ لَهُمْ او د دوی [شریکانو] لپاره هیڅ خصم هم نسته فَيَقْسِمُهُ بَيْنَهُمْ نو ځکه قاضي به هغه د دوی په مینځ کي تقسیموي كَمَا فِي الْمَنْقُولِ الْمَوْرُوثِ وَالْعَقَارِ الْمُشْتَرَى لکه څرنګه چي په میراث شده منقولي شي او رانیول سوي جایداد کي کېږي وَهٰذَا لِأَنَّهُ لَا مُنْكِرَ او دا ځکه چي [دلته] هیڅ منکر نسته وَلَا بَيِّنَةَ إِلَّا عَلَى الْمُنْكِرِ او بیّنه صرف پر منکر واجب ده

فَلَا يُفِيْدُ نو ځکه [دلته] بيَنه هيڅ فايده نه کوي إِلَّا أَنَّهُ يَذْكُرُ فِي كِتَابِ الْقِسْمَةِ أَنَّهُ قَسَمَهَا بِإِقْرَارِهِمْ، لِيَقْتَصِرَ عَلَيْهِمْ وَلَا يَتَعَدَّاهُمْ خو قاضي به د تقسيم په کتاب [ربجسټر] کي دا ذکر کوي [درج کوي] چي قاضي هغه [ځمکه يا کور] د شريکانو په اقرار سره تقسيم کړی دی، [دا به] د دې لپاره [درج کوي] چي تقسيم پر همدوی منحصر پاته سي او له دوی څخه [بغير بل چا ته] متجاوز نه سي.

**اللغات**: ﴿اليد﴾ لاس، مراد: قبضه. ﴿أمارة﴾ نبناني، علامت. ﴿صدق﴾ رښتنوالی. ﴿منازع﴾ جګړه او عوه کونکی، فريقِ مخالف. ﴿موروث﴾ د سمع له بابه د اسمِ مفعول صيغه ده: په ميراث کي حاصل سوی، ميراث سوی. ﴿يقتصر﴾ د افتعال د باب مضارع ده. مراد: منحصر کېدل. په يو شي اکتفاء کول او له هغه څخه تجاوز (تېرى) نه کول.

**تشريح**: د صاحبينو رَحِمَهُمَا الله د دليل حاصل دا دی چي کله هغه کور يا ځمکه د شريکانو په قبضه کي دي او دوی يې په ميراث کي د حاصلېدلو اقرار کوي، نو بيا د هغه کور يا ځمکي په تقسيمولو کي قاضي ته ممانعت کول پکار نه دي؛ ځکه د دوی قبضه دا خپله د دوی د ملکيت دليل ده (چي همدوی د دې کور يا ځمکي مالکان دي)، او بيا د دوی له اقرار څخه هم د دوی رښتنوالی او پر حق والي معلوميږي، لهذا له بيّنه پېشولو څخه بغير به هغه د دوی په مينځ کي تقسيمول کيږي. او بل دا چي بيّنه خو په هغه صورت کي پېشول کيږي چي هلته يو کس منکر وي يا منازع او مخاصم وي او دلته خو نه څوک منکر سته، نه مخاصم، لهذا د بيّني طلب کول دلته طلبِ لغو او غيرِ مفيد دي، نو ځکه بغير له بيّني به تقسيم کيږي.

او څرنګه چي دا تقسيم بالاقرار دی او تقسيم بالاقرار د غير (بل چا) وطرف ته نه متعدي کيږي، نو ځکه پر دې حاضرو مدعيانو د دغه تقسيم د منحصر کولو لپاره به قاضي هغه په دفتر او ربجسټر کي درج کوي.

## د امام صاحب دليل

وَلَهُ: أَنَّ الْقِسْمَةَ قَضَاءٌ عَلَى الْمَيِّتِ او د امام صاحب رَحِمَهُ الله دليل دا دی: چي [دلته] تقسيم کول د مړي په خلاف فيصله کول دي إِذِ التَّرِكَةُ مُبْقَاةٌ عَلَى مِلْكِهِ قَبْلَ الْقِسْمَةِ ځکه چي تر تقسيم مخکي ميراث د مړي پر ملکيت باقي پاته وي حَتَّى لَوْ حَدَثَتِ الزِّيَادَةُ قَبْلَهَا همدا وجه ده که تر تقسيم مخکي [په ميراث کي] زياتوب وسي تُنَفَّذُ وَصَايَاهُ فِيهَا وَتُقْضَى دُيُوْنُهُ مِنْهَا نو په هغه زياتوب کي به د مړي وصيتونه هم نافذول کيږي او له هغه زياتوب څخه به د مړي قرضونه هم اداء کول کيږي

بِخِلَافِ مَا بَعْدَ الْقِسْمَةِ په خلاف تر تقسيم وروسته [والا صورت] وَإِذَا كَانَتْ قَضَاءً عَلَى الْمَيِّتِ او کله چي دا تقسيم کول د مړي په خلاف فيصله کول دي فَالْإِقْرَارُ لَيْسَ بِحُجَّةٍ عَلَيْهِ نو [دلته] محض اقرار پر مړي حجّت نه دی فَلَا بُدَّ مِنَ الْبَيِّنَةِ نو ځکه له بيّنې څخه چاره نسته وَهُوَ مُفِيدٌ او بيّنه [دلته] مفيده هم ده لِأَنَّ بَعْضَ الْوَرَثَةِ يُنْتَصَبُ خَصْمًا عَنِ الْمُوَرِّثِ ځکه چي بعضي وارثان به د مورث [مړي] له طرفه خصم ودريږي وَلَا يَمْتَنِعُ ذٰلِكَ بِإِقْرَارِهِ او دا د هغه د اقرار په وجه ممتنع نه دي كَمَا فِي الْوَارِثِ أَوِ الْوَصِيِّ الْمُقِرِّ بِالدَّيْنِ لکه په وارث او د قرض په اقرار کونکي وصي کي فَإِنَّهُ يُقْبَلُ الْبَيِّنَةُ عَلَيْهِ مَعَ إِقْرَارِهِ چي د هغه د اقرار باوجود پر هغه بيّنه قبلول کيږي بِخِلَافِ الْمَنْقُوْلِ په خلاف د منقولي شي لِأَنَّ فِي الْقِسْمَةِ نَظَرًا لِلْحَاجَةِ إِلَى الْحِفْظِ ځکه چي [د منقول] په تقسيم کي [د هغه] د حفاظت کولو ضرورت پيشِ نظر وي [يا په بله وينا چي په منقولي شي کي تقسيم ځکه کيږي چي د هغه حفاظت ته حاجت وي] أَمَّا الْعَقَارُ فَمُحَصَّنٌ بِنَفْسِهِ پاته سو جايداد خو په خپله محفوظ دی [حفاظت ته حاجت نه لري] وَلِأَنَّ الْمَنْقُولَ مَضْمُونٌ عَلَى مَنْ وَقَعَ فِي يَدِهِ او ځکه منقولي شی چي د چا په لاس [قبضه] کي واقع سي د هغه ضمان پر هغه وي وَلَا كَذٰلِكَ الْعَقَارُ عِنْدَهُ او د امام صاحب رَحِمَهُ الله په نيز جايداد داسي نه دی وَبِخِلَافِ الْمُشْتَرٰى او په خلاف د رانيول سوي جايداد لِأَنَّ الْمَبِيعَ لَا يَبْقٰى عَلَى مِلْكِ الْبَائِعِ وَإِنْ لَمْ يُقْسَمْ ځکه چي مبيع د بائع پر ملکيت باقي نه پاتيږي که څه هم تقسيم نه کړی سي فَلَمْ تَكُنِ الْقِسْمَةُ قَضَاءً عَلَى الْغَيْرِ نو ځکه [دلته] به تقسيم کول د بل چا [مړي] په خلاف فيصله کول نه وي.

**اللغات**: ﴿مبقاة﴾ د سَمِعَ له بابه د اسمِ مفعول صيغه ده: پاته سوی. ﴿حدثت﴾ د نصر له بابه د مؤنث غائب صيغه ده: پېښېدل، نوي پيدا کېدل. ﴿تنفذ﴾ دا که د تفعيل له بابه سي نو معنىٰ يې ده: نافذول، جاري کول، او که د نصر له بابه سي نو نافذېدل.... ﴿خصم﴾ فريق مخالف، مخالف طرف، مثلاً مدعي يا مدعىٰ عليه (دوی دواړه يو د بل خصم دي). ﴿محصن﴾ د افعال د باب مفعول دی: محفوظ، خوندي.

**تشریح**: له دې ځایه صاحب د هدایې د امام صاحب رَحِمَهُ الله دلیل بیانوي، چې د هغه حاصل دا دی چې له تقسیم څخه مخکې میراث (ترکه) د همدې مړي په ملکیت کې پاتـه وي، همدا وجه ده کـه تـر تقسیم مخکې په میراث کې څه زیاتوب (اضافه) راسي (مثلاً میراث ځمکه وي او هغه وده او ګټه وکړي یا مثلاً غوا وي او له هغې څخه بچی (سخوندر) پیدا سي)، نو په هغه زیاتوب کې د مړي وصیت هم نافذیږي او له هغه زیاتوب څخه به د مړي قرضونه هم اداء کول کیږي، لهذا کله چې تر تقسیم مخکې میراث د مړي په ملکیت کې پاتیږي، نو دلته تقسیم کول ګواکې قضاء علی المیت (یعني د مړي په خلاف فیصله کول) دي، او د قضاء علی أحد لپاره د بیِّنې (ګواهی) پېښول ضروري وي، فقط په اقرار سره کار نه کیږي، نو ځکه دلته هم د بیِّنې پېښول ضروري دي او له بیِّنې څخه بغیر قاضي هغه نه سي تقسیمولای.

**وهو مفید إلخ**: په دې سره صاحبینو رَحِمَهُمَا الله ته جواب ورکوي چې هغو دلته د بیِّنې پېښول غیر مفید ګرځولي وه، د جواب حاصل دا دی چې د بیِّنې پېښول دلته هم مفید دي، په دې توګه چې له شریکانو څخه یو شریک د مړي نائب جوړ کړی سي چې هغه خصم یعني مدعیٰ علیه وګرځي او نور شریکان مدعیان وګرځي او دا ثابت شده قاعده ده چې "البیّنة علی المدعی والیمینُ علیٰ مَن أنکر"، نو ځکه په دې صورت کې به بیّنه مفیده وي.

**ولا یمتنع إلخ**: په دې سره د یو اشکال جواب ورکوي، اشکال دا دی چې کله دلته شریکان اقرار کونکي دي، نو بیا په دوی کې یو شریک د مړي له طرفه څنګه خصم ګرځول کېدای سي؟، د دې په جواب کې فرمایي چې د مقر او خصم اجتماع ممکنه ده، مثلاً زید پر یو مړي د خپل قرض دعویٰ وکړه (چې ما پر هغه قرض باندې وو) او د مړي وارث یا وصي اقرار وکړی (چې هو! رښتیا هم د زید قرض پر باندې وو)، نو اوس که دا قرضخواه (زید) د قاضي مخ ته همدا وارث یا وصي په بیّنه کې پېش کړي (چې ته د قاضي مخ ته ګواهي اداء کړه)، نو د دې قرضخواه بیّنه به قبلول کیږي، نو څرنګه چې دلته د اقرار او بیّنې اجتماع صحیح ده، نو همداسي به په صورتِ مذکوره کې هم صحیح وي.

**بخلاف المنقول إلخ**: صاحبینو غیرِ منقولي شی (کور) پر منقولي شي قیاس کړی وو (چې کما فی المنقول الموروث) او پر دې بناء یې دلته په موروث غیرِ منقول (کور) کې تقسیم جائز ګرځولی وو، له دې ځایه د هغه جواب ورکوي چې منقولي شیان پر غیرِ منقول قیاسول صحیح نه دي؛ ځکه منقولي شیان مثلاً سامان، غنم او داسي نور د خرابېدلو او ضایع کېدلو امکان لري (چې خراب او ضایع به سي) او د هغه حفاظت کول ضروري وي، او د حفاظت ذریعه تقسیم دی، نو ځکه په منقولي شیانو کې له بیّنې

پېشولو څخه بغير هم تقسيم جائز دی، لېکن غيرِ منقولي شيان مثلاً کور او ځمکه خو په خپله محفوظ وي او د ضايع کېدلو خطره يې نه وي، لهذا د دوی حفاظت ضروري نه وي، نو په همدې وجه له بيّنې پېشولو څخه مخکې د هغوی تقسيمول جائز نه دي.

دويمه وجه دا ده چې پر منقولي شي چې څوک قبضه وکړي، همهغه يې ضامن کيږي، لېکن پر غيرِ منقولي شي په قبضه کولو سره ضمان نه لازميږي، معلومه سوه چې په منقولي شي کې تقسيم د مړي لپاره نفع مند دی، او کله چې تقسيم د مړي لپاره مفيد دی، نو له بيّنه پېشولو څخه مخکې به هم د هغه تقسيمول جائز وي.

وبخلاف المشتریٰ إلخ: صاحبينو رَحِمَهُمَا الله دا مسئله پر رانيول سوي جايداد (العقار المشتریٰ) هم قياس کړې وه، د جواب حاصل دا دی چې دلته هم ستاسو قياس صحيح نه دی؛ ځکه چې تر خرڅولو وروسته مبيع د بائع له ملکيته وځي، برابره ده شريکان هغه تقسيم کړي او که يې نه کړي، او کله چې مبيع د بائع له ملکيتهِ ووتل، نو هلته قضاء الغائب نه لازميږي، او د ميراث والا په صورت کې خو تر تقسيم مخکې ميراث د مړي (ميّت) په ملکيت کې پاته وي (لکه مخکې چې ذکر سوه)، نو په دې صورت کې قضاء على الغائب (على الميّت) لازميږي کوم چې له بيّنې پېشولو څخه بغير صحيح نه دي، په همدې وجه موږ (امام صاحب) دلته د بيّنې پېشول لازم او ضروري گرځولي دي.

## د تقسيم د طلب کولو يو صورت او د هغه حکم

قَالَ: وَإِنِ ادَّعَوُا الْمِلْكَ وَلَمْ يَذْكُرُوا كَيْفَ انْتَقَلَ إِلَيْهِمْ فرمايي: او که شريکان د ملکيت دعویٰ وکړي او دا ذکر نه کړي چې هغه جايداد څنګه د دوی ملکيت ته منتقل سوی دی [يعني دا نه وايي چې څنګه زموږ په ملکيت کې راغلی دی] قَسَمَهُ بَيْنَهُمْ نو قاضي به هغه د دوی په مينځ کې تقسيموي لِأَنَّهُ لَيْسَ فِي الْقِسْمَةِ قَضَاءٌ عَلَى الْغَيْرِ ځکه چې په دې تقسيم کې د بل چا په خلاف فيصله کول نسته فَإِنَّهُمْ مَا أَقَرُّوا بِالْمِلْكِ لِغَيْرِهِمْ ځکه چې دوی د بل چا لپاره د ملکيت اقرار نه دی کړی قَالَ رَضِيَ اللهُ عَنْهُ: هٰذِهِ رِوَايَةُ كِتَابِ الْقِسْمَةِ صاحب د هدايې رَحِمَهُ الله فرمايي: چې دا د مبسوط د کتابُ القسمة روايت دی وَفِي الْجَامِعِ الصَّغِيرِ: أَرْضٌ ادَّعَاهَا رَجُلَانِ وَأَقَامَا الْبَيِّنَةَ أَنَّهَا فِي أَيْدِيهِمَا وَأَرَادَا الْقِسْمَةَ او په جامع صغير کې دي: يوه ځمکه ده چې په هغه دوو خلکو دعویٰ وکړه او دوی پر دې بيّنه هم پېش کړه چې هغه ځمکه د دوی په قبضه کې ده او دوی د تقسيم اراده وکړه لَمْ يَقْسِمْهَا حَتّٰى يُقِيمَا الْبَيِّنَةَ أَنَّهَا لَهُمَا نو قاضي به هغه ځمکه نه تقسيموي تر دې چې دوی دواړه پر دې بيّنه پېش کړي چې هغه ځمکه

د همدوی دواړو ده لِاحْتِمَالِ أَنْ يَكُونَ لِغَيْرِهِمَا ځکه کېدای سي چي هغه د بل چا وي ثُمَّ قِيْلَ: هُوَ قَوْلُ أَبِي حَنِيْفَةَ خَاصَّةً بيا ويل سوي دي: چي دا خاص د امام صاحب رَحِمَهُ الله قول دی وَقِيْلَ: قَوْلُ الْكُلِّ او ويل سوي دي: چي د ټولو قول دی وَهُوَ الْأَصَحُّ او همدا زيات صحيح ده لِأَنَّ قِسْمَةَ الْحِفْظِ فِي الْعَقَارِ غَيْرُ مُحْتَاجٍ إِلَيْهِ ځکه چي په جايداد کي د حفاظت تقسيم [يعني هغه تقسيم چي د حفاظت لپاره وي] لره حاجت نسته وَقِسْمَةُ الْمِلْكِ تَفْتَقِرُ إِلَى قِيَامِهِ او د ملکيت تقسيم د ملکيت قائم والي لره محتاج دی [يعني په قسمة الملک کي د ملکيت باقي پاتېدلو لره حاجت سته] وَلَا مِلْكَ او [دلته] ملکيت سته نه فَامْتَنَعَ الْجَوَازُ نو ځکه جواز ممتنع سو.

**اللغات:** ﴿تفتقر﴾ د افتعال له بابه د مضارع صيغه ده، د دې باب يوه معنیٰ ده: محتاج کېدل.

**تشریح:** دلته صاحب د هدايې رَحِمَهُ الله اول د مبسوط د کتابُ القسمة يو روايت بيانوي، چي د هغه حاصل دا دی چي که څو شريکان د قاضي مخ ته په يو جايداد مثلاً په يو کور يا ځمکه کي د خپل ملکيت دعویٰ وکړي (چي د دې کور مالکان موږ يو) خو دا ذکر نه کړي چي دا کور زموږ په ملکيت کي څرنګه راغلی دی (مثلاً په ميراث کي يا په رانيولو سره)، نو قاضي به هغه کور د دوی په مينځ کي تقسيموي؛ ځکه کله چي دوی د ملکيت نوع ذکر نه کړه، نو ګواکي د بل چا لپاره د ملکيت ثابتېدلو اعتراف (اقرار) يې هم نه وکړی، او کله چي اعتراف نسته، نو قضاء على الغير نه لازمېږي، لهذا بغير له بيّنې پېشولو به د هغه تقسيم صحيح کيږي.

صاحب د هدايې رَحِمَهُ الله فرمايئ چي په جامع صغير کي دا مسئله داسي ذکر سوې ده چي که دوو کسانو په يو ځمکه کي د خپل ملکيت دعویٰ وکړه چي دا ځمکه زموږ په ملکيت کي ده، او پر دې يې بيّنه هم پېش کړه چي دا ځمکه في الحاله زموږ په قبضه کي ده، نو تر څو چي دوی پر خپل ملکيت بيّنه پېش نه کړي، قاضي به هغه ځمکه د دوی په مينځ کي نه تقسيموي؛ ځکه چي اوس هم دا احتمال پاته دی چي هغه به د بل چا ځمکه وي او دوی به جبراً قبضه پر کړې وي، لهذا پر قبضې بيّنه پېشول معتبر نه دي، بلکي د خپل ملکيت پر ثبوت بيّنه پېشول معتبر دي او هغه دلته نه دي سوي. فلذا لا يقسم القاضي.

ثم قيل إلخ: صاحب د هدايې رَحِمَهُ الله فرمايي چي د جامع صغير دغه پورتنی روايت دوو طرفونو ته منسوب سوی دی: ① دا يوازي د امام صاحب رَحِمَهُ الله قول دی. ② د صاحبينو رَحِمَهُمَا الله هم دغه

قول دی، او همدا صحيح خبره ده؛ او د دې وجه دا ده چې قسمة (تقسيم) پر دوه قسمه دی: ① قسمة الحفظ، يعني د دې لپاره يو شی تقسيم کړی سی چې هر شريک د خپلې حصې حفاظت وکړي، ② قسمة التمييز، يعني چې د هر شريک د ملکيت او حصې د جلا کولو لپاره تقسيم وسي چې هغه له خپل حصې څخه پوره استفاده وکړی سی. ښکاره خبره ده چې په جايداد يعني ځمکه کې د قسمة الحفظ ضرورت نسته؛ ځکه چې ځمکه خو خپله محفوظه وي حفاظت ته ضرورت نه لري (او له يوه ځايه بل ځای ته نه سي نقلول کېدای چې د غلا کېدلو او ضايع کېدلو خطره يې پيدا سي)، معلومه سوه چې دلته قسمة التمييز ته ضرورت سته، لېکن قسمة التمييز هلته کيږي، چيري چې له مخکې څخه ملکيت ثابت وي، او دلته مدعينو کسانو فقط خپل قبضه ثابته کړې ده، نه ملکيت، لهذا تر څو چې پر خپل ملکيت بيّنه پېش نه کړي، هغه ځمکه به د دوی په مينځ کې نه تقسيمول کيږي.

## د تقسيم د طلب کولو بل صورت او د هغه حکم

قَالَ: وَإِذَا حَضَرَ وَارِثَانِ وَأَقَامَا الْبَيِّنَةَ عَلَى الْوَفَاةِ وَعَدَدِ الْوَرَثَةِ فرمايي: او کله چې دوه وارثان [قاضي ته] حاضر سي او دوی پر مړيني او د وارثانو پر شمېر بيّنه پېش کړي وَالدَّارُ فِي أَيْدِيهِمْ وَمَعَهُمْ وَارِثٌ غَائِبٌ اور کور د همدوی په قبضه کې وي او د دوی سره يو بل غائب وارث هم وي قَسَمَهَا الْقَاضِي بِطَلَبِ الْحَاضِرِينَ وَيَنْصِبُ وَكِيلًا يَقْبِضُ نَصِيبَ الْغَائِبِ نو قاضي به د حاضرو وارثانو پر غوښتنه کور تقسيموي او يو وکيل به درووي کوم چې د غائب وارث پر حصه قبضه وکړي وَكَذَا لَوْ كَانَ مَكَانَ الْغَائِبِ صَبِيٌّ او همداسي که د غائب پر ځای يو بچی وارث وي يُقْسَمُ وَيَنْصِبُ وَصِيًّا يَقْبِضُ نَصِيبَهُ نو هم به قاضي تقسيم کوي او يو وصي به درووي کوم چې د بچي پر حصه قبضه وکړي لِأَنَّ فِيهِ نَظَرًا لِلْغَائِبِ وَالصَّغِيرِ ځکه چې په دې کې د غائب او کوچني لپاره مصلحت [ښېګڼه] ده وَلَا بُدَّ مِنْ إِقَامَةِ الْبَيِّنَةِ فِي هَذِهِ الصُّورَةِ عِنْدَهُ أَيْضًا او د امام صاحب رَحِمَهُ الله په نېز په دې صورت کې هم د بيّنې پېشول ضروري دي خِلَافًا لَهُمَا په خلاف د صاحبينو رَحِمَهُمَا الله كَمَا ذَكَرْنَاهُ مِنْ قَبْلُ لکه مخکې چې مو يې ذکر کړه وَلَوْ كَانُوا مُشْتَرِينَ او که دوی [د کور] رانيونکي وي لَمْ يَقْسِمْ مَعَ غَيْبَةِ أَحَدِهِمْ نو قاضي به د يوه په غائب والي [ناموجوديت] کې تقسيم نه کوي.

**اللغات**: ﴿نصيب﴾ حصه، برخه. ﴿ينصب﴾ د مضارع صيغه ده له ضرب او نصر دواړو بابونو څخه راځي: د دې باب يوه معنیٰ ده: درول، مراد ځني ټاکل او مقرر کول دي. ﴿غيبة﴾ غائب والی، ناموجوديت.

**تشريح : صورت د مسئلې:** دا دی چې د يو کور مثلاً درې وارثان (ميراث خوره) دي، له دوی څخه دوو کسانو د قاضي مخ ته د خپل مُورِث پر مړينې او وفات کېدلو او د وارثانو د شمېر په هکله بيّنه پېش کړه او درېيم وارث موجود نه دی او کور د همدوی په قبضه کې دی، نو قاضي به د غائب وارث له طرفه يو وکيل مقرر کوي او دا کور به پر درېو حصو تقسيموي، حاضر وارثان به خپله، خپله حصه واخلي او دا مقرر سوی وکيل به د غائب وارث حصه واخلي.

يا مثلاً په وارثانو کې يو وارث کوچنی وي، نو په دې صورت کې به هم قاضي د کوچني لپاره يو وصي مقرر کوي او کور به تقسيموي؛ ځکه په دواړو صورتونو کې د وارثانو نفع ده او د غائب او کوچني هم فايده ده؛ ځکه که قاضي تقسيم نه وکړي نو کېدای سي چې څه وخت وروسته وارثان بې ايماني وکړي او د دې دواړو (غائب او کوچني) حق وخوري، لهذا نفع او فايده په همدې تقسيم کې ده، نو ځکه قاضي به د دوی په مينځ کې کور تقسيموي.

ولا بدّ إلخ: د دې حاصل دا دی چې څرنګه د غائب وارث والا په صورت کې د مورث پر وفات کېدلو او د وارثانو پر شمېر بيّنه پېشول ضروري دي، همداسې د صبي او کوچني والا په صورت کې هم پر مذکوره دوو شيانو د امام صاحب رَحِمَهُ الله په نېز بيّنه پېشول ضروري دي، خو د صاحبينو رَحِمَهُمَا الله په نېز محض د ملکيت په اعتراف سره به قاضي تقسيم کوي.

ولو کانوا إلخ: د دې حاصل دا دی چې که د مسئلې صورت او نوعيت همدغه وي کوم چې اوس تېر سو، لېکن حاضر وارثان د کور رانيولو (شراء) دعوىٰ وکړي (چې دا کور موږ رانيولی دی)، نو په دې صورت کې که څه هم دوی بيّنه پېش کړي، تر څو چې غائب وارث راغلی نه وي، قاضي به هغه کور نه تقسيموي.

### د پورتنۍ مسئلې نور وضاحت

وَالْفَرْقُ أَنَّ مِلْكَ الْوَارِثِ مِلْكُ خِلَافَةٍ او فرق دا دی چې د وارث ملکيت د خليفه والي [نائب والي] ملکيت دی [چې وارث د مړي نائب دی] حَتّٰى يَرُدَّ بِالْعَيْبِ وَيُرَدُّ عَلَيْهِ بِالْعَيْبِ فِيْمَا اشْتَرَاهُ الْمُوَرِّثُ أَوْ بَاعَ همدا وجه ده چې وارث هغه د عيب په وجه واپس کولای سي او د عيب په وجه پر هغه واپس کېدلای سي په هغه شي کې کوم چې مورث [مړي] رانيولی يا خرڅ کړی وي وَيَصِيْرُ مَغْرُوْرًا بِشِرَاءِ الْمُوَرِّثِ او وارث د مورث په شراء [رانيولو] سره مغرور ګرځي فَانْتَصَبَ أَحَدُهُمَا خَصْمًا عَنِ الْمَيِّتِ فِيْمَا فِيْ يَدِهٖ وَالْاٰخَرُ عَنْ نَفْسِهٖ نو له دوی څخه به يو وارث د مړي له طرفه د هغه څه په باره کې کوم چې د وارث په قبضه کې دی خصم [مدعیٰ عليه] و درېږي او بل يو به له خپل طرفه خصم [مدعي او

ګواه پیشونکی] ودربېږي فَصَارَتِ الْقِسْمَةُ قَضَاءً بِحَضْرَةِ الْمُتَخَاصِمَيْنِ نو دا تقسیم به د دوو خصمونو [مدعي او مدعیٰ علیه] په موجودیت کي فیصله کول وګرځي [نه دغائب په خلاف فیصله کول (قضاء على الغائب)] أَمَّا الْمِلْكُ الثَّابِتُ بِالشِّرَاءِ مِلْكٌ مُبْتَدَأٌ او پاتـه سو په شراء سره ثابت سوی ملکیت نوی [دابتدائي درجې] ملکیت وي وَلِهٰذَا لَا يَرُدُّ بِالْعَيْبِ عَلَى بَائِعِ بَائِعِهِ همدا وجه ده چي مشتري يې دعیب په وجه د خپل بائع پر بائع نه سي واپس کولای فَلَا يَصْلُحُ الْحَاضِرُ خَصْمًا عَنِ الْغَائِبِ نو ځکه [دلته] حاضر دغائب له طرفه دخصم جوړېدلو صلاحیت نه لري فَوَضَحَ الْفَرْقُ نو فرق څرګند سو [نو ځکه د شراء (رانیولو) په صورت کي قاضي تقسیم نه سي کولای]

**اللغات:** ﴿يرد﴾ د نصر د باب مضارع ده: ردول، واپس کول. دلته اول وار د معلوم په صیغه سره ذکر سوې ده، بیا د مجهول په صیغه سره. ﴿مغرور﴾ د نصر له بابه د مفعول صیغه ده: دوکه کړی سوی، فرېب خورده، صورت به يې په تشریح کي ذکر سي چي وارث څنګه مغرور ګرځي.

**تشریح:** په دې عبارت کي صاحب د هدایې رَحِمَهُ الله د مخکني دوو (وراثت او شراء والا) صورتونو تر مینځ فرق بیانوي فرمايي چي د میراث والا په صورت کي د قاضي لپاره تقسیم کول ځکه جائز دي چي په میراث سره حاصلېدونکی ملکیت د نیابت (نائب والي) په توګه حاصلېږي (یعني ګواکي وارث د مورث مړي نائب دی)، همدا وجه که د مورث (مړي) په رانیول سوي شي کي وارث یو عیب ووینې نو هغه دا شی د مورث بائع ته واپس کولای سي، یا مثلاً د مورث په خرڅ کړی سوي شي کي مشتري یو عیب ووینې، نو مشتري دا شی وارث ته واپس کولای سي، یا مثلاً د مغرور صورت، هغه دا چي مورث مینځه رانیولې وه او د مورث تر مرګ وروسته وارث هغه اُم ولد وګرځوله (یعني وطي يې ور سره وکړې او له هغې څخه بچی پیدا سو)، بیا هغه د بل چا مستحقه وخته (یعني بل چا دعویٰ وکړه چي دا خو زما مینځه ده او خپل استحقاق يې ثابت کړی او له وارث څخه يې مینځه واخیسته، نو مړي چي له چا څخه مینځه رانیولې وه، ګواکي هغه دغه وارث ته دوکه ورکړه [که څه هم هغه اصلاً مړي ته دوکه ورکړې ده]. لهذا دغه وارث مغرور یعني دوکه سو)، نو په داسي صورت کي وارث له بائع څخه د هغې قیمت اخیستلای سي، لنډه دا چي د وراثت ملکیت د نیابت او خلافت ملکیت دی. لهذا دلته به له وارثانو څخه یو وارث د مړي له طرفه خصم سي او بل یو به له خپل طرفه خصم سي، نو د قاضي په تقسیم سره به قضاء الغائب نه لازمېږي، بلکي قضاء على المتخاصمَین به وي، کوم چي بېله شکه صحیح ده.

لېکن د رانيولو (شراء) په صورت چي څرنګه نوی ملکيت حاصلېږي، همدا وجه ده چي د عيب په وجه مشتري خپل بائع ته خو مبيع واپس کولای سي، مګر دِ بائع و بائع ته يې نه سي واپس کولای، نو کله چي دلته نوی ملکيت حاصلېږي، نو حاضر مشتري د غائب مشتري له طرفه خصم نه سي جوړېدای او کله چي هغه خصم نه سي جوړېدای، نو دلته به قضاء على الغائب لازم سي کوم چي صحيح نه ده، په همدې وجه دلته تقسيم صحيح نه دی. الحاصل دا چي په دواړو مسئلو کي فرق د قضاء الغائب د لازمېدلو او نه لازمېدلو دی (چي د شراء په مسئله کي دا قضاء على الغائب لازمېږي او د وراثت په مسئله کي نه لازمېږي).

## د تقسيم د طلب يو بل صورت او د هغه حکم

وَإِنْ كَانَ الْعَقَارُ فِي يَدِ الْوَارِثِ الْغَائِبِ أَوْ شَيْءٌ مِنْهُ او که جايداد د غائب وارث په قبضه کي وي يا د هغه بعضي حصه لَمْ يَقْسِمْ نو قاضي به هغه نه تقسيموي وَكَذَا إِذَا كَانَ فِي يَدِ مُودَعِهِ او همدارنګه کله چي د غائب وارث د مودَع [أمين] په قبضه کي وي [يعني غائب وارث جايداد يا د هغه بعضي حصه يو چا ته امانتاً ورکړې وي] وَكَذَا إِذَا كَانَ فِي يَدِ الصَّغِيرِ او همدارنګه کله چي د کوچني په قبضه کي وي لِأَنَّ الْقِسْمَةَ قَضَاءٌ عَلَى الْغَائِبِ وَالصَّغِيرِ بِاسْتِحْقَاقِ يَدِهِمَا مِنْ غَيْرِ خَصْمٍ حَاضِرٍ عَنْهُمَا ځکه چي تقسيم کول د غائب او بچي په خلاف فيصله کول دي، د دوی د دواړو د قبضې په استحقاق سره [يعني ځکه چي پر جايداد د دوی قبضه ده] د دوی له طرفه د يو حاضر خصم له موجوديت څخه بغير [په آسانه وينا دا چي پر جايداد د غائب او صغير قبضه ده او د دوی له طرفه خصم (مدعیٰ عليه) متعيّن سوی نه دی، نو جايداد تقسيمول ګواکي د دوی په خلاف فيصله کول دي، نو ځکه تقسيم به نه کوي] وَأَمِينُ الْخَصْمِ لَيْسَ بِخَصْمٍ عَنْهُ فِيمَا يَسْتَحِقُّ عَلَيْهِ او د خصم [يعني د غائب] امين د هغه [غائب] له طرفه خصم نه سي کېدای په هغه څه کي چي پر هغه [غائب] يې استحقاق ثابت کړی سي [د عبارت آسانه مطلب دا دی چي کوم وارث غائب دی د هغه مودَع فقط د حفاظت کولو لپاره دی، د خصم (مدعیٰ عليه) جوړېدلو لپاره نه دی، نو ځکه هغه خصم نه سي جوړېدای] وَالْقَضَاءُ مِنْ غَيْرِ الْخَصْمِ لَا يَجُوزُ او له خصم څخه بغير فيصله کول جائز نه دي [يعني بغير له حاضر خصمه د غائب په خلاف فيصله نه سي کېدای، نو ځکه قاضي به دا ځمکه تقسيموي] وَلَا فَرْقَ فِي هٰذَا الْفَصْلِ بَيْنَ إِقَامَةِ الْبَيِّنَةِ وَعَدَمِهَا او په دې صورت کي د بيّنې پېشولو او نه پېشولو تر مينځ

هيڅ فرق نسته هُوَالصَّحِيحُ همدا صحيح ده كَمَا أُطْلِقَ فِي الْكِتَابِ لکه څرنګه په کتاب [جامع صغير] کي مطلق ذکر سوي دي.

**اللغات:** ﴿مودَع﴾ د افعال د باب مفعول دی: چا ته چي امانت ايښول سوی وي. يعني چا ته چي امانتاً يو مال ورکول سوی وي، امانت ساتونکی، چي هغه ته په نورو الفاظو مستودَع او أمين هم ويل کيږي.

**تشريح:** د دې حاصل دا دی چي کله ځمکه يا کور د حاضرو شريکانو يا د اکثره وارثانو په قبضه کي وي، نو هلته خو د قاضي تقسيم جائز وو (لکه مخکي چي ذکر سوه). ليکن که ځکمه يا کور د غائب وارث په قبضه کي وي يا د هغه بعضي حصه د ده په قبضه کي وي، يا د ده د مودَع يا کوچني په قبضه کي ټوله يا بعضي حصه وي، نو په دې ټولو صورتونو کي به قاضي د حاضرو شريکانو يا وارثانو په غوښتنه دا ځمکه او کور نه تقسيموي؛ ځکه چي قبضه خو د غائب يا صغير ده، نو د تقسيم په صورت کي د غائب يا صغير د طرفه له يو حاضر خصم څخه بغير قضاء على الغائب لازميږي کوم چي صحيح نه ده.

وأمين الخصم إلخ: په دې سره د يو اشکال جواب ورکوي. اشکال دا دی چي که ځمکه او کور د غائب وارث د مودَع په قبضه کي وي، نو بايد دغه مودَع د غائب وارث له طرفه خصم جوړ کړی سي او تقسيم جائز کړی سي. داسي ولي نه کوي؟.

د دې په جواب کي فرمايي چي بېله شکه مودَع خصم جوړېدای سي، ليکن هغه فقط د حفاظت او صيانت خصم جوړېدای سي، او له خصم څخه بغير قضاء صحيح نه ده. نو ځکه په دې صورت کي به هم تقسيم صحيح نه وي.

ولا فرق إلخ: د دې حاصل دا دی چي کله ځمکه او کور يا د هغه څه حصه د غائب وارث يا صغير په قبضه کي وي، نو په دې صورت کي د بيّنه پېشولو يا نه پېشولو ترمينځ هيڅ فرق نسته. بلکي په هر صورت کي به قاضي هغه نه تقسيموي. همدا صحيح قول دی.

## د پورتني مسئلې نور وضاحت

قَالَ: وَإِنْ حَضَرَ وَارِثٌ وَاحِدٌ فرمايي: او که چيري يو وارث حاضر سي لَمْ يُقْسِمْ وَإِنْ أَقَامَ الْبَيِّنَةَ نو قاضي به تقسيم نه کوي که څه هم هغه بيّنه پېش کړي لِأَنَّهُ لَابُدَّ مِنْ حُضُورِ خَصْمَيْنِ ځکه چي د دوو خصمونو [مدعي او مدعیٰ عليه] حاضرېدل ضروري دي لِأَنَّ الْوَاحِدَ لَا يَصْلُحُ مُخَاصِمًا وَمُخَاصَمًا

وَكَذَا مُقَاسِمًا وَمُقَاسَمًا ځکه چې يوازې يو کس د دې صلاحيت نه لري چې مدعي او مدعیٰ عليه جوړ سي او همدارنګه [نه د دې صلاحيت لري] چې تقسيم کونکی او د هغه سره تقسيم کېډونکی جوړ سي بِخِلَافِ مَا إِذَا كَانَ الْحَاضِرُ اثْنَيْنِ عَلٰى مَا بَيَّنَّا په خلاف د هغه صورت کله چې حاضرېدونکي دوه کسان وي، بناء پر هغه تفصيل کوم چې موږ [مخکي] بيان کړی.

**اللغات:** ﴿لا يصلح﴾ د كَرُمَ له بابه د نفي صيغه ده، صَلُحَ يَصْلُحُ صَلاحِيَّةً: صلاحيت لرل، وړتيا لرل. ﴿مخاصِما﴾ د مفاعلې له بابه د فاعل صيغه ده: د يو چا سره خصومت او دعویٰ کونکی، مدعي، ﴿مخاصَما﴾ له مخکيني بابه د مفعول صيغه ده: د چا سره چې خصومت او دعویٰ کيږي، مدعیٰ عليه، ﴿مقاسِم﴾ د يو چا سره تقسيم کونکی، تقسيم په کونکی، ﴿مقاسَم﴾ د چا سره چې تقسيم کيږي.

**تشريح:** مسئله دا ده که يو جايداد (مثلاً کور) د څو وارثانو تر مينځ مشترک وي او له دوی څخه صرف يو وارث قاضي ته ولاړ سي او د تقسيم غوښتنه وکړي، نو قاضي به د تقسيم فيصله نه کوي، که څه هم هغه يو وارث دليل او بيّنه پېش کړي؛ ځکه چې د قضاء (فيصلې) لپاره د دوو خصمَينو يعني د مدعي او مدعیٰ عليه موجودېدل ضروري دي، او دا نه سي کېدای چې يوازې يو کس دي مدعي او مدعیٰ عليه دواړه وي او نه دا کېدای سي چې يوازې يو کس په قاضي تقسيم کونکی هم وي او يوازې د ده سره تقسيم هم کېډونکی وي (بلکي د بل شريک حاضرېدل ضروري دي)، نو ځکه دلته قاضي تقسيم نه سي کولای، ها! که چيری دوه کسان (وارثان) حاضر سي، نو بيا تقسيم صحيح دی او قاضي به د دوی تر مينځ تقسيم کوي؛ ځکه چې يو به مدعي او بل به مدعیٰ عليه وګرځي، او په دې صورت کي تقسيم صحيح کيږي.

### د پورتنی مسئلې نور وضاحت

وَلَوْ كَانَ الْحَاضِرُ كَبِيرًا وَصَغِيرًا او که حاضرېدونکي يو مشر او يو کوچنی [کشر] وي نَصَبَ الْقَاضِي عَنِ الصَّغِيرِ وَصِيًّا وَقَسَمَ إِذَا أُقِيمَتِ الْبَيِّنَةُ نو قاضي دې د کوچني له طرفه يو وصي مقرر کړي او تقسيم دې وکړي کله چې بيّنه پېش کړی سي وَكَذَا إِذَا حَضَرَ وَارِثٌ كَبِيرٌ وَمُوصًى لَهُ بِالثُّلُثِ فِيهَا وَطَلَبَا الْقِسْمَةَ وَأَقَامَا الْبَيِّنَةَ عَلَى الْمِيرَاثِ وَالْوَصِيَّةِ او همدارنګه کله چې يو مشر وارث او د کور د دريمې

حصې موصىٰ لهٗ حاضر سي او د تقسيم مطالبه وکړي او پر ميراث او وصيت بيّنه پيش کړي يَقْسِمُهُ نو قاضي به تقسيم کوي لِاجْتِمَاعِ الْخَصْمَيْنِ الْكَبِيْرِ عَنِ الْمَيِّتِ وَالْمُوْصٰى لَهٗ عَنْ نَفْسِهِ ځکه چي دوه خصمونه سره جمع سوه، مشر د مړي له طرفه او موصىٰ لهٗ د خپل ځان له طرفه وَكَذَا الْوَصِيُّ عَنِ الصَّبِيِّ كَأَنَّهٗ حَضَرَ بِنَفْسِهِ بَعْدَ الْبُلُوْغِ او همدارنګه د بچي [کوچني] وصي داسې دی لکه بچی چي په خپله تر بلوغت وروسته حاضر سي لِقِيَامِهِ مَقَامَهٗ ځکه چي وصي د هغه قائم مقام [نائب] دی.

**اللغات:** ﴿موصى لهٗ﴾ د کوم کس لپاره چي مړي د يو شي وصيت کړی وي، موصى لهٗ بالثلث: هغه کس چي د هغه لپاره مړي د کور يا داسي بل شي د درېيمي حصې وصيت کړی وي چي دومره حصه د دې کس ده.

**تشريح:** څرنګه چي تر بيّنه پيشولو وروسته د تقسيم صحيح کېدلو لپاره د دوو کسانو (وارثانو) حاضرېدل ضروري دي (لکه مخکي چي ذکر سوه)، نو دلته دا بيانوي چي که دوه کسان حاضر سي خو يو نابالغه کوچنی هلک وي او بل بالغ کس وي او د تقسيم مطالبه وکړي، يا يو بالغ وارث حاضر سي او بل موصىٰ له بالثلث حاضر سي او د تقسيم مطالبه وکړي، نو په دې دواړو صورتونو کي به قاضي تقسيم کوي؛ ځکه چي دوه خصمهٔ موجود دي او د تقسيم تعداد پوره دی، نو بالغ به د مړي له طرفه خصم وګرځي او د کوچني لپاره دي وصي مقرر کړی سي چي هغه به د ده له طرفه خصم وګرځي او په دويم صورت کي به موصىٰ له خپل طرفه خصم وګرځي، نو د اجتماع خصمَين په وجه به تقسيم صحيح وي. او څرنګه چي د کوچني هلک وصي د هغه نائب او قائم مقام کيږي، نو ځکه د وصي حاضرېدل داسي دي لکه تر بالغ کېدو وروسته د کوچني هلک حاضرېدل (يعني لکه کوچنی چي خپله اوس بالغ سوی او حاضر سوی دی)، نو ځکه قاضي به اوس تقسيم کوي.

❀❀❀

# فَصۡلٌ فِيۡمَا يُقۡسَمُ وَمَا لَا يُقۡسَمُ

دا فصل په (بیان د) هغه شیانو کي دی کوم چي تقسیمول کیږي او هغه کوم چي نه تقسیمول کیږي.

**تشریح**: ښکاره خبره ده چي شیان پر دوه قسمه دي: ① مقسوم (کوم چي د تقسیم قابل وي يعني تقسيمېدلای سي)، ② غیرِ مقسوم (کوم چي نه سي تقسیم کېدلای)، نو ځکه صاحب د کتاب رَحِمَهُ الله په یو مستقل فصل کي د دوی احکام هم بیان کړي دي.

## د تقسیم لپاره طلب ضروري دی

قَالَ: وَإِذَا كَانَ كُلُّ وَاحِدٍ مِنَ الشُّرَكَاءِ يَنْتَفِعُ بِنَصِيْبِهِ فرمايي: او کله چي له شریکانو څخه یو شریک له خپل حصې څخه نفع اخیستلای سي قَسَمَ بِطَلَبِ أَحَدِهِمْ نو قاضي به د دوی دیوه په طلب [غوښتنه] سره هم تقسیم کوي لِأَنَّ الْقِسْمَةَ حَقٌّ لَازِمٌ فِيْمَا يَحْتَمِلُهَا عِنْدَ طَلَبِ أَحَدِهِمْ ځکه چي تقسیم یو لازم حق دی په هغه شیانو کي کوم چي د تقسیم وړتیا لري دیوه شریک د طلب په وخت کي [يعني کوم شیان چي تقسیمېدلای سي. هلته دیوه شریک پر مطالبه تقسیم کول د هغه لازم حق دی] عَلٰى مَا بَيَّنَّاهُ مِنْ قَبْلُ لکه مخکي چي دا مور بیان کړه.

**اللغات**: ﴿ينتفع﴾ دا افتعال د باب مضارع ده: نفع او فایده اخیستل، نفع رسېدل.

**تشریح**: **صورت د مسئلې**: دا دی چي کله مشترک شی داسي وي چي هر شریک پکښي له خپل حصې څخه نفع اخیستلای سي، مثلاً دوه آسان د دوو کسانو تر مینځ مشترک وي (نو ښکاره خبره ده چي که هر شریک ته خپله حصه يعني خپل آس ورجلا کړی سي نو هغه نفع ځني اخیستلای سي)، نو په داسي صورت کي که یو شریک د تقسیم مطالبه او غوښتنه وکړي، نو قاضي به هغه تقسیموي (هر یوه ته به یو آس ورجلا کوي). او که یو د تقسیم منکر وي چي زه تقسیم نه کووم، نو هغه به مجبورول کیږي؛ ځکه چي په قابلِ تقسیم شي کي تقسیم د هر شریک لازم حق دی. او د هغه په تقسیمولو سره هیڅ شریک ته ضرر هم نه رسیږي. نو ځکه دیوه شریک پر مطالبه به قاضي تقسیم پکښي کوي.

## د تقسيم د طلب مختلفه صورتونه

وَإِنْ كَانَ يَنْتَفِعُ أَحَدُهُمْ وَيَسْتَضِرُّ الْآخَرُ لِقِلَّةِ نَصِيبِهِ او که [په تقسيم سره] يو شريک ته نفع رسېده او بل شريک ته د خپل حصې د کموالي [الږوالي] په وجه ضرر [تاوان] رسېدی فَإِنْ طَلَبَ صَاحِبُ الْكَثِيرِ نو که زياتي حصې والا [د تقسيم] طلب وکړی قَسَمَ نو قاضي به تقسيم کوي وَإِنْ طَلَبَ صَاحِبُ الْقَلِيلِ او که کمي حصې والا طلب وکړی لَمْ يَقْسِمْ نو تقسيم به نه کوي لِأَنَّ الْأَوَّلَ مُنْتَفِعٌ بِهِ ځکه چي اول شريک په خپل طلب [يا خپل حصه سره] سره نفع اخيستونکی دی فَيُعْتَبَرُ طَلَبُهُ نو ځکه د هغه طلب به معتبر وي وَالثَّانِي مُتَعَنِّتٌ فِي طَلَبِهِ او دويم يو په خپل طلب کي سرکښه دی فَلَمْ يُعْتَبَرْ نو د هغه طلب به معتبر نه وي وَذَكَرَ الْجَصَّاصُ عَلَى قَلْبِ هٰذَا او امام جصاص رَحِمَهُ الله د دې برعکس ذکر کړي دي لِأَنَّ صَاحِبَ الْكَثِيرِ يُرِيدُ الْإِضْرَارَ بِغَيْرِهِ ځکه چي زياتي حصې والا بل يوه ته د ضرر رسولو اراده لري وَالْآخَرُ يَرْضَى بِضَرَرِ نَفْسِهِ او دا بل يو [کمي حصې والا] د خپل ځان په ضرر راضي دی وَذَكَرَ الْحَاكِمُ الشَّهِيدُ فِي مُخْتَصَرِهِ أَنَّ أَيَّهُمَا طَلَبَ الْقِسْمَةَ يَقْسِمُ الْقَاضِي او حاکم شهيد رَحِمَهُ الله په خپل مختصر کي دا ذکر کړي دي چي له دوی دواړو څخه کوم يو هم د تقسيم طلب وکړي نو قاضي به تقسيم کوي وَالْوَجْهُ انْدَرَجَ فِيمَا ذَكَرْنَاهُ او [د حاکم شهيد د قول] دليل زموږ په ذکر سوي دليلونو کي داخل دی وَالْأَصَحُّ الْمَذْكُورُ فِي الْكِتَابِ وَهُوَ الْأَوَّلُ او زيات صحيح قول هغه دی کوم چي په قدوري [متن] کي ذکر سوی دی او هغه اول قول دی.

**اللغات**: ﴿يستضر﴾ د استفعال د باب مضارع ده: ضرر او نقصان رسېدل. ﴿إضرر﴾ د افعال د باب مصدر دی: ضرر رسول.

**تشريح: صورت د مسئلي**: دا دی چي يو کور د دوو کسانو تر مينځ مشترک دی او په دوی کي د يوه حصه زياته ده او د بل حصه ډېره کمه ده چي تر تقسيم وروسته نفع نه سي ځني اخيستل کېدای. اوس که په دوی کي يو د تقسيم طلب (مطالبه) وکړي، نو څه حکم به يې وي؟. په دې باره کي څو قولونه دي:

① اول قول دا دی چي که چيري د زياتي حصې والا د تقسيم طلب (مطالبه) وکړي. نو قاضي به تقسيم کوي. کنې نه به يې کوي. دا په قدوري کي ذکر سوی دی؛ ځکه چي صاحبِ کثير (زياتي

حصې والا) ته په طلب سره فایده رسيږي چي هغه له خپل حصې څخه پوره نفع اخیستلای سي. نو ځکه د هغه طلب به معتبر وي، او صاحبِ قلیل (کمي حصې والا) ته په طلب کولو سره فایده نه رسيږي؛ ځکه هغه له خپل حصې څخه هیڅ نفع نه سي اخیستلای. نو ځکه د هغه طلب به معتبر نه وي او د هغه پر مطالبه قاضي تقسیم نه کوي.

② امام جصاص رَحِمَهُ الله فرمايي چي صاحبِ کثیر د تقسیم په طلب کولو سره بل شریک ته د ضرر رسولو اراده کونکی دی؛ ځکه په تقسیم سره صاحبِ قلیل ته ضرر او نقصان رسيږي. نو ځکه د صاحبِ کثیر طلب لره به اعتبار نه وي. او څرنګه چي د صاحبِ قلیل په طلب کي د هغه خپل نقصان دی. نه د صاحبِ کثیر. نو ځکه د هغه طلب به معتبر منل کيږي او پر طلب به يې قاضي تقسیم کوي.

③ حاکم شهید رَحِمَهُ الله فرمايي چي برابره ده د صاحبِ کثیر له طرفه د تقسیم طلب وسي یاد صاحبِ قلیل له طرفه. په دواړو صورتونو کي به قاضي تقسیم کوي؛ صاحب د هدایې رَحِمَهُ الله فرمايي چي د صاحبِ کثیر په صورت کي د حاکم شهید د قول دلیل د اول قول والا دلیل دی، او د صاحبِ قلیل دطلب په صورت کي د هغه د قول دلیل د امام جصاص رَحِمَهُ الله د قول والا دلیل دی.

دا دري قولونه سوه. خو صحیح اول قول دی او په قدوري او داسي نورو متونو کي هم هغه ذکر سوی دی چي د صاحبِ کثیر طلب معتبر دی او د صاحبِ قلیل طلب لغو دی.

## د پورتنۍ مسئلې نور وضاحت

| |
|---|
| وَإِنْ كَانَ كُلٌّ وَاحِدٍ يَسْتَضِرُّ لِصِغَرِهِ او که د حصې د کوچنيوالي [لږوالي] په وجه هر شریک ته ضرر رسيدی لَمْ يَقْسِمْهَا إِلَّا بِتَرَاضِيهِمَا نو قاضي به کور نه تقسیموي مګر د دواړو شریکانو په رضاء سره لِأَنَّ الْجَبْرَ عَلَى الْقِسْمَةِ لِتَكْمِيلِ الْمَنْفَعَةِ ځکه چي پر تقسیم مجبوره کول د منفعت د پوره کولو لپاره وه وَفِي هٰذَا تَفْوِيتُهَا او په دې صورت کي خو د منفعت فوتول سته وَيَجُوزُ بِتَرَاضِيهِمَا ها! د دواړو په رضاء سره تقسیم جائز دی لِأَنَّ الْحَقَّ لَهُمَا ځکه چي حق د همدوی دی وَهُمَا أَعْرَفُ بِشَأْنِهِمَا او دوی دواړو خپل په شان او حالت ښه خبر دي أَمَّا الْقَاضِي فَيَعْتَمِدُ الظَّاهِرَ او پاته سو قاضي به فقط پر ظاهر حالت اعتماد کوي. |

**اللغات:** ﴿تـراضی﴾ د تفاعل د باب مصدر دی: یو تر بله راضي کېدل (د دواړو شریکانو راضي کېدل). ﴿تفویت﴾ د تفعیل د باب مصدر دی: فوت کول (فوتول). ﴿شأن﴾ حالت.

**تشریح:** دعبارت حاصل دا دی چي که مشترک کور دومره تنګ او کوچنی وي چي که هغه تقسیم کړی سي، نو دیوه شریک لپاره هم داستعمال او نفع اخیستلو قابل نه پاتیږي. نو په دې صورت کي چي تر څو دواړه شریکان په تقسیم راضي نه سي، تر هغه وخته به قاضي دیوه پر مطالبه تقسیم نه کوي؛ ځکه چي یو شریک هغه وخت پر تقسیم مجبورول کیږي کله چي په هغه کي دبل شریک هم نفع وي، او دلته له سره نفع ختمیږي. نو ځکه د دواړو د راضي کېدلو پر مهال به تقسیم کیږي: ځکه چي حق د همدوی دی. لهذا کله چي دوی دواړه راضي سي نو قاضي به تقسیم کوي. که څه هم دوی ته نقصان کوي هغه دوی پوه سه نفع او نقصان یې پوه سه! د قاضي کار خو پر ظاهر اعتماد او فیصله کول دي. او دلته دواړه شریکان ظاهراً په تقسیم راضي او خوشاله دي. نو ځکه قاضي به په دې صورت کي تقسیم کوي.

## د سامان د تقسیم صورت او حکم

قَالَ: وَيَقْسِمُ الْعُرُوْضَ إِذَا كَانَتْ مِنْ صِنْفٍ وَاحِدٍ فرمایي: او قاضي به سامان تقسیموي کله چي هغه د یوه قسم وي لِأَنَّ عِنْدَ اتِّحَادِ الْجِنْسِ يَتَّحِدُ الْمَقْصُوْدُ ځکه چي د جنس د یو والي په وخت کي مقصد هم یو وي فَيَحْصُلَ التَّعْدِيْلُ فِي الْقِسْمَةِ وَالتَّكْمِيْلُ فِي الْمَنْفَعَةِ لهذا په تقسیم کي برابري او په منفعت کي تکمیل به حاصل سي وَلَا يَقْسِمُ الْجِنْسَيْنِ بَعْضَهُمَا فِي بَعْضٍ او قاضي به دوه جنسه بعضي په بعضو کي نه تقسیموي لِأَنَّهُ لَا اخْتِلَاطَ بَيْنَ الْجِنْسَيْنِ ځکه چي په دوو جنسونو کي اختلاط نه کیږي فَلَا تَقَعُ الْقِسْمَةُ تَمْيِيْزًا بَلْ تَقَعُ مُعَاوَضَةً نو ځکه دلته به تقسیم تمییز [د حصو جلا کول] واقع نه سي بلکي معاوضه [مبادله] به واقع سي وَسَبِيْلُهَا التَّرَاضِيْ دُوْنَ جَبْرِ الْقَاضِيْ او د معاوضې لاره رضاء ده [چي شریکان به په هغه راضي وي]. نه د قاضي جبر [اکراه].

**اللغات:** ﴿عروض﴾ جمع د عرضٌ دهٔ: سامان. ﴿صنف﴾ قسم. ﴿تعدیل﴾ د تفعیل د باب مصدر دی: برابري-کول.

**تشریح:** **صورت د مسئلي:** دا دی که دیوه صنف او یوه جنس والا شی (مثلاً شل منه غنم) د څو شریکانو تر مینځ مشترک وي، نو په دې صورت کي به قاضي صرف دیوه شریک پر طلب هم تقسیم کوي. او که یو شریک د تقسیم منکر وي چي زه تقسیم نه کوم، نو قاضي به هغه جبراً راضي کوي: ځکه کله چي مشترک شی ټوله دیوه جنس والا سامان دی (ټوله غنم دي)، نو د ټولو مقصد یو دی هیڅ فرق پکښې نسته او په وزن کي شریکانو ته برابر، برابر رسیږي. نو ځکه که یو راضي نه وي. نو قاضي به جبراً تقسیم کوي.

لېکن که مشترک شی دوه جنسو والا وي. مثلاً لس تانه کپړې او شل منه غنمه د دوو شریکانو تر مینځ مشترک وي. نو په دې صورت کې که یو شریک په تقسیم راضي نه وي نو قاضي هغه پر تقسیم نه سي مجبوره کولای؛ ځکه کله چې سامان دوه جنسه والا وي نو یو د بل سره ګډ نه وي چې په تقسیمولو کې یې مشکل راځي. نو دلته قاضي داسي تقسیم نه سي کولای چې یوه شریک ته لس تانه کپړې ورکړي او بل شریک ته شل منه غنم ورکړي. او که داسي وکړي نو دا تقسیم د حصو جلا کول نه سوه (چې هر یوه ته یې خپله حصه ور جلا کړه). بلکې د یوه شریک حصه د بل شریک په حصې سره بدلول (مبادله) سوه. یعني ګواکې یوه شریک ته د کپړې په بدله کې غنم ورکول سوه او بل ته د غنمو په بدله کې کپړه ورکول سوه. او د مبادلې او معاوضې په صورت کې د دواړو شریکانو رضاء ضروري ده. نو ځکه دلته د یوه شریک د نا راضی په صورت کې تقسیم نه سي کولای. بلکې هغه وخت به قاضي تقسیم کوي کله چې دوی دواړه په تقسیم راضي او خوشاله وي.

اُصول: په کوم صورت کې چې افراز او تمییز وي (یعني خپله حصله را جلا کول کیږي. مثلاً یو کیلي شی [غنم] د دوو کسانو تر مینځ مشترک وي). نو هلته د دواړو شریکانو ضاء ضروري نه ده. صرف د یوه شریک پر مطالبه به تقسیم کیږي. او چیري چې د مبادلې صورت وي. هلته د دواړو رضاء ضروري ده (لکه مخکي چې هم دا خبره ذکر سوه).

**قاضي به کوم څه تقسیموي یا نه تقسیموي (په اجناسِ مختلفه کې د بالجبر تقسیم کولو ممانعت)**

وَيَقْسِمُ كُلَّ مَكِيْلٍ وَمَوْزُوْنٍ كَثِيْرًا أَوْ قَلِيْلٍ او قاضي به تقسیموي هر وزني او کیلي شی برابره ده هغه زیات وي او که کم وي وَالْمَعْدُوْدِ الْمُتَقَارِبِ وَتِبْرِ الذَّهَبِ وَالْفِضَّةِ وَالْحَدِيْدِ وَالنُّحَاسِ وَالْإِبِلِ بِانْفِرَادِهَا وَالْبَقَرِ وَالْغَنَمِ او [قاضي به تقسیموي] معدود متقارب شی او د سرو او سپینو زرو ټوټه او ژړ. [همدارنګه] یوازي اوښان. غویان او پسونه وَلَا يَقْسِمُ شَاةً وَبَعِيْرًا وَبِرْذَوْنًا وَحِمَارًا او نه به تقسیموي پسه او اوښ [سره یو ځای. همدارنګه] آس او خر وَلَا يَقْسِمُ الْأَوَانِيَ او نه به لوښي تقسیموي لِأَنَّهَا بِاخْتِلَافِ الصَّنْعَةِ الْتَحَقَتْ بِالْأَجْنَاسِ الْمُخْتَلِفَةِ ځکه چې د جوړښت د مختلف کېدلو په وجه لوښي د مختلفو جنسو والا شیانو سره لاحق سول وَيَقْسِمُ الثِّيَابَ الْهَرَوِيَّةَ او قاضي به هراتي کپړې تقسیموي لِاتِّحَادِ الصِّنْفِ د نوع د یو والي په وجه.

**اللغات**: ﴿تِبر﴾ ټوټه. ټوکره. ﴿نحاس﴾ ژړ. یو ډول فلز دی. ﴿برذون﴾ د آس یو قسم دی.

﴿أواني﴾ واحد یې آنِیَة دی: لوښی.

**تشريح**: مخکي دا خبره تېره سوې ده چي په اجناسِ متحده کي قاضي جبر کولای سي (يعني که يو شريک په تقسيم نه راضي کيږي او نور راضي وي، نو قاضي هغه مجبوره کولای سي). لېکن په اجناس مختلفه کي قاضي د تقسيم لپاره پر چا جبر نه سي کولای، دلته صاحب د هدايې رَحِمَهُ الله همدا صورتونه متفرع کوي چي په وزني، کيلي او معدود متقارب شيانو کي اتحادُ الجنس وي همدارنګه د سپينو او سرو زرو په ټوټو او د اُوسپني او ژړو په ټوټو کي اتحادِ الجنس وي، نو ځکه قاضي هغوی په جبر او إکراه سره هم تقسيمولای سي، همدا حکم د يوازي اوښانو يا د يوازي غواوو او پسونو دئ (چي مشترک مال فقط اوښان، يا غواوي، يا پسونه وي). د دوی په تقسيم کي هم جبر کېدای سي؛ ځکه په دې صورت کي تفاوت ېيخي کم وي، خو که چيري پسه او اوښ يو ځای سره مشترک وي، يا آس او خر سره مشترک وي، نو ښکاره خبره ده چي دلته د اختلافِ جنس په وجه تفاوت هم ډېر زيات (فاحش) دی، نو ځکه دلته جبراً قاضي تقسيم نه سي کولای (ځکه که اوښ يوه شريک ته ورکړي او پسه بل شريک ته ورکړي، نو دا د خپلي حصې اخيستل نه سوه بلکي د خپلي حصې په بدله کي د بل شريک د حصې اخيستل سوه کوم ته چي مبادله او معاوضه وايي. او په مبادله کي جبر نه جاري کيږي لکه مخکي چي ذکر سوه).

او همداسي په لوښو کي هم قاضي جبراً تقسيم نه سي کولای؛ ځکه لوښي که څه هم صورتاً د يوه جنس معلوميږي، خو د صنعت (جوړښت) او نقش ونګار په بدلون سره هغوی د مختلف الأجناس شيانو په درجه ګرځول سوي دي، چي په هغوی کي جبر نه سي کېدای، خو څرنګه چي د هرات ښار جوړي سوي کپړې به متحد الجنس وې يعني تفاوت به ډېر پکښي کم وو (لکه اوسنی کپړې چي د ټوله تان په کپړه کي څه تفاوت نه وي)، نو ځکه هغه کپړې جبراً تقسيمول کېدای سي.

## د يوې کپړې د تقسيم حکم

وَلَا يَقْسِمُ ثَوْبًا وَاحِدًا او قاضي به يوه کپړه نه تقسيموي لِاشْتِمَالِ الْقِسْمَةِ عَلَى الضَّرَرِ ځکه چي دا تقسيم پر ضرر [نقصان] مشتمل دی إِذْ هِيَ لَا تَتَحَقَّقُ إِلَّا بِالْقَطْعِ ځکه چي [دلته] له پرېکولو څخه بغير تقسيم نه متحقق کيږي وَلَا ثَوْبَيْنِ إِذَا اخْتَلَفَتْ قِيمَتُهُمَا او نه [به قاضي تقسيموي] دوې کپړې که د هغوی قيمت سره مختلف وي لِمَا بَيَّنَّا د هغه دليل په وجه کوم چي موږ بيان کړی بِخِلَافِ ثَلَاثَةِ أَثْوَابٍ إِذَا جُعِلَ ثَوْبٌ بِثَوْبَيْنِ په خلاف د دريو کپړو کله چي يوه کپړه د دوو کپړو په بدله کي وګرځول سي أَوْ ثَوْبٌ وَرُبُعُ ثَوْبٍ بِثَوْبٍ وَثَلَاثَةِ أَرْبَاعِ ثَوْبٍ يا يوه کپړه او د يوې کپړې څلورمه حصه د يوې کپړې او د يوې کپړې د دريو څلورمو حصو په بدله کي وګرځول سي [يا په بله وينا دا چي يو

طرف ته يوه کپړه او ربع د کپړې ورتاکل سي او بل طرف ته يوه کپړه او درې ربع د کپړې ورتاکل سي] لِأَنَّهٗ قِسْمَةُ الْبَعْضِ دُوْنَ الْبَعْضِ ځکه چي دا د بعض دون البعض تقسيم دی [يعني په دې صورت کي يې بعض کپړه تقسيم کړه او بعضې يې نه کړه] وَذٰلِكَ جَائِزٌ او دا جائز دي.

**اللغات**: ﴿اشتمال﴾ دافتعال دباب مصدر دی: مشتمل کېدل. ﴿ضرر﴾ نقصان.

**تشريح**: **مسئله**: دا ده که د دوو کسانو ترمينځ مثلاً يو څادر (پټو) يا مثلاً يو لنګ مشترک وي. نو قاضي جبراً هغه نه سي تقسيمولای؛ ځکه چي له پرېکولو او دوه ځايه کولو څخه بغير د هغه تقسيم نه سي کېدای او داسي تقسيم د دواړو لپاره مضر دی. فلا يقسم. همدارنګه که دوې کپړې د دوو کسانو ترمينځ مشترکي وي لېکن د هغوی قيمت سره مختلف وي (يعني ديوې قيمت تر بلې ګران وي). نو هغوی هم قاضي جبراً نه سي تقسيمولای چي ګرانه کپړه يو شريک ته ورکړي او ارزانه والا بل شريک ته ورکړي؛ ځکه د قيمت د اختلاف په صورت کي يوه ته خامخا ضرر او تاوان رسيږي. او بل دا چي دلته د مبادله او معاوضه صورت جوړيږي (چي مخکي يې وضاحت تېر سوی دی)، او په مبادله کي جبر نه چليږي.

بخلاف ثلاثة أثواب إلخ: ها! که چيري درې کپړې وي، نو د هغوی په تقسيم کي قاضي جبر کولای سي. مثلاً دوه څادران (پټوان) دي او بله سدرۍ يا کرتۍ ده. نو يوه شريک ته دي سدرۍ ورکړي او بل ته دي دوه څادران ورکړي يا برعکس، په دې توګه ديوه هم زيات نقصان نه کيږي. نو ځکه په تقسيم کي يې قاضي جبر کولای سي.

يا مثلاً درې کپړې دي چي دوه څادران دي او يوه سدرۍ ده، په څادرانو کي يو ارزانه قيمت والا او بل ګران قيمته دی، نو يو څادر دي يوه ته ورکړي او بل څادر دي و بل ته ورکړي. او سدرۍ دي په دواړو کي مشترکه ولري. چي دوی يې په نوبت. نوبت استعمالوي. يا سدرۍ دي خرڅه کړي او هر شريک دي خپله حصه واخلي، کوم شريک ته چي قاضي ګران قيمته څادر ورکړی دی. هغه ته دي په سدرۍ کي يوه حصه ورکړي او کوم يوه ته چي يې ارزانه قيمته څادر ورکړی دی هغه ته دي دوې حصې ورکړي. نو په دې توګه به هر يوه ته برابره. برابره حصه ورسيږي. لنډه دا چي څرنګه دلته مساوات او برابري کېدلای سي. نو ځکه قاضي جبراً تقسيم کولای سي. د عبارت مطلب همدا دی.
(اثمار الهدايه ج: ۱۲، ص: ۱۶۱)

قسمة البعض دون البعض: د دې مطلب دا دی چي د دريو کپړو په صورت کي د بعضي تقسيم کيږي او د بعضي تقسيم نه کيږي. لکه په پورتني مثال کي چي د څادرانو تقسيم وسو (چي يوه څادر يې يوه ته

ورکړې او بل څادر يې...)، او د سدرې تقسيم نه وسو بلکې د دواړو تر مينځ يې مشترکه ولرل او د حصې په اعتبار سره يې دواړه پکښې شريکان کړه (دوې حصې يې يوه ته ورکړې او يوه حصه يې بل ته).

## د غلامانو او جواهراتو د تقسيم حکم

وَقَالَ أَبُوحَنِيفَةَ: لَايَقْسِمُ الرَّقِيْقَ وَالْجَوَاهِرَ او امام صاحب رَحِمَهُ الله فرمايي: چې قاضي به غلامان او جواهر نه تقسيموي لِتَفَاوُتِهِمَا د دوی د تفاوت په وجه [چې يو غلام له بل غلام څخه متفاوت وي] وَقَالَا●: يَقْسِمُ الرَّقِيْقَ او صاحبين رَحِمَهُمَا الله فرمايي: چې غلامان به تقسيموي لِاتِّحَادِ الْجِنْسِ د جنس د يو والي په وجه [چې ټوله په انسانيت کې سره يو دي] كَمَا فِي الْإِبِلِ وَالْغَنَمِ وَرَقِيْقِ الْمَغْنَمِ لکه په اوښانو، پسونو او د غنيمت په غلامانو کې چې کيږي وَلَهُ: أَنَّ التَّفَاوُتَ فِي الْآدَمِيِّ فَاحِشٌ لِتَفَاوُتِ الْمَعَانِي الْبَاطِنَةِ د امام صاحب رَحِمَهُ الله دليل دا دی: چې د باطني معناوو د تفاوت په وجه په انسان کې تفاوت ډېر زيات دی [يا په بله وينا دا چې د باطني خوبونو په اعتبار سره د دوو انسانانو تر مينځ بيخي زيات توپير وي] فَصَارَ كَالْجِنْسِ الْمُخْتَلِفِ نو دا د مختلف جنس په څېر سو [يعني لکه دوه غلامان چې د مختلف جنس والا سول] بِخِلَافِ الْحَيَوَانَاتِ په خلاف د حيوانانو لِأَنَّ التَّفَاوُتَ فِيهَا يَقِلُّ عِنْدَ اتِّحَادِ الْجِنْسِ ځکه د جنس د يو والي [يعني د متحد الجنس حيوانانو] پر مهال په دوی کې تفاوت کم وي أَلَا تَرَى أَنَّ الذَّكَرَ وَالْأُنْثَى مِنْ بَنِي آدَمَ جِنْسَانِ وَمِنَ الْحَيَوَانَاتِ جِنْسٌ وَاحِدٌ آيا ته نه ګورې چې د انسان نر او ماده دوه [جلا] جنسونه دي او د حيوانانو نر او ماده يو جنس دی.

**اللغات:** ﴿رقيق﴾ مملوک انسان، غلام. قد يستوي فيه الواحد والجمع، فيقال: ليس في الرَّقيق صدقة أي في عَبِيد الخدمة (معجم لغة الفقهاء، معجم الوسيط)، وقد يذكر بلفظ جمعه وهو أَرِقَّاء. ﴿جواهر﴾ جمع د جَوْهَرٌ: قيمتي کاڼي (ډبره) چې له هغه څخه نفع منده شيان (مثلاً غميان او داسي نور) جوړيږي. ﴿مغنم﴾ غنيمت. د غنيمت مال، نفع. ﴿فاحش﴾ ډېر ښکاره او څرګند. ډېر زيات.

**تشريح:** **مسئله:** دا ده چې د امام صاحب رَحِمَهُ الله په نېز قاضي څو غلامان يا جواهر جبراً نه سي تقسيمولای. صاحبين رَحِمَهُمَا الله فرمايي چې غلامان جبراً تقسيمول کېدای سي؛ ځکه چې په

---

● القول الراجح: قول أبي حنيفة؛ لأن قوله قول المتون، كما في الدر المختار (ج:٥، ص:١٨٣)، و ملتقى الأبحر (ج:٢، ص:٢٠). [القول الراجح ج:٢، ص:٢٧٨]

هغوی کې اتحاد الجنس وي، د صاحبینو دلیل قیاس دی چې څرنګه په یوازې اوښانو یا پسونو یاد مال غنیمت په غلامانو کې د قاضي جبر جاري کیږي، همداسې به دلته هم جاري کیږي.

د امام صاحب رَحِمَهُ اللهُ د دلیل حاصل دا دی چې بېشکه په غلامانو کې اتحاد الجنس سته. لېکن د انسان باطني اوصاف او کمالات یو له بل څخه ډېر جلا وي، همدا وجه ده چې د باطني خوبونو او کمالاتو د تفاوت په وجه انسان د مختلف الأجناس شیانو په درجه ګرځول سوی دی، لهذا کله چې انسانان د کمالات باطنیه وو په وجه متفاوت دي، نو جبراً به د دوی تقسیم نه کیږي.

بخلاف الحیوانات إلخ: دا د صاحبینو د قیاس جواب دی. حاصل یې دا دی چې انسان پر حیواناتو قیاسول صحیح نه دي؛ ځکه د متحد الجنس حیوانانو په صورت کې تفاوت بیخي کم وي چې هغه برداشت کېدای سي، همدا وجه ده چې فقهاء د حیوان نر او ماده یو جنس ګڼي، حال دا چې د انسان مذکر او مؤنث دوه جلا جنسونه ګڼل سوي دي، لنډه دا چې کله په یوه کې تفاوت دی او په بل کې نسته، نو یو پر بل قیاسول هم صحیح نه دي.

## د پورتنی مسئلې نور وضاحت

بِخِلَافِ الْمَغَانِمِ لِأَنَّ حَقَّ الْغَانِمِينَ فِي الْمَالِيَّةِ په خلاف د غنیمتونو ځکه چې د غانمینو حق صرف په مالیت کې دی حَتَّى كَانَ لِلْإِمَامِ بَيْعُهَا وَقِسْمَةُ ثَمَنِهَا تر دې چې امام ته د غنیمتونو د خرڅولو او د هغوی د قیمت د تقسیمولو اختیار سته وَهُنَا يَتَعَلَّقُ بِالْعَيْنِ وَالْمَالِيَّةِ جَمِيعًا او دلته [حق] د عین او مالیت دواړو سره متعلق دی فَافْتَرَقَا لهذا دواړه [صورتونه] سره جلا سوه وَأَمَّا الْجَوَاهِرُ فَقَدْ قِيلَ: إِذَا اخْتَلَفَ الْجِنْسُ او پاته سوه جواهر نو ویل سوي دي: چې کله جنس سره مختلف وي لَا يَقْسِمُ نو قاضي به یې نه تقسیموي كَاللَّآلِئِ وَالْيَوَاقِيتِ لکه ملغلري او یاقوت وَقِيلَ: لَا يَقْسِمُ الْكِبَارَ مِنْهَا او ویل سوي دي: چې غټ جواهر به نه تقسیموي لِكَثْرَةِ التَّفَاوُتِ د تفاوت د زیاتوالي په وجه [چې غټ جواهرات یو له بل څخه زیات متفاوت وي] وَيَقْسِمُ الصِّغَارَ او کوچني جواهر به تقسیموي لِقِلَّةِ التَّفَاوُتِ د تفاوت د کموالي په وجه وَقِيلَ: يَجْرِي الْجَوَابُ عَلَى إِطْلَاقِهِ او ویل سوي دي: چې جواب پر خپل اطلاق جاري کیږي [حکم مطلق پاتېږي] لِأَنَّ جَهَالَةَ الْجَوَاهِرِ أَفْحَشُ مِنْ جَهَالَةِ الرَّقِيقِ ځکه چې د جواهرو جهالت د غلامانو له جهالت څخه ډېر زیات دی أَلَا تَرَى أَنَّهُ لَوْ تَزَوَّجَ عَلَى

لُؤْلُؤَةٍ أَوْ يَاقُوتَةٍ أَوْ خَالَعَ عَلَيْهِ آيا ته نه ګورې که څوک پر ملغلره يا پر ياقوت نکاح وکړي يا پر هغه خلع وکړي [يعني په نکاح يا خلع کي ياقوت يا ملغلره وټاکي] لَا تَصِحُّ التَّسْمِيَةُ نو تسميه [په مهر او خلع کي دديې شيانو ټاکل] نه صحيح کيږي وَيَصِحُّ ذٰلِكَ عَلٰى عَبْدٍ او دا [نکاح او خلع] پر غلام صحيح کيږي فَأَوْلٰى أَنْ لَا يُجْبَرَ عَلَى الْقِسْمَةِ نو غوره همدا ده چي [د جواهرو] پر تقسيم به نه مجبورول کيږي.

**اللغات:** ﴿مغانم﴾ جمع د مَغْنَم ده: غنيمت، دغنيمت مال. ﴿غانم﴾ غنيمت حاصلونکی. ﴿لآلی﴾ جمع د لُؤْلُؤ ده: ملغلري. ﴿يواقيت﴾ جمع د يَاقُوت ده: يو قيمتي ډبره. ﴿خالع﴾ د مفاعلې د باب ماضي ده: خلع کُول.

**تشريح:** صاحبينو رَحِمَهُمَا الله دغنيمت پر غلامانو هم قياس کړی وو او د غلامانو تقسيم يې صحيح ګرځولی وو، په دې عبارت کي صاحب دهدايې رَحِمَهُ الله دا قياس رد کوي فرمايي چي ستاسو دا قياس صحيح نه دی؛ ځکه په غنيمت کي فقط په ماليت کي دغانمينو حق وي، همدا وجه ده چي امام دغنيمتي غلامانو د خرڅولو او دغانمينو تر مينځ دهغوی د قيمتونو د تقسيمولو حق لري، او د شراء والا په صورت کي په ماليت او عين دواړو کي د شريکانو حق وي، نو دواړي مسئلې يو له بل څخه جلا دي، لهذا کله چي دواړي يو تر بله جلا دي، نو يوه پر بلي قياسول هم صحيح نه دي.

فأمّا الجواهر إلخ: مخکي ذکر سوه چي د امام صاحب رَحِمَهُ الله په نيز په جواهرو کي هم د تفاوت په وجه جبراً تقسيم نه سي کېدای، اوس له دې ځايه تفصيلاً د هغه احکام بيانول کيږي:

① ... که چيري جواهر مختلف الأجناس وي، نو قاضي جبراً هغوی نه سي تقسيمولای، لکه ملغلري، ياقوت او داسي نور مختلفُ الأجناس دي او جبراً د دوی تقسيم صحيح نه دی.

② ... څرنګه چي په غټو جواهراتو کي تفاوت زيات وي، نو ځکه د هغوی تقسيم جبراً نه سي کېدای او په کوچنيو جواهراتو کي کم تفاوت وي، نو ځکه هغوی جبراً تقسيمول کېدای سي.

③ ... جواهرات برابره ده کوچني وي او که غټ، مطلقاً د هغوی جبراً تقسيم نه سي کېدلای: ځکه چي د جواهراتو تفاوت د غلامانو له تفاوت څخه زيات دی، او د دې وجه دا ده چي که يو څوک د ملغلرو يا د ياقوتو په بدله کي نکاح وکړي يعني په مهر کي ملغلري يا ياقوت وټاکي، نو د هغه تسميه يعني په مهر کي د دې شيانو ټاکل صحيح نه دي بلکي مهرِ مثل پر واجب دی. ليکن که غلام په مهر کي وټاکي او نکاح وکړي، نو تسميه صحيح ده. لهذا کله چي په جواهراتو کي تر غلامانو زيات تفاوت سته او غلامان جبراً نه سي تقسيمول کېدای، نو جواهرات خو به په درجه اولیٰ نه تقسيمول کيږي.

## د حمام، ژرندي او داسي نورو تقسيم

قَالَ: وَلَا يُقْسَمُ حَمَّامٌ وَلَا بِئْرٌ وَلَا رَحًى إِلَّا بِتَرَاضِي الشُّرَكَاءِ فرمايي: او حمام، څاه او ژرنده به نه تقسيمول کيږي مګر د شريکانو په رضاء سره [چي ټول به تقسيم راضي وي] وَكَذَا الْحَائِطُ بَيْنَ الدَّارَيْنِ او همدارنګه د دوو کورونو تر مينځ دېوال لِأَنَّهَا تَشْتَمِلُ عَلَى الضَّرَرِ فِي الطَّرَفَيْنِ ځکه چي دا تقسيم د دواړو طرفينو ضرر [تاوان] لره شامل دى إِذْ لَا يَبْقَى كُلُّ نَصِيبٍ مُنْتَفَعًا بِهِ انْتِفَاعًا مَقْصُودًا ځکه چي [د دې شيانو د تقسيمولو په صورت کي] هره حصه د مقصودي نفع اخيستلو قابل نه پاتيږي [يعني د هر يوه له حصې څخه يو فايده نه سي اخيستلای] فَلَا يَقْسِمُ الْقَاضِي نو ځکه قاضي به يې نه تقسيموي بِخِلَافِ التَّرَاضِيْ په خلاف د شريکانو د رضاء [والا صورت چي ټول په تقسيم راضي وي] لِمَا بَيَّنَّا د هغه دليل په وجه کوم چي موږ بيان کړی.

**اللغات:** ﴿حمام﴾ غسل خانه. ﴿بئر﴾ څاه. ﴿رحى﴾ ژرنده. ﴿يتراضى﴾ د تفاعل د باب مضارع ده: يو تر بله راضي کېدل (د دواړو راضي کېدل)، ﴿حائط﴾ دېوال. جمع: حِيْطَان.

**تشريح:** د عبارت حاصل دا دی چي تر تقسيم وروسته حمام، څاه، ژرنده او داسي نور د نفع اخيستلو قابل نه پاتيږي، نو ځکه د شريکانو له خوښې او رضاء څخه بغير قاضي دا شيان جبراً نه سي تقسيمولای، همدارنګه هغه دېوال کوم چي د دوو کورونو تر مينځ حائل وي. هغه به هم قاضي جبراً نه تقسيموي؛ ځکه چي په دې کي هم د دواړو شريکانو نقصان دی. خو که شريکان په تقسيم راضي سي، نو قاضي به دا ډول شيان هم تقسيموي، ځکه چي حق د همدوی دی او دوی په خپل نفع ونقصان له قاضي څخه زيات خبر دي. او کله چي خپله دوی په خپل نقصان راضي دي او تقسيم غواړي، نو قاضي به حتماً تقسيم کوي.

## د څو مشترکه کورونو د تقسيم حکم

قَالَ: وَإِذَا كَانَتْ دُوْرٌ مُشْتَرَكَةً فِي مِصْرٍ وَاحِدٍ فرمايي: او کله چي په يوه ښار کي څو مشترک کورونه وي قَسَمَ كُلَّ دَارٍ عَلَى حِدَتِهَا فِي قَوْلِ أَبِي حَنِيْفَةَ نو د امام صاحب رَحِمَهُ الله د قول مطابق به قاضي هر کور جلا تقسيموي وَقَالَا: إِنْ كَانَ الْأَصْلَحُ لَهُمْ قِسْمَةَ بَعْضِهَا فِي بَعْضٍ او صاحبين رَحِمَهُمَا الله فرمايي چي که بعضي د بعضي سره يو ځای تقسيمول د شريکانو په حق کي غوره وي قَسَمَهَا نو

قاضي به يې تقسيموي وَعَلٰى هٰذَا الْخِلَافِ الْأَقْرِحَةُ الْمُتَفَرِّقَةُ الْمُشْتَرَكَةُ او پر همدغه اختلاف بيلابيلي مشترکي ځمکي دي لَهُمَا: أَنَّهَا جِنْسٌ وَاحِدٌ اسْمًا وَصُورَةً نَظَرًا إِلٰى أَصْلِ السُّكْنٰى د صاحبينو رَحِمَهُمَا الله دليل دا دی: چي اصل او سېدلو ته په کتلو سره دا [مشترک ځايونه] د نوم او صورت دواړو په اعتبار سره يو جنس دي وَأَجْنَاسٌ مَعْنًى نَظَرًا إِلٰى اخْتِلَافِ الْمَقَاصِدِ وَوُجُوهِ السُّكْنٰى او د مقاصدو او د اوسېدلو د صوررتونو اختلاف ته په کتلو سره دا معناً مختلفه جنسونه دي فَيُفَوَّضُ التَّرْجِيحُ إِلَى الْقَاضِيْ نو ترجيح به قاضي ته سپارل کيږي.

**اللغات:** ﴿دُور﴾ جمع د دَارٌ ده: کور. ﴿أقرحة﴾ جمع د قَرَاح ده: خالي ځمکه. چي هيڅ وداني او درختي پر نه وي بلکي د کښت و کروندې لپاره خالي کړل سوې وي. ﴿سکنی﴾ اوسېدنه، استوګنه.

**تشريح: صورت د مسئلې:** دا دی که په يوه ښار کي څو کورونه د څو کسانو تر مېنځ مشترک وه کوم چي بېلا بېل وه. مثلاً درې کونه د دريو کسانو تر مېنځ مشترک وه چي د هر يوه قيمت او ځای جلا وو. مثلاً يو کور مسجد ته نژدې وو. بل د کلي څخه لرې ليري وو او داسي نور. نو د هغوی تقسيم به څنګه کيږي. امام صاحب رَحِمَهُ الله فرمايي چي هر کور به جلا. جلا تقسيمول کيږي (د دې مطلب دا دی چي هر يوه ته به جلا يو کور نه ورکول کيږي. بلکي په دريو سره کورونو کي به هر يوه ته حصه ورکول کيږي او د دريو سره کورونو قيمت به اندازه کيږي او پر ټولو به برابر تقسيمول کيږي. دې تقسيم ته قسمتِ فرد هم وايي).

صاحبين رَحِمَهُمَا الله فرمايي چي که د ټولو کورونو په يو ځای تقسيمولو (قسمة البعض فى البعض) کي شريکانو ته څه ضرر او تکليف نه لاحقيږي. نو ټوله به يو ځای (مجموعتاً) تقسيمول کيږي (د قسمة البعض فى البعض يا مجموعتاً تقسيم مطلب دا دی چي هر شريک ته به جلا يو. يو کور ورکول کيږي. دې تقسيم ته قسمتِ جمع هم وايي)، همدغه اختلاف په هغه مشترکو خالي ځمکو کي هم دی کوم چي په جلا. جلا ځايونو کي وي. يعني د امام صاحب رَحِمَهُ الله په نيز به هره ځمکه جلا. جلا تقسيمول کيږي او د صاحبينو رَحِمَهُمَا الله به نيز به ټوله يو ځای (مجموعتا) تقسيمول کيږي.

د صاحبينو دليل دا دی چي استوګني او سکنی ته په کتلو سره خو ټوله کورونه يو ډول معلوميږي يعني هر يوه ته دَار ويل کيږي او د ټولو مقصد يو دی چي د استوګني لپاره دي. نو په دې اعتبار سره ټوله کورونه يو جنس دي. نو بايد هر شريک ته يو. يو کور ورکول سي. لېکن مقاصدو او د استوګني اسبابو ته په کتلو سره کورونه يو له بل څخه بېل او جلا دي يعني په يوه کي سهوليات کم او

په بل کي زيات دي، يو مسجد يا بازار ته نژدې او بل بيا ليري دی (په همدې وجه يې په قيمتونو کي تفاوت دی)، نو په دې اعتبار سره چي وګورې هر کور د جلا، جلا جنس کيږي، نو بايد شريکانو ته په هر، هر کور کي حصه ورکول سي، لنډه دا چي په څو مشترکو کورونو کي د اتحادُ الجنس اړخ هم سته او د اختلافُ الجنس اړخ هم سته، نو ځکه مو‌ږ د هغوی د تقسيم کار د قاضي رايې ته سپارو، هغه چي کومه طريقه مناسبه وګڼي هغه دي اختيار کړي او د دوی تر مينځ دي تقسيم وکړي.

## په پورتنۍ مسئله کي د امام صاحب رَحِمَهُ الله دليل

وَلَهُ: أَنَّ الِاعْتِبَارَ لِلْمَعْنٰى او د امام صاحب رَحِمَهُ الله دليل دا دی چي اعتبار معنیٰ لره دی وَهُوَ الْمَقْصُودُ او همدا معنیٰ مقصوده وي وَيَخْتَلِفُ ذٰلِكَ بِاخْتِلَافِ الْبُلْدَانِ وَالْمَحَالِّ وَالْجِيرَانِ وَالْقُرْبِ إِلَى الْمَسْجِدِ وَالْمَاءِ اِخْتِلَافًا فَاحِشًا او هغه [معنی] د ښارونو، محلو او همسايه ګانو په اختلاف سره او مسجد او اوبو ته د نژدېکت په اعتبار سره ډېر زيات ته مختلف کيږي فَلَا يُمْكِنُ التَّعْدِيلُ فِي الْقِسْمَةِ نو په تقسيم کي به برابري کول ممکن نه وي وَلِهٰذَا لَا يَجُوزُ التَّوْكِيلُ بِشِرَاءِ دَارٍ په همدې وجه د يو کور رانيولو وکيل جوړول صحيح نه دي وَكَذَا لَوْ تَزَوَّجَ عَلٰى دَارٍ او همدارنګه که پر يو کور نکاح وکړي [يعني په مهر کي کور وټاکي] لَا تَصِحُّ التَّسْمِيَةُ نو تسميه [په مهر کي ټاکل] نه صحيح کيږي كَمَا هُوَ الْحُكْمُ فِيهِمَا فِي الثَّوْبِ لکه څرنګه چي په کپړه کي هم د دې دواړو دغه حکم دی بِخِلَافِ الدَّارِ الْوَاحِدَةِ إِذَا اخْتَلَفَتْ بُيُوتُهَا په خلاف د يوه کور کله چي د هغه خوني [کمرې] سره مختلفه وي لِأَنَّ فِي قِسْمَةِ كُلِّ بَيْتٍ عَلٰى حِدَةٍ ضَرَرًا ځکه چي د هري خوني په جلا تقسيمولو کي ضرر [نقصان] دی [چي هر شريک ته په هره خونه کي حصه ورکول سي] فَقُسِمَتِ الدَّارُ قِسْمَةً وَاحِدَةً نو ځکه کور به په يوه تقسيم سره تقسيمول کيږي [يعني هر شريک ته به يوه، يوه خونه ورکول کيږي].

**اللغات:** ﴿المحالّ﴾ جمع د محلةٌ ده: کلي او محلنه، ﴿جيران﴾ جمع د جَارٌ ده: همسايه، ﴿تعديل﴾ برابري کول، دوې حصې سره برابرول، التعديل: برابري.

**تشريح:** په دې عبارت کي صاحب د هدايې د امام صاحب رَحِمَهُ الله دليل ذکر کوي، حاصل يې دا دی چي په معاملاتو کي د الفاظو اعتبار نه کيږي، بلکي معانيو لره اعتبار وي او معاني مقصودوي، او موږ وينو چي د ښار او کلي او محلې په تغيّر او اختلاف، د همسايه ګانو په تغيّر، او مسجد يا اوبو يا

بازار ته د کور نژدې کېدلو په اعتبار سره په کورونو کې ډېر زيات تفاوت (اختلاف فاحش) وي، لهذا په تقسيم کې د مساوات او برابرۍ ثابتولو لپاره به په هر کور کې شريکانو ته خپله حصه ورکول کيږي او داسي به نه کيږي چې هريوه ته يو، يو کور ورکول سبي (په بله وينا دا چې قسمت فرد به کول کيږي نه قسمت جمع)، ځکه د تقسيم مقصد تعديل او تسويه ده او هغه دلته فوتيږي.

ولهذا إلخ: په دې سره د کلي او محلې او داسي نورو په تغير او اختلاف سره د کورو د زيات متفاوت کېدلو علت بيانوي، چې همدا وجه ده که مثلاً زيد بل شوک وکيل جوړ کړي چې ته زما لپاره يو کور رانيسه! نو په دې الفاظو سره هغه وکيل نه جوړيږي، ځکه دلته دا معلومه نه ده چې د غټ کور د رانيولو وکيل يې جوړوي او که د کوچني، يا د ښارني کور د رانيولو وکيل يې جوړوي، که د بهرني کور او داسي نور، د دې هيڅ پته نسته، نو ځکه دا توکيل صحيح نه دی، همدارنګه که خاوند په مهر کې کور وټاکي چې په مهر کې يو کور درکوم، نو دا تسميه (د مهر ټاکل) نه صحيح کيږي يعني کور په مهر کې نه متعين کيږي، بلکې مهر مثل لازميږي، همدا حکم د کپړو هم دی چې په هغوی کې د زيات تفاوت او اختلاف کېدلو په وجه د کپړې رانيولو وکيل جوړول يا کپړه په مهر کې ټاکل صحيح نه دي.

بخلاف الدار إلخ: د دې حاصل دا دی که د يوه کور څو خونې (کمرې) مثلاً دوې خونې دوو کسانو تر مينځ مشترکې وي، نو ښکاره خبره ده چې دلته په تقسيم تفريق (قسمت فرد) کې د شريکانو نقصان دی (يعني په داسي تقسيم کې) چې په هره خونه کې هر شريک ته حصه ورکول سي، نو ځکه د تقسيم جمع (قسمت جمع) صورت به اختيارول کيږي چې هر شريک ته به يوه خونه ورکول کيږي. د دې لپاره چې يوه ته څه ضرر او تکليف لاحق نه سي.

## د پورتني مسئلې نور وضاحت

قَالَ: وَتَقْيِيْدُ الْوَضْعِ فِي الْكِتَابِ إِشَارَةٌ إِلَى أَنَّ الدَّارَيْنِ إِذَا كَانَتَا فِي مِصْرَيْنِ صاحب د هدايې رَحِمَهُ الله فرمايي: چې په قدوري [متن] کې د وضع په مقيد کولو کې [يعني چې هغه ويلي دي چې که دُور مشترکه په مصر واحد کې وي. په دې کې] ودې خبرې ته اشاره ده چې کله دوه مشترک کورونه [دُور مشترکه] په دوو ښارونو کې وي لَا تَجْتَمِعَانِ فِي الْقِسْمَةِ عِنْدَهُمَا نو د صاحبينو رَحِمَهُمَا الله په نيز به هم هغوی په تقسيم کې نه جمع کول کيږي [يعني هر شريک ته به يو. يو کور نه ورکول کيږي] وَهُوَ رِوَايَةُ هِلَالٍ عَنْهُمَا او همدا له صاحبينو رَحِمَهُمَا الله څخه د هلال ابن يحيى روايت دی وَعَنْ مُحَمَّدٍ أَنَّهُ يُقْسَمُ إِحْدَاهُمَا فِي الْأُخْرَى او له امام محمد رَحِمَهُ الله څخه روايت سوی دی چې له دوی څخه به يو په بل کې

تقسیمول کیږي [یا په وبله ویناداچې په تقسیم کې به جمع کول کیږي یعني هر یوه ته به یو، یو کور ورکول کیږي] وَالْبُيُوتُ فِي مَحَلَّةٍ أَوْ مَحَالٍّ تُقْسَمُ قِسْمَةً وَاحِدَةً او دیوې محلې یا څو محلو خونې په یوه تقسیم [قسمتِ جمع] سره تقسیمول کیږي لِأَنَّ التَّفَاوُتَ فِيمَا بَيْنَهَا يَسِيرٌ ځکه چې د دوی په خپل مینځ کې تفاوت کم وي وَالْمَنَازِلُ الْمُتَلَازِقَةُ كَالْبُيُوتِ او سره لګېدلې منزلونه [په حکم کې] داسې دي لکه خونې وَالْمُتَبَايِنَةُ كَالدُّورِ او جلا، جلا منزلونه داسې دي لکه کورونه لِأَنَّهُ بَيْنَ الدَّارِ وَالْبَيْتِ ځکه چې منزل د کور او خونې په مینځ کې وي [یعني نه لکه کور دومره غټ وي چې ډیرې خونې پکښې وي او نه لکه خونه دومره کوچنی وي بلکې څه غټ وي چې پر یوه یا دوو خونو او مطبخ مشتمل وي] عَلَى مَا مَرَّ مِنْ قَبْلُ لکه مخکې چې تېر سوه فَأَخَذَ شَبَهًا مِنْ كُلِّ وَاحِدٍ نو ځکه منزل له هر یوه څخه مشابهت واخیستی.

**اللغات**: ﴿تقييد﴾ د تفعیل مصدر دی: قید لګول، مقید کول. ﴿مصر﴾ ښار، جمع: أَمْصَار. ﴿تفاوت﴾ د تفاعل مصدر دی: فرق، توپیر. ﴿متلازقة﴾ د تفاعل له بابه د مؤنث اسم مفعول صیغه ده: یو د بل سره لګېدلي، سره متصل (سره جوخت). ﴿متباينة﴾ مخکنی صیغه ده: یو له بل څخه جلا، سره جلا.

**تشریح**: د دې حاصل دا دی چې مخکې په متن کې چې کوم د "فی مصر واحد" قید لګول سوی دی، په هغه سره و دې ته اشاره سوې ده چې که دُورِ مشترکه (مشترک کورونه) په دوو ښارونو کې وي، نو په دې صورت کې به د صاحبینو رَحِمَهُمَا الله په نېز هم تقسیمِ تفریق (قسمت فرد) کول کیږي. هلال بن یحیی مصري له صاحبینو رَحِمَهُمَا الله څخه همدغه روایت نقل کړی دی، خو له امام محمد رَحِمَهُ الله څخه یو روایت دا هم دی چې په دې صورت کې به هم تقسیمِ جمع کول کیږي.

والبیوت إلخ: په دې سره دا راښیي چې په یوه یا څو محلو کې د څو خلکو مشترکې خونې (کمرې) وي، نو هغوی به یو ځای (مجموعتا) تقسیمول کیږي (یعني یوه، یوه خونه به هر شریک ته ورکول کیږي)؛ ځکه چې په خونو کې تفاوت ډېر کم وي، او کم (لږ) تفاوت مخل بالمقصود نه وي، لهذا د هغوی په یوه ځای (مجموعتا) تقسیمولو کې څه حرج نسته.

ها! منزل کوم چي له کور (دَار) څخه کوچنی او له خوني څخه غټ وي، د هغه حکم دا دی چي که څو منزلونه سره لګيدلي (څنګ په څنګ) وي، نو هغوی به د بيت (خوني) په حکم ګرځول کيږي او يوه ځای (مجموعتاً) به تقسيمول کيږي، لېکن که منزلونه سره ليري، ليري وي، نو په دې وخت کي به هغوی د دَار په حکم ګرځول کيږي او هريو به جلا، جلا تقسيمول کيږي؛ ځکه کله چي په دوی کي يو صفت د دَار دی او يو د بيت، نو په تقسيم کي د دواړو خيال ساتل ضروري دي؛

## د کور او ځمکي يا د کور او دوکان د تقسيمولو طريقه

قَالَ: وَإِنْ كَانَتْ دَارًا وَضَيْعَةً أَوْ دَارًا وَحَانُوتًا فرمايي: او که چيرې کور او ځمکه يا کور او دوکان وي قُسِمَ كُلٌّ وَاحِدٍ مِنْهُمَا عَلَى حِدَةٍ نو قاضي به له دې دواړو څخه هريو جلا تقسيموي لِاخْتِلَافِ الْجِنْسِ د جنس د بېل والي په وجه قَالَ رَضِيَ اللهُ عَنْهُ: جَعَلَ الدَّارَ وَالْحَانُوتَ جِنْسَيْنِ صاحب د هدايې فرمايي: چي امام قدوري رَحِمَهُ الله کور او دوکان دوه جنسونه ګرځولي دي وَكَذَا ذَكَرَ الْخَصَّافُ او همداسي امام خصاف رَحِمَهُ الله ذکر کړي دي وَقَالَ فِي إِجَارَاتِ الْأَصْلِ: إِنَّ إِجَارَةَ مَنَافِعِ الدَّارِ بِالْحَانُوتِ لَا تَجُوزُ او امام محمد رَحِمَهُ الله د مبسوط په کتابُ الاجارة کي دا ذکر کړي دي: چي د دوکان په بدله کي د کور د منافعو اجاره صحيح نه ده وَهٰذَا يَدُلُّ عَلَى أَنَّهُمَا جِنْسٌ وَاحِدٌ او دا پر دې دلالت کوي چي دوکان او کور يو جنس دی فَيُجْعَلَ فِي الْمَسْأَلَةِ رِوَايَتَانِ أَوْ تُبْنَى حُرْمَةُ الرِّبوا هُنَالِكَ عَلَى شُبْهَةِ الْمُجَانَسَةِ نو ځکه په مسئله کي به دوه روايتونه ګرځول کيږي [يعني ويل کيږي به چي په دې باره کي دوه روايتونه نقل سوي دي] يا دا چي هلته به د ربوا حرمت د مجانست پر شبهه مبني وي.

**اللغات:** ﴿ضيعة﴾ فصل داره او غله داره ځمکه. ﴿حانوت﴾ دوکان. ﴿ربوا﴾ سُود.

**تشريح:** څرنګه چي کور، ځمکه او دوکان دا ټول سره مختلف الأجناس دي (يعني يو د بل له جنس څخه نه دي بلکي جنسونه يې سره جلا دي)، لهذا که د شريکانو تر مينځ ځمکه او کور يا ځمکه او دوکان سره مشترک وي، نو په دې صورتو کي به د دواړو جلا، جلا تقسيم (قسمتِ فرد) کول کيږي (يعني هر شريک ته به په هريوه کي حصه ورکول کيږي)؛ ځکه امام قدوري او امام خصاف رَحِمَهُمَا الله دا شيان له مختلف الأجناس شيانو څخه شمېرلي دي، خو امام محمد رَحِمَهُ الله چي په مبسوط کي کوم دا مسئله بيان کړې ده چي د دوکان په بدله کي د کور د منافعو اجاره جائز نه ده (يعني چي کور په ترايه واخيستل

سي او په كرايه [أجرت] كي دوكان وټاكل سي دا جائز نه دي، نو)، له دې څخه دا معلومېږي چي دوكان او كور د يوه جنس دي (له يوه جنس څخه دي)؛ ځكه چي د استوګني (سكنىٰ) اجاره د استوګني (سكنىٰ) په عوض كي جائز نه ده، حال دا چي د امام قدوري او امام خصاف رَحِمَهُمَا الله له قول څخه معلومه سوه چي دوكان او كور مختلف الجنس دي.

صاحب د هدايې رَحِمَهُ الله د دې دوه جوابه ور كړي دي: (۱) يو جواب دا چي يا په دې مسئله كي دوه روايتونه دي: ① د متحد الجنس (چي كور او دوكان دواړه د يوه جنس دي)، ② او دويم روايت د مختلف الجنس دى، لهذا فلا إشكال.

(۲) دويم جواب دا دی چي د مبسوط مسئله د ربوا د مجانست پر شبهې مبني ده، يعني كله چي كور او دوكان د يوه جنس ومنل سي، نو ښكاره ده چي كه د يوه په بدله كي د بل نفع اخيستل كيږي نو د ربوا شبهه به وي، او تاسو ته معلومه ده چي د حقيقي ربوا په څېر له شبهه ربوا څخه هم ځان ساتل ضروري دي، په همدې وجه دا صحيح نه دي. ( په بله وينا داسي هم ويل كېداسی چي دلته د ربوا شبهه ده په دې توګه چي په اجاره كي منافع يو دم نه ترلاسه كيږي لكه مخكي چي تېر سوه. بلكي په كراره كراره حاصليږي نو ګواكي منافع قرض دي. او كله چي كور او دوكان د يوه جنس وشمېرل سي. نو دلته كه څه هم تفاضل خو جائز وي لېكن قرض جائز نه وي. پر دغه مقام په عنايه. نتائج الأفكار او مجمع الأنهر كي سوال او جواب دي. د نور معلومات لپاره دي هغه مطالعه كړل سي).

❀❀❀

# فَصْلٌ فِي كَيْفِيَةِ الْقِسْمَةِ

## (دا) فصل په (بیان د) کیفیت د تقسیم کي دی

**تشريح:** کله چي مصنف رَحِمَهُ الله دا ذکر کړه چي کوم شیان به تقسیمول کیږي او کوم به نه تقسیمول کیږي، نو اوس تر هغه وروسته د تقسیم کولو طریقه بیانوي، یا په بله وینا دا چي د ذات او موصوف د جواز له ثابتولو څخه وروسته اوس د هغه کیفیت او صفت (طریقه) بیانوي. او کیفیت او صفت د ذات تابع وي، او تاسي ته معلومه ده چي تابع تر متبوع وروسته وي، نو ځکه تر "فصل فیما یقسم..." وروسته یې "فصل فی کیفیة القسمة" بیان کړی.

### د تقسیم طریقه

قَالَ: وَيَنْبَغِي لِلْقَاسِمِ أَنْ يُصَوِّرَ مَا يَقْسِمُهُ فرمایي: او تقسیم کونکي ته پکار دي چي نقشه جوړه کړي د هغه څه کوم چي یې دئ تقسیموي لِيُمْكِنَهُ حِفْظُهُ د دې لپاره چي د هغه یادول ورته ممکن وي [یعني چي هغه ورته یاد وي] وَيَعْدِلَهُ يَعْنِي يُسَوِّيَهُ عَلَى سِهَامِ الْقِسْمَةِ او هغه [یعني کوم څه چي تقسیموي هغه] دي د تقسیم پر حصو برابر کړي [یا په بله وینا دا چي په هغه شي کي د هر شریک څومره حصه وي، د هغه برابر دي تقسیم و کړي] وَيُرْوَى يَعْزِلَهُ أَيْ يَقْطَعَهُ بِالْقِسْمَةِ عَنْ غَيْرِهِ او "یعزله" هم نقل سوي دی [په یوه روایت کي یعزله دی] یعني هره حصه [د هر شریک حصه] دي په تقسیم سره له بلي څخه جلا کړي وَيَذْرَعَهُ لِيُعْرَفَ قَدْرُهُ او هغه دي گز کړي چي د هغه مقدار معلوم سي وَيُقَوِّمَ الْبِنَاءَ او د بناء قیمت دي هم اندازه کړي لِحَاجَتِهِ إِلَيْهِ فِي الْآخِرَةِ ځکه چي په آخر کي [د تقسیم کولو پر مهال] هغه ته ضرورت پر پوځي وَيُفْرِزَ كُلَّ نَصِيبٍ عَنِ الْبَاقِي بِطَرِيقِهِ وَشِرْبِهِ او هره حصه دي د خپل لاري او لښتي [نالی] سره له پاته حصو څخه جلا کړي حَتَّى لَا يَكُونَ لِنَصِيبِ بَعْضِهِمْ بِنَصِيبِ الْآخَرِ تَعَلُّقٌ د دې لپاره چي د یوه شریک د حصې د بل شریک د حصې سره هیڅ تعلق پاته نه سي فَتَنْقَطِعُ الْمُنَازَعَةُ نو جنګ او اختلاف به ختم سي وَيَتَحَقَّقُ مَعْنَى الْقِسْمَةِ عَلَى التَّمَامِ او د تقسیم

معنیٰ به په پوره توګه ثابته سي.

**اللغات**: ﴿يصوّر﴾ د تفعيل له بابه مضارع صيغه ده: تصوير جوړول، ﴿حفظ﴾ د سمع مصدر دی: يادساتل، ﴿يعدل﴾ د ضرب مضارع ده: برابري کول، برابرول، ﴿يسوّي﴾ د تفعيل مضارع ده: برابرول، ﴿سِهَام﴾ جمع د سَهْمٌ ده: حصه، برخه، ﴿يعزله﴾ د ضرب مضارع ده: جلا کول، عليحده کول، ﴿يذرع﴾ د فتح مضارع ده: په ذراع سره ناپول، ګزول، ﴿يقوّم﴾ د تفعيل مضارع ده: قيمت اندازه کول او لګول، قيمت ټاکلو ﴿شِرْب﴾ داوبو لاره، لښتي.

**تشريح**: په دې عبارت کي امام قدوري رَحِمَهُ الله د قاسم (تقسيم کونکي) دآسانی لپاره څو ګټوري مشوري وړاندي کړي دي: مثلاً: هغه دي اول تقسيمېدونکې ځمکه يا کور ټوله ګز يا ګام کړي او نقشه دي يې پر کاغذ جوړه کړي، د هر شريک حصه دي برابره کړي، او غوره دا ده چي له تقسيمولو څخه مخکي د ټوله کور او داسي نورو قيمت اندازه کړي بيا دي د هر شريک حصه مع الطريق والشرب جلا کړي، د دې لپاره چي د تقسيم په دوران کي يا تر هغه وروسته د اختلاف او نزاع هيڅ ګنجايش پاته نه سي.

## د تقسيم طريقه

ثُمَّ يُلَقِّبَ نَصِيبًا بِالْأَوَّلِ وَالَّذِي يَلِيهِ بِالثَّانِي وَالثَّالِثُ عَلَىٰ هٰذَا بيا دي يوې حصې ته د اولي [اول نمبر] حصې نوم ورکړي او د هغه سره متصلي حصې ته دي د دويمي حصې نوم ورکړي او دريمه دي همداسي کړي... ثُمَّ يُخْرِجَ الْقُرْعَةَ بيا دي قرعه را وباسي فَمَنْ خَرَجَ اسْمُهُ أَوَّلًا نو د کوم شريک نوم چي اول را ووځي فَلَهُ السَّهْمُ الْأَوَّلُ نو د هغه لپاره اوله حصه ده [کوم ته چي يې د اول نمبر حصې نوم ورکړی دی] وَمَنْ خَرَجَ ثَانِيًا او د کوم يوه نوم چي دويم وار را ووځي فَلَهُ السَّهْمُ الثَّانِي نو د هغه لپاره دويمه حصه ده وَالْأَصْلُ أَنْ يَنْظُرَ فِي ذٰلِكَ إِلَى أَقَلِّ الْأَنْصِبَاءِ او قاعده دا ده چي قاضي په دې باره کي تر ټولو کمي والا حصې ته وګوري حَتّٰى إِذَا كَانَ الْأَقَلُّ ثُلُثًا تر دې چي که کمتره حصه ثلث وي جَعَلَهَا أَثْلَاثًا نو کور دي درې ثلثه [درې حصې] وګرځوي وَإِنْ كَانَ سُدُسًا او که هغه [کمتره حصه] سدس وي جَعَلَهَا أَسْدَاسًا نو کور دي شپږ حصې وګرځوي لِيُمْكِنَ الْقِسْمَةَ چي تقسيم ممکن سي [او که يُمکِنَ سي نو معنیٰ يې ده چي پر تقسيم قدرت ترلاسه کړي] وَقَدْ شَرَحْنَاهُ مُشْبِعًا فِي كِفَايَةِ

الْمُنْتَهِيْ بِتَوْفِيقِ اللهِ تَعَالٰى او موږ د خدای تعالیٰ په توفيق سره دا په كفايتُ المنتهي کي په زيات تفصيل سره بيان کړي دي.

**اللغات:** ﴿يلقّب﴾ د تفعيل مضارع ده: لقب ورکول، بل نوم ورکول. ﴿يلي﴾ د ضرب مضارع ده: متصل کېدل، ور سره يو ځای کېدل. ﴿مشبع﴾ د افعال له بابه د فاعل صيغه ده. مراد: کافي او بشپړ.

**تشريح:** په دې عبارت کي امام قدوري رَحِمَهُ الله د تقسيم د آخري پړاو طريقې ذکر کوي چي د شريکانو د حصصو تر جلا کولو وروسته قاسم ته پکار دي چي هري حصې ته نمبر ورکړي مثلاً اوله (۱) حصه، دويمه (۲) حصه، درېيمه (۳) حصه. بيا دي د شريکانو تر مينځ قرعه اندازي وکړي، د چا نوم چي اول وخيږي هغه ته دي اوله حصه ورکړي او په همدې حساب سره دي دويمه او درېيمه حصه تقسيم کړي.

**والأصل إلخ:** په دې سره صاحب د هدايې رَحِمَهُ الله د تقسيم يو اُصول ښيي، حاصل يې دا دی چي قاسم (تقسيم کونکی) دي تر تقسيم مخکي د شريکانو په حصو کي غور وکړي که هغوی ټوله برابري وي مثلاً درې شريکان وي او د هر يوه لپاره يوه حصه وي چي ټوله درې حصې کيږي، نو کور يا ځمکه دي پر دريو حصو تقسيم کړي، او که د يوه شريک حصه نصف (نيمه حصه) وي او د بل د ثلث وي او د بل د سدس وي، نو په دې صورت کي د به دأقلِ انصباء (چي هغه دلته سدس دی) په رعايت کولو سره کور شپږ حصې کول کيږي، نو اول شريک (نصف والا) ته به درې حصې او دويم (ثلث والا) ته به دوې حصې او درېيم (سدس والا) ته به يوه حصه ورکول سي، چي ټولو ته د خپلې حصې مطابق برابره حصه ورسيږي او ديوه څه شکايت پاته نه سي.

## د پورتنی مسئلې نور وضاحت

وَقَوْلُهُ فِي الْكِتَابِ: وَيُفْرِزُ كُلَّ نَصِيبٍ بِطَرِيقِهِ وَشِرْبِهِ بَيَانُ الْأَفْضَلِ او په قدوري [متن] کي د امام قدوري رَحِمَهُ الله دا قول "وَيُفرِزَ... إلخ" د افضليت بيان دی فَإِنْ لَمْ يَفْعَلْ أَوْ لَمْ يُمْكِنْ نو که قاسم [تقسيم کونکی] داسي نه وکړي يا داسي کول ممکن نه وي جَازَ نو هم جائز دي عَلٰى مَا نَذْكُرُهُ بِتَفْصِيلِهِ إِنْ شَاءَ اللهُ تَعَالٰى لکه څرنګه چي [څه وروسته] به موږ دا إن شاء الله په تفصيل سره ذکر کړو وَالْقُرْعَةُ لِتَطْيِيبِ الْقُلُوبِ وَإِزَاحَةِ تُهْمَةِ الْمَيْلِ او قرعه اندازي د زړونو د ښه کولو [اطمينان ورکولو] او د ميلان د تهمت ليري کولو لپاره ده حَتّٰى لَوْ عَيَّنَ لِكُلٍّ مِنْهُمْ نَصِيبًا مِنْ غَيْرِ إِقْرَاعٍ همدا وجه ده که قاسم له قرعه

اندازي کولو شخه بغير د هر شريک حصه متعينه کړي جَازَ نو جائز دي لِأَنَّهُ فِي مَعْنَى الْقَضَاءِ ځکه چي تقسيم د قضاء [قضاوت کولو] په معنیٰ سره دی فَيَمْلِكُ الْإِلْزَامَ نو ځکه قاسم به د لازمولو ملکيت [اختيار] لري.

**اللغات**: ﴿شِرْب﴾ د اوبو لاره، لښتی، ﴿إزاحة﴾ د افعال د باب مصدر دی: ليري کول، ﴿إقراع﴾ د افعال د باب مصدر دی: قرعه اندازي کول.

**تشريح**: په دې عبارت کي صاحب د هدايې د امام قدوري رَحِمَهُ الله د دې قول "ويفرز إلخ" وضاحت کوي فرمايي چي د هر شريک حصه د خپل لاري او اُوبو سره جلا کول افضل او غوره دي، لېکن که داسي نه وکړی سي، نو هيڅ حرج نسته، همداسي قرعه اندازي هم د شريکانو د تسلی او اطمينان لپاره ده چي زړونه يې مطمئن سي او له قاسم څخه دا تهمت ليري سي چي هغه به د يو شريک وطرف ته ميلان کړی وي، کنې که تقسيم کونکی (قاسِم) له قرعه اندازی څخه بغير د شريکانو حصې متعيني کړي، نو هم جائز دي؛ ځکه چي تقسيم د قضاء په معنیٰ او درجه سره دی، او قاضي پر خلکو د اِلزام (حکم لازمولو) ولايت لري، نو ځکه قاسم ته به هم ولايت اِلزام حاصل وي.

## د تقسيم يو خاص صورت

قَالَ: وَلَا يُدْخِلُ فِي الْقِسْمَةِ الدَّرَاهِمَ وَالدَّنَانِيرَ إِلَّا بِتَرَاضِيهِمْ فرمايي: او قاسم به په تقسيم کي دراهم او دنانير نه داخلوي مګر د شريکانو په رضاء سره لِأَنَّهُ لَا شَرِكَةَ فِي الدَّرَاهِمِ ځکه چي په دراهمو کي [د دوی] اشتراک نسته وَالْقِسْمَةُ مِنْ حُقُوقِ الِاشْتِرَاكِ او تقسيم د اشتراک له حقوقو څخه دی وَلِأَنَّهُ يَفُوتُ بِهِ التَّعْدِيلُ فِي الْقِسْمَةِ او ځکه چي په دې تقسيم سره برابري فوتيږي لِأَنَّ أَحَدَهُمَا يَصِلُ إِلَى عَيْنِ الْعَقَارِ وَدَرَاهِمُ الْآخَرِ فِي ذِمَّتِهِ ځکه چي له دوی څخه به يو عينِ جايداد ته ورسيږي حال دا چي د بل دراهم به [تراوسه] د ده پر ذمه پاته وي وَلَعَلَّهَا لَا تُسَلَّمُ لَهُ او کېدای سي دا دراهم هغه ته نه وسپارل سي.

**اللغات**: ﴿تراضي﴾ د تفاعل د باب مصدر دی: يو له بل څخه راضي کېدل، يو د بل رضاء (چي تول په دې تقسيم راضي وي)، ﴿تعديل﴾ د تفعيل مصدر دی: برابري کول، سره برابرول، التعديل: برابري.

**تشريح**: **صورت د مسئلې**: دا دی چي مثلاً يو کور د څو خلکو تر مينځ مشترک دی، او دا کور په يوه طرف کي څه زيات دی، مثلاً په اوږدول يا بَر يا په راسته يا چپه طرف کي زيات دی، اوس که يو

شریک دا زیاته ځمکه اخلي او د هغه په عوض کې نورو شریکانو ته دراهم یا دنانیر ورکوي، نو قاضي دې عوض (دراهم او دنانیرو) پر اخیستلو دوی نه سي مجبوره کولای مګر د دوی ټولو په رضاء سره؛ ځکه چې د دوی شراکت صرف په ځمکه کې دی، پاته سو په عوض یعني په دراهمو او دنانیرو کې دوی شریکان نه دي، او تقسیم د شرکت له توابعو څخه دی، لهذا دراهم او داسي نور به په تقسیم کې نه داخلول کیږي.

او بل دا چې دراهم او داسي نور که په تقسیم کې داخل کړل سي نو د تقسیم مقصود (یعني برابري) هم فوتیږي؛ ځکه چې د زیاتي حصې اخیستونکي شریک په قبضه کې به ځمکه راسي په داسي حال کې چې ده به تر اوسه و نورو شریکانو ته عوض (دراهم یا دنانیر) نه وي ورکړي، نو په دې توګه به یو شریک له خپلي حصې څخه نفع اخلي او نور به هسې ناست وي، او دا د تقسیم د مقصود خلاف دي، نو ځکه صحیح نه دي.

او بل دا هم ممکنه ده چې دا شریک به ځمکه واخلي لیکن له عوض ورکولو څخه به انکار وکړي (چې زه ولي دوی ته دراهم یا دنانیر ورکړم، دا خو زما خپله حصه ده)، لنډه دا چې دا طریقه اختیارول صحیح نه دي، خو د عذر پر موقع داسي کولای سي لیکن هغه هم د شریکانو په رضاء سره چې هغوی به په دې تقسیم خوښ او راضي وي.

## د مشترکه ځمکي او ځای د تقسیم یو صورت

وَإِذَا كَانَ أَرْضٌ وَبِنَاءٌ او کله چې ځمکه او بناء [دواړه مشترک] وي فَعَنْ أَبِي يُوسُفَ أَنَّهُ يَقْسِمُ كُلَّ ذَٰلِكَ عَلَى اعْتِبَارِ الْقِيمَةِ نو له امام ابو یوسف رَحِمَهُ الله څخه نقل سوي دي چې قاسم به دا دواړه د قیمت په اعتبار سره تقسیموي لِأَنَّهُ لَا يُمْكِنُ اعْتِبَارُ الْمُعَادَلَةِ إِلَّا بِالتَّقْوِيمِ ځکه چې له قیمت اندازه کولو څخه بغیر د برابرۍ اعتبار کولو ناممکن دي [یعني له قیمت څخه بغیر دلته برابري راوستل ناممکن دي]

وَعَنْ أَبِي حَنِيفَةَ أَنَّهُ يَقْسِمُ الْأَرْضَ بِالْمِسَاحَةِ او له امام صاحب رَحِمَهُ الله څخه نقل سوي دي چې قاسم به ځمکه په پیمایش [ګزو] سره تقسیموي لِأَنَّهُ هُوَ الْأَصْلُ فِي الْمَمْسُوحَاتِ ځکه چې په ناپېلونکو [ګز کېدونکو] شیانو کې همدا پیمایش اصل دی ثُمَّ يَرُدُّ مَنْ وَقَعَ الْبِنَاءُ فِي نَصِيبِهِ أَوْ مَنْ كَانَ نَصِيبُهُ أَجْوَدَ دَرَاهِمَ عَلَى الْآخَرِ بیا به هغه شریک چې په حصه کې یې بناء راغلې وي یا هغه شریک چې حصه یې غوره وي بل شریک ته څه دراهم ورکړي حَتَّى يُسَاوِيَهُ چې حصه یې سره برابره سي فَتَدْخُلَ الدَّرَاهِمُ فِي الْقِسْمَةِ نو دراهم به په تقسیم کې [د ضرورت پر بناء] داخلیږي كَالْأَخِ لَا وِلَايَةَ لَهُ فِي

الْمَالِ لکه وړور چې هغه لره [دخور] په مال کې ولایت حاصل نه دی ثُمَّ يَمْلِكُ تَسْمِيَةَ الصَّدَاقِ ضَرُورَةَ التَّزْوِيجِ خو بيا هم دنکاح کولو د ضرورت په خاطر هغه [وړور] د مهر ټاکولو ملکیت لري.

**اللغات:** ﴿بناء﴾ جوړ سوی ځای، ودانۍ، عمارت. ﴿المعادلة﴾ د مفاعلې د باب مصدر دی: برابري، ﴿مِساحة﴾ بکسر المیم د فتح د باب مصدر دی: پېمایش کول، د ذراع (گز) په ذریعه ناپول (گزول)، ﴿صداق﴾ مهر.

**تشریح: صورت د مسئلې:** دا دی که د دوو شریکانو ترمینځ څه خالي ځمکه او څه بناء مشترکه وي (مثلاً یو کور او څه خالي ځمکه د دوی ترمینځ مشترک وي)، نو دلته به تقسیم څنګه کیږي، امام ابو یوسف رَحِمَهُ الله فرمايي چې د دواړو قیمت به اندازه کیږي او د قیمت په ذریعه به تقسیم کیږي؛ ځکه په تقسیم کې تعدیل او برابري ضروري ده، او دلته له تقویم (قیمت اندازه کولو او قیمت لګولو) څخه بغیر تعدیل ممکن نه دی، نو ځکه په قیمت لګولو سره (د قیمت په ذریعه) به تقسیم کیږي.

د امام صاحب رَحِمَهُ الله مسلک دا دی چې قاضي دې ځمکه پېمایش کړي (یعني د ځمکې اندازه دې په گزو سره معلومه کړي) او تقسیم دې پې کړي، بیا چې د کوم شریک په حصه کې بناء (کور) راسي یا د کوم شریک په حصه کې چې خوندوره ځمکه راسي، هغه دې دویم شریک ته څه دراهم ورکړي، د دې لپاره چې په دواړو کې مساوات او برابري ثابته سي، او د دې وجه دا ده چې ځمکه د ممسوحاتو له قبیلې څخه ده، او په داسې شیانو کې مساحت (پېمایش) اصل وي، لهذا حتی الإمکان به په اصل عمل کیږي.

فتدخل الدراهم إلخ: د دې حاصل دا دی چې مخکې خو دا مسئله بیان سوه چې د ځمکې او داسې نورو په تقسیم کې به دراهم او دنانیر نه داخلول کیږي او دلته تاسو په تقسیم کې دراهم داخل کړل، نو فرمايي چې دلته د ضرورت پر بناء داسې سوي دي، کنې د عدمِ ضرورت په وخت کې موږ هم د ځمکې په تقسیم کې د دراهمو د عدمِ دخول قائل یو.

او د دې مثال داسې دی چې مثلاً وړور ته د خپل کوچنۍ خور په مال کې ولایت حاصل نه دی، خو د هغې د نکاح صحیح کېدلو د ضرورت په خاطر ده ته د مهر ټاکلو اجازت سته، نو همداسې دلته هم ضرورتاً دراهم د ځمکې او کور په تقسیم کې داخل سوي دي، کنې اصل خو د دوی عدمِ دخول دی.

## په پورتنی مسئله کي د امام محمد رَحِمَهُ الله روايت

وَعَنْ مُحَمَّدٍ أَنَّهُ يَرُدُّ عَلَى شَرِيكِهِ بِمُقَابَلَةِ الْبِنَاءِ مَا يُسَاوِيهِ مِنَ الْعَرْصَةِ او له امام محمد رَحِمَهُ الله څخه روايت دی چي هغه به په بدله کي خپل شريک ته د بناء دومره صحن [خالي ځمکه] ورکوي کوم چي [په قيمت کي] د بناء په برابر وي [يا په بله وينا دا چي دومره صحن چي د بناء قيمت پوره کړي] وَإِذَا بَقِيَ فَضْلٌ وَلَمْ يُمْكِنْ تَحْقِيقُ التَّسْوِيَةِ بِأَنْ لَا تَفِي الْعَرْصَةُ بِقِيمَةِ الْبِنَاءِ او که چيري [بيا هم] څه زياتوب پاته سي او برابري ثابتول ممکن نه وي په دې توګه چي صحن د بناء قيمت نه پوره کوي [يا په بله وينا دا چي صحن (خالي ځمکه) د بناء د قيمت لپاره ناکافي وي] فَحِينَئِذٍ يَرُدُّ لِلْفَضْلِ دَرَاهِمَ نو په دې وخت کي به د زياتوب په بدله کي دراهم ورکول کيږي [په دراهمو سره به قيمت پوره کوي] لِأَنَّ الضَّرُورَةَ فِي هَذَا الْقَدْرِ ځکه چي ضرورت په همدومره مقدار کي دی فَلَا يُتْرَكُ الْأَصْلُ إِلَّا بِهَا نو ځکه [حتى الوسع] به اصل نه پرېښوول کيږي مګر په همدې سره وَهَذَا يُوَافِقُ رِوَايَةَ الْأَصْلِ او دا [يعني اول صحن ورکول او که هغه کافي نه سي بيا دراهم ورکول] د مبسوط د روايت مطابق دي.

**اللغات:** ﴿يرد﴾ د نصر مضارع ده: واپس کول، واپس ورکول، ﴿بناء﴾ جوړ سوی ځای، عمارت، وداني، ﴿عرصة﴾ صحن، غولی (انګړ)، د کور دننه خالي ميدان، خالي ځمکه، ﴿فضل﴾ زياتوب، کوم زياته حصه چي پاته سي، ﴿تسوية﴾ د تفعيل مصدر دی: برابري کول، ﴿لا تفي﴾ د ضرب له بابه د نفي صيغه ده: پوره کول، پوره اداء کول.

**تشريح:** امام محمد رَحِمَهُ الله فرمايي چي کله د ضرورت په وجه دلته دراهم په تقسيم کي داخلول کيږي، نو بيا به د" الضرورة تتقدر بقدر الضرورة" والا قاعدې پر بناء صرف د ضرورت په اندازه دراهم په تقسيم کي داخلول کيږي او تقسيم به داسي کيږي چي د کوم شريک په حصه کي چي بناء راغلې ده هغه دي دويم شريک ته د بناء په بدله کي د کور صحن (غولی) ورکړي، چي مساوات ثابت سي، لېکن که په صحن ورکولو سره هم مساوات ثابت نه سي، نو بيا دي د بناء والا شريک دويم شريک ته دراهم ورکړي: ځکه اوس و دراهمو ته ضرورت پېښ سو، فرمايي چي په مبسوط کي هم داسي نقل سوي دي.

## تر تقسيم وروسته د لاري يا د اوبو د لاري مسئله

قَالَ: فَإِنْ قَسَمَ بَيْنَهُمْ وَلِأَحَدِهِمْ مَسِيلٌ فِي نَصِيبِ الْآخَرِ أَوْ طَرِيقٌ لَمْ يُشْتَرَطْ فِي الْقِسْمَةِ فرمايي: كه قاسم د شريكانو تر مينځ تقسيم وكړي او په دوى كي ديوه شريك لښتى (نالى) د بل په حصه كي وي [يعني د بل په ملكيت كي راسي] يا لاره وي چي په تقسيم كي د هغه شرط نه وي لګول سوى [يا په بله وړينا دا چي د تقسيم پر مهال نه وي ذكر سوي] فَإِنْ أَمْكَنَ صَرْفُ الطَّرِيقِ وَالْمَسِيلِ عَنْهُ نو كه چيري د بل شريک له حصې څخه د لاري او لښتي راګرځول [په خپل حصه كي جوړول] ممكن وي لَيْسَ لَهُ أَنْ يَسْتَطْرِقَ فِي نَصِيبِ الْآخَرِ نو هغه ته دا حق نسته چي د بل يوه په حصه كي لاره يا لښتى وباسي لِأَنَّهُ أَمْكَنَ تَحْقِيقُ مَعْنَى الْقِسْمَةِ مِنْ غَيْرِ ضَرَرٍ ځكه چي [په دې صورت كي] له څه ضرر څخه بغير د تقسيم معنىٰ ثابتول ممكن دي وَإِنْ لَمْ يُمْكِنْ او كه دا [د لاري او لښتي راګرځول] ممكن نه وي فُسِخَتِ الْقِسْمَةُ نو تقسيم به ماتول كيږي لِأَنَّ الْقِسْمَةَ مُخْتَلَّةٌ لِبَقَاءِ الِاخْتِلَاطِ ځكه چي [دلته] د اختلاط پاتېدلو په وجه تقسيم مختل سو فَتُسْتَأْنَفُ نو ځكه له نوي سره به تقسيم كيږي بِخِلَافِ الْبَيْعِ حَيْثُ لَا يَفْسُدُ فِي هٰذِهِ الصُّورَةِ په خلاف د بيع چي هغه په دې صورت كي نه فاسديږي لِأَنَّ الْمَقْصُودَ مِنْهُ تَمَلُّكُ الْعَيْنِ ځكه د بيع مقصود د عين شي مالک جوړېدل دي وَأَنَّهُ يُجَامِعُ تَعَذُّرَ الِانْتِفَاعِ فِي الْحَالِ او دا د انتفاع د متعذر كېدلو سره جمع كېداى سي أَمَّا الْقِسْمَةُ لِتَكْمِيلِ الْمَنْفَعَةِ لېكن تقسيم د نفع د پوره كولو لپاره وي وَلَا يَتِمُّ ذٰلِكَ إِلَّا بِالطَّرِيقِ او دا د لاري [د جلا كولو] څخه بغير نه سي پوره كېداى.

**اللغات:** ﴿مسيل﴾ له سَيْل څخه مشتق دى: د اوبو بهېدلو لښتى (نالى)، ﴿صرف﴾ د ضرب د باب مصدر دى: ګرځول، اړول، ﴿يستطرق﴾ د استفعال د باب مضارع ده: لاره ايستل، لاره جوړول، ﴿نصيب﴾ حصه، ﴿فسخت﴾ د فتح له بابه د واحد مؤنث غائب ماضي صيغه ده: فسخ كول، ماتول، ختمول، ﴿مختلة﴾ ناقص، ﴿تملك﴾ د تفعّل د باب مصدر دى: مالک جوړېدل، ﴿تعذر﴾ د تفعل د باب مصدر دى: مشكل كېدل، نا ممكن كېدل، ﴿انتفاع﴾ د افتعال د باب مصدر دى: نفع اخيستل، نفع حاصلول، ﴿يجامع تعذر الانتفاع﴾ يعني چي له مبيع څخه نفع اخيستل مشكل وي نو بيا هم بيع جائز كيږي.

**تشريح: صورت د مسئلې:** دا دى چي قاسم د شريكانو تر مينځ د دوى مشترک ځاى تقسيم كړى او د تقسيم په دوران كي د لاري او د اوبو لښتي (نالى) تذكره نه وسوه، وروسته د يوه شريک لښتي يا لاره د بل شريک په حصه كي راغله، نو دلته دوه صورتونه دي:

(۱)... که چیري دا شریک په خپل حصه کې خپل لښتی یا لاره راګرځولای او مقررولای سي، نو بیا ده ته د بل شریک په حصه کي داوبو بیولو او د لاري ایستلو اجازت نسته.

(۲)... او که دا شریک (چي د هغه لښتی او لاره د بل شریک په حصه کي راغلي دي) په خپل ملکیت کي د هغه انتظام نه سي کولای، نو بیا به دا تقسیم فسخ کیږي (ماتول کیږي) او له نوي سره به تقسیم کیږي؛ ځکه چي دیوه او بل په حصه کي د اختلاط په وجه دا تقسیم مُخل بالمقصود جوړ سو، او حصې سره جلا نه سوې؛ نو ځکه دوباره به تقسیم کیږي.

بخلاف البیع إلخ: په دې سره مقصود د بیع او تقسیم تر مینځ فرق بیانول دي، حاصل یې دا دی چي که څوک یو کور رانیسي او په هغه کور کي د بل چا لاره وتلې وي یا د بل چا د اوبو لښتی (نالی) پکښې وي، نو بیع به نه فسخ کیږي، بلکي باقي به پرېښوول کیږي، حال دا چي تقسیم په دې صورت کي فسخ کېدی، نو په دې دواړو کي فرق دا دی چي د بیع مقصود فقط د عَین مبیع مالک جوړېدل دي (او په بیع کي دإفراز او جلا کولو معنیٰ نسته)، لهذا که په یو وجه انتفاع (نفع اخیستل) ستونزمن وي، نو څه حرج نسته؛ ځکه اصلي مقصود خو حاصل سوی دی، او پاته سو د تقسیم اصلي مقصد له خپل حصې څخه نفع اخیستل دي، او دا ښکاره خبره چي د لاري او نالی څخه بغیر له خپل حصې څخه پوره نفع نه سي اخیستل کېدای بلکي انتفاع ناقص پاتیږي، نو پر همدې بناء په تقسیم او بیع کي فرق دی چي تقسیم فسخ کول کیږي او بیع باقي پرېښوول کیږي.

### د پورتنی مسئلې نور وضاحت

وَلَوْ ذَكَرَ الْحُقُوقَ فِي الْوَجْهِ الْأَوَّلِ كَذٰلِكَ الْجَوَابُ او که چیري په اول صورت کي [یعني چي په خپل حصه کي د لاري او لښتي راګرځول (جوړول) ممکن وي] د حقوقو ذکر وکړي نو هم دا حکم دی [چي لاره او لښتی دي په خپل ځمکه کي راوګرځوي] لِأَنَّ مَعْنَى الْقِسْمَةِ الْإِفْرَازُ وَالتَّمْيِيزُ ځکه چي د تقسیم معنیٰ جلا کول او سره بېلول دي [چي د لاري او لښتي سره خپل حصه جلا کړه] وَتَمَامُ ذٰلِكَ بِأَنْ لَا يَبْقٰى لِكُلِّ وَاحِدٍ تَعَلُّقٌ بِنَصِيبِ الْآخَرِ او د دې پوره کېدل په همدې سره دي چي د هیڅ شریک د بل شریک د حصې سره تعلق پاته نه سي وَقَدْ أَمْكَنَ تَحْقِيقُهُ بِصَرْفِ الطَّرِيقِ وَالْمَسِيلِ إِلٰى غَيْرِهِ مِنْ غَيْرِ ضَرَرٍ او د دې ثابتول ممکن دي په دې توګه چي لاره او لښتی له څه ضرر ورکولو څخه بغیر د بل وطرف ته وګرځول سي فَيُصَارُ إِلَيْهِ نو ځکه د همدې وطرف ته به رجوع کیږي بِخِلَافِ الْبَيْعِ إِذَا ذُكِرَ فِيهِ الْحُقُوقُ په خلاف د بیع کله چي په هغه کي د حقوقو ذکر وسي حَيْثُ يَدْخُلُ فِيهِ مَا كَانَ لَهُ مِنَ

الطَّرِيقِ وَالْمَسِيلِ ځکه په بيع کي لاره او لښتي داخليږي لِأَنَّهُ أَمْكَنَ تَحْقِيقُ مَعْنَى الْبَيْعِ وَهُوَ التَّمْلِيكُ مَعَ بَقَاءِ هٰذَا التَّعَلُّقِ بِمِلْكِ غَيْرِهِ ځکه چي د بيع د معنىٰ يعني د تمليک ثابتول ممکن دي سره د دې چي دا تعلق [د لاري او لښتي تعلق] د بل چا د ملکيت سره پاته وي [يعني د بل چا د ملکيت سره د لاري او لښتي د تعلق پاتېدلو باوجود هم د بيع معنىٰ (تمليک) ثابتيږي].

**اللغات**: ﴿الحقوق﴾ د ځمکي او کور حقوق يعني لاره او لښتي، ﴿إفراز﴾ د افعال د باب مصدر دی: را جلا کول، ﴿تمييز﴾ د تفعيل د باب مصدر دی: سره جلا کول، بېلول، ﴿تمليك﴾ مخکني صيغه ده: مالک کول، څوک د يو شي مالک جوړول.

**تشريح**: په مخکيني عبارت کي خو دا بيان وو چي د تقسيم پر مهال د حقوقو يعني د لاري او لښتي (نالې) تذکره نه وسي، اوس دلته دا بيانوي چي که قاسم د تقسيم پر مهال د لاري او لښتي تذکره وکړي، بيا د يوه شريک دا شيان د بل شريک په حصه کي راسي، نو هم داغه حکم دی چي هغه دي دا شيان خپل طرف ته را وګرځوي او په خپل حصه کي دي لاره يا لښتي جوړ کړي؛ ځکه چي د تقسيم مطلب همدا دی چي د هر شريک حصه د بل شريک له حصې څخه من کل وجه جلا کړل سي، او کله چي دلته د خپل حصې وطرف ته د لاري يا لښتي ګرځول ممکن دي، نو بيا دي بل چا ته بلا وجه ضرر نه ورکول کيږي.

بخلاف البيع: لېکن که په بيع کي د مبيع د حقوقو يعني د لاري او لښتي تذکره وسي او بيا هغه د بل چا په حصه کي راسي، نو دلته په خپل حصه کي د لاري او لښتي راګرځولو ته ضرورت نسته؛ ځکه د بيع د معنىٰ مقصود په داسي صورت کي هم حاصليږي (چي لاره او لښتي د بل چا په ملکيت کي راسي)، يعني په دې صورت کي هم تمليک تاميږي، حال دا چي په تقسيم کي په داسي صورت کي مقصود نه حاصليږي (چي لاره او نالې په خپل حصه کي نه وي) او نه تمليک تاميږي، نو ځکه په دې صورت کي تقسيم فسخ کيږي او بيع باقي پاتيږي.

## د پورتني مسئلې نور وضاحت

وَفِي الْوَجْهِ الثَّانِي يَدْخُلُ فِيهِمَا او په دويم صورت کي لاره او لښتي په تقسيم کي داخليږي لِأَنَّ الْقِسْمَةَ لِتَكْمِيلِ الْمَنْفَعَةِ ځکه چي تقسيم د نفع د پوره کولو لپاره دی وَذٰلِكَ بِالطَّرِيقِ وَالْمَسِيلِ او دا [د نفع تکميل] په لاره او لښتي سره حاصليږي فَيَدْخُلُ عِنْدَ التَّنْصِيصِ بِاعْتِبَارِهِ نو ځکه لاره او لښتي به د تصريح [صراحتاً ذکر کېدلو] په وخت کي د تکميل په اعتبار سره داخليږي [احسن الهدايه]

وَفِيهَا مَعْنَى الْإِفْرَازِ او په تقسيم کي دإفراز [جلا کولو] معنیٰ سته وَذٰلِكَ بِانْقِطَاعِ التَّعَلُّقِ او دا [دإفراز معنیٰ] په تعلق قطع کېدلو سره حاصلیږي [چي د شریکانو د حصو به یو د بل سره هیڅ تعلق پاته نه وي] عَلٰى مَا ذَكَرْنَا لکه [مخکي] چي مونږ ذکر کړه فَبِاعْتِبَارِهِ لَا يَدْخُلُ مِنْ غَيْرِ تَنْصِيصٍ نو دإفراز د معنیٰ په اعتبار کولو سره به لاره او لښتی له تصریح څخه بغیر نه داخلیږي بِخِلَافِ الْإِجَارَةِ حَيْثُ يَدْخُلُ فِيهَا بِدُونِ التَّنْصِيصِ په خلاف د اجارې چي په هغه کي له تصریح څخه بغیر لاره او لښتی داخلیږي لِأَنَّ كُلَّ الْمَقْصُودِ الِانْتِفَاعُ ځکه چي [په اجاره کي] ټول مقصود نفع حاصلول دي وَذٰلِكَ لَا يَحْصُلُ إِلَّا بِإِدْخَالِ الشِّرْبِ وَالطَّرِيقِ او دا مقصود نه حاصلیږي مګر د لښتي او لاري په داخلولو سره فَيَدْخُلُ مِنْ غَيْرِ ذِكْرٍ نو ځکه لښتی او لار به [په اجاره کي] له ذکر کېدو څخه بغیر داخلیږي.

**اللغات:** ﴿تكميل﴾ د تفعیل د باب مصدر دی: پوره کول، بشپړول. ﴿طريق﴾ لار، لاره. ﴿مسيل﴾ لښتی، نالی. ﴿تنصيص﴾ د تفعیل د باب مصدر دی: تصریح، صراحت کول (صراحتاً ذکر کول).

**تشريح: مسئله:** دا ده چي په دویم صورت کي یعني کله چي د طریق او مسیل (لاري او لښتي) ګرځول ممکن نه وي، نو په دې صورت کي که چیري طریق او مسیل په تقسیم کي ذکر سوي وه، نو دا دواړه په تقسیم کي داخلیږي؛ ځکه چي د تقسیم مقصد د منفعت تکمیل او بشپړتیا ده، او کامل منفعت په طریق او مسیل سره حاصلیږي، لهذا د صراحت کېدلو په صورت کي به (یعني کله چي د طریق او مسیل صراحت او تذکره سوې وي) دوی په تقسیم کي داخلول کیږي.

**وفيها معنى الإفراز إلخ:** د دې حاصل دا دی چي په تقسیم کي د إفراز معنیٰ هم سته (لکه مخکي چي څو ځله تېر سوه)، او د إفراز معنیٰ تر هغه وخته نه پوره کیږي تر څو چي د شریکانو د حصو تر مینځ په پوره توګه تعلق قطع نه سي، لهذا د صراحت نه کېدلو په صورت کي به د إفراز د معنیٰ په رعایت کولو سره طریق او مسیل په تقسیم کي نه داخلول کیږي.

**بخلاف الإجارة إلخ:** یعني که په اجاره کي د طریق او مسیل تذکره نه وسي، نو بیا هم هغه په اجاره کي داخلیږي: ځکه په اجاره کي صرف انتفاع (نفع اخیستل) مقصود وي، حال دا چي د طریق او مسیل له دخول څخه بغیر انتفاع نه حاصلیږي، لهذا د اجارې د مقصد حاصلولو په وجه به له صراحت او تذکرې څخه بغیر هم طریق او مسیل په اجاره کي داخلیږي.

## د پورتني مسئلې نور وضاحت

وَلَوِ اخْتَلَفُوْا فِيْ رَفْعِ الطَّرِيْقِ بَيْنَهُمْ فِي الْقِسْمَةِ او که چيري شريکان په تقسيم کي د لاري پرېښوولو په هکله اختلاف وکړي إِنْ كَانَ يَسْتَقِيْمُ لِكُلِّ وَاحِدٍ طَرِيْقٌ يَفْتَحُهُ فِيْ نَصِيْبِهِ نو که چيري د هر شريک لپاره په خپل حصه کي د لاري خلاصول برابر [او ممکن] وي قَسَمَ الْحَاكِمُ مِنْ غَيْرِ طَرِيْقٍ يَرْفَعُ لِجَمَاعَتِهِمْ نو قاضي به د دوی لپاره د [مجموعي] لاري د پرېښوولو څخه بغير تقسيم کوي لِتَحَقُّقِ الْإِفْرَازِ بِالْكُلِّيَّةِ دُوْنَهُ ځکه چي [دلته] د لاري پرېښوولو څخه بغير هم په پوره توګه د إفراز [جلا کولو] معنیٰ ثابتيږي وَإِنْ كَانَ لَا يَسْتَقِيْمُ ذٰلِكَ او که دا برابر [او ممکن] نه وي [يعني که دا ممکن نه وي چي هر شريک په خپل حصه کي لاره خلاصه کړي (جوړه کړي)] رَفَعَ طَرِيْقًا بَيْنَ جَمَاعَتِهِمْ نو قاضي به د دوی ټولو شريکانو لپاره يوه لاره پرېږدي لِيَتَحَقَّقَ تَكْمِيْلُ الْمَنْفَعَةِ فِيْمَا وَرَاءَ الطَّرِيْقِ چي د لاري څخه په وروسته [نوره ځمکه] کي د نفع تکميل ثابت سي.

**اللغات**: ﴿رفع الطريق﴾ لار پرېښوول، لاره رايستل، د لاري لپاره ځای ورکول. ﴿يستقيم﴾ د استفعال د باب مضارع ده: سيده کېدل، قائم کېدل، استقامرله (يعني د دې باب په صله کي چي لام راسي نو معنیٰ يې ده) سمېدل او صحي کېدل، برابرېدل. ﴿إفراز﴾ د افعال د باب مصدر دی: جلا کول.

**تشريح**: **مسئله**: دا ده که د لاري پرېښوولو په هکله د شريکانو اختلاف سي، بعضي ووايي چي لاره دي پرېښوول سي او بعضي د لاري پرېښوولو مخالفت وکړي، نو په دې باره کي به قاضي دې ته غور او نظر وکړي چي هر شريک په خپله حصه کي د ځان لپاره لاره پرېښوولای سي، که نه. که چيري د هر شريک لپاره د لاري پرېښوول (جوړول) ممکن وي، نو قاسم به د لاري پرېښوولو څخه بغير تقسيم کوي (لاره به نه پرېږدي)؛ ځکه دلته بغير د لاري هم د إفراز معنیٰ ثابتيږي.

لېکن که د هر شريک لپاره په خپل حصه کي د لاري جوړول ممکن نه وي، نو په دې صورت کي به قاضي د دوی لپاره د يو مشترک طريق (لاري) د پرېښوولو حکم کوي او په ما وراء طريق کي به تقسيم کيږي چي تر لاري پرېښوولو وروسته هر شريک له خپل حصې څخه پوره نفع حاصله کړی سي.

## د پورتنی مسئلې نور وضاحت

وَلَوِ اخْتَلَفُوْا فِيْ مِقْدَارِهِ او که شریکان د لارې د مقدار په هکله اختلاف وکړي جُعِلَ عَلٰى عَرْضِ بَابِ الدَّارِ وَطُوْلِهِ نو هغه لار به د کور د دروازې د پراخوالي او جګوالي په اندازه ګرځول کیږي [جوړول کیږي] لِأَنَّ الْحَاجَةَ تَنْدَفِعُ بِهِ ځکه چې ضرورت په همدې سره دفع کیږي [پوره کیږي] وَالطَّرِيْقُ عَلٰى سِهَامِهِمْ او لار به د شریکانو د حصو په اندازه وي [یعني د هر شریک چې څومره حصه وي د هغه مطابق به په لار جوړولو کې ځمکه ځنې اخیستل کیږي] كَمَا كَانَ قَبْلَ الْقِسْمَةِ لکه څرنګه چې تر تقسیم مخکې وه لِأَنَّ الْقِسْمَةَ فِيْمَا وَرَاءَ الطَّرِيْقِ لَا فِيْهِ ځکه چې تقسیم د لارې څخه په ماوراء [نوره ځمکه] کې دی، نه په لاره کې وَلَوْ شَرَطُوْا أَنْ يَكُوْنَ الطَّرِيْقُ بَيْنَهُمَا أَثْلَاثًا او که شریکان دا شرط ولګوي چې لاره به د دوی په مینځ کې په ثلثونو سره وي [مثلاً دوه ثلثه (دوې حصې) به د یوه وي او یو ثلث به د بل وي] جَازَ نو دا هم جائز دي وَإِنْ كَانَ أَصْلُ الدَّارِ نِصْفَيْنِ که څه هم اصل کور [د دوی په مینځ کې] نیم، نیم وي لِأَنَّ الْقِسْمَةَ عَلَى التَّفَاضُلِ جَائِزَةٌ بِالتَّرَاضِيْ ځکه چې په تفاضل سره تقسیم کول یو د بل په رضاء سره جائز دي.

**اللغات**: د تفاعل د باب مصدر دی: زیاتوب کول، کمي وزیاتوب (کمي بیشي).

**تشریح**: **مسئله**: دا ده که د لارې د مقدار په هکله شریکان اختلاف وکړي، یو د غتې لارې مطالبه کوي، یو د کوچنۍ لارې، نو په دې صورت کې به د کور د دروازې پراخوالي (بر) او جګوالي ته کتل کیږي (یعني دیو کور عمومي دروازه چې څومره وي چې له هغه څخه تاتکه، موټر او داسې نور کور ته راځي). د هغه په اندازه دروازه به پرېښوول کیږي، او دا به د شریکانو د حصو په تناسب سره پرېښوول کیږي (مثلاً که په کور کې د زید دوې حصې وي او د خالد یوه حصه وي، نو په لار کې به د زید له ځمکې څخه دوې حصې اخیستل کیږي او له خالد څخه یوه حصه)، لکه څرنګه چې تر تقسیم مخکې د دوی حصې اندازه کېدلې، هکذا بعد القسمة به هم اندازه کول کیږي؛ ځکه چې تقسیم د لارې څخه بغیر په بل شي (نوره ځمکه او حصو) کې دی، نو د هاغه په تناسب سره به لاره هم پرېښوول کیږي (یعني د هر شریک چې څومره حصه وي، د هغه په اعتبار سره به د هغه ځمکه هم اخیستل کیږي).

**ولوشرطوا إلخ**: د دې حاصل دا دی چې اُصول خو هماغه دی کوم چې اوس تېر سو، لېکن که شریکان په خپل مینځ کې د لارې پر کمي و زیاتوب اتفاق وکړي، مثلاً د زید او خالد تر مینځ یو کور مشترک

وي او دوی دا شرط ولګوي (یعني پر دې اتفاق وکړي او په راضي سي) چي په لاره کي به د زید له ځمکي څخه دوه ثلثه (دوې حصې) ورکول کیږي او د خالد له ځمکي څخه یو ثلث مثلاً، نو دا جائز او صحیح دي؛ ځکه د دواړو په رضاء سره داسي کول جائز دي؛ ځکه چي کور او ځمکه د همدوی ده.

## د دو منزله (دوچته) ځای د تقسیم مختلفه صورتونه

قَالَ: وَإِذَا كَانَ سِفْلٌ لَا عُلْوَ عَلَيْهِ وَعُلْوٌ لَا سِفْلَ لَهُ وَسِفْلٌ لَهُ عُلْوٌ فرمایي: او که یو داسي لاندینی منزل [یا لاندینی خونه او ځای] وي چي پر هغه پاسنی منزل [بالاخانه] نه وي او یو داسي پاسنی منزل [بالاخانه] وي چي د هغه لاندینی منزل نه وي او داسي لاندینی منزل وي چي د هغه پاسنی منزل هم وي قُوِّمَ كُلُّ وَاحِدٍ عَلَى حِدَتِهِ وَقُسِمَ بِالْقِيمَةِ نو [د تقسیم په صورت کي] به د هر یوه جلا، جلا قیمت لګول کیږي او د قیمت په ذریعه به تقسیمول کیږي وَلَا مُعْتَبَرَ بِغَيْرِ ذٰلِكَ او له دې څخه بغیر لره به اعتبار نه وي [یعني د بل څه اعتبار به نه کیږي] قَالَ رَضِيَ اللهُ عَنْهُ: هٰذَا عِنْدَ مُحَمَّدٍ صاحب د هدایې رَحِمَهُ الله فرمایي: چي دا د امام محمد رَحِمَهُ الله په نیز دي وَقَالَ أَبُوْ حَنِيْفَةَ وَأَبُوْ يُوْسُفَ ۞: يُقْسَمُ بِالذَّرْعِ او شیخین رَحِمَهُمَا الله فرمایي: چي د ګزو [او پیمایش] په ذریعه به تقسیمول کیږي لِمُحَمَّدٍ: أَنَّ السِّفْلَ يَصْلُحُ لِمَا لَا يَصْلُحُ لَهُ الْعُلْوُ د امام محمد رَحِمَهُ الله دلیل دا دی: چي لاندینی منزل [لاندینی خونه] د هغه څه صلاحیت لري چي پاسنی منزل یې نه لري مِنِ اتِّخَاذِهِ بِئْرَ مَاءٍ أَوْ سِرْدَابًا أَوْ إِصْطَبْلًا أَوْ غَيْرَ ذٰلِكَ مثلاً لاندینی منزل د اوبو څاه یا زیرخانه یا طبیله یا داسي نور [پکښي] جوړېدای سي فَلَا يَتَحَقَّقُ التَّعْدِيْلُ إِلَّا بِالْقِيمَةِ نو ځکه له قیمت څخه بغیر برابري نه سي ثابتېدای.

**اللغات:** ﴿سفل﴾ دا لفظ دوه ډوله ویل کېدای سي: سُفل، سِفل: لاندینی منزل (لاندینی پوړ، لاندینی ځای)، ﴿علو﴾ دا لفظ درې ډوله ویل کېدای سي: عُلو، عَلو، عِلو: پاسنی منزل (پورتنی پوړ، لوړ ځای، بالاخانه)، ﴿قُوِّمَ﴾ د تفعیل له بابه د ماضي مجهول صیغه ده: قیمت لګول (اندازه کول)، قیمت ټاکل، ذراع: شرعي ګز، یو لاس، ﴿سرداب﴾ زیرخانه، ﴿اصطبل﴾ د اسونو او داسي نورو څارویو د تړلو او ساتلو خونه، طبیله، تبیله، طویله.

۞ القول الراجح: قول محمد رَحِمَهُ الله، كما قال العلامة علاء الدين الكاساني رَحِمَهُ الله: فكان التعديل في اعتبار القيمة والعمل به في المسئلة على قول محمد رَحِمَهُ الله وهو اختيار الطحاوي (بدائع ج:۷، ص:۲۷)، وفي الدر المختار: وقسم بالقيمة عند محمد رَحِمَهُ الله وبه يفتى (ج:۵، ص:۱۸۵). [القول الراجح ج:۲، ص:۲۸۰]

**تشريح: صورت د مسئلې:** دا دی: چې د دوو خلګو (مثلاً د زيد او خالد) تر مينځ درې داني دو منزله ځايونه مشترک دي (يعني داسې ځايونه کوم چې پر بام د پاسه بل منزل يا په بله وينا پاسنی منزل يا پاسنۍ خونه هم لري)، په دې توګه مشترک دي (۱) چې د اول دو منزله ځای صرف په لاندينې منزل (يا لاندې خونه) کې دوی دواړه (زيد او خالد) شريکان دي، (۲) او د دويم دومنزله ځای صرف په پاسنې منزل کې دوی دواړه شريکان دي، (۳) او د دريم دومنزله ځای په دواړو منزلونو (دواړو خونو) کې دوی شريکان دي، مثلاً داسې:

| په پاسنۍ خونه کې هم خالد او زيد شريکان دي | په پاسنۍ خونه کې زيد او خالد شريکان دي | دا پاسنۍ خونه د بل چا ده |
|---|---|---|
| په لاندينۍ خونه کې هم دوی دواړه شريکان دي | لاندينۍ خونه د بل چا ده | په دغه لاندينۍ خونه کې زيد او خالد شريکان دي |

نو په داسې صورت که شريکان د تقسيم مطالبه وکړي نو تقسيم به څنګه کيږي، امام محمد رَحِمَهُ الله فرمايي چې د هر منزل (هرې خونې) قيمت به جلا، جلا اندازه کيږي (معلومول کيږي) او بيا به تقسيمول کيږي (يعني د قيمت په ذريعه به تقسيمول کيږي چې د شريکانو حصې په قيمت کې برابرې وي)، شيخين رَحِمَهُمَا الله فرمايي چې په ذرع (پيمايش او ګزو) سره به تقسيم کيږي (يعني قيمت به په مينځ کې نه راړول کيږي بلکې ټوله منزلونه به ګزول کيږي او تقسيمول کيږي).

دامام محمد رَحِمَهُ الله دليل دا دی چې د نفع او نقصان (ګټې او تاوان) په اعتبار سره د لاندينې او پاسنې منزل په مينځ کې تفاوت او فرق دی، ځکه په لاندې منزل کې څاه، زېرخانه، اصطبل او داسې نور هم جوړېدای سي، لېکن په پاسنې منزل کې له اوسېدو څخه بغير نور منافع نه سي ترلاسه کېدای، لهذا کله چې په دواړو منزلونو کې تفاوت دی نو که د قيمت په ذريعه تقسيم نه وسي، نو د شريکانو تر مينځ مساوات او برابري نه سي کېدای (يعني دلته له قيمت څخه بغير برابري نه ثابتيږي). حال دا چې د تقسيم بنيادي مقصد د شريکانو تر مينځ د برابرۍ لحاظ کول دي، او برابري په قسمة بالقيمة سره راځي. (احسن الهدايه)

## د پورتنۍ مسئلې نور وضاحت

| |
|---|
| وَهُمَا يَقُولَانِ: إِنَّ الْقِسْمَةَ بِالذِّرَاعِ هِيَ الْأَصْلُ شيخين رَحِمَهُمَا الله فرمايي: چې د ګزو په ذريعه تقسيم کول اصل دي لِأَنَّ الشَّرِكَةَ فِي الْمَذْرُوعِ لَا فِي الْقِيمَةِ ځکه چې [دلته] شرکت په ګزېدونکې شي [ځمکه] کې دی فَيُصَارُ إِلَيْهِ مَا أَمْكَنَ نو حتى الامكان به د هغه [تقسيم بالذراع] و طرف ته رجوع کيږي وَالْمُرَاعَى التَّسْوِيَةُ فِي السُّكْنَى لَا فِي الْمَرَافِقِ او کوم چې د برابرۍ لحاظ سوی دی هغه په اوسېدلو |

کې دی، نه په منافعو کې [یعني له سکنیٰ څخه بغیر په نورو کې منافعو کې برابري ضروري نه ده] ثُمَّ اخْتَلَفَا فِيْمَا بَيْنَهُمَا فِي كَيْفِيَّةِ الْقِسْمَةِ بِالذَّرْعِ بیا دې دواړو امامانو د تقسیم بالذراع د کیفیت په هکله اختلاف کړی دی فَقَالَ أَبُوْحَنِيْفَةَ: ذِرَاعٌ مِنْ سِفْلٍ بِذِرَاعَيْنِ مِنْ عُلْوٍ نو امام صاحب رَحِمَهُ الله فرمايلي دي: چې د لاندیني منزل یو گز به د پاسني منزل د دوو گزونو په بدله کې وي [یعني د سفل یو گز د علو د وو گزونو په برابر دی] وَقَالَ: أَبُوْيُوْسُفَ: ذِرَاعٌ بِذِرَاعٍ او امام ابو یوسف رَحِمَهُ الله فرمايي: چې یو گز به د یوه گز په بدله کې وي [یعني سفل او علو دواړه په درجه کې برابر دي] قِيْلَ: أَجَابَ كُلٌّ وَاحِدٍ مِنْهُمْ عَلَى عَادَةِ أَهْلِ عَصْرِهِ أَوْ أَهْلِ بَلَدِهِ فِي تَفْضِيْلِ السِّفْلِ عَلَى الْعُلْوِ وَاسْتِوَائِهِمَا وَتَفْضِيْلِ السِّفْلِ مَرَّةً وَالْعُلْوِ أُخْرَى ویل سوي دي: چې هر امام پر علو د سفل د افضل گرځولو یا د دواړو د برابر والي په باره کې یا کله د سفل د افضل گرځولو او کله بیا د علو د افضل گرځولو په باره کې د خپل زمانې یا ښار د خلکو د عادت مطابق جواب ورکړی دی [یا په بله وینا دا چې هر امام د خپل وخت یا خپل ښار پر عادت فیصله کړې ده چې لاندینی منزل یې له پاسني منزل څخه غوره یا دواړه برابر گرځولي دي، یا یو وار لاندینی منزل غوره گرځول سوی دی او بل وار پاسنی منزل] وَقِيْلَ: هُوَ اخْتِلَافُ مَعْنًى او ویل سوي دي: چې دا معنوي اختلاف دی.

**اللغات**: ﴿مذروع﴾ د مفعول صیغه ده: گزېدونکی، ناپېدونکی شی، ﴿المرعی﴾ د فتح د باب مفعول دی: رعایت کړی سوی، لحاظ کړی سوی (ملحوظ)، ﴿سکنی﴾ استوگنه، اوسېدنه، ﴿مرافق﴾ منافع، سهولیات، (یعني په لاندیني منزل کې چې کوم د څاه او زیر خانه یا د داسې نورو د جوړولو چې کوم منافع او سهولیتونه دي، په هغه کې د برابرۍ لحاظ نه دی سوی).

**تشریح**: له دې ځایه صاحب د هدایې رَحِمَهُ الله د تقسیم بالذراع په هکله د شیخینو رَحِمَهُمَا الله مشترک دلیل ذکر کوي، چې د هغه حاصل دا دی چې په تقسیم کې همدا تقسیم بالذراع اصل دی، ځکه دلته شریکان په مذروع یعني په گزېدونکي شي کې شریکان دي، نه په قیمت کې، لهذا تر څو چې تقسیم بالذراع ممکن وي، پر هغه به عمل کول کیږي. او امام محمد رَحِمَهُ الله چې کوم دا ویلي وه چې د منافعو په اعتبار سره په دواړو منزلونو کې تفاوت دی، نو د هغه جواب دا دی چې د برابرۍ او مساوات لحاظ به په اوسېدنه او سکنیٰ کې کول کیږي، نه په منافعو کې، او د ښکاره ده چې د تقسیم بالزراع په صورت کې په اوسېدنه او سکنیٰ کې برابري راځي، لهذا د هغه مطابق به تقسیم کیږي.

ثم اختلفا إلخ: د دې حاصل دا دی چي شيخين رَحِمَهُمَا الله كه څه هم په تقسيم بالذراع كي متفق دي. لېكن په دې صورت كي هغوی د تقسيم په كيفيت او طريقه كي يو له بل څخه جلا دي. امام صاحب رَحِمَهُ الله فرمايي چي د لانديني منزل يو گز به د پاسني منزل د دوو گزونو په برابر تقسيمول كيږي. امام ابو يوسف رَحِمَهُ الله فرمايي چي نه! د هر منزل گز د بل منزل د گز سره برابر دی، كمي بيشي به نه پكښي كيږي.

د امام محمد او شيخينو رَحِمَهُمُ الله تر مينځ دغه اختلاف ولې دی، په دې باره كي خو د بعضي حضراتو رايه دا ده چي د هر امام قول د هغه د زمانې پر عرف او د خلكو پر عادت مبني دی، مثلاً د امام صاحب رَحِمَهُ الله په زمانه كي به خلكو لانديني منزل ته زيات ارزښت او افضليت وركوی، نو ځكه امام صاحب د هغه يو گز د پاسني منزل د دوو گزونو مساوي وگرځوی. د امام ابو يوسف رَحِمَهُ الله په دور كي د دواړو منزلونو ارزښت برابر وو، نو ځكه هغه د مساوات حكم وكړی. او د امام محمد رَحِمَهُ الله په دور كي به كله خلكو پاسني منزل ته ارزښت او اهميت وركوی او كله به يې لانديني منزل ته. نو ځكه هغه د عدل او مساوات لپاره تقسيم بالقيمة اختيار كړی. او يو بل قول دا دی چي دا اختلاف معنوي او حقيقي دی او د دلائلو په اعتبار سره د امامانو مختلف اقوال دي. (احسن الهدايه)

## د امام صاحب رَحِمَهُ الله دليل

وَوَجْهُ قَوْلِ أَبِي حَنِيفَةَ: أَنَّ مَنْفَعَةَ السِّفْلِ تَرْبُو عَلَى مَنْفَعَةِ الْعُلْوِ بِضَعْفِهِ او د امام صاحب رَحِمَهُ الله د قول دليل دا دی: چي د لانديني منزل نفع د پاسني منزل له نفع څخه دوچنده زياته ده لِأَنَّهَا تَبْقَى بَعْدَ فَوَاتِ الْعُلْوِ ځكه چي هغه د پاسني منزل تر فوتېدلو [نړېدلو] وروسته هم باقي پاتيږي وَمَنْفَعَةُ الْعُلْوِ لَا تَبْقَى بَعْدَ فَنَاءِ السِّفْلِ او د پاسني منزل نفع د لانديني منزل تر ختمېدلو وروسته نه پاتيږي وَكَذَا السِّفْلُ فِيهِ مَنْفَعَةُ الْبِنَاءِ وَالسُّكْنَى همدارنګه په لانديني منزل كي د ځای جوړولو او اوسېدلو [دواړو] نفع سته وَفِي الْعُلْوِ السُّكْنَى لَا غَيْرُ او په لانديني منزل كي صرف د اوسېدلو نفع ده، نه د بل څه إِذْ لَا يُمْكِنُهُ الْبِنَاءُ عَلَى عُلْوِهِ إِلَّا بِرِضَا صَاحِبِ السِّفْلِ ځكه د لانديني منزل والا د رضاء څخه بغير هغه [پاسني منزل والا] پر خپل پاسني منزل ځای نه سي جوړولای فَيُعْتَبَرُ ذِرَاعَانِ مِنْهُ بِذِرَاعٍ مِنَ السُّفْلِ نو ځكه د لانديني منزل د يوه گز په بدله كي به د پاسني منزل د دوو گزونو اعتبار كول كيږي [يعني د مذكوره تفاوت په وجه د پاسني منزل دوه گزه د لانديني منزل د يوه گز سره برابر دي].

**اللغات:** ﴿منفعة﴾ نفع، فايده. ﴿تربو﴾ د نصر له بابه د واحد مؤنث غائب مضارع صيغه ده: زياتېدل، إضافه کېدل. ﴿ضعف﴾ دوچنده.

**تشريح:** په دې عبارت کې صاحب د هدايې د امام صاحب رَحِمَهُ الله دليل ذكر كړى دى چې هغه د لاندې منزل يو گز د پاسني منزل د دوو گزونو په برابر ولې گرځولى دى، حاصل د دليل يې دا دى چې د لانديني منزل منفعت په هر حال کې له پاسني منزل څخه زيات دى؛ ځکه د پاسني منزل تر نړېدو او پنا کېدو او وروسته هم لانديني منزل د نفع اخيستو قبل پاتې کېږي، همدارنګه په لانديني منزل کې د اوسېدو برسېره د بل ځاى جوړولو نفع هم سته (چې څاه، زېره خانه او داسې نور پکښې جوړېدلاى سي)، حال دا چې پاسني منزل د لاندې حصې تر نړېدو وروسته ختمېږي او بل دا چې له هغه څخه فقط د اوسېدو نفع اخيستل کېداى سي، لهذا کله چې د دواړو په منافعو کې دومره تفاوت سته، نو د مساوات شکل همدا دى چې د لانديني منزل يو گز د پاسني منزل د دوو گزونو په برابر وي. (احسن الهدايه)

## د صاحبينو دلائل

وَلِأَبِي يُوسُفَ: أَنَّ الْمَقْصُودَ أَصْلُ السُّكْنَى او د امام ابو يوسف رَحِمَهُ الله دليل دا دى: چې اصل مقصود اوسېدنه ده وَهُمَا يَتَسَاوَيَانِ فِيهِ او په دې کې پاسني او لانديني دواړه منزلونه سره برابر دي وَالْمَنْفَعَتَانِ مُتَمَاثِلَتَانِ او دواړه منفعتونه سره ورته [د برابري درجې] دي لِأَنَّ لِكُلِّ وَاحِدٍ مِنْهُمَا أَنْ يَفْعَلَ مَا لَا يَضُرُّ بِالْآخَرِ عَلَى أَصْلِهِ ځکه د امام ابو يوسف رَحِمَهُ الله د اصل مطابق په دوى دواړو کې هر يوه ته د داسې کار کولو اختيار سته کوم چې بل يوه ته تاوان نه رسوي وَلِمُحَمَّدٍ: أَنَّ الْمَنْفَعَةَ تَخْتَلِفُ بِاخْتِلَافِ الْحَرِّ وَالْبَرْدِ بِالْإِضَافَةِ إِلَيْهِمَا او د امام محمد رَحِمَهُ الله دليل دا دى: چې د سفل او علو وطرف ته په نسبت کولو سره د گرمۍ او يخ په بدلون سره منفعت بدلېږي [په لنډه وينا دا چې ديخ او گرمۍ په وجه د دواړو منزلونو منفعت مختلف کېږي] فَلَا يُمْكِنُ التَّعْدِيلُ إِلَّا بِالْقِيمَةِ نو له قيمت څخه بغير برابري کول ممکن نه دي وَالْفَتْوَى الْيَوْمَ عَلَى قَوْلِ مُحَمَّدٍ او ننه ورځ فتوى د امام محمد رَحِمَهُ الله پر قول ده وَقَوْلُهُ لَا يَفْتَقِرُ إِلَى التَّفْسِيرِ او د هغه قول وضاحت ته محتاج نه دى.

**اللغات:** ﴿حر﴾ گرمي. ﴿برد﴾ يخ، يخني. ﴿تعديل﴾ د تفعيل د باب مصدر دى. مراد: برابري کول، سره برابرول. ﴿لا يفتقر﴾ د افتعال له بابه د نفي صيغه دي، إفتِقار: محتاج او ضرورت من کېدل.

**تشریح:** له دې ځایه د صاحبینو دلائل بیانوي، نو د امام ابو یوسف رَحِمَهُ الله د دلیل حاصل دا دی چې منزل برابره ده لاندینی وي او که پاسنی، د دواړو اصلي مقصد اوسېدنه ده، او په نفسِ اوسېدنه کې صاحبِ علو او صاحبِ سفل دواړه برابر دي، بیا د امام ابو یوسف رَحِمَهُ الله په نېز هر شریک ته دا حق سته چې په خپله حصه کې یو ځای جوړ کړي په دې شرط چې د بل شریک نقصان پکښې نه وي، لهذا کله چې دواړو ته د بناء جوړولو حق هم سته، نو په منفعت کې هم هغوی سره برابر سوه. په همدې وجه موږ د ذراع بذراع حکم کړی دی.

د امام محمد رَحِمَهُ الله د دلیل خلاصه دا ده چې د موسم یعني د یخ. گرمی. پسرلي په بدلېدو سره منفعت هم بدلیږي، د گرمۍ په موسم کې خلک کې پاسني منزل خوښوي او دژمي په موسم کې لاندینی منزل بنه گڼي، نو ځکه له قیمت څخه بغیر په شریکانو کې مساوات نه سي راتلای. لهذا غوره همدا ده چې تقسیم بالقیمة وسي. صاحب د هدایې رَحِمَهُ الله فرمایي چې په اوسني دور کې د امام محمد رَحِمَهُ الله پر قول فتویٰ ده. د هغه قول آسانه دی نو ځکه تفسیر او وضاحت ته محتاج نه دی. ځکه هر یو په قیمت او حساب وکتاب واقف دی. نو قیمت ته دي اندازه ولګوي او تقسیم دي شروع کړي.

### د امام صاحب رَحِمَهُ الله د قول تفسیر

وَتَفْسِيرُ قَوْلِ أَبِي حَنِيفَةَ فِي مَسْأَلَةِ الْكِتَابِ أَنْ يُجْعَلَ بِمُقَابَلَةِ مِائَةِ ذِرَاعٍ مِنَ الْعُلْوِ الْمُجَرَّدِ ثَلَاثَةٌ وَثَلَاثُونَ وَثُلُثُ ذِرَاعٍ مِنَ الْبَيْتِ الْكَامِلِ او په قدوري [متن] کې د امام صاحب رَحِمَهُ الله د قول وضاحت دا دی چې د علو مجرد سل گزه د بیت کامل د درودېرش او دیوه گز د ثلث [۳۳.۳۳] په مقابله کې وګرځول سي [ورکول سي] لِأَنَّ الْعُلْوَ مِثْلُ نِصْفِ السِّفْلِ ځکه چې علو [پاسنی منزل] د سفل [لاندینی منزل] د نصف په څېر دی فَثَلَاثَةٌ وَثَلَاثُونَ وَثُلُثٌ مِنَ السِّفْلِ سِتَّةٌ وَسِتُّونَ وَثُلُثَانِ مِنَ الْعُلْوِ نو [دبیت کامل] د سفل درودېرش گزه او ثلث د علو د شپږ شپېته گزو او [دیوه گز] د دوو ثلثو سره برابر سوه وَمَعَهُ ثَلَاثَةٌ وَثَلَاثُونَ وَثُلُثُ ذِرَاعٍ مِنَ الْعُلْوِ او د دې [شپږشپېته او دوه ثلثه گزو] سره نور د علو درودېرش گزه او ثلث د گز دی فَبَلَغَتْ مِائَةَ ذِرَاعٍ تُسَاوِي مِائَةً مِنَ الْعُلْوِ الْمُجَرَّدِ نو دا سل گز سوه کوم چې د علوم مجرد د سلو گزو سره برابر دي.

وَيُجْعَلُ بِمُقَابَلَةِ مِائَةِ ذِرَاعٍ مِنَ السِّفْلِ الْمُجَرَّدِ مِنَ الْبَيْتِ الْكَامِلِ سِتَّةٌ وَسِتُّونَ وَثُلُثَا ذِرَاعٍ او د سفل مجرد د سلو گزو په مقابله کې به د بیت کامل شپږ شپېته گزه او دوه ثلثه گرځول کیږي

[ورکول کیږي] لِأَنَّ عُلْوَهُ مِثْلُ نِصْفِ سِفْلِهِ ځکه چې د بیت کامل علو د هغه د سفل د نصف په څېر ده فَبَلَغَتْ مِائَةَ ذِرَاعٍ نو دا سل گزه سوه كَمَا ذَكَرْنَا لكه څرنګه چې موږ ذکر کړه.

**اللغات:** ﴿ذراع﴾ شرعي گز (کوم چې یو لاس کیږي تر څنګلي پورې)، ﴿بيت كامل﴾ پوره کور. مراد ځني هغه دومنزله ځای دی چې پاسنی منزل یې هم وي او لاندینی منزل یې هم وي (یعني د دومنزله ځای دواړه منزلونه د دوو شریکانو په مینځ کې مشترک وي)، ﴿علو مجرد﴾ صرف پاسنی منزل، یوازې پاسنی منزل (یعني د دومنزله ځای صرف پاسنی منزل مشترک وي او لاندینی منزل د بل چا وي)، ﴿سفل مجرد﴾ صرف پاسنی منزل (یعني د دومنزله ځای صرف لاندیني منزل مشترک وي...).

**تشريح:** څرنګه چې امام صاحب رَحِمَهُ الله د ذراع بذراعين قائل دی (لکه مخکې چې یې تفصیل تېر سو)، نو که یو طرف ته علو مجرد او بل طرف ته بیت کامل وي (یعني څنګ په څنګ دوه دانې دومنزله ځایونه وي چې دیوه صرف پاسنی منزل او دا بل ټوله د دوو خلکو تر مینځ مشترک وي)، نو دامام صاحب رَحِمَهُ الله په نېز به تقسیم داسې کیږي چې د علو مجرد د سلو (۱۰۰) گزو په مقابله کې به د بیت کامل درو دېرش گزه او دیوه گز درېیمه حصه (یعني ۳۳.۳۳ گزه) ورکول کیږي، ځکه چې د امام صاحب په نېز د سفل (لاندیني منزل) یو گز د علو (پاسني منزل) د دوو گزونو په برابر دی، او بیت کامل خو علو او سفل دواړه لري (یعني پاسنی او لاندینی دواړه منزلونه پکښې سته کوم چې د دوی تر مینځ مشترک دي) نو یوازې د بیت کامل د سفل ۳۳.۳۳ گزه چې دوچنده کړی سي نو ۶۶.۶۶ گزه کیږي یعني د بیت کامل د سفل درو دېرش گزه او دیوه گز یو ثلث داسې دي لکه شپږ شپېته گزه او دیوه گز دوه ثلثه، لهذا د بیت کامل د سفل ۳۳.۳۳ گزه به د علومجرد د ۶۶.۶۶ گزو په برابر وي. او پاته سوه د علو مجرد ۳۳.۳۳ گزه نو هغه به د بیت د کامل د علو د ۳۳.۳۳ گزو په مقابله کې سي. نو په دې توګه د بیت کامل (یعني د سفل او علو دواړو) ۳۳.۳۳ گزه د علو مجرد (یعني دیوازې علو) د ۱۰۰ گزو سره برابر دي.

او که یو طرف ته سفل مجرد وي او بل طرف ته بیت کامل وي نو تقسیم به یې داسې کیږي چې د سفل مجرد د سلو (۱۰۰) گزو په مقابله کې به د بیت کامل شپږ شپېته گزه او دیوه گزه دوه ثلثه (یعني ۶۶.۶۶ گزه) ورکول کیږي؛ ځکه چې د سفل مجرد ۶۶.۶۶ گزه د بیت کامل د سفل د ۳۳.۳۳ گزو په مقابله کې سوه (ځکه د امام صاحب رَحِمَهُ الله په نېز د سفل ۳۳.۳۳ گزه د ۶۶.۶۶ گزه سره برابر دي)، او پاته سوه د سفل مجرد ۳۳.۳۳ گزه نو هغه به د بیت کامل د علو د ۶۶.۶۶ گزو په مقابله کې سي. نو په دې توګه د سفلِ مجرد سل گزه د بیت کامل د شپږشپېته گزو او دوه ثلثو په برابر او مقابل دي.

## د امام ابو یوسف رَحِمَهُ الله د قول تفسیر

وَتَفْسِيرُ قَوْلِ أَبِي يُوسُفَ أَنْ يُجْعَلَ بِإِزَاءِ خَمْسِينَ ذِرَاعًا مِنَ الْبَيْتِ الْكَامِلِ مِائَةُ ذِرَاعٍ مِنَ السِّفْلِ الْمُجَرَّدِ وَمِائَةُ ذِرَاعٍ مِنَ الْعُلْوِ الْمُجَرَّدِ او د امام ابو یوسف رَحِمَهُ الله د قول وضاحت دا دی چي د بیت کامل د پنځوس گزو په مقابله کي د سفل مجرد یا د علو مجرد سل گزه وګرځول سي لِأَنَّ السِّفْلَ وَالْعُلْوَ عِنْدَهُ سَوَاءٌ ځکه چي د هغه په نېز سفل او علو [لاندیني او پاسنی دواړه منزلونه] سره برابري دي فَخَمْسُونَ ذِرَاعًا مِنَ الْبَيْتِ الْكَامِلِ بِمَنْزِلَةِ مِائَةِ ذِرَاعٍ خَمْسُونَ مِنْهَا سُفْلٌ وَخَمْسُونَ مِنْهَا عُلْوٌ نو د بیت کامل پنځوس گزه د سلو گزو په درجه کي سوه [ځکه] پنځوس گزه [د بیت کامل] د سفل دي او پنځوس گزه یې د علو دي.

**اللغات**: ﴿بإزاء﴾ په مقابله کي، په برابري کي. ﴿ذراع﴾ شرعي گز.

**تشریح**: څرنګه چي امام ابو یوسف رَحِمَهُ الله دلته د تقسیم ذراع بالذراع قائل دی او د هغه په نېز د سفل او علو دواړه منزلونه په درجه کي سره برابره دي، نو د هغه په نېز به د سفل مجرد یا علو مجرد د سلو (۱۰۰) گزو په مقابله کي د بیت کامل پنځوس (۵۰) گزه وي (یعني د بیت کامل پنځوس گزه د علو مجرد یا سفل مجرد د سلو گزو په برابر دي)؛ ځکه بیت کامل خو علو او سفل دواړه لري نو پنځوس گزه د علو سوه او پنځوس گزه د سفل سوه او مجموعه سل (۱۰۰) گزه سو. نو په دې توګه د بیت کامل پنځوس گزه د سفل مجرد یا د علو مجرد د سلو گزو په برابر او مقابل دي.

## د شریکانو او قاسمینو د اختلاف په صورت کي معتبر قول

قَالَ: وَإِذَا اخْتَلَفَ الْمُتَقَاسِمُونَ وَشَهِدَ الْقَاسِمَانِ فرمایي: او کله چي متقاسمین [شریکان] اختلاف وکړي بیا دوه تقسیم کونکي ګواهي ورکړي قُبِلَتْ شَهَادَتُهُمَا نو د دواړو ګواهي به قبلول کیږي قَالَ ﷺ: هٰذَا الَّذِي ذَكَرَهُ قَوْلُ أَبِي حَنِيفَةَ وَأَبِي يُوسُفَ صاحب د هدایې رَحِمَهُ الله فرمایي: چي دا کوم قول چي امام قدوري رَحِمَهُ الله ذکر کړی دی د شیخینو رَحِمَهُمَا الله قول دی وَقَالَ مُحَمَّدٌ ❀: لَا تُقْبَلُ او امام محمد رَحِمَهُ الله فرمایي: چي نه به قبلول کیږي وَهُوَ قَوْلُ أَبِي يُوسُفَ أَوَّلًا او همدا د امام ابو یوسف رَحِمَهُ الله اولنی قول دی وَبِهِ قَالَ الشَّافِعِيُّ او همدا امام شافعي رَحِمَهُ الله ویلي دي وَذَكَرَ الْخَصَّافُ قَوْلَ مُحَمَّدٍ مَعَ قَوْلِهِمَا او امام خصاف د امام محمد قول د شیخینو رَحِمَهُمُ الله سره ذکر کړی دی وَقَاسِمَا الْقَاضِي وَغَيْرِهِمَا سَوَاءٌ او [دا] تقسیم کونکي د قاضي له طرفه وي او که له هغه څخه بغیر نور وي تو له سره برابر دي.

---

❀ القول الراجح: قول أبي حنيفة وأبي يوسف رَحِمَهُمَا الله، كما في الخانية (ج:۳، ص:۲۱۵)، وملتقى الأبحر (ج:۴، ص:۳۳). [القول الراجح ج:۲، ص: ۲۸۱]

**اللغات**: ﴿قَاسِمَا﴾ تثنيه د قَاسِمٌ ده چي په اصل کي قَاسِمَان دي، نون په اضافت سره حذف سو: تقسيم کونکي، وېش کونکي.

**تشريح**: **صورت د مسئلې**: دا دی چي تقسيم کونکو (قاسمينو) د شريکانو (متقاسمينو) تر مينځ کور تقسيم کړی، بيا شريکانو اختلاف وکړی مثلاً يوه شريک وويل چي فلانکی خونه زما په حصه کي وه لېکن هغه ما ته په تقسيم کي نه ده رسېدلې، لېکن دوو قاسمينو دا ګواهي ورکړه چي هغه خونه او حصه ده ته رسېدلې ده هسي درواغ او جنجال جوړوي، نو د شيخينو رَحِمَهُمَا الله په نېز به د دې قاسمينو ګواهي قبلول کيږي.

امام محمد رَحِمَهُ الله فرمايي چي د قاسمينو ګواهي به د شريکانو په حق کي نه قبلول کيږي، امام ابو يوسف رَحِمَهُ الله هم مخکي د دې قائل وو، همدا د امام شافعي رَحِمَهُ الله مسلک دی، او امام خصاف د امام محمد قول د شيخينو رَحِمَهُمُ الله سره يو ځای ذکر کړی دی، يعني څرنګه چي د شيخينو په نېز د قاسمينو ګواهي مقبوله ده، همداسي د امام محمد رَحِمَهُ الله په نېز هم مقبوله ده، برابره ده قاسمين د قاضي له طرفه مقرر سوی وي، يا خپله شريکانو هغوی مقرر کړي وي.

### د امامانو دلائل

لِمُحَمَّدٍ: أَنَّهُمَا شَهِدَا عَلٰى فِعْلِ أَنْفُسِهِمَا د امام محمد رَحِمَهُ الله دليل دا دی: چي تقسيم کونکو [قاسمينو] پر خپل فعل ګواهي ورکړې ده فَلَا تُقْبَلُ نو ځکه هغه به نه قبلول کيږي كَمَنْ عَلَّقَ عِتْقَ عَبْدِهِ بِفِعْلِ غَيْرِهِ لکه هغه کس کوم چي د خپل غلام آزادي د يو بل چا پر فعل معلقه کړي فَشَهِدَ ذٰلِكَ الْغَيْرُ عَلٰى فِعْلِهِ بيا دا بل شوک پر خپل فعل ګواهي ورکړي وَلَهُمَا: أَنَّهُمَا شَهِدَا عَلٰى فِعْلِ غَيْرِهِمَا وَهُوَ الِاسْتِيفَاءُ وَالْقَبْضُ او د شيخينو رَحِمَهُمَا الله دليل دا دی: چي تقسيم کونکو د بل چا [شريکانو] پر فعل ګواهي ورکړې ده او هغه ترلاسه کول [د حصو اخيستل] او قبضه کول دي لَا عَلٰى فِعْلِ أَنْفُسِهِمَا پر خپل فعل يې ګواهي نه ده ورکړې لِأَنَّ فِعْلَهُمَا التَّمْيِيزُ ځکه چي د دوی فعل [د شريکانو د حصو] سره جلا کول دي وَلَا حَاجَةَ إِلَى الشَّهَادَةِ عَلَيْهِ او پر دې ګواهي ته ضرورت نسته أَوْ لِأَنَّهُ لَا يَصْلُحُ مَشْهُودًا بِهِ يا ځکه چي تمييز [د قاسم فعل] د مشهود به جوړېدلو صلاحيت نه لري [يعني د دې صلاحيت نه لري چي ګواهي پر وړ کول سي] لِمَا أَنَّهُ غَيْرُ لَازِمٍ ځکه چي دا [تمييز] لازم نه دي

وَإِنَّمَا يَلْزَمُ بِالْقَبْضِ وَالِاسْتِيفَاءِ او دا [تميز] خو تر قبضه کولو او [د حصې] ترلاسه کولو وروسته لازمیږي [چې کله شریکان پر خپلو حصو قبضه وکړي او ترلاسه یې کړي] وَهُوَ فِعْلُ الْغَيْرِ او هغه [قبضه او ترلاسه کول] د بل چا فعل دی [یعني د شریکانو فعل دی، نه د قاسمینو] فَتُقْبَلُ الشَّهَادَةُ عَلَيْهِ نو ځکه پر هغه به [د قاسمینو] ګواهي اقبلول کیږي.

**اللغات:** ﴿استیفاء﴾ د استفعال د باب مصدر دی: ترلاسه کول، پوره اخیستل. ﴿تمییز﴾ د تفعیل د باب مصدر دی: سره جلا کول، یو تر بله بېلول. ﴿مشهود به﴾ پر کوم شي چې ګواهي ورکول سي (د کوم شي په باره کې چې ګواهي پېش کړی سي).

**تشریح:** له دې ځایه صاحب د هدایې رَحِمَهُ الله د امامانو دلیلونه ذکر کوي. د امام محمد رَحِمَهُ الله د دلیل حاصل دا دی چې دلته تقسیم کونکو (قاسمینو) پر خپل فعل ګواهي ورکړې ده، او د انسان پر خپل فعل د هغه ګواهي نه قبلول کیږي، نو ځکه دلته به د قاسمینو ګواهي نه قبلول کیږي، مثلاً که خالد ووایي چې که زید بازار ته ولاړی نو زما غلام آزاد دی. وروسته غلام دا دعویٰ وکړه چې زید بازار ته ولاړی نو زه آزاد یم او بیا همدې زید خپله پر خپل تګ ګواهي ورکړه (چې هو! زه ولاړم)، نو د هغه ګواهي معتبره او مقبوله نه ده؛ ځکه چې دلته خپله زید پر خپل فعل ګواهي ورکړې ده.

ولهما إلخ: د شیخینو رَحِمَهُمَا الله د دلیل حاصل دا دی چې موږ هم دا وایو چې پر خپل فعل د انسان ګواهي معتبره نه ده، خو دلته قاسمینو پر خپل فعل نه، بلکې د بل چا (یعني د شریکانو) پر فعل ګواهي ورکړې ده، د شریکانو فعل د قبضې او حصو ترلاسه کول دي، او د قاسمینو فعل د شریکانو د حصو سره جلا کول دي، او پر دې ګواهي ورکولو ته ضرورت نسته، نو دوی پر خپل فعل ګواهي نه ده ورکړې.

او بل دا چې ګواهي (شهادت) د یو شي د لازمولو لپاره وي او په تمییز (سره جلا کولو) کې د إلزام صلاحیت نسته، نو پر هغه د ګواهي ورکولو ته ضرورت هم نسته. خلاصه دا چې دلته قاسمینو د بل چا پر فعل ګواهي ورکړې ده، او د بل چا پر فعل ګواهي مقبوله وي، نو ځکه دلته به د دوی ګواهي قبلول کیږي.

## په پورتنۍ مسئله کې د امام طحاوي رَحِمَهُ الله قول او د هغه جواب

وَقَالَ الطَّحَاوِيُّ: إِذَا قَسَمَا بِأَجْرٍ او امام طحاوي رَحِمَهُ الله فرمایي: چې که تقسیم کونکو [قاسمینو] په أجرت سره تقسیم کړی وي لَا تُقْبَلُ الشَّهَادَةُ بِالْإِجْمَاعِ نو بالاجماع به د دوی ګواهي نه قبلول کیږي وَإِلَيْهِ مَالَ بَعْضُ الْمَشَايِخِ او همدې طرف ته بعضي مشایخو میلان کړی دی لِأَنَّهُمَا يَدَّعِيَانِ

إِيْفَاءَ عَمَلٍ اُسْتُوْجِرَا عَلَيْهِ ځکه چي دوی دواړه د داسي کار د پوره کولو دعویٰ کوي چي پر هغه دوی په اُجرت نیول سوي دي فَكَانَتْ شَهَادَةً صُورَةً وَدَعْوَى مَعْنًى نو دا د صورت په اعتبار سره گواهي او د معنیٰ په اعتبار سره [د خپل اُجرت] دعویٰ ده فَلَا تُقْبَلُ نو ځکه به نه قبلول کیږي إِلَّا أَنَّا نَقُوْلُ: هُمَا لَا يَجُرَّانِ بِهٰذِهِ الشَّهَادَةِ إِلٰى أَنْفُسِهِمَا مَغْنَمًا خو موږ [په جواب کي ورته] وايو: چي دوی په خپل دغه گواهۍ سره خپل طرف ته یو نفع نه را کشوي لِاتِّفَاقِ الْخُصُوْمِ عَلٰى إِيْفَائِهِمَا الْعَمَلَ الْمُسْتَأْجَرَ عَلَيْهِ ځکه چي د خصومو [شریکانو] پر دې اتفاق دی چي دوی [قاسمینو] خپل کار پوره کړی دی پر کوم چي دوی په اُجرت نیول سوي دي وَهُوَ التَّمْيِيْزُ او هغه [د شریکانو حصې] سره جلا کول دي وَإِنَّمَا الْاِخْتِلَافُ فِي الْاِسْتِيْفَاءِ او اختلاف خو په ترلاسه کولو کي دی فَانْتَفَتِ التُّهْمَةُ نو [له تقسیم کونکو څخه] تهمت نفي سو.

**اللغات**: ﴿مَالَ﴾ د ضرب د باب ماضي ده: میلان کول. ﴿إیفاء﴾ د افعال د باب مصدر دی: پوره کول، پوره اداء کول. ﴿استوجرا﴾ د استفعال له بابه تثنیه غائب ماضي مجهوله ده: په اُجرت نیول کېدل. (په مزدوري نیول کېدل). ﴿لا یجرّان﴾ د نصر له بابه تثنیه غائب نفي ده: راکشول. ﴿مغنم﴾ غنیمت، نفع. ﴿انتفت﴾ د افتعال له بابه واحد مؤنث غائب ماضي ده: نفي کېدل، ختمېدل.

**تشریح**: د امام طحاوي رَحِمَهُ الله د قول حاصل دا دی چي که تقسیم کونکو (قاسمینو) په اُجرت سره تقسیم کړی وي (یعني شریکانو وهغو ته اُجرت او مزدوري [پیسې] ورکړي وي)، نو د هغو گواهي به نه قبلول کیږي؛ ځکه چي دلته د گواهۍ په ضمن کي هغوی د دې خبري دعویٰ کونکي جوړیږي چي د کوم کار لپاره چي موږ په مزدورۍ نیول سوي وو (یعني تقسیم)، موږ خو هغه پوره کړی لهذا موږ ته دي اُجرت راکول سي. نو دلته د دوی گواهي صورتاً خو گواهي ده لېکن معناً د اُجرت اخیستلو دعویٰ او د خپل ځان لپاره گواهي ورکول دي (چي موږ ته دي خپل اُجرت او مزدوري راکول سي)، نو ځکه دا گواهي به نه قبلول کیږي. (اثمار الهدایه)

**إلا أنا نقول الخ**: په دې سره صاحب د هدایې د امام طحاوي رَحِمَهُ الله دلیل بې بنیاده ثابتوي، فرمایي چي دلته خو قاسمینو ته په خپل گواهي سره څه نفع او فایده نه حاصلیږي، د دوی د کار پر پوره کېدلو خو ټوله شریکان متفق دي، اختلاف فقط د حق او حصې ترلاسه کولو په هکله دی (چي یو شریک وایي ما ته خپله حصه نه ده رسېدلې او نور وایي چي داسي نه ده)، لهذا کله چي د قاسمینو سره اختلاف

نسته. نو پر دوی دا تهمت هم نسته چي دوی به د خپل نفع په خاطر ګواهي ورکوي، او کله چي د تهمت نفي وسوه، نو د دوی ګواهي به معتبره او مقبوله وي؛ ځکه قاعده دا ده چي "إذا زال المانع عاد الممنوع" (د مانع په ختمېدلو سره ممنوع واپس راځي).

## د يوه قاسم ګواهي معتبره نه ده

وَلَوْشَهِدَقَاسِمٌ وَاحِدٌ او که يو قاسم ګواهي ورکړي لَا تُقْبَلُ نو نه به قبلول کيږي لِأَنَّ شَهَادَةَ الْفَرْدِ غَيْرُ مَقْبُولَةٍ عَلَى الْغَيْرِ ځکه چي يوازي د يوه کس ګواهي پر بل چا نامقبوله ده وَلَوْ أَمَرَ الْقَاضِيْ أَمِيْنَهُ بِدَفْعِ الْمَالِ إِلَى آخَرَ او که قاضي خپل امين [امانت ساتونکي] ته حکم وکړي چي بل چا ته مال ورکړي يُقْبَلُ قَوْلُ الْأَمِيْنِ فِيْ دَفْعِ الضَّمَانِ عَنْ نَفْسِهِ نو د امين قول به له خپل ذات څخه د ضمان دفع کولو په هکله قبلول کيږي وَلَا يُقْبَلُ فِيْ إِلْزَامِ الْآخَرِ إِذَا كَانَ مُنْكِرًا او پر هغه بل چا [د مال] لازمولو په هکله به نه قبلول کيږي کله چي هغه انکار کونکی وي [چي ما ته امين مال نه دی راکړی].

**اللغات**: ﴿ضمان﴾ تاوان، جرمانه.

**تشريح**: مخکي تر دې د دوو قاسمينو د ګواهۍ بيان وو، دلته دا فرمايي چي که يوازي يو قاسم ګواهي ورکړي، نو د هغه ګواهي به نه قبلول کيږي؛ ځکه چي د بل چا په خلاف يوازي د يوه کس ګواهي او قول په شريعت کي نامقبوله دی او دليل نه سي جوړېدای.

که چيري قاضي خپل امين (امانت ساتونکي) ته وويل چي فلانکي کس ته مثلاً زر درهمه ورکړه، او امين وويل چي ما ورکړه او هغه کس انکار کوي چي ما ته يې نه دي راکړي، نو د امين قول به قبلول کيږي، که نه؟، دلته دوه اړخونه دي: ① که د امين قول قبول نه سي، نو پر امين ضمان (تاوان) واجبيږي (چي اوس به امين هغه منکر کس ته زر درهمه ورکوي)، ② او که د امين قول قبول سي، نو هغه زر درهمه پر بل چا (يعني پر منکر کس) لازميږي (چي هغه خپل زر درهمه اخيستي دي).

نو فرمايي چي دلته به داسي طريقه اختيارول کيږي چي د دواړو نقصان پکښي نه وي يعني د امين قول به د ضمان دفع کېدلو په هکله قبلول کيږي چي له هغه څخه ضمان دفع سي (يا په بله وينا دا چي د امين قول به تر دې حده قبلول کيږي چي دلته پر هغه ضمان نسته)، او دويم طرف ته به د هغه په قول سره پر دې منکر کس د مال لازمول (اخيستل) هم نه ثابتيږي (چي هغه نو خپل زر درهمه اخيستي دي)، ځکه چي د امين قول که څه هم دفع کونکی دليل (حجت دافعه) دی، ليکن لازمونکی دليل (حجت مُلزِمه) نه دی.

❀❀❀

# بَابُ دَعْوَى الْغَلَطِ فِي الْقِسْمَةِ وَالْاِسْتِحْقَاقِ فِيهَا

## (دا) باب په تقسيم کي د غلطۍ (تېروتني) د دعوې کولو او د استحقاق د دعوې کولو په بيان کي دئ

**تشريح:** کله چي قاسم وېش او تقسيم وکړي نو اوس که يو شريک په تقسيم کي د غلطۍ دعوىٰ وکړي (چي دا تقسيم غلط دئ او تېروتنه پکښي سوې ده) يا څوک په تقسيمېدونکي شي کي د خپل استحقاق دعوىٰ وکړي (چي مثلاً په دې کي څه حصه زما ده)، نو د دې بېلا بېل صورتونه او حکمونه دي، چي د هغه تفصيل په دغه باب کي ذکر کيږي؛ ځرنګه چي په مشترک شي کي تقسيم اصل دئ او په تقسيم کي د غلطۍ يا د استحقاق دعوىٰ له عوارضو څخه ده، نو ځکه صاحب د کتاب رَحِمَهُ الله اول اصل (تقسيم) بيان کړی دی، او تر هغه وروسته عوارض بيانوي.

### په تقسيم کي د غلطۍ دعوىٰ کول

قَالَ: وَإِذَا ادَّعَى أَحَدُهُمُ الْغَلَطَ فرمايي: او کله چي له شريکانو څخه يو [په تقسيم کي] د غلطۍ دعوىٰ وکړي وَزَعَمَ أَنَّ مِمَّا أَصَابَهُ شَيْئًا فِي يَدِ صَاحِبِهِ او ووايي چي کومه حصه ما ته رسېدلې ده، له هغه څخه څه زما د ملګري شريک په قبضه کي ده وَقَدْ أَشْهَدَ عَلَى نَفْسِهِ بِالْاِسْتِيفَاءِ حال دا چي هغه پر خپل ځان [د خپل حصې] د ترلاسه کولو ګواهي ورکړې وي [يعني هغه دا اقرار هم کړی وي چي ما خپل حصه ترلاسه کړې ده] لَمْ يُصَدَّقْ عَلَى ذٰلِكَ إِلَّا بِبَيِّنَةٍ نو له بيّنه [ګواهۍ] څخه بغير به د هغه [د دې د غلطۍ] پر دعوىٰ تصديق نه کيږي لِأَنَّهُ يَدَّعِي فَسْخَ الْقِسْمَةِ بَعْدَ وُقُوعِهَا ځکه چي هغه د تقسيم تر واقع کېدلو [او پوره کېدلو] وروسته د هغه د فسخ کېدلو دعوىٰ کوي فَلَا يُصَدَّقُ إِلَّا بِحُجَّةٍ ۱ نو ځکه له يو دليل څخه بغير به د هغه تصديق نه کيږي فَإِنْ لَمْ تَقُمْ لَهُ بَيِّنَةٌ بيا که د هغه لپاره بيّنه قائم نه کړی سي اسْتَحْلَفَ الشُّرَكَاءَ نو قاضي دي له شريکانو څخه قسم واخلي فَمَنْ نَكَلَ مِنْهُمْ نو له دوی څخه چي کوم يو له قسم اخيستو څخه انکار وکړي جُمِعَ بَيْنَ نَصِيبِ النَّاكِلِ وَالْمُدَّعِي نو قاضي دي د هغه مدعي شريک او منکر شريک حصې سره جمع کړي فَيُقْسَمُ بَيْنَهُمَا عَلَى قَدْرِ أَنْصِبَائِهِمَا او د

دوی تر مینځ دي د دوی د حصو په اندازه تقسیم وکړي لِأَنَّ النُّكُولَ حُجَّةٌ فِي حَقِّهِ خَاصَّةً ځکه چي انکار په خاصه توګه د منکر په حق کي حجت دی فَيُعَامَلَانِ عَلَىٰ زَعْمِهِمَا لهذا د دوی دواړو د خپل ګومان [او نهم] مطابق به معامله کیږي قَالَ رَضِيَ اللّٰهُ عَنْهُ : يَنْبَغِي أَنْ لَا تُقْبَلَ دَعْوَاهُ أَصْلًا صاحب د هدایې رَحِمَهُ الله فرمایي: پکار دا ده چي د دې مدعي شریک دعویٰ بالکل قبوله نه کړی سي لِتَنَاقُضِهِ ځکه چي په هغه کي تناقض دی وَإِلَيْهِ أَشَارَ مَنْ بَعْدُ او امام قدوري په وروسته [راروان متن] کي همدې ته اشاره کړي ده.

**اللغات:** ﴿أصاب﴾ د دې باب څو معناوي دي چي يوه معنیٰ يې ده: رسېدل (حاصلېدل). ﴿زعم﴾ د ماضي صيغه ده له فَتح او نصر دواړو بابونو څخه ويل کېدای سي: ګومان کول. د قَالَ په معنیٰ سره هم راځي، ﴿استيفاء﴾ د استفعال مصدر دی: پوره اخیستل، ترلاسه کول. ﴿حجة﴾ دليل. ﴿استحلف﴾ د استفعال ماضي ده: له يو چا څخه قسم اخیستل (قسم په کول). ﴿نكل﴾ د ماضي صيغه ده، له فتح، سمع او نصر ټولو بابونو څخه ويل کېدای سي، مصدر يې نُكُول راځي: له قسم څخه انکار کول. ﴿أنصباء﴾ جمع د نصيبٌ ده: حصه، برخه. ﴿قدر انصباء﴾ يعني د هر شریک چي څومره حصه ده د هغه مطابق به دوباره تقسیم کیږي. ﴿يعاملان على زعمهما﴾ د دوی دواړو د ګومان مطابق معامله به کیږي، يعني د دوی په ګومان کي دي چي تقسیم صحیح نه دی سوی، نو ځکه دوباره به تقسیم کیږي، چي د هغه د ګومان مطابق دوباره تقسیم صحیح سي. (اثمار الهدايه)

**تشریح: صورت د مسئلې:** دا دی چي د څو خلګو يو مشترکه ځمکه وه او قاسم هغه د دوی په مینځ کي تقسیم کړه او دوی هر يوه پر خپل حصه قبضه وکړه، څه وخت وروسته يو شریک وايي چي د ځمکي فلانکۍ حصه (ټوټه) هم زما وه، هغه ما ته نه ده راکول سوې او دا غلط تقسیم سوی دی، نو د هغه دا دعویٰ به له دليل او بيّنې (ګواهی) څخه بغیر نه قبلول کیږي؛ ځکه تقسیم خو ثابت سوی او پوره سوی دی، او اوس دا شریک په خپل دغه دعویٰ سره د تقسیم فسخ کولو (ماتولو) قائل دی. او د يو ثابت شده شي د فسخ کولو لپاره بيّنه پېشول ضروري دي، لهذا له بيّنې څخه بغیر د هغه دعویٰ بې بنیاده او نا مقبوله ده.

که چیري دا مدعي شریک بيّنه پېش کړي، نو سمه ده، کنې د هغه پر مطالبه به قاضي د دې تقسیم د صحیح پاتېدلو لپاره له نورو شریکانو څخه قسم اخلي، کوم شریک چي قسم واخلي، هغه

له مینځه وځي (خلاصيږي)، لېکن کوم شريک چي له قسم څخه انکار وکړي، نو قاضي به د هغه او د مدعي شريک حصې سره جمع کړي او دوباره به د دوی تر مينځ د خپلو حصو په برابر تقسيم وکړي؛ ځکه چي د منکر شريک انکار د هغه د اقرار په درجه کي دی، يعني ګواکي له ټولو شريکانو څخه يوازي هغه د مدعي شريک د دعوې اقرار کوي (چي د هغه دعوی صحيح ده)، نو ځکه د هغه او مدعي تر مينځ به دوباره تقسيم کيږي.

قال رضي الله عنه إلخ: صاحب د هدايې رَحِمَهُ الله فرمايي چي له بيّنه پېشولو څخه وروسته هم د مدعي شريک دعوی قبلول پکار نه دي؛ ځکه مخکي خو يو وار هغه د خپل حق ترلاسه کولو اقرار کړی دی، اوس تر هغه وروسته د خپل حق د پاته والي اقرار کوي (چي ما ته خپل بعضي حصه نه ده راکول سوې او هغه د بل شريک په قبضه کي پاته ده...)، نو د هغه په اقرار او دعوی کي ښکاره تناقض دی، او تناقض له قبول بيّنه څخه مانع دی، نو ځکه له بيّنه پېشولو څخه وروسته به هم د هغه دعوی نه قبلول کيږي. په را روان عبارت (متن) کي همدې ته اشاره سوې ده.

## د پورتني مسئلې نور وضاحت

وَإِنْ قَالَ: قَدِ اسْتَوْفَيْتُ حَقِّي وَأَخَذْتُ بَعْضَهُ او كه مدعي شريک داسي ووايي: چي ما خپل حق ترلاسه کړی دی [لېکن] تا د هغه بعضي حصه اخيستې ده [او كه أخذتُ د متكلم په صيغه سره سي نو معنی يې ده: لېکن ما صرف د هغه بعضي حصه اخيستې ده] فَالْقَوْلُ قَوْلُ خَصْمِهِ مَعَ يَمِينِهِ نو قول د ده د خصم [مدِ مقابل] معتبر دی سره د قسمه لِأَنَّهُ يَدَّعِي عَلَيْهِ الْغَصْبَ ځکه چي دئ [مدعي شريک] پر هغه د غصب دعوی کوي وَهُوَ مُنْكِرٌ او هغه انکار کونکی دی وَإِنْ قَالَ: أَصَابَنِي إِلَى مَوْضِعِ كَذَا فَلَمْ يُسَلِّمْهُ إِلَيَّ او كه هغه [مدعي شريک] داسي ووايي: چي [په تقسيم کي] زما حق [او زما حصه] تر فلانکي ځايه رسېدلی وو لېکن هغه ما ته [تر هغه ځايه] نه دی سپارلی وَلَمْ يَشْهَدْ عَلَى نَفْسِهِ بِالِاسْتِيفَاءِ حال دا چي مدعي شريک پر خپل ځان [د خپل حصې] د ترلاسه کولو اقرار هم نه وي کړی وَكَذَّبَهُ شَرِيكُهُ او د ده شريک د ده تکذيب وکړي تَحَالَفَا وَفُسِخَتِ الْقِسْمَةُ نو [اوس] به دواړه قسمونه اخلي او تقسيم به فسخ کول کيږي لِأَنَّ الِاخْتِلَافَ فِي مِقْدَارِ مَا حَصَلَ لَهُ بِالْقِسْمَةِ ځکه چي اختلاف د هغه څه [حصې] په مقدار کي دی کوم چي ده ته په تقسيم کي حاصل سوی دی [بزعمه] فَصَارَ نَظِيرَ الِاخْتِلَافِ فِي

مِقْدَارِ الْمَبِيعِ نو دا د مبيع په مقدار کي د اختلاف نظير سو عَلَىٰ مَا ذَكَرْنَا مِنْ أَحْكَامِ التَّحَالُفِ فِيمَا تَقَدَّمَ لکه څرنګه چي مونږ مخکي د قسم اخيستلو د احکامو په بيان کي ذکر کړه.

**اللغات:** ﴿خصم﴾ مدّ مقابل، مدعي او مدعیٰ عليه يو د بل خصم دي، دلته د مدعیٰ عليه په معنیٰ سره دی (چي په هغه يوه شريک دعویٰ کړې ده چي تا زما بعض حق اخيستی دی او هغه منکر دی).

**تشريح:** د عبارت حاصل دا دی چي که مدعي شريک (کوم چي د تقسيم د غلطوالي دعویٰ کوي) يو شريک ته داسي ووايي چي ما خو خپل حق ترلاسه کړی دی لېکن تا له هغه څخه بعضي حصه اخيستې ده، نو په دې صورت کي که مدعي شريک بيِّنه پېش نه کړی سي، نو د منکر شريک قول مع اليمين معتبر دی؛ ځکه چي مدعي شريک پر هغه د غصب دعویٰ کوي او هغه د دې انکار کوي، او د منکر قول مع اليمين معتبر کيږي.

وإن قال: أصابني إلخ: د دې حاصل دا دی چي که مدعي شريک داسي ووايي چي مثلاً زما حصه (زما ځمکه) د خالد تر باغ پوري وه چي هغه ما ته پوره نه ده راکول سوې (حال دا چي دغه مدعي شريک تر اوسه د دې هيڅ اقرار نه دی کړی چي ما خپله حصه ترلاسه کړې ده)، او بل شريک د دې انکار کوي چي ته دروا غ وايې تا ته خپل حصه پوره درکول سوې ده، نو څرنګه چي په دې صورت کي په هغه مقدار کي اختلاف دی کوم چي په تقسيم سره حاصليږي، نو ځکه له دواړو څخه به پر خپل قول قسم اخيستل کيږي او تقسيم به ماتول کيږي.

او د دې مثال داسي دی لکه تر بيع وروسته چي د مبيع په مقدار کي د بائع او مشتري اختلاف سي، نو په هغه صورت کي هم له دواړو څخه تر قسم اخيستلو وروسته بيع او سودا ماتول کيږي، نو همداسي به دلته هم تر تحالف وروسته تقسيم ماتول کيږي.

## په تقسيم کي د غلطۍ د دعوې کولو بل صورت

وَلَوِ اخْتَلَفَا فِي التَّقْوِيمِ او که د قيمت لګولو په باره کي دوه شريکان اختلاف وکړي لَمْ يُلْتَفَتْ إِلَيْهِ نو د هغه وطرف ته به توجّه نه کيږي لِأَنَّهُ دَعْوَى الْغَبْنِ ځکه چي دا د غبن دعویٰ ده وَلَا مُعْتَبَرَ بِهِ فِي الْبَيْعِ او په بيع کي هغه لره اعتبار نسته فَكَذَا فِي الْقِسْمَةِ نو همداسي به تقسيم کي هم نه وي لِوُجُودِ التَّرَاضِي ځکه چي [په تقسيم او تقويم کي د دواړو شريکانو] رضاء موجوده ده إِلَّا إِذَا كَانَتِ الْقِسْمَةُ بِقَضَاءِ الْقَاضِي وَالْغَبْنُ فَاحِشٌ مګر کله چي دا د قاضي په فيصله سره وي او غبن هم فاحش وي [نو

قول به يې منل کيږي | لِأَنَّ تَصَرُّفَهُ مُقَيَّدٌ بِالْعَدْلِ ځکه چې د قاضي تصرّف په انصاف سره مقيّد دی.

**اللغات:** ﴿تقويم﴾ د تفعيل د باب مصدر دی: قيمت لګول، قيمت اندازه کول او ټاکل. ﴿لم يلتفت﴾ د افتعال له بابه د جحد مجهول صيغه ده: توجه او پاملرنه کول. ﴿الغبن﴾ د سمع د باب اسم مصدر دی: غلطي، دوکه او فريب، غبن فاحش: مثلاً د پسه قيمت شل درهمه وي، ليکن هغه زيات کړی سي او سل درهمه ولګول سي يا ډير راکم کړی سي مثلاً پنځه درهمه ولګول سي، نو داسي بيخي زيات زياتوب يا کمی ته غبن فاحش ويل کيږي.

**تشريح:** **صورت د مسئلې:** دا دی چې د دوو شريکانو تر مينځ مثلاً سل پسونه مشترک وه چې په هغوی کي ځيني غټ، چاغ او ځيني کوچني وه، او بيا دوی په خپل مينځ کي د قيمت په ذريعه تقسيم وکړی يعني د پسونو قيمت اندازه کړی سو (چي دا پسه په دومره دی او دا بيا په دومره دی مثلاً) نو د يوه شريک په حصه کي څلوېښت (۴۰) پسونه راغله او د بل په حصه کي شپېته (۶۰) راغله، او س ۴۰ پسونو والا وايي چي قيمت غلط لګول سوی دی (يا په بله وړنا: چاچي د دې پسونو قيمت اندازه کړی دی له هغه څخه غلطي سوې ده)، نو د هغه قول او دعویٰ معتبره نه ده، ځکه چي هغه پر مقوّمينو (قيمت لګونکو) د غبن او غلطۍ تهمت لګوي، او پاته سو تقسيم خو د دوی دواړو (شريکانو) په رضاء او خوښۍ سره سوی وو، او په بيع کي د غبن دعویٰ معتبره نه ده، لهذا په تقسيم کي به هم هغه لره اعتبار نه وي.

په بيع کي يعني که څوک په معلوم ثمن (قيمت) سره يو شی رانيسي، بيا د غبن دعویٰ وکړي (چي په ثمن کي غلطي او دوکه سوې ده. ثمن دومره نه دی)، نو ښکاره خبره ده چي د هغه دعویٰ بې بنيا ده او نا معتبره ده، نو همداسي به په تقسيم کي هم د غبن دعوې لره هيڅ حيثيث نه وي.

إلا إذا إلخ: د دې حاصل دا دی چي که مذکوره تقسيم د قاضي په قضاء (فيصله) سره سوی وي او غبن هم غبن فاحش وي، نو په دې صورت کي د مدعي شريک دعویٰ معتبره ده، ځکه د قاضي فيصله پر عدل او انصاف مبني وي (چي هغه به د دواړو تر مينځ د انصاف او برابرۍ فيصله کوي) او دلته د غبن فاحش په وجه د قاضي فيصله له انصاف څخه خالي ده او عدل پکښې نسته، نو ښکاره ده چي د مدعي شريک دعویٰ به قبلول کيږي او دا تقسيم به نه نافذول کيږي.

## د کور په تقسيم کي د اختلاف کولو صورت

وَلَوِ اقْتَسَمَا دَارًا وَأَصَابَ كُلُّ وَاحِدٍ طَائِفَةً او که دوه شريکان ديو کور تقسيم [وېش] وکړي او هر يوه ته يوه حصه ورسيږي فَادَّعَى أَحَدُهُمْ بَيْتًا فِي يَدِ الْآخَرِ أَنَّهُ مِنْ أَصَابَهُ بِالْقِسْمَةِ بيا له دوی څخه يو شريک ديو خوني د بل په قبضه کي د کېدلو دعوىٰ وکړي چي هغه خونه ده ته [ما ته] په تقسيم سره رسېدلې ده وَأَنْكَرَ الْآخَرُ او دا بل يو انکار وکړي فَعَلَيْهِ إِقَامَةُ الْبَيِّنَةِ نو پر ده [مدعي] بينه پېشول دي [يعني پر خپله دعوىٰ به ګواهان پېشوي] لِمَا قُلْنَا د هغه دليل په وجه کوم چي موږ بيان کړی وَإِنْ أَقَامَا الْبَيِّنَةَ او که دوی دواړه بيّنه پېش کړي يُؤْخَذُ بِبَيِّنَةِ الْمُدَّعِي نو د مدعي بيّنه به اخيستل کيږي لِأَنَّهُ خَارِجٌ ځکه چي هغه خارج [غير قابض] دی وَبَيِّنَةُ الْخَارِجِ تَتَرَجَّحُ عَلَى بَيِّنَةِ ذِي الْيَدِ او د خارج بيّنه د قابض پر بيّنې راجحه وي وَإِنْ كَانَ قَبْلَ الْإِشْهَادِ عَلَى الْقَبْضِ او که دا دعوىٰ د قبضې له ګواهۍ پېشولو [اقرار کولو] څخه مخکي وي تَحَالَفَا وَتَرَادَّا نو دواړه به قسم اخلي او دواړه به [تقسيم] واپس کوي [يعني تقسيم به ماتوي] وَكَذَا إِذَا اخْتَلَفَا فِي الْحُدُودِ وَأَقَامَا الْبَيِّنَةَ او همدارنګه کله چي د حدودو په باره کي دوه شريکان اختلاف وکړي او دواړه بيّنه پېش کړي يُقْضَى لِكُلِّ وَاحِدٍ بِالْجُزْءِ الَّذِي هُوَ فِي يَدِ صَاحِبِهِ نو د هر يوه لپاره به د هغه حصې فيصلې کيږي کوم چي يې د ملګري شريک په قبضه کي وي لِمَا بَيَّنَّا د هغه دليل په وجه کوم چي موږ بيان کړی وَإِنْ قَامَتْ لِأَحَدِهِمَا بَيِّنَةٌ او که په دوی کي ديوه لپاره بيّنه پېش کړی سي قُضِيَ لَهُ نو د هغه لپاره به فيصله کيږي وَإِنْ لَمْ تَقُمْ لِوَاحِدٍ مِنْهُمَا او که په دوی کي ديوه لپاره هم بيّنه پېش نه کړی سي تَحَالَفَا نو دواړه به قسم اخلي كَمَا فِي الْبَيْعِ لکه څرنګه چي په بيع کي دي.

**اللغات:** ﴿اقتسما﴾ د افتعال له بابه د تثنيه غائب ماضي صيغه ده: تقسيم او وېش کول، تقسيمول. ﴿بيت﴾ خونه (کمره). ﴿خارج﴾ غير قابض، يعني د کوم يوه له قبضې څخه چي خونه يا مثلاً ځمکه وتلې وي (په قبضه کي يې نه وي). ﴿تحالفا﴾ د تفاعل له بابه د تثنيه غائب ماضي صيغه ده: يو تر بله قسم اخيستل (قسم کول). له دواړو څخه قسم اخيستل. ﴿ترادّا﴾ مخکنۍ صيغه ده: يو تر بله واپس کول او ردول. دلته يې مطلب دا دی چي دواړه به تقسيم ماتوي. (اثمار الهدايه)

**تشريح: صورت د مسئلې:** دا دی چې دوو کسانو خپل مشترک غټ کور تقسيم کړی او د کور يوه، يوه حصه دواړو ته ورسېدله او هر يوه پر خپل حصه قبضه هم وکړه (خپل حصه يې واخيستل)، اوس که تر دې وروسته له دوی څخه يو شريک دعوىٰ وکړي چې فلانکی خونه هم په تقسيم کې زما په حصه کې راغلې وه کوم چې اوس ستا په قبضه کې ده، او دويم شريک منکر دی چې دا ستا نه بلکې زما خونه ده، نو په دې صورت کې به مدعي شريک ته ويل کيږي چې پر خپل دعوىٰ بيّنه (گواهي) پيش کړه؛ ځکه هغه چې پر خپل حصې قبضه وکړه نو گواکې هغه د تقسيم صحيح کېدلو او پوره کېدلو دعوىٰ وکړه چې دا تقسيم صحيح دی (يعني يو وارې تقسيم صحيح وگرځوی)، اوس تر هغه وروسته وايي چې فلانکی حصه ما ته نه ده راکول سې يعني دا تقسيم غلط دی نو د هغه په خبره کې تضاد راغلی (يا په بله وينا دا چې گواکې اوس هغه د تقسيم ماتولو دعوىٰ کوي)، نو ځکه له بيّنه پېشولو څخه بغير د هغه دعوىٰ معتبره نه ده (بلکه هر وخت چې دوه گواهان پېش کړي نو بيا به د هغه قول منل کيږي).

او که دوی دواړه بيّنه پېش کړي، نو په دې صورت کې د مدعي شريک بيّنه معتبره ده؛ ځکه چې مدعي خارج يعني غيرِ قابض دی (يعني دعوه داره خونه د هغه په قبضه کې نه ده يا په بله وينا دا چې په خونه کې د هغه قبضه ثابته نه ده)، او بيّنه د ناثابت سوي شي د ثابتولو لپاره وي، نو ځکه د مدعي بيّنه به معتبره وي، چې په دې خونه او ځای کې د هغه قبضه ثابته سي.

وإن كان قبل الإشهاد إلخ: د دې حاصل دا دی چې مخکينی تفصيل هغه وخت دی کله چې دواړو شريکانو (پر تقسيم شده کور) د قبضې اقرار کړی وي، لېکن که دوی د قبضې اقرار نه وي کړي، بلکې تر هغه مخکې يو شريک دعوىٰ وکړي چې فلانکی خونه هم په تقسيم کې زما په حصه کې راغلې وه، نو په دې صورت کې بيّنې (گواهی) ته ضرورت نسته، صرف دواړه به قسم اخلي يعني مدعي شريک به وايي چې په الله قسم! هغه خونه زما ده، منکر شريک به وايي چې نه! په الله قسم هغه زما ده او تقسيم به ماتول کيږي. ځکه چې قبضه يې نه ده کړې نو مدعي شريک دا تقسيم صحيح هم نه دی گرځولی، نو ځکه بيّنې ته ضرورت نسته.

وكذا إذا إلخ: په دې سره يو بله مسئله بيانوي چې که شريکان د حدودو په هکله اختلاف وکړي مثلاً دواړه شريکان دعوىٰ وکړي چې د ده حدّ زما په ځمکه کې دی (يعني دا بل شريک هم داغسې دوايي). يا مثلاً دواړه ووايي چې د فلانکي په حدّ کې چې کومه خونه ده هغه زما ده. نو دې ته به کتل کيږي چې کوم يو بيّنه (گواهي) پېشوي، که صرف يو بيّنه پېش کړي، نو د هغه په حق کې به فيصله کيږي (ځکه هغه په بيّنه او گواهي سره خپله دعوىٰ مبرهنه او ثابته کړه).

او که دواړه بيّنه پېش کړي، نو پر کوم حدّ او خونه چي يو شريک قابض دی هغه به بل شريک ته او پر کوم يوه چي دا بل شريک قابض دی هغه به اول شريک ته ورکول کيږي او نزاع او جنګ به ختمول کيږي.

او که يو هم بيّنه پېش نه کړی سي، نو له دواړو څخه به قسم اخيستل کيږي او تقسيم به ماتول کيږي، لکه په بيع کي چي که بائع او مشتري دواړه اختلاف وکړي او يو هم بيّنه پېش نه کړي، نو دواړه قسم اخلي او بيع ماتول کيږي، همداسي به دلته هم کيږي.

# فَصْلٌ

دا فصل د استحقاق په بيان کي دی

## تر تقسيم وروسته په جايداد کي د بل چا حق ثابتېدل

قَالَ: وَإِذَا اسْتُحِقَّ بَعْضُ نَصِيبِ أَحَدِهِمَا بِعَيْنِهِ فرمايي: او کله چي له دوو شريکانو څخه د يوه شريک د حصې بعضي متعيّنه حصه مستحقه وخيږي لَمْ تَفْسَخِ الْقِسْمَةُ عِنْدَ أَبِي حَنِيفَةَ نو د امام صاحب رَحِمَهُ الله په نېز تقسيم نه فسخ کيږي [نه ماتيږي] وَرَجَعَ بِحِصَّةِ ذٰلِكَ فِي نَصِيبِ صَاحِبِهِ او رجوع به کوي د هغه حصې مطابق د خپل شريک په حصه کي [يعني د خپل شريک له حصې څخه به يې واپس اخلي] وَقَالَ أَبُو يُوسُفَ ❁: تَفْسَخُ الْقِسْمَةَ او امام ابو يوسف رَحِمَهُ الله فرمايي: چي تقسيم فسخ کيږي قَالَ ﷺ: ذَكَرَ الِاخْتِلَافَ فِي اسْتِحْقَاقِ بَعْضٍ بِعَيْنِهِ صاحب د هدايې فرمايي: چي امام قدوري رَحِمَهُ الله د بعض معيّن [بعضي متعيني حصي] په مستحق ختلو کي اختلاف ذکر کړی دی وَهٰكَذَا ذُكِرَ فِي الْأَسْرَارِ او همداسي په "أسرار" کي ذکر سوي دي وَالصَّحِيحُ أَنَّ الِاخْتِلَافَ فِي اسْتِحْقَاقِ بَعْضٍ شَائِعٍ مِنْ نَصِيبِ أَحَدِهِمَا [لېکن] صحيح دا ده چي اختلاف له دوو شريکانو څخه د يوه د

❁ القول الراجح: قول أبي حنيفة رَحِمَهُ الله، لأن محمداً رَحِمَهُ الله معه في الأصح، وإذا كان مع الإمام أحد صاحبيه فقولهما راجح، وكما في مجمع الأنهر (ج:۴، ص:١٣٥)، ورد المحتار (ج:۵، ص:١٨٧). [القول الراجح ج:٢، ص:٢٨٢]

حصې د بعضِ شائع [بعض غیر معیّن] په مستحق ختلو کې دی فَأَمَّا فِي اسْتِحْقَاقِ بَعْضٍ مُعَيَّنٍ لَا تَفْسَخُ الْقِسْمَةُ بِالْإِجْمَاعِ او پاتـه سو د بعضِ معیّن د مستحق ختلو په صورت کي بالاجماع تقسیم نه فسخ کیږي وَلَوِ اسْتُحِقَّ بَعْضٌ شَائِعٌ فِي الْكُلِّ او که د کُل بعضِ شائع مستحق وخیږي تَفْسَخُ بِالِاتِّفَاقِ نو بالاتفاق تقسیم فسخ کیږي فَهٰذِهِ ثَلَاثَةُ أَوْجُهٍ نو دا درې صورتونه سوه وَلَمْ يَذْكُرْ قَوْلَ مُحَمَّدٍ او امام قدوري د امام محمد رَحِمَهُ الله قول نه دی ذکر کړی وَذَكَرَهُ أَبُو سُلَيْمَانَ مَعَ أَبِي يُوسُفَ او ابو سلیمان د هغه قول د امام ابو یوسف رَحِمَهُ الله سره ذکر کړی دی وَأَبُو حَفْصٍ مَعَ أَبِي حَنِيفَةَ او ابو حفص د امام صاحب رَحِمَهُ الله سره ذکر کړی دی [چې د امام محمد رَحِمَهُ الله په نیز هم تقسیم نه فسخ کیږي] وَهُوَ الْأَصَحُّ او همدا زیاته صحیح ده.

**اللغات**: ﴿استحق﴾ د استفعال له بابه ماضي مجهوله ده: مستحق ختل. مستحق کېدل (یو شی د بل چا لپاره ثابتېدل). ﴿نصیب﴾ حصه. ﴿تفسخ﴾ د فتح له بابه مضارع ده: فسخ کېدل. ماتېدل. ﴿شائع﴾ د ضرب د باب فاعل دی: غوړېدلی، خپور، نشر سوی. له "بعض شائع" څخه مراد نصف (نیمه حصه)، ثلث (دریمه حصه)، ربع (څلورمه حصه) دي. دا هر یوه ته بعض شائع ویل کیږي، ځکه چې دا هر یو متعیّن جزء او مخصوصه حصه نه ده. بلکي د شریک په ټوله حصه کي شایع ده هر طرف ته کېدای سي.

**تشریح**: د دې مسئلې ټوله درې صورتونه دي دوه متفق علیه دي او یو مختلف فیه ده. مسئله دا ده چې د دوو کسانو تر مینځ یو غټ کور مشترک وو، دواړو تقسیم وکړی او هر یوه پر خپل حصه قبضه وکړه، اوس یو بل کس راغلی او په دې کور کي یې د خپل استحقاق دعویٰ وکړه، نو آیا دا پوره سوی تقسیم به فسخ کیږي، که نه؟، په دې باره کي تفصیل دا دی چې که هغه مدعي کس صرف د یوه شریک د حصې په یو متعیّن جزء مثلاً په یو خونه کي د خپل استحقاق دعویٰ وکړي (چې دغه خونه زما ده او بیا استحقاق ثابت هم کړي)، نو په دې صورت کي بالاتفاق تقسیم نه فسخ کیږي، بلکي دا شریک به مستحقه خونه مدعي کس ته سپاري او د هغه د حصې مطابق به له خپل شریک څخه واپس اخلي (یعني د خپل شریک له خوني څخه به نیمه خونه ځني اخلي [الثمار الهدایه]).

دویم صورت دا دی چې مدعي کس د یوه شریک په حصه کي دعویٰ نه وکړي، بلکي د یوه شریک د ټوله حصې په نصف یا ربع او داسي نورو کي دعویٰ وکړي (چې مثلاً دا نیم کور یا دا څلورمه

حصه زماده چي دې ته بعض شائع وايي... او دا خپل دعوىٰ ثابته کړي)، نو په دې صورت کي بالاتفاق تقسيم فسخ کيږي.

دريم صورت دا دی چي مدعي کس صرف ديوه شريک په حصه کي خو دعوىٰ وکړي مګر هيڅ جزء يعني خونه او داسي نور متعين نه کړي. بلکي د دې شريک په ټوله حصه کي مطلق د خپل استحقاق دعوىٰ وکړي (او دا ثابته کړي)، نو په دې صورت کي د امام صاحب رَحِمَهُ الله په نيز تقسيم نه فسخ کيږي، بلکي دا شريک کس به مدعي ته د هغه خپل حصه ورکوي او له دويم شريک څخه به د هغه د حصې مطابق اخلي؛ او د امام ابو يوسف رَحِمَهُ الله په نيز په دې صورت کي تقسيم فسخ کيږي.

صاحب د هدايې فرمايي چي امام قدوري رَحِمَهُ الله د امام محمد رَحِمَهُ الله قول نه دی ذکر کړی. لېکن صحيح دا ده چي هغه په دې مسئله کي د امام صاحب رَحِمَهُ الله سره دی

دلته له امام قدوري رَحِمَهُ الله څخه تېروتنه سوې ده چي هغه متفق عليها مسئله مختلف فيها ګرځولې ده؛ ځکه چي په متن کي مذکوره صورت اختلافي نه دی او په اشاراتُ الأسرار کي هم دغه سهو سوې ده. صحيح صورت هغه دي کوم چي بيان سو. (احسن الهدايه)

## د امام ابو يوسف رَحِمَهُ الله دليل

لِأَبِي يُوسُفَ أَنَّ بِاسْتِحْقَاقِ بَعْضٍ شَائِعٍ ظَهَرَ شَرِيكٌ ثَالِثٌ لَهُمَا د امام ابو يوسف رَحِمَهُ الله دليل: دا دی چي د بعضِ شائع د استحقاق په وجه د دوی دواړو دريم شريک ښکاره سو وَالْقِسْمَةُ بِدُونِ رِضَاهُ بَاطِلَةٌ او د هغه له رضاء څخه بغير تقسيم باطل دی كَمَا إِذَا اُسْتُحِقَّ بَعْضٌ شَائِعٌ فِي النَّصِيبَيْنِ لکه کله چي په دواړو حصو کي بعضِ شائع مستحق وخيږي [يعني چي د دواړو شريکانو په حصو کي د بل چا استحقاق ثابت سي نو تقسيم فسخ کيږي، همداسي به دلته هم فسخ کيږي] وَهٰذَا لِأَنَّ بِاسْتِحْقَاقِ جُزْءٍ شَائِعٍ يَنْعَدِمُ مَعْنَى الْقِسْمَةِ وَهُوَ الْإِفْرَازُ او دا ځکه چي د جزء شائع د استخاق په وجه د تقسيم معنىٰ يعني إفراز نيستي کيږي [ختميږي] لِأَنَّهُ يُوجِبُ الرُّجُوعَ بِحِصَّتِهِ فِي نَصِيبِ الْآخَرِ شَائِعًا ځکه چي دا استحقاق د شيوع په توګه د هغه حصې په قدر د بل يوه په حصه کي رجوع ثابتوي بِخِلَافِ الْمُعَيَّنِ په خلاف د معيّن جزء.

**اللغات**: ﴿إفراز﴾ د افعال د باب مصدر دی: جلا، جلا کول (سره جلا کول).

**تشريح:** په دې عبارت کې صاحب د هدايې د امام ابو يوسف رَحِمَهُ الله دليل بيانوي، فرمايي چې کله بعضِ شائع (بعض غير معيّن) مستحق وخيږي يعني په بعضِ شائع کې د بل کس حق ثابت سي، نو هغه کس د شريکانو درېيم ملګرى او شريک سو او د هغه له رضاء څخه بغير تقسيم باطل سو (ځکه دا دوو شريکانو په خپل رضاء سره تقسيم کړى وو او دغه شريک [مستحق کس] په هغه وخت کې نه وو نو د هغه رضاء موجوده نه سوه)، او دا داسي ده لکه د دواړو شريکانو په حصو کې چې بعض شائع مستحق وخيږي نو تقسيم فسخ کيږي، لهذا د يوه شريک په حصه کې د بعضِ شائع په استحقاق سره به هم تقسيم فسخ کيږي؛ ځکه کله چې هغه شريک د کوم په حصه کې چې (دبعض شائع) استحقاق ثابت سوى دى دا حصه (بعض شائع) مستحق کس ته ورکړي او له خپل اول شريک څخه د هغه د حصې مطابق واخلي، نو ګواکي د هغه په پاته حصه کې هم استحقاق ثابت سو او د تقسيم معنىٰ يعني إفراز ختم سو، نو ځکه غوره همدا ده چې دلته هم تقسيم فسخ کړى سي.

بخلاف المعيّن: يعني څرنګه چې د معيّن جزء او متعيّني حصې د استحقاق په صورت کې ورکونکى شريک هم له خپل ملګري شريک څخه متعيّن جزء اخلي، نو ځکه په دې صورت کې د تقسيم معنىٰ يعني إفراز موجود دى، لهذا دلته د تقسيم د فسخ ضرورت نسته. (احسن الهدايه)

## د طرفينو رَحِمَهُمَا اللهُ دليل او د امام ابو يوسف د دليل جواب

وَلَهُمَا: أَنَّ مَعْنَى الْإِفْرَازِ لَا يَنْعَدِمُ بِاسْتِحْقَاقِ جُزْءٍ شَائِعٍ فِي نَصِيبِ أَحَدِهِمَا او د طرفينو دليل دا دى: چې د يوه شريک په حصه کې د جزء شائع په استحقاق سره د إفراز معنىٰ نه نيستي کيږي وَلِهٰذَا جَازَتِ الْقِسْمَةُ عَلٰى هٰذَا الْوَجْهِ فِي الْاِبْتِدَاءِ او په همدې وجه په شروع کې هم دغه ډول تقسيم جائز دى بِأَنْ كَانَ النِّصْفُ الْمُقَدَّمُ مُشْتَرَكًا بَيْنَهُمَا وَبَيْنَ ثَالِثٍ په دې توګه چې مخکيني نصف [مخکنى نيمه حصه] د دوو شريکانو او بل درېيم کس [درېيم شريک] په مينځ کې مشترک وي وَالنِّصْفُ الْمُؤَخَّرُ بَيْنَهُمَا لَا شَرِكَةَ لِغَيْرِهِمَا فِيهِ او وروستنى نصف صرف د دوو شريکانو په مينځ کې مشترک وي چې په هغه کې له دوى څخه بغير د بل چا شرکت نه وي فَاقْتَسَمَا عَلٰى أَنَّ لِأَحَدِهِمَا مَا لَهُمَا مِنَ الْمُقَدَّمِ وَرُبُعَ الْمُؤَخَّرِ نو دوى دواړه په داسي توګه تقسيم وکړي چې کوم څه د دوى په حصه کې دي له هغه څخه به د يوه لپاره مخکنى او وروستنى ربع [څلورمه حصه] وي يَجُوزُ نو دا جائز دي فَكَذَا فِي الْاِنْتِهَاءِ نو همداسي به په انتهاء کې هم جائز وي وَصَارَ كَاسْتِحْقَاقِ شَيْءٍ مُعَيَّنٍ او دا د معين

شي د استحقاق په څېر سو بِخِلَافِ الشَّائِعِ فِي النَّصِيبَيْنِ په خلاف په دواړو حصو کي د شائع [د استحقاق] [يعني چي د دواړو شريکانو په حصو کي بعضِ شائع مستحق وخيږي] لِأَنَّهُ لَوْ بَقِيَتِ الْقِسْمَةُ ځکه که چيري تقسيم باقي پاته سي لَتَضَرَّرَ الثَّالِثُ نو دريم کس [مستحق کس] ته به نقصان ورسيږي بِتَفَرُّقِ نَصِيبِهِ فِي النَّصِيبَيْنِ ځکه چي د هغه حصه به په دواړو حصو کي متفرّقه [او منقسمه] سي أَمَّا هٰهُنَا لَا ضَرَرَ بِالْمُسْتَحِقِّ او پاته سو دلته خو د مستحق هيڅ نقصان نسته فَافْتَرَقَا نو دواړي مسئلې سره جلا سوې.

**اللغات:** ﴿لا ينعدم﴾ د انفعال له بابه نفي مضارع ده: نيستي کېدل، ختمېدل.

**تشريح:** له دې ځايه د طرفينو (امام صاحب او امام محمد) رَحِمَهُمَا الله دليل بيانَ سوی دی، چي د هغه حاصل دا دی چي د يوه شريک په حصه کي د استحقاق په وجه د افراز معنیٰ نه ختميږي، بلکي فرض يې کړه چي له شروع څخه يوه کور دوې حصې دی (مخکنی او وروستنی حصه)، او د کور په مخکنی حصه کي درې کسان شريکان دي او په وروستنی حصه کي له دوی څخه دوه کسان شريکان دي، اوس د مخکني حصې هغه دوه کسان کوم چي په دويمه (وروستنی) حصه کي شريکان دي، ويش او تقسيم کوي او د دواړو ترمينځ دا خبره فيصله سي چي يو شريک به په مخکنی حصه کي دويم شريک ته خپله حصه ورکړي او په دويمه (وروستنی) حصه کي به هغه ته د نصف پر ځای ربع ورکړي، نو داسي تقسيم بالکل صحيح دي او په دې کي د إفراز معنیٰ هم موجوده ده، نو کله چي ابتداءً دا تقسيم صحيح دی، نو انتهاءً يعني د بل چا د استحقاق په صورت کي به هم صحيح وي؛ ځکه څرنګه چي ابتداءً دواړه شريکان يو د بل په حصه کي شامليدونکي اخيستل کوي، نو همداسي به انتهاءً هغه مستحق کس هم اخيستل کوي، او څرنګه چي د متعيّن جزء د استحقاق په صورت کي د إفراز معنیٰ موجود ده او تقسيم نه فسخ کيږي، همدٰسي دلته هم د إفراز معنیٰ موجوده ده، لهذا دلته به هم تقسيم نه فسخ کيږي.

بخلاف الشائع إلخ: دا د امام ابو يوسف رَحِمَهُ الله د قياس جواب دی چي هغه د يوې حصې د بعضِ شائع استحقاق د دواړو حصو د بعضِ شائع پر استحقاق قياس کړی وو او دلته يې د تقسيم د فسخ قول کړی وو، صاحب د هدايې رَحِمَهُ الله په دې عبارت سره د هغه جواب ورکوي چي دا دوې مسئلې يو پر بل قياسول صحيح نه دي: ځکه که په دواړو حصو کي د استحقاق پر مهال موږ تقسيم فسخ نه کړو، نو ښکاره ده چي د هغه مستحق کس حصه به دلته و هلته (يعني د دواړو شريکانو په حصو کي)

منشتره سي او هغه ته به ضرر لاحق سي، او دلته په مذکوره صورت کي د هغه حصه نه منتشر کيږي چي څه ضرر ورته لاحق سي. نو ځکه دلته د تقسيم د فسخ ضرورت نسته.

## د پورتنۍ عبارت نور وضاحت

وَصُوْرَةُ الْمَسْأَلَةِ: إِذَا أَخَذَ أَحَدُهُمَا الثُّلُثَ الْمُقَدَّمَ مِنَ الدَّارِ او د مسئلې صورت دا دی چي کله يو شريک د کور مخکينی ثلث [يعني له مخکنۍ حصې څخه درېيمه حصه] واخلي وَالْآخَرُ الثُّلُثَيْنِ مِنَ الْمُؤَخَّرِ او بل شريک [د کور] د وروستنۍ حصې دوه ثلثه واخلي وَقِيمَتُهُمَا سَوَاءٌ او د هغوی دواړو حصو قيمت سره برابر وي ثُمَّ اسْتُحِقَّ نِصْفُ الْمُقَدَّمِ بيا د مقدّم [مخکنۍ حصې] نصف مستحق وخيږي فَعِنْدَهُمَا إِنْ شَاءَ نَقَضَ الْقِسْمَةَ نو د طرفينو رَحِمَهُمَا اللهُ په نيز که د هغه خوښه وي نو تقسيم دي مات کړي دَفْعًا لِعَيْبِ التَّشْقِيصِ [د حصې] د ټوټه. ټوټه کېدلو د عيب دفع کولو لپاره وَإِنْ شَاءَ رَجَعَ عَلَى صَاحِبِهِ بِرُبُعِ مَا فِي يَدِهِ مِنَ الْمُؤَخَّرِ او که وغواړي نو پر خپل ملګري شريک دې د وروستنۍ حصې په ربع سره رجوع وکړي لِأَنَّهُ لَوِ اسْتُحِقَّ كُلُّ الْمُقَدَّمِ ځکه که ټوله مخکنۍ حصه مستحق سوې وای رَجَعَ بِنِصْفِ مَا فِي يَدِهِ نو هغه به د شريک د قبضې والا په نصف سره رجوع کولای فَإِذَا اسْتُحِقَّ النِّصْفُ نو کله چي نصف مستحق سو رَجَعَ بِنِصْفِ النِّصْفِ وَهُوَ الرُّبُعُ نو دئ به پر هغه شريک د نصف په نصف يعني په ربع سره رجوع کوي اعْتِبَارًا لِلْجُزْءِ بِالْكُلِّ پر کُل د جزء په قياسولو سره.

**اللغات:** ﴿ثلث﴾ درېيمه حصه. ﴿مقدّم﴾ د مخکي طرف، مخکنۍ حصه.

**تشريح:** له دې ځايه د طرفينو د مسلک نور وضاحت کوي. حاصل يې دا دی چي د دوی په نيز په تقسيم د شريکانو راضي کېدل ضروري نه دي، بلکي که له شريکانو څخه يو وغواړي نو تقسيم فسخ کولای سي، د دې لپاره چي خپل حصه له ماتېدو او منتشر کېدو څخه وساتي، او که د هغه زړه وغواړي نو د خپل ملګري شريک د حصې له نصف مقدّم څخه دي يې واخلي او په نصف مؤخر کي دي د نصف پر ځای ربع واخلي؛ ځکه که چيري ټوله نصف مقدم مستحق ختلي وای، نو هغه به له خپل ملګري شريک څخه نصف اخيستلای، اوس چي کله فقط نصف مستحق سوی دی، نو هغه به له خپل شريک څخه د نصف نصف يعني رُبع اخلي؛ ځکه چي جزء پر کُل قياسول کيږي. (احسن الهدايه)

## د پورتنۍ مسئلې نور وضاحت

وَلَوْبَاعَ صَاحِبُ الْمُقَدَّمِ نِصْفَهُ او که مقدم [مخکنۍ حصې] والا شريک خپل نيمه حصه خرڅه کړي ثُمَّ اسْتُحِقَّ النِّصْفُ الْبَاقِيْ بيا پاته نصف مستحق وخيږي رَجَعَ بِرُبُعِ مَا فِيْ يَدِ الْآخَرِ عِنْدَهُمَا نو د طرفينو رَحِمَهُمَا الله په نيز به هغه دبل شريک د قبضې والا حصه کې په ربع سره رجوع کوي لِمَا ذَكَرْنَا د هغه دليل په وجه کوم چې موږ ذکر کړی وَسَقَطَ خِيَارُهُ بِبَيْعِ الْبَعْضِ او د بعضې حصې په خرڅولو سره د هغه اختيار ساقطيږي وَعِنْدَ أَبِيْ يُوسُفَ مَا فِيْ يَدِ صَاحِبِهِ بَيْنَهُمَا نِصْفَانِ او د امام ابو يوسف رَحِمَهُ الله په نيز کوم څه چې د هغه د ملګري شريک په قبضه کې دي هغه د دوی تر مينځ نيم په نيمه دي وَيَضْمَنُ قِيمَةَ نِصْفِ مَا بَاعَ لِصَاحِبِهِ او دا بائع شريک د خپل ملګري شريک لپاره د خرڅ کړل سوي حصې د نصف قيمت ضامن کيږي لِأَنَّ الْقِسْمَةَ تَنْقَلِبُ فَاسِدَةً عِنْدَهُ ځکه چې د هغه په نيز تقسيم فاسد ګرځي وَالْمَقْبُوضُ بِالْعَقْدِ الْفَاسِدِ مَمْلُوكٌ او د عقد فاسد په ذريعه قبضه کړی سوی شی هم مملوک کيږي [په ملکيت کې داخليږي] فَنَفَذَ الْبَيْعُ فِيهِ نو ځکه په هغه کې به بيع نافذيږي وَهُوَ مَضْمُونٌ بِالْقِيمَةِ او هغه بيع مضمون بالقيمت وي فَيَضْمَنُ نِصْفَ نَصِيبِ صَاحِبِهِ نو ځکه بائع شريک د خپل ملګري د نصف حصې [د قيمت] ضامن کيږي.

**اللغات:** ﴿تنقلب﴾ د انفعال د باب مضارع ده: اوښتل او ګرځېدل.

**تشريح:** مسئله دا ده که د کور د مخکنۍ حصې له دوو شريکانو څخه يو شريک خپله حصه خرڅه کړي او د بيا د هغې په نصف ثاني کې د يو چا استحقاق ثابت سي، نو د طرفينو رَحِمَهُمَا الله په نيز اوس دا شريک له خپل ملګري څخه د کور په وروستنۍ (مؤخر) حصه کې صرف ربع اخيستلای سي؛ ځکه که چيري کُل مستحق ختلي وای، نو نصف به يې اخيستلای، لهذا پر کُل د جزء په قياسولو سره به د نصف د مستحق ختلو په صورت کې رُبع اخلي، د لِمَا ذَكَرْنَا همدغه مطلب دی.

امام ابو يوسف رَحِمَهُ الله فرمايي چې په نصف ثاني کې د استحقاق په وجه تقسيم فاسد سو، او کله چې تقسيم فاسد سو، نو بائع شريک به له دويم شريک څخه د وروستنۍ (موخر) حصې نصف اخلي. او د خرڅ کړی سوي نصف له قيمت څخه به نيمه قيمت خپله شريک ته ورکوي. (احسن الهدايه)

والمقبوض بالعقد إلخ: دا دیو اشکال جواب دی، اشکال دا دی چي کله د امام ابو یوسف رَحِمَهُ الله په نېز تقسیم فاسد سو، نو بیع هم فاسد ېدل پکار دي؛ ځکه چي پر همدې تقسیم هغه بناء وه؟، د دې په جواب کي فرمايي چي که څه هم تقسیم فاسد وو، خو د هغه په ضمن کي په منعقد کېدونکي بیع سره مقبوضه شی مملوک کیږي (په ملکیت کي داخلیږي)؛ ځکه د مبادلې د معنیٰ موجود ېدلو په وجه تقسیمِ فاسد د بیعِ فاسد په درجه کي سو، او په بیع فاسد کي په عقد سره قبضه مملوک کیږي، نو همداسي به دلته هم کیږي، لهذا په دې صورت کي به بیع صحیح او نافذه وي نو د بیع فسخ ناممکن ده، مګر بیع مضمونٌ بالقیمت کیږي، نو ځکه بائع شریک به دویم شریک ته د نصف قیمت په ورکولو سره د ځای د نصف مؤخر نصف اخلي. (احسن الهدايه)

## که د میراث له تقسیم څخه وروسته په هغه کي قرض ښکاره سي (حکم او تفصیل)

قَالَ: وَلَوْ وَقَعَتِ الْقِسْمَةُ ثُمَّ ظَهَرَ فِي التَّرِكَةِ دَيْنٌ مُحِيطٌ او که چیري تقسیم وسي [پوره سي] بیا په میراث کي داسي قرض ښکاره سي کوم چي محیط وي رُدَّتِ الْقِسْمَةُ نو تقسیم به ردول کیږي [ماتول کیږي] لِأَنَّهُ يَمْنَعُ وُقُوعَ الْمِلْكِ لِلْوَارِثِ ځکه چي دا [محیط قرض] د وارث لپاره د ملکیت واقع کېدل [ثابتېدل] منع کوي وَكَذَا إِذَا كَانَ غَيْرَ مُحِيطٍ او همدارنګه کله چي قرض غیرِ محیط وي [نو هم به تقسیم ماتول کیږي] لِتَعَلُّقِ حَقِّ الْغُرَمَاءِ بِالتَّرِكَةِ د میراث سره د قرضخواهانو د حق متعلق کېدلو په وجه إِلَّا إِذَا بَقِيَ مِنَ التَّرِكَةِ مَا يَفِي بِالدَّيْنِ، وَرَاءَ مَا قَسَمَ مګر دا چي کله له میراث څخه دومره [مال] پاته سي کوم چي قرض پوره کوي، له هغه مقدار څخه بغیر کوم چي تقسیم سوی دی لِأَنَّهُ لَا حَاجَةَ إِلَى نَقْضِ الْقِسْمَةِ فِي إِيفَاءِ حَقِّهِمْ ځکه چي [اوس] د قرضخواهانو د حق پوره کولو لپاره د تقسیم ماتولو ته ضرورت نسته.

**اللغات**: ﴿دین﴾ قرض، ﴿ترکة﴾ هغه څه کوم چي یې مړی تر خپل شا پرېږدي، میراث. ﴿محیط﴾ د افعال د باب فاعل دی: احاطه کونکی (دین محیط: دومره قرض چي د مړي پر ټوله مال یې احاطه کړې وي، یا په بله وینا دا چي دومره قرض چي د مړي د ټوله میراث په برابر وي). ﴿غرماء﴾ جمع د غَرِیْمٌ ده: قرضخواه، د قرض مالک. ﴿وراء﴾ وروسته، شاته. ﴿إیفاء﴾ د افعال د باب مصدر دی: (حق) پوره کول، پوره اداء کول.

**تشريح : صورت د مسئلې:** دا دې چې يو سړی مړ سو، او د هغه وارثانو د قرض له تحقيق کولو څخه بغير د هغه ميراث په خپل مينځ کي تقسيم کړی، بيا پر هغه (مړي) ديو چا قرض ښکاره سو، نو برابره ده هغه قرض ټوله ميراث لره محيط وي يا بعضي لره، په دواړو صورتونو کي به تقسيم فسخ کول کيږي؛ ځکه که قرض محيط وي، نو ښکاره ده چي په دې صورت کي ميراث د وارثانو کېدلای نه سي؛ ځکه چي د وارثانو حق له قرض څخه مؤخر دی، او که قرض غير محيط دی، نو څرنګه چي په دې صورت کي د ميراث (ترکه) سره د غرماؤ (قرضخواهانو) حق متعلق دی او د وارثانو او غرماؤ ټولو لپاره تصرّف کول مشکل دي، نو ځکه په دې صورت کي به هم تقسيم فسخ کول کيږي.

خو که تر تقسيم وروسته دومره مال پاتيږي چي په هغه سره قرض اداء کړی سي، نو په دې صورت کي د تقسيم فسخ کولو لره ضرورت نسته؛ ځکه چي د تقسيم فسخ کولو مقصد د غرماؤ د حق تعلق او د هغو د حق اداء کول وه، او په باقي مانده مال سره هغه اداء کېدای سي، نو ځکه په دې صورت کي به تقسيم نه فسخ کول کيږي.

## په پورتني صورت کي که قرضخواهان مړی معاف کړي (حکم او تفصيل)

وَلَوْأَبْرَأَهُ الْغُرَمَاءُ بَعْدَ الْقِسْمَةِ او که تر تقسيم وروسته قرضخواهان مړی له قرض څخه بري کړي أَوْأَدَّاهُ الْوَرَثَةُ مِنْ مَالِهِمْ يا وارثانو له خپل مال څخه قرض اداء کړی وَالدَّيْنُ مُحِيطٌ أَوْغَيْرُمُحِيطٍ او قرض محيط وي او که غير محيط وي جَازَتِ الْقِسْمَةُ نو تقسيم جائز دی لِأَنَّ الْمَانِعَ قَدْزَالَ ځکه چي مانع ليري سو وَلَوِادَّعٰى أَحَدُ الْمُتَقَاسِمِيْنَ دَيْنًافِي التَّرِكَةِ او که له تقسيم کونکو [وارثانو] څخه يو په ميراث کي د قرض دعویٰ وکړي صَحَّ دَعْوَاهُ نو د هغه دعویٰ صحيح ده لِأَنَّهُ لَاتَنَاقُضَ ځکه چي تناقض نسته إِذِالدَّيْنُ يَتَعَلَّقُ بِالْمَعْنٰى ځکه د قرض تعلق [د ميراث] د معنیٰ سره دی وَالْقِسْمَةُ تُصَادِفُ الصُّوْرَةَ او تقسيم [د ميراث] پر ظاهر صورت واقع کيږي [يعني کوم ميراث چي تقسيمول کيږي هغه د مړي ظاهري مال دی چي تقسيمول کيږي، او د قرض چي کومه دعویٰ ده هغه د مړي پر ذمه ده کوم چي معنوي نمه واري ده، نو په دواړو کي تناقض نسته] وَلَوِادَّعٰى عَيْنًا بِأَيِّ سَبَبٍ كَانَ او که [يو تقسيم کونکی وارث] د عين شي دعویٰ وکړي هغه که په هر سبب سره وي لَمْ يُسْمَعْ لِلتَّنَاقُضِ نو د تناقض په وجه به د هغه دعویٰ نه اوريدل کيږي إِذِالْإِقْدَامُ عَلَى الْقِسْمَةِ اعْتِرَافٌ بِكَوْنِ الْمَقْسُومِ مُشْتَرَكًا ځکه چي پر تقسيم اقدام کول د دې اعتراف [او اقرار کول] دي چي تقسيمېدونکی شی [ميراث] مشترک دی.

**اللغات**: ﴿أبرأ﴾ د افعال د باب ماضي ده: بري کول، معاف کول. ﴿تصادف﴾ د مفاعلې له بابه مضارع ده: يو څه د بل څه سره مخ کېدل، واردېدل، واقع کېدل. ﴿إقدام﴾ د افعال د باب مصدر دی: په يو کار شروع کول، وړاندېتوب کول.

**تشريح**: **صورت د مسئلې**: دا دی که وارثان د مړي د قرض له تحقيق کولو څخه بغير په خپل مينځ کې ميراث تقسيم کړي، بيا قرض ښکاره سي، ختو تر تقسيم وروسته قرضخواهان خپل قرض معاف کړي، يا وارثان په خپل مال سره قرض اداء کړي، نو تقسيم صحيح دی؛ ځکه کوم څه چې مانع وو يعني د غرماؤ د حق تعلق هغه ختم سو، نو ځکه اوس د تقسيم فسخ ته ضرورت نسته.

ولو ادعى إلخ: يعني که له وارثانو څخه يو پر مړي د خپل قرض دعوىٰ وکړي چې زما پر مړي مثلاً لس زره روپۍ قرض وو، نو د هغه دعوىٰ صحيح ده؛ ځکه چې د هغه په دې دعوىٰ او إقدام على التقسيم کې هيڅ تناقض او منافات نسته، ځکه قرض د ميراث (ترکې) د ماليت او معنىٰ سره متعلق وي او تقسيم د ظاهري ميراث او د هغه د صورت سره متعلق وي، او د تناقض لپاره د متعلق يعني د محل يو والی شرط دی او دلته محل مختلف دی، نو تناقض نسته نو ځکه د هغه دعوىٰ به قبلول کيږي.

ولو ادعى عيناً إلخ: د دې حاصل دا دی چې د قرض په صورت کې خو به د وارث دعوىٰ قبلول کيږي، لېکن د عين شي (مثلاً د کور، يا آس او داسي نورو) د دعوی کولو په صورت کې به د هغه دعوىٰ نه قبلول کيږي؛ ځکه چې د ميراث پر تقسيم د اقدام کولو او بيا له ميراث څخه د يو معين شي د دعوې کولو تر مينځ تناقض او منافات سته، او دواړه صورتونه د ميراث او ترکه سره متعلق دي؛ ځکه چې پر تقسيم اقدام کول د ميراث د مشترک والي او د تقسيم اقرار کول دي، او د معيّن شي په دعوىٰ سره د دې تقسيم غلط گرځول لازميږي (چې گواکي مدعي وارث دا تقسيم غلط گرځوي)، نو ځکه د هغه دعوىٰ به نه قبلول کيږي او تقسيم به د مخکې په څېر باقي پاتيږي.

❁❁❁

# فَصلٌ فِي المُهَايَاةِ

## (دا) فصل په (بيان د) مهاياة کي دی

**تشريح:** مُهَايَـاة د مفاعلې او تفاعل د باب مصدر دی چي خپله معنیٰ يې ده: له يو (مشترک) شي څخه په نوبت، نوبت (په واورې، وارې) نفع اخيستل، په بله وينا دا چي د يو شي منافع تقسيمول، مثلاً يوه مياشت به دا شريک په کوډ کي اووسي او يوه مياشت به دا بل شريک پکښي اووسي، يا مثلاً د کور په دې حصه کي به دا شريک اوسيږي او په دې بله حصه کي به يې دا بل شريک اوسيږي، دا ډول د شي د نفع تقسيم ته مهايات ويل کيږي، خلاصه دا چي په تقسيم (قسمة) کي د عينِ شي تقسيم کيږي او په مهاياة کي د نفع تقسيم کيږي.

کله چي مصنف رَحِمَهُ الله د اعيانو له تقسيم څخه فارغ سو، نو اوس د اعراضو په تقسيم شروع کوي؛ ځکه چي اعراض د اعيانو فرع ده.

**يادونه:** په دې فصل کي ټوله د مبسوط مسئلې ذکر سوي دي، کوم چي امام امام محمد رَحِمَهُ الله په جامع صغير کي نه دي ذکر کړي او نه امام قدوري رَحِمَهُ الله په مختصر القدوري کي او نه صاحب د هدايې په هداية المبتدي کي ذکر کړي دي، خو دلته يې د تکثير فوائد لپاره ذکر کوي.

### د مهايات شرعي حيثيت

اَلْمُهَايَاةُ جَائِزَةٌ اِسْتِحْسَانًا مهايات استحساناً جائز دی لِلْحَاجَةِ إِلَيْهِ ځکه هغه ته ضرورت دی إِذْ قَدْ يَتَعَذَّرُ الِاجْتِمَاعُ عَلَى الِانْتِفَاعِ ځکه چي ځيني وخت پر انتفاع جمع کېدل مشکل وي فَأَشْبَهَ الْقِسْمَةَ نو هغه د تقسيم سره مشابه سو وَلِهٰذَا يَجْرِي فِيهِ جَبْرُ الْقَاضِيْ په همدې په هغه [مهايات] کي هم د قاضي جبر [مجبوره کول] جاري کيږي كَمَا يَجْرِي فِي الْقِسْمَةِ لکه څرنګه چي په تقسيم کي جاري کيږي إِلَّا أَنَّ الْقِسْمَةَ أَقْوٰى مِنْهُ فِي اسْتِكْمَالِ الْمَنْفَعَةِ خو د منفعت د بشپړتيا په حواله سره تقسيم له مهايات څخه زيات قوي دی لِأَنَّهُ جَمْعُ الْمَنَافِعِ فِي زَمَانٍ وَاحِدٍ ځکه چي تقسيم [يعني په تقسيم کي] په يوه وخت کي د ټولو منفعتونو جمع کول دي وَالتَّهَايُؤُ جَمْعٌ عَلَى التَّعَاقُبِ او مهايات يو تر بل

وروسته [په نوبت سره] د منفعتونو جمع کول دي [يعني په مهايات کي په نوبت، نوبت نفع اخيستل کيږي] وَلِهٰذَا لَوْ طَلَبَ أَحَدُ الشَّرِيكَيْنِ الْقِسْمَةَ وَالْآخَرُ الْمُهَايَاةَ په همدې وجه که له دواړو شريکانو څخه يو د تقسيم مطالبه وکړي او بل د مهايات يَقْسِمُ الْقَاضِي نو قاضي به تقسيم کوي لِأَنَّهُ أَبْلَغُ فِي التَّكْمِيلِ ځکه چي تقسيم [د منفعت] په تکميل کي زيات کامل دی وَلَوْ وَقَعَتْ فِيمَا يَحْتَمِلُ الْقِسْمَةَ او که چيرې مهايات واقع سي په هغه شي کي چي د تقسيم احتمال لري [يعني چي تقسيمول يې ممکن وي] ثُمَّ طَلَبَ أَحَدُهُمَا الْقِسْمَةَ بيا له شريکينو څخه يو د تقسيم مطالبه وکړي يَقْسِمُ نو قاضي به تقسيم کوي وَتَبْطُلُ الْمُهَايَاةُ او مهايات باطليږي لِأَنَّهُ أَبْلَغُ ځکه چي تقسيم زيات کامل دی وَلَا يَبْطُلُ التَّهَايُؤُ بِمَوْتِ أَحَدِهِمَا وَلَا بِمَوْتِهِمَا او د يوه يا دواړو شريکانو په مرګ سره مهايات نه باطليږي لِأَنَّهُ لَوِ انْتَقَضَ ځکه که مهايات مات سي لَاسْتَأْنَفَهُ الْحَاكِمُ نو قاضي به يې بيرته راګرځوي [يعني دوباره به مهايات کوي] فَلَا فَائِدَةَ فِي النَّقْضِ ثُمَّ الِاسْتِئْنَافِ نو د هغه په ماتولو او بيرته راګرځولو [دوباره کولو] کي هيڅ فايده نسته.

**اللغات**: ﴿مهاياة﴾ د مفاعلې د باب مصدر دی: په نوبت، نوبت نفع حاصلول، د يوشي د منافعو تقسيمول. ﴿استكمال﴾ د استفعال د باب د مصدر دی: کامل غوښتل، کامل او بشپړ کېدل. ﴿التهايؤ﴾ د تفاعل د باب مصدر دی: په نوبت، نوبت نفع اخيستل، په واري او نوبت سره يو کار کول. ﴿التعاقب﴾ مخکنی صيغه ده: يو تر بل وروسته کېدل، يو له بل څخه بعد کي راتلل. ﴿استأنف﴾ د استفعال د باب ماضي ده: له نوي سره شروع کول، راګرځول.

**تشريح**: مسئله دا ده چي مهايات (د منافعو تقسيم) استحساناً جائز دی، ځکه د قياس تقاضا دا ده چي جائز نه سي، ځکه د منافعو په تقسيم کي مثلاً چي يوه مياشت يو شريک په کور کي اوسيږي نو هغه له خپل حصې څخه هم نفع اخلي او د خپل شريک له حصې څخه بې هم اخلي، او کله چي دا بله مياشت د دويم شريک نوبت راسي او په کور کي استوګن سي نو هغه له خپل حصې څخه هم نفع اخلي او د اول شريک له حصې څخه يې هم اخلي، او دا نفع د خپل اولي نفعې په بدله کي ده، نو نفع د نفعې په بدله کي سوه او د دواړو جنس يو دی (ځکه چي دواړه اوسېدل دي)، نو په دې توګه د سود او ربوا شبهه راغله، نو په دغه وجه قياساً دا مهاياة جائز کېدل پکار نه دي، لېکن څرنګه چي دې ته سخت

ضرورت دی او په آیت کې هم د دې ثبوت سته (چې هغه دا آیت دی: لَهَا شِرْبٌ وَلَكُمْ شِرْبُ يَوْمٍ مَعْلُومٍ (الشعراء: ۱۵۵)، نو ځکه د استحسان په توګه مهایات جائز ګرځول سوي دي.

او دې ته سخت ضرورت ځکه دی چې ځیني وخت اجتماعي انتفاع (نفع اخیستل) متعذر او مشکل وي (يعني دواړه شريکان يو ځای له مشترک شي [مثلاً کور] څخه نفع نه سي اخیستلای سي)، نو ځکه دې ته ضرورت پېښ سي چې د انتفاع لپاره نوبت وټاکل سي (چې مثلاً يوه مياشت به يو شريک پکښې اوسي او بله مياشت به دا بل شريک)، نو مهاياة د تقسيم سره مشابه سو، لکه څرنګه چې په تقسيم کې پر عين شي (مثلاً پر کور) د اجتماع د مشکل والي په وخت کې دغه عين شی تقسیمول کيږي، نو همداسي دلته پر انتفاع د اجتماع د مشکل والي په وجه تقسيم کيږي. او لکه څرنګه چې د بعضې شريکانو پر طلب په تقسيم کې د قاضي جبر جائز دی، نو همداسي به دلته هم د قاضي جبر جائز وي. خو څرنګه چې په مهاياة کې منافع يو تر بل وروسته سره حاصلول کيږي (چې مثلاً يو شريک په کور کې يوه مياشت اوسي او بيا يوه مياشت توقف کوي او تر هغه وروسته بيا يوه مياشت پکښې اوسي، همداسي د مهايات تر اختتامه...) او په تقسيم کې په زمانِ واحد کې منافع جمع کول کيږي، نو د تقسيم منفعت کمال او مبالغه ده، نو په دې وجه تقسيم له مهايات څخه ډېر مضبوط دی.

همدا وجه ده که يو شريک د تقسيم مطالبه وکړي او بل شريک د مهايات مطالبه وکړي، نو قاضي به تقسيم اختياروي، همدارنګه کوم شی چې د تقسيم قابل وي (مثلاً کور) او په هغه کې مهاياة واقع سوی وي، او وروسته يو شريک د تقسيم مطالبه وکړي، نو قاضي به هغه تقسيموي او مهايات باطليږي؛ ځکه چې تقسيم له مهاياة څخه مضبوط دی.

ولايبطل التهايؤ إلخ: د دې حاصل دا دی چې د يوه شريک يا دواړو په مرګ سره مهايات نه باطليږي؛ ځکه کېدای سي د هغه مړ سوي شريک وارثان د مهايات مطالبه وکړي، نو دوباره به حاکم مهايات کوي، لهذا په باطلولو او بيرته د هغه په کولو کې څه فايده نسته، نو غوره همدا ده چې د يوه فريق په مرګ سره مهايات باطل نه کړی سي او د وارثانو فيصلې ته وکتل سي. (اثمار الهدايه، احسن الهدايه)

## د مهايات دويم قسم او د هغه حکم

وَلَوْتَهَايَئَا فِيْ دَارٍ وَاحِدَةٍ عَلٰى أَنْ يَسْكُنَ هٰذَا طَائِفَةً وَهٰذَا طَائِفَةً او که دواړه شريکان په يو کور کې داسي مهايات وکړي چې دا شريک به [د کور] په يوه حصه کې اوسيږي او دا [بل] به په بله حصه کې اوسيږي أَوْهٰذَا اعُلْوَهَا وَهٰذَا سِفْلَهَا يا دا شريک به [د کور] په پاسني منزل کې اوسيږي او دا [بل] به په لانديني منزل کې جَازَ نو دا جائز دي لِأَنَّ الْقِسْمَةَ عَلٰى هٰذَا الْوَجْهِ جَائِزَةٌ ځکه چې په دې توګه

تقسیم کول جائز دي فَكَذَا الْمُهَايَاةُ نو مهايات به هم جائز وي وَالتَّهَايُؤُ فِي هٰذَا الْوَجْهِ إِفْرَازٌ لِجَمِيعِ الْأَنْصِبَاءِ لَا مُبَادَلَةٌ او په دغه صورت کي مهايات د ټولو حصو إفراز [سره جلا کول] دي، نه مبادله وَلِهٰذِهٖ لَا يُشْتَرَطُ فِيهِ التَّأْقِيتُ په همدې وجه په دې کي د وخت ټاکل شرط نه دي وَلِكُلِّ وَاحِدٍ أَنْ يَسْتَغِلَّ مَا أَصَابَهُ بِالْمُهَايَاةِ شُرِطَ ذٰلِكَ فِي الْعَقْدِ أَوْ لَمْ يُشْتَرَطْ او هر شريک ته دا اختيار سته چي په کرايه ورکړي هغه حصه کوم چي په مهايات سره ورته رسېدلې وي برابره ده په عقد کي د هغه شرط لګول سوی وي، که نه وي لګول سوی لِحُدُوثِ الْمَنَافِعِ عَلٰى مِلْكِهٖ ځکه چي [په دې صورت کي] منافع د هغه په ملکیت کي پیدا کیږي.

**اللغات**: ﴿تهايئا﴾ د تفاعل له بابه د تثنيه غائب ماضي صيغه ده: مهايات کول، منافع تقسيمول. ﴿طائفة﴾ يوه حصه. لفظا: يو جماعت (احسن الهدايه). ﴿علو﴾ دا لفظ درې ډوله ويل کېدای سي: عُلْو، عَلْو، عِلْو: پاسنی منزل (پورتنی پوړ، لوړ ځای، بالاخانه). ﴿سفل﴾ دا لفظ دوه ډوله ويل کېدای سي: سُفْل، سِفْل: لاندینی منزل (لاندینی پوړ، لاندینی ځای). ﴿إفراز﴾ د افعال د باب مصدر دی: جلا، جلا کول. ﴿تأقيت﴾ د تفعيل مصدر دی: وخت ټاکل، وقت متعینول. ﴿يستغل﴾ د استفعال د باب مضارع ده: په کرایه ورکول، د اُجرت او کرایې ذریعه جوړول (احسن الهدايه). ﴿حدوث﴾ د نصر د باب مصدر دی: پیدا کېدل، پېښېدل.

**تشريح**: **صورت د مسئلې**: دا دی که د کور په يوه خونه کي يو شريک اووسي او په بله خونه کي يې بل شريک اووسي، یا دویم صورت دا چي د کور په پاسنی خونه کي يو شريک او په لاندینی خونه کي يې بل شريک اووسي، نو داسي مهايات جائز دي؛ ځکه که کور داسي تقسيم کړی سي نو جائز دي (او مهايات د تقسيم مشابه دي). نو پر هغه په قياس کولو سره دا ډول مهايات هم جائز دي.

والتهايؤ في هذا الوجه إلخ: مهايات پر دوه قسمه دي: ① مهايات في الزمان (د زماني په اعتبار سره مهايات). ② مهايات في المكان (د ځای په اعتبار سره مهايات).

(۱) د زماني په اعتبار سره مهايات دا دي چي مثلاً يوه مياشت به په دې کور کي دا شريک اووسي او دويمه مياشت به دا بل شريک پکښي اووسي، دا مهايات في الزمان دي. په دې کي د وخت ټاکل ضروري دي (چي مثلاً يوه مياشت يا دوې مياشتي او داسي نور). او په دې کي دا هم سته چي اول شريک (په خپل نوبت کي) د بل شريک له ځای څخه نفع اخلي او دا بل شريک (په خپل نوبت کي) کي

د اول شریک له ځای څخه نفع اخلي (لکه په شروع کي چي ذکر سوه). نو نفع د نفعي په بدله کي سوه. دي ته مبادله وايي، يعني د مهايات في الزمان په صورت کي مبادله سته.

(۲) د مکان په اعتبار سره مهايات دا دی چي د کور يوه خونه يوه شريک ته ورکول سي او بله خونه بل ته ورکول سي (لکه په صورت د مسئلي کي چي ذکر سوه). په دې صورت کي دواړه شريکان يو ځای او په يوه وخت کي نفع اخيستلای سي؛ ځکه چي د هر يوه د نفعي ځای جلا جلا دی. دې صورت ته إفراز "يعني د هر يوه نفع جلا. جلا کول" وايي. په دې کي د مبادلې شکل نسته. په همدې وجه په دې کي د وخت تاکل شرط نه دي، او همدا غوره صورت دی (ځکه چي دإفراز په صورت کي دربوا شبهه نسته او د مبادلې په صورت کي سته کوم چي بر بناء ضرورت استحسانا جائز گرځول سوې ده).

ولکل واحد أن يستغل إلخ: د دې حاصل دا دی چي کله شريکان د مهايات په ذريعه خپل. خپل حصه (مثلاً هر يو خپل خونه) جلا کړي، نو اوس هر يوه ته دا اختيار سته چي خپل حصه بل چا ته په کرايه ورکړي؛ ځکه چي تر مهايات وروسته راتلونکي منافع (کرايه) خاص د هغه په ملکيت کي پيدا کيږي (تر لاسه کيږي). لهذا کله چي هغه د خپل حصې مالک دي، نو په هغه کي به د هر ډول تصرف هم مالک وي، برابره ده د عقد (مهايات کولو) پر مهال په کرايه د ورکولو شرط او صراحت سوی وي، که نه.

## په يوه غلام کي د مهايات کولو حکم او په مهايات في الزمان او في المکان کي د اختلاف حکم

وَلَوْتَهَايَئَافِي عَبْدٍ وَاحِدٍ عَلٰى أَنْ يَخْدُمَ هٰذَا يَوْمًا وَهٰذَا يَوْمًا او که دوه شريکان په يوه غلام کي داسي مهايات وکړي [نوبت وټاکي] چي هغه غلام به يوه ورځ د دې شريک او بله ورځ د دغه شريک خدمت کوي جَازَ نو دا جائز دي وَكَذَا هٰذَا فِي الْبَيْتِ الصَّغِيْرِ او همدارنگه په کوچنۍ خونه کي هم [داسي مهايات کول جائز دي] لِأَنَّ الْمُهَايَاةَ قَدْ تَكُوْنُ فِي الزَّمَانِ وَقَدْ تَكُوْنُ مِنْ حَيْثُ الْمَكَانِ ځکه چي مهايات کله د زمانې په اعتبار سره کيږي [چي دومره وخت به د يوه شريک او دومره وخت....] او کله د مکان په حيثيت سره کيږي وَالْأَوَّلُ مُتَعَيِّنٌ هٰهُنَا او دلته اول [مهايات في الزمان] متعين دی وَلَوِاخْتَلَفَا فِي التَّهَايُؤِ مِنْ حَيْثُ الزَّمَانِ وَالْمَكَانِ فِي مَحَلٍّ يَحْتَمِلُهُمَا او که دوه شريکان د زمان يا مکان په اعتبار سره د مهايات په هکله اختلاف وکړي په داسي ځای کي چي هغه ځای [د مهايات في الزمان والمکان] دواړو احتمال لري يَأْمُرُهُمَا الْقَاضِيْ بِأَنْ يَتَّفِقَا نو قاضي به دوی ته حکم کوي چي دوی دواړه [په مهايات في

الزمان او فی المکان کي پريوه] اتفاق وکړي لِأَنَّ التَّهَايُؤَ فِي الْمَكَانِ أَعْدَلُ ځکه چي مهايات في المکان [د ځای په اعتبار سره مهايات] زيات انصاف والا دی وَفِي الزَّمَانِ أَكْمَلُ او مهايات في الزمان بيا زيات کامل دی فَلَمَّا اخْتَلَفَتِ الْجِهَةُ لهذا کله چي جهت مختلف سو لَابُدَّ مِنَ الِاتِّفَاقِ نو اتفاق کول ضروري دي فَإِنِ اخْتَارَاهُ مِنْ حَيْثُ الزَّمَانِ بيا که دواړه شريکان د زماني په اعتبار سره مهايات اختيار کړي [يعني مثلاً پر مهايات فی الزمان اتفاق وکړي] يُقْرَعُ فِي الْبِدَايَةِ نو په شروع کي به قرعه اندازي کوي [...مطلب دا چي اول به کوم شريک په دې ځای کي اوسېدل شروع کوي په دې باره کي به قرعه اندازه کوي] نَفْيًا لِلتُّهْمَةِ د تهمت ختمولو لپاره [چي له قاضي څخه تهمت ليري سي].

**اللغات**: ﴿يُقرَع﴾ د افعال د باب مضارع مجهوله ده: قرعه اندازي کول، قرعه کشي کول. ﴿بداية﴾ ابتداء، شروع.

**تشريح**: **صورت د مسئلې**: دا دی چي يو غلام د دوو شريکانو (زيد او خالد) تر مينځ مشترک دی، هغو په خپل مينځ کي دا فيصله وکړه چي دا غلام به يوه ورځ د زيد او بله ورځ د خالد خدمت کوي، نو دا جائز دي او دا د مهايات في الزمان صورت دی (ځکه ښکاره ده چي ورځ د زمان سره تعلق لري).

په مهايات في الزمان کي د منافعو تحصيل يو تر بل وروسته کيږي (لکه مخکي چي ذکر سوه)، او په مهايات في المکان کي يو دم دواړه شريکان منافع حاصلوي، خو په اول (مهايات في الزمان) کي د ټوله مملوک د منافعو تحصيل کيږي، او په دويم (مهايات في المکان) کي د بعض کيږي (ځکه له يوې حصې [مثلاً خوني] څخه يو شريک نفع اخلي او له بلي څخه بل شريک)...

**ولو اختلفا إلخ**: د دې حاصل دا دی چي که يو شريک ووايي چي موږ مهايات في المکان کړی وو او بل شريک ووايي چي نه! مهايات في الزمان مو کړی وو، نو په دې صورت کي به قاضي له خپل ځانه فيصله نه کوي؛ بلکي دوی دواړو ته به پريوه مهايات (مهايات في المکان يا في الزمان) د اتفاق کولو حکم کوي؛ ځکه چي دا دواړه قسمونه په بېلابېلو جهاتو سره يو له بل څخه افضل او غوره دي، نو يوه ته ترجيح ورکول مشکل دي، ځکه مهايات في المکان اعدل دی او مهايات في الزمان اکمل دی، يعني زيادت عدل او انصاف په مهايات في المکان کي دی چي دواړه په يوه وخت کي له مشترک شي (کور) څخه نفع حاصلوي، او د منفعت زيات کمال او بشپړ والي بيا په مهايات في الزمان کي دی چي له ټوله مشترک شي (کور) څخه هر شريک په خپل نوبت کي نفع حاصلوي، نو د اتفاق حکم کول ضروري سوه.

بيا که چيري دوی دواړو پر دې اتفاق وکړی چي مهايات في الزمان دی. نو اول نوبت او اول وخت به د کوم شريک وي، فرمايي چي په دې باره کي به قرعه اندازي کيږي، ځکه که قاضي له خپل طرفه ديو شريک نوبت اول مقرر کړي. نو په دې کي پر قاضي د طرفداری تهمت سته. لهذا قرعه اندازي به کيږي او د کوم نوم چي اول وخيږي. اول نوبت به هغه ته ورکول کيږي.

## د دوو مشترکو غلامانو د مهايات حکم او تفصيل

وَلَوْتَهَايَئَا فِي الْعَبْدَيْنِ عَلَى أَنْ يَخْدُمَ هٰذَا هٰذَا الْعَبْدُ وَالْآخَرُ الْآخَرَ او که دوه شريکان په دوو غلامانو کي داسي مهايات وکړي [نوبت وټاکي] چي د دغه شريک به دا غلام خدمت کوي او د دې بل شريک به دا بل خدمت کوي جَازَ عِنْدَهُمَا نو دا د صاحبينو رَحِمَهُمَا الله په نيز جائز دي لِأَنَّ الْقِسْمَةَ عَلٰى هٰذَا الْوَجْهِ جَائِزَةٌ عِنْدَهُمَا ځکه چي په دغه توګه تقسيم کول د دوی په نيز جائز دي جَبْرًا مِنَ الْقَاضِي وَبِالتَّرَاضِي د قاضي په جبر سره [هم] او [د شريکانو] په رضاء سره هم فَكَذَا الْمُهَايَأَةُ نو همداسي به مهايات هم [جائز] وي وَقِيلَ: عِنْدَ أَبِي حَنِيْفَةَ لَا يَقْسِمُ الْقَاضِي او ويل سوي دي: چي د امام صاحب رَحِمَهُ الله په نيز به قاضي تقسيم نه کوي وَهٰكَذَا رُوِيَ عَنْهُ او همداسي له امام صاحب رَحِمَهُ الله څخه روايت سوی دی لِأَنَّهُ لَا يَجْرِي فِيهِ الْجَبْرُ عِنْدَهُ ځکه د امام صاحب رَحِمَهُ الله په نيز په دې کي د قاضي جبر نه جاري کيږي وَالْأَصَحُّ أَنَّهُ يَقْسِمُ الْقَاضِي عِنْدَهُ أَيْضًا او صحيح دا ده چي د امام صاحب په نيز هم قاضي دا [د دوو غلامانو د خدمت] تقسيم کولای سي لِأَنَّ الْمَنَافِعَ مِنْ حَيْثُ الْخِدْمَةِ قَلَّمَا تَتَفَاوَتُ ځکه د خدمت په حيثيت سره منافع ډېر کم متفاوت وي [يا په بله وينا دا چي په خدمت والا منافعو کي تفاوت ډېر لږ وي] بِخِلَافِ أَعْيَانِ الرَّقِيقِ په خلاف د عين غلامانو لِأَنَّهَا تَتَفَاوَتُ تَفَاوُتًا فَاحِشًا ځکه چي هغه ډېر زيات متفاوت کيږي [يعني په عين غلامانو کي بيخي ډېر تفاوت وي] عَلٰى مَا تَقَدَّمَ. لکه مخکي چي تېر سوه.

**اللغات**: ﴿أعيان﴾ جمع د عين ده. مراد: ذوات. ﴿رقيق﴾ مملوک انسان. غلام.

**تشريح**: **صورت د مسئلي**: دا دی چي د دوو شريکانو تر مينځ دوه غلامان مشترک دي. او هغو داسي مهايات وکړی چي په دې غلامانو کي به يو غلام ديوه شريک خدمت او دويم به د بل شريک خدمت کوي. نو دا بالاتفاق جائز دي.

د صاحبینو رَحِمَهُمَا الله په نېز خو ښکاره ده چي د هغو په نېز په دې صورت کې تقسیم جائز دی جبراً هم او رضاءً هم (یعني که دوی خپله په تقسیم راضي وي او که د قاضي په جبر سره وي). لهٰذا کله چي په اصل یعني په تقسیم کي دا ډول صورت جائز دی. نو په فرع یعني مهایات کي خو به په درجه اولیٰ جائز وي.

او له امام صاحب رَحِمَهُ الله څخه په دې سلسله کي دوه قوله نقل سوي دي: ① دا ډول مهایات جائز نه دی؛ ځکه چي په تقسیم کي د امام صاحب رَحِمَهُ الله په نېز جبر نه چلیږي، ځکه د مخکي په څېر دلته هم اختلاف جنس سته. امام خصاف رَحِمَهُ الله هم له امام صاحب رَحِمَهُ الله څخه دا روایت نقل کړی دی.

② زیات صحیح قول دا دی چي د امام صاحب رَحِمَهُ الله په نېز هم دا ډول مهایات جائز دی؛ ځکه چي دا د منافعو د تقسیم مسئله ده (لکه مخکي چي موږ ذکر کړه چي مهایات د منافعو تقسیم ته وایي). او مخکي چي د تقسیم په بحث کي کومه مسئله ذکر سوې ده هغه د اعیانو د تقسیم مسئله وه. او په اعیانو کي د ډېر زیات تفاوت (تفاوت فاحش) په وجه هغوی مختلف الجنس ګرځول سوي دي، لېکن په خدمت او داسي نورو منافعو کي ډېر لږ تفاوت (تفاوت أقل) وي چي هغه زغمل کېدای سي، نو دلږ تفاوت په وجه منافع متحد الجنس شمېرل سوي دي، نو ځکه مذکوره مهایات جائز دي. (د امام صاحب او صاحبینو رَحِمَهُمُ الله تر مینځ د اعیانو اختلاف مخکي د هدایه ج: ۳. ص: ۳۹۸ کي تېر سو).

## د غلامانو د نفقې پر شرط د مهایات کولو حکم

وَلَوْ تَهَايَئَا فِيهِمَا عَلَى أَنَّ نَفَقَةَ كُلِّ عَبْدٍ عَلَى مَنْ يَأْخُذُهُ او که دوه شریکان په دوو غلامانو کي پر دې شرط مهایات وکړي چي د هر غلام نفقه به پر هغه یوه وي کوم یو چي دا غلام اخلي [یا په بله وینا دا چي کوم غلام چي د کوم شریک خدمت کوي، نفقه به یې پر هغه وي] جَازَ اسْتِحْسَانًا نو دا استحساناً جائز دي لِلْمُسَامَحَةِ فِي إِطْعَامِ الْمَمَالِيكِ ځکه غلامانو ته د خوراک ورکولو په هکله نرمي [او آساني] کیږي بِخِلَافِ شَرْطِ الْكِسْوَةِ په خلاف د کپړې د شرط لګولو [یعني دا شرط چي د هر غلام کپړه به پر هغه یوه وي...] لِأَنَّهُ لَا يُسَامَحُ فِيهَا ځکه چي په دې کي نرمي نه کیږي.

**اللغات**: ﴿مسامحة﴾ د مفاعلې د باب مصدر دی. د دغه باب څو معناوي نقل سوي دي: نرمي کول، آساني کول، د یو چا سره د هغه پر طلب موافقت کول (معجم لغة الفقهاء). چشم پوشي کول (پر څه نقصان ستر ګي پټول) (احسن الهدایه). ﴿کسوة﴾ کپړه، اللِّبَاسُ الَّذِي يَسْتَتِرُ بِهِ.

**تشريح: مسئله:** دا ده چي کله دوه غلامان د دوو کسانو تر مينځ مشترک وي، نو د هغه غلامانو نفقه (خوراکه) او کپړه په مشترکه توګه پر دواړو شريکانو واجبيږي.

ليکن که دواړه پر دې شرط مهايات وکړي چي کوم غلام چي د کوم يوه خدمت کوي، خوراکه، خرچه او کپړې به هم هغه ورکوي، نو د دې څه حکم دی؟. فرمايي چي د خوراکې په صورت کي خو جائز دی، ځکه په خوراکه کي عموماً تفاوت هم کم وي، او په کپړه کي تفاوت فاحش وي، نو د کپړې شرط جائز نه دی.

دويمه وجه دا ده چي په خوراک ورکولو کي عموماً بخل او سختي نه کيږي، او د کپړې په جوړولو کي بخل کيږي (ځکه پخوا به کپړه ډېر په مشکله جوړېده نو ډېره به ګرانه او کمته وه. په همدې وجه پخوا د کفن غلا هم کېده).

همدارنګه کله چي د دوو غلامانو کپړه پر دواړو شريکانو په مشترکه توګه واجب سي، نو دا داسي ده لکه هر يو چي له خپل ملکري شريک څخه نصف کپړه د بدل يوه د نصف کپړې په بدله کي رانيسي او په دې کي جهالت دی (ځکه دا نصف مجهول دي). او د مجهول بيع و شراء جائز نه دي. نو ځکه د کپړې شرط لګول هم جائز نه دي.

**يادونه:** که يو کپړه متعيّنه کړی سي، نو استحساناً جائز دي. (مجمع الأنهر ج:۲، ص:۶۷۸)

## د دوو مشترکو کورونو د مهايات حکم

وَلَوْتَهَايَئَافِي دَارَيْنِ عَلٰى أَنْ يَسْكُنَ كُلُّ وَاحِدٍ مِنْهُمَا دَارًا او که دوه شريکان په دوو کورونو کي پر دې شرط مهايات وکړي چي له دوی څخه به هر يو په يوه کور کي اوسيږي جَازَ نو دا جائز دي وَيُجْبِرُ الْقَاضِيْ عَلَيْهِ او قاضي پر دې جبر کولای سي أَمَّا عِنْدَهُمَا فَظَاهِرٌ هرچي د صاحبينو رَحِمَهُمَا الله په نېز خو دا ښکاره ده لِأَنَّ الدَّارَيْنِ عِنْدَهُمَا كَدَارٍ وَاحِدَةٍ ځکه دوه کورونه د دوی په نېز [په حکم کي] د يوه کور په څېر دي وَقَدْ قِيْلَ: لَايُجْبِرُ عِنْدَهُ او ويل سوي دي: چي د امام صاحب رَحِمَهُ الله په نېز قاضي جبر نه سي کولای اِعْتِبَارًا بِالْقِسْمَةِ پر تقسيم په قياس کولو سره وَعَنْ أَبِيْ حَنِيْفَةَ ۞ أَنَّهُ لَا يَجُوْزُ التَّهَايُؤُ فِيهِمَا أَصْلًا بِالْجَبْرِ لِمَا قُلْنَا وَبِالتَّرَاضِيْ او له امام صاحب رَحِمَهُ الله څخه روايت سوی دی چي په دوو کورونو کي مهايات بالکل جائز نه دی نه په جبر سره د هغه دليل پر بناء کوم چي موږ

---

۞ القول الراجح: قول الصاحبين رَحِمَهُمَا الله كما في الدر المختار: والأصح أن القاضي يهايئ بينهما جبراً بطلب أحدهما (ج:۵، ص:۱۸۹)، وكذا في الهندية (ج:۵، ص:۲۳۰). [القول الراجح ج:۲، ص:۲۸۳]

ذکر کړی او نه په رضاء سره لِأَنَّهُ بَيْعُ السُّكْنَى بِالسُّكْنَى ځکه چي دا د اوسېدلو په بدله کي د اوسېدلو بیع [خرڅول] دي بِخِلَافِ قِسْمَةِ رَقَبَتِهِمَا په خلاف د عينِ کورونو د تقسيمولو لِأَنَّ بَيْعَ بَعْضِ أَحَدِهِمَا بِبَعْضِ الْآخَرِ جَائِزٌ ځکه چي له دوی څخه د يوه کور بعضي حصه د بل د بعضي حصې په بدله کي خرڅول جائز دي وَجْهُ الظَّاهِرِ: أَنَّ التَّفَاوُتَ يَقِلُّ فِي الْمَنَافِعِ د ظاهر روايت دليل دا دی: چي تفاوت په منافعو کي کم [لږ] وي فَيَجُوزُ بِالتَّرَاضِي نو ځکه دا په رضاء سره [هم] جائز دي وَيَجْرِي فِيهِ جَبْرُ الْقَاضِي او په دې کي د قاضي جبر هم جاري کېدای سي وَيُعْتَبَرُ إِفْرَازًا او دا به إفراز مثل کيږي [يا په بله وينا دا چي په دې کي د إفراز اعتبار کيږي] أَمَّا بِكَثْرَةِ التَّفَاوُتِ فِي أَعْيَانِهِمَا فَاعْتُبِرَ مُبَادَلَةً او پاتېږه سوه په عينِ کورو کي زيات تفاوت وي نو ځکه هغه به مبادله مثل کيږي [د مبادلې اعتبار پکښي کيږي].

**اللغات**: ﴿تراضي﴾: يو تر بله راضي کېدل، په يو شي د دواړو عاقدينو راضي کېدل. ﴿سکنیٰ﴾ اوسېدونه، استوګنه. ﴿يقلّ﴾ د ضرب مضارع ده: کمېدل، لږېدل. ﴿إفراز﴾ د افعال د باب مصدر دی: جلا، جلا کول، را جلا کول.

**تشريح: صورت د مسئلې**: دا دی چي د زيد او خالد په مينځ کي دوه کورونه مشترک دي، دوی په خپل مينځ کي دا فيصله وکړه چي په يوه کور کي به زيد اوسيږي او په بل کي به خالد اوسيږي. نو دا جائز دي او له دواړو څخه د يوه شريک پر مطالبه به قاضي پر دغه مهايات جبر هم کوي، پر دې د ائمه ثلاثه وو اتفاق دی.

که سوال وسي چي دا خبره خو صرف د صاحبينو په نېز صحيح کېدای سي کوم چي دوو مشترکو کورونو ته د يوه کور (دارِ واحد) درجه ورکوي (لکه څرنګه چي مخکي د هديه ج:۳ ص:۳۹۹ کي د دې تفصيل تېر سو)، مګر د امام صاحب رَحِمَهُ الله په نېز خو دا مهايات نه جائز کېدل پکار دي: ځکه د دواړو کورونو جلا، جلا تقسيم د هغه په نېز جائز نه دی (کمامر). نو بيا د ائمه ثلاثه وو اتفاق څنګه دی؟.

د دې جواب دا دی چي په مهايات کي د منافعو تحصيل کيږي او په منافعو کي ډېر لږ تفاوت وي. نو دا په تراضي سره هم جائز دي او جبراً هم. ځکه چي دا د إفراز درجه ده. او د کورونو په تقسيم کي تفاوت فاحش دی. نو هلته دا مبادله ده او په مبادله کي جبر نه جائز کيږي.

او که سوال وسي چې له امام صاحب رَحِمَهُ الله څخه څو نور اقوال هم نقل سوي دي؟

جواب دا دی چې ظاهر روايت خو هغه دی کوم چې ذکر سو يعني مذکوره مهايات جائز دی. او نور اقوال په "نوادرات" کې نقل سوي دی، له هغوی څخه يو قول دا دی چې په تراضي سره جائز دی. او همدا د امام کرخي رَحِمَهُ الله قول دی. او دويم دا قول نقل سوی دی چې دا مهايات بالکل جائز نه دی نه جبراً او نه په تراضي سره.

د جبراً دليل خو ذکر سو. او د تراضي دليل دا دی چې دا د سکنیٰ (اوسېدلو) بيع د سکنیٰ په بدله کې ده او دا باطله ده. او د تقسيم په صورت کې د کور د بعضي حصې بيع د بل د بعضي حصې په بدله کې ده او دا جائزه ده.

## د دوو مشترکو څارويو د مهايات حکم

وَفِي الدَّابَّتَيْنِ لَا يَجُوزُ التَّهَايُؤُ عَلَى الرُّكُوبِ عِنْدَ أَبِي حَنِيفَةَ او په دوو څارويو کې پر سپرېدلو مهايات کول د امام صاحب رَحِمَهُ الله په نېز جائز نه دي وَعِنْدَهُمَا يَجُوزُ او د صاحبينو رَحِمَهُمَا الله په نېز جائز دي اعْتِبَارًا بِقِسْمَةِ الْأَعْيَانِ داعيانو [عين څارويانو] پر تقسيم په قياس کولو سره وَلَهُ: أَنَّ الِاسْتِعْمَالَ يَتَفَاوَتُ بِتَفَاوُتِ الرَّاكِبِيْنَ دامام صاحب رَحِمَهُ الله دليل دا دی: چې د سپرېدونکو د تفاوت [توپير] په وجه په استعمال کې هم تفاوت راځي فَإِنَّهُمْ بَيْنَ حَاذِقٍ وَأَخْرَقَ ځکه چې سپرېدونکي د ماهر او نا تجربه کاره تر مينځ وي [يعني بعضي دآس په سپرتيا او چلولو کې ماهر او بعضي کمزوري وي] وَالتَّهَايُؤُ فِي الرُّكُوبِ فِي دَابَّةٍ وَاحِدَةٍ عَلَى هٰذَا الْخِلَافِ او د يوه څاروي په سپرتيا کې مهايات کول پر همدغه اختلاف دي لِمَا قُلْنَا د هغه دليل په وجه کوم چې موږ بيان کړی بِخِلَافِ الْعَبْدِ په خلاف د غلام لِأَنَّهُ يَخْدُمُ بِاخْتِيَارِهِ ځکه چې هغه په خپل اختيار سره خدمت کوي فَلَا يَتَحَمَّلُ زِيَادَةً عَلَى طَاقَتِهِ لهذا هغه له خپل طاقت څخه زيات [بوج] نه پورته کوي وَالدَّابَّةُ تَحْمِلُهَا او څاروی يې پورته کوي.

**اللغات**: ﴿دابة﴾ څاروی، چارپای، جمع: دوابّ. ﴿حاذق﴾ ماهر، ډېر په پوهېدونکی. ﴿أخرق﴾ ناپوه او ناتجربه کاره. أَخْرَقَ بِالشَّيءِ: په يو شي ناخبره چې سم نه په پوهيږي. (احسن الهدايه)

**تشريح**: **صورت د مسئلې**: دا دی چې د زيد او خالد تر مينځ دوه څاروي مثلاً دوه آسان مشترک دي، او دوی داسې مهايات وکړی چې پر يوه به زيد سپرېږي او پر بل به خالد سپرېږي، يا د دواړو تر مينځ

صرف يو آس مشترک دی، او دوی داسي مهايات وکړی چي پر دې به پنځه ورځي زيد سپربږي او پنځه ورځي به خالد پر سپربږي، نو د صاحبينو رَحِمَهُمَا الله په نېز خو دا صورت جائز دی، او د امام صاحب رَحِمَهُ الله په نېز جائز نه دی.

ځکه صاحبينو رَحِمَهُمَا الله داعيانو پر تقسيم په قياس کولو سره دې ته هم جائز ويلي دي (يعني څرنګه چي د عين آس تقسيم د صاحبينو په نېز جائز دی، نو ځکه مهايات يې هم جائز دی) او د امام صاحب رَحِمَهُ الله په نېز داعيانو د تقسيم هم دغه حکم دی چي جائز نه دی (کما مرّ).

همدارنګه د امام صاحب رَحِمَهُ الله دليل دا دی چي په سپرېدونکو کسانو کي فرق وي، يو په سپرتيا کي ماهر وي چي د هغه د مهارت په وجه سپرلي (آس) ته هيڅ نقصان نه رسيږي او بل د سپرتيا په چم هم نه پوهيږي چي په هغه سره سپرلي ته نقصان رسېدلای سي.

ها! که همدا پورتنی صورت د يوه غلام او دوو غلامانو تر مينځ وي، نو هغه د امام صاحب رَحِمَهُ الله په نېز هم جائز دی؛ ځکه غلام خو صاحب اختيار وي له خپل وس او طاقت څخه بالا بوج بالکل نه پورته کوي، او څاروی د وهلو په صورت کي له خپل طاقت څخه زيات بوج پورته کوي، نو په دې وجه د دواړو تر مينځ فرق دی.

## په کرايه د کور ورکولو کي د مهايات حکم او تفصيل

وَأَمَّا التَّهَايُؤُ فِي الِاسْتِغْلَالِ يَجُوزُ فِي الدَّارِ الْوَاحِدَةِ فِي ظَاهِرِ الرِّوَايَةِ او پاته سو په کرايه اخيستلو کي مهايات کول د ظاهر روايت مطابق جائز دي وَفِي الْعَبْدِ الْوَاحِدِ وَالدَّابَّةِ الْوَاحِدَةِ لَا يَجُوزُ او په يوه غلام او يوه څاروي کي جائز نه دي وَوَجْهُ الْفَرْقِ هُوَ أَنَّ النَّصِيبَيْنِ يَتَعَاقَبَانِ فِي الِاسْتِيفَاءِ او وجه د فرق يې دا ده چي د دواړو حصې په نفع اخيستلو [اوسېدلو] کي يو تر بل وروسته راځي وَالِاعْتِدَالُ ثَابِتٌ فِي الْحَالِ او فی الحاله اعتدال ثابت دی وَالظَّاهِرُ بَقَاؤُهُ فِي الْعَقَارِ وَتَغَيُّرُهُ فِي الْحَيَوَانِ او په جايداد [ځمکه، کور...] کي د اعتدال باقي پاتېدل او په حيوان [ساکښ] کي د هغه متغير کېدل ښکاره دي لِتَوَالِي أَسْبَابِ التَّغَيُّرِ عَلَيْهِ ځکه چي پر حيوان پرلپسې د تغيّر اسباب راځي فَتَفُوتُ الْمُعَادَلَةُ نو برابري [او انصاف] به فوت سي.

**اللغات**: ﴿الاستغلال﴾ د استفعال د باب مصدر دی، د دې باب په صله کې چې جايداد (کور، ځمکه او داسې نور) راسي نو معنیٰ يې ده: د جايداد کرايه اخيستل (معجم الوسيط)، په کرايه ورکول (احسن الهدايه).

﴿توالی﴾ د تفاعل د باب مصدر دی: پرلپسې کېدل.

**تشريح**: **صورت د مسئلې**: دا دی چې يو کور د زيد او خالد تر مينځ مشترک دی، دوی دا فيصله وکړه چې د دې کور کرايه به يوه مياشت زيد اخلي او بله مياشت خالد، يا په بله وينا دا چې دا کور به يوه مياشت زيد په کرايه ورکوي او بله مياشت به يې خالد په کرايه ورکوي او کرايه به يې اخلي، نو په ظاهر روايت کې دا صورت جائز دی.

او که همدا صورت په يوه غلام او يوه څاروي کې وي، نو بالاتفاق جائز نه دی؛ ځکه کله چې شريکين دواړه د برابرۍ درجې شريکان دي، نو په هر صورت کې د دوی د برابرۍ خيال کول ضروري دي، او دا خيال په اول صورت يعني د کور په صورت کې باقي دی، لېکن په آخري صوتونو کې باقي نه پاتېږي؛ په اول صورت کې ځکه باقي پاتېږي چې ظاهري حالت همدا دی چې د کور چې کوم اوسنی حالت دی، را روانه مياشت به هم هغه حالت پاته وي هيڅ بدلون به سي پکښې رانه لای (نو ځکه دواړه شريکان به په برابره توګه نفع حاصله کړی سي)، نو د کور په صورت کې برابري ثابته ده، او د غلام او څاروي په صورت کې د دې هيڅ پته او ذمه واري نسته چې را روانه مياشت به د غلام او څاروي همدغه حالت وي او مريض يا عيبداره به نه وي؛ کېدای سي چې هغه مريض سي يا کمزوري سي او د کرايې قابل پاته نه سي، ځکه پر ساکښو (حيواناتو) د تغير اسباب پرلپسې راتلونکي وي، کله ښه وي او کله په مرض مبتلا وي، نو دلته برابري نه سي کېدای.

## په کرايه د کور ورکولو په صورت کې د يوه شريک په نوبت کې د زياتي کرايې د راتللو حکم

| |
|---|
| وَلَوْزَادَتِ الْغَلَّةُ فِي نَوْبَةِ أَحَدِهِمَا عَلَيْهَا فِي نَوْبَةِ الْآخَرِ او که له شريکينو څخه د يوه په نوبت کې کرايه زياته سي له هغه کرايې څخه کوم چې د بل شريک په نوبت کې وه يَشْتَرِكَانِ فِي الزِّيَادَةِ نو دوی دواړه په زياتوب [زائده کرايه] کې شريکان کيږي لِيَتَحَقَّقَ التَّعْدِيلُ د دې لپاره چې برابري ثابته سي بِخِلَافِ مَا إِذَا كَانَ التَّهَايُؤُ عَلَى الْمَنَافِعِ په خلاف د هغه صورت کله چې پر منافعو مهايات سوی وي فَاسْتَغَلَّ أَحَدُهُمَا فِي نَوْبَتِهِ زِيَادَةً بيا له شريکينو څخه يو په خپل نوبت کې زياته کرايه واخلي لِأَنَّ التَّعْدِيلَ فِيمَا وَقَعَ عَلَيْهِ التَّهَايُؤُ حَاصِلٌ وَهُوَ الْمَنَافِعُ ځکه په کوم شي کې چې مهايات واقع سوی دی |

په هغه کي برابري حاصل سوې ده چي هغه منافع دي فَلَا تَضُرُّهُ زِيَادَةُ الْاِسْتِغْلَالِ مِنْ بَعْدُ، نو تر دې [برابرۍ] وروسته زياته كرايه اخيستل مهايات ته هيڅ نقصان نه كوي.

**اللغات:** ﴿الغَلّة﴾ د ځای کرايه، د ځمکي ما حصل (پيداوار)، آمدن، جمع: غَلّات. ﴿نوبة﴾ نوبت، واری. ﴿تعديل﴾ د تفعيل د باب مصدر دی: برابري کول، برابرول (مثلاً دوې حصې سره برابرول).

التعديل: برابري.

**تشريح: مسئله:** دا ده چي د زيد او خالد تر مينځ يو كور مشترک دی، دوی دا فيصله وکړه چي دا کور به يوه مياشت زيد او بله مياشت خالد په كرايه وركوي، نو زيد هغه كور مثلاً په پنځه زره كرايه وركړی، او د خالد نوبت چي راغلی نو هغه په اووه زره كرايه وركړی، نو دا زياتوب چي كوم دوه زره روپۍ دي، په دې کي دواړه شريکان كيږي. د دې لپاره چي برابري ثابته سي، او که فيصله داسي سوې وي چي دواړه به يو تر بل وروسته په دې كور كي اوسيږي او منافع به حاصلوي (مثلاً يوه مياشت به زيد او يوه مياشت به خالد پکښې اوسيږي)، بيا دواړه (په نوبت، نوبت) دا كور په كرايه وركړي او په كرايه كي زياتوب وسي، نو اوس په زياتوب كي دواړه نه شريكان كيږي: ځكه چي مهايات پر منافعو سوی وو، نه پر استغلال، او په منافعو كي برابري باقي ده. لهذا كله چي په منافعو كي تعديل او برابري باقي ده، نو بيا به د استغلال او كرايې زياتوب د بل شريک لپاره مضر نه وي.

## په پورتني صورت کي د دوو کورونو حکم

وَالتَّهَايُؤُ عَلَى الِاسْتِغْلَالِ فِي الدَّارَيْنِ جَائِزٌ أَيْضًا فِي ظَاهِرِ الرِّوَايَةِ او د دوو کورونو د کرايه پراخيستلو مهايات کول هم جائز دي د ظاهر روايت مطابق لِمَا بَيَّنَّا د هغه دليل په وجه كوم چي موږ بيان كړی وَلَوْ فَضَلَ غَلَّةُ أَحَدِهِمَا او كه له شريكينو څخه د يوه شريک كرايه زياته سي لَا يَشْتَرِكَانِ فِيهِ نو دواړه په هغه كي نه شريكان كيږي بِخِلَافِ الدَّارِ الْوَاحِدَةِ په خلاف د يوه كور [چي په زائده كرايه كي دواړه شريكان كيږي] وَالْفَرْقُ أَنَّ فِي الدَّارَيْنِ مَعْنَى التَّمْيِيزِ وَالْإِفْرَازِ رَاجِحٌ او فرق دا دی چي د دوو كورونو په صورت كي د تمييز او إفراز معنیٰ راجحه ده لِاتِّحَادِ زَمَانِ الِاسْتِيفَاءِ ځکه چي [د كرايې] اخيستلو زمانه يوه ده وَفِي الدَّارِ الْوَاحِدَةِ يَتَعَاقَبُ الْوُصُولُ او د يوه كور په صورت كي وصولول [د كرايې اخيستل] يو تر بل وروسته وي فَاعْتُبِرَ قَرْضًا وَجُعِلَ كُلُّ وَاحِدٍ فِي نَوْبَتِهِ كَالْوَكِيلِ عَنْ صَاحِبِهِ نو دا به قرض شمېرل كيږي او هر شريک به په خپل نوبت كي د خپل ملګري له طرفه د وكيل په څېر

گرځول کيږي ﴿فَلِهٰذَا يَرُدُّ عَلَيْهِ حِصَّتَهُ مِنَ الْفَضْلِ﴾ نو په همدې وجه هر شريک به خپل ملګري ته له زائدې کرايې څخه د هغه حصه واپس کوي [يعنې څومره کرايه چې زياته سي، له هغه څخه به د خپل ملګري حصه هم ورکوي].

**اللغات:** ﴿استغلال﴾ مخکې د دې وضاحت وسو چې معنی يې ده: کرايه اخيستل. ﴿فضل﴾ د کرم د باب ماضي ده: اضافه کېدل، زياتېدل. ﴿غلّة﴾ کرايه، آمدن. ﴿تميـيز﴾ د تفعيل د باب مصدر دی: سره جلا کول، بېلول. ﴿إفراز﴾ د افعال د باب مصدر دی: را جلا کول. ﴿استيفاء﴾ د استفعال د باب مصدر دی: ترلاسه کول، وصولول، اخيستل. ﴿يتعاقب﴾ د تفاعل د باب مضارع ده: يو تر بل وروسته کېدل (يو له بل څخه وروسته راتلل).

**تشريح:** په مخکنۍ مسئله کې مهايات په يوه کور کې وو چې د هغه حکم بيان سو، دلته دا بيانوي چې که مهايات په دوو کورونو کې وي په دې توګه چې يو کور به زيد په کرايه ورکوي او بل به خالد په کرايه ورکوي، نو په ظاهر روايت کې د مخکيني دليل پر بناء دا هم جائز دي.

په مخکيني صورت (چې کور يو وي) او په دې صورت کې دا فرق سته چې په مخکيني صورت کې که ديو چا په نوبت کې زياته کرايه حاصله سي نو په هغه کې دواړه شريکان کيږي او په دې صورت کې که يو طرف ته زياته کرايه حاصله سي، نو په زياتوب کې شرکت نه ثابتيږي. او په دواړو صورتونو کې د فرق وجه دا ده چې په دې دويم صورت کې (چې کورونه دوه وي) د إفراز او تميـيز معنیٰ راجحه ده؛ ځکه چې د منفعت ترلاسه کولو زمانه يوه ده يعنې دواړه شريکان يو ځای ديوه، يوه کور کرايه حاصلوي، او په مخکيني (ديوه کور په) صورت کې د منفعت ترلاسه کول يو تر بل وروسته دي يعنې له يوه کور څخه يوه مياشت يو شريک کرايه حاصلوي او دويمه مياشت بل شريک. نو ګواکې هر شريک په خپل نوبت کې د خپل شريک د کرايه اخيستلو وکيل هم سو، نو دا به قرض شمېرل کيږي چې اول کرايه اخيستونکی شريک ګواکې له بل يوه څخه قرض اخلي، او کله چې دئ د خپل شريک له طرفه د وکيل په درجه کې دی، نو ځکه کرايه چې څومره زياته سي، هغه به د دوی تر مينځ مشترکه هم وي چې د هغه نيمايي به شريک ته ورکوي، او څرنګه چې په دويم صورت (يعنې چې کورونه دوه وي) کې يو ځای دواړه منفعت (کرايه) اخلي، نو ځکه دلته د قرض او وکيل صورت نسته، او کله چې په دې صورت کې دا شيان نسته، نو په زياتوب (زائد کرايه) کې به شرکت هم نه وي لکه په اول صورت کې.

## د دوو غلامانو د مهايات حکم

وَكَذَا يَجُوزُ فِي الْعَبْدَيْنِ عِنْدَهُمَا او همدارنګه په دوو غلامانو کي (تهايؤ في الاستغلال) [يعني دوو غلامانو پر کرايه او مزدوري اخيستلو مهايات کول] د صاحبينو رَحِمَهُمَا الله په نيز جائز دي اِعْتِبَارًا بِالتَّهَايُؤِ فِي الْمَنَافِعِ د منافعو پر مهايات په قياس کولو سره وَلَا يَجُوزُ عِنْدَهُ او دامام صاحب رَحِمَهُ الله په نيز جائز نه دي لِأَنَّ التَّفَاوُتَ فِي أَعْيَانِ الرَّقِيقِ أَكْثَرُ مِنْهُ مِنْ حَيْثُ الزَّمَانِ فِي الْعَبْدِ الْوَاحِدِ ځکه چي په عين دوو غلامانو کي د زماني په اعتبار سره له يوه غلام څخه زيات تفاوت دی فَأَوْلَى أَنْ يَمْتَنِعَ الْجَوَازُ نو په درجه اولیٰ به جواز ممتنع وي وَالتَّهَايُؤُ فِي الْخِدْمَةِ جُوِّزَ ضَرُورَةً او په خدمت کي د ضرورت په وجه مهايات جائز ګرځول سوی دی وَلَا ضَرُورَةَ فِي الْغَلَّةِ او په کرايه کي ضرورت نسته لِإِمْكَانِ قِسْمَتِهَا لِكَوْنِهَا عَيْنًا ځکه کرايه تقسيمول ممکن دي ځکه چي کرايه عين شی ده وَلِأَنَّ الظَّاهِرَ هُوَ التَّسَامُحُ فِي الْخِدْمَةِ وَالِاسْتِقْصَاءُ فِي الِاسْتِغْلَالِ او ځکه چي ښکاره په خدمت کي نرمي [او چشم پوشي] کول ذي او په کرايه اخيستلو کي پوره پلټنه کول دي [يعني ښکاره همدا ده چي که غلام سم خدمت نه کوي نو خلک ډېره سختي نه ور سره کوي بلکي نرمي کوي او د خدمت پر کمي بيشي سترګي پټوي خو په کرايه اخيستلو کي چشم پوشي نه کوي بلکي پوره حساب اخلي] فَلَا يَتَقَاسَانِ نو ځکه يو پر بل نه سي قياسول کېداي وَلَا يَجُوزُ فِي الدَّابَّتَيْنِ عِنْدَهُ او په دوو څارويو کي (تهايؤ في الاستغلال) دامام صاحب رَحِمَهُ الله په نيز جائز نه دی خِلَافًا لَهُمَا په خلاف د صاحبينو رَحِمَهُمَا الله وَالْوَجْهُ مَا بَيَّنَّاهُ فِي الرُّكُوبِ او دليل همغه دی کوم چي موږ د سپرتيا په مسئله کي بيان کړی.

**اللغات**: ﴿رقيق﴾ مملوک انسان، غلام، ﴿جوّز﴾ د تفعيل د باب ماضي مجهوله ده: جائز ګرځول. ﴿التسامح﴾ د تفاعل د باب مصدر دی: نرمي او آساني کول، د نرمي ځرګندونه، چشم پوشي کول (پر څه کمزوري سترګي پټول). ﴿استقصاء﴾ د استفعال د باب مصدر دی، استقصی المسألة: د مسئلې بېخ ته رسېدل، د يو شي پوره تفتيش او پلټنه کول.

**تشريح:** څرنګه چي دا جائز دي چي دوه شريکان خپل دوه کورونه د مهايات په توګه په کرايه ورکړي، همداسي د صاحبينو په نيز دوه غلامان هم د مهايات په توګه په اُجرت ورکولای سي، ځکه صاحبين رَحِمَهُمَا الله دا صورت د منافعو (يعني د خدمت) پر تهايؤ قياسوي او جائزيې ګرځوي، او د امام صاحب رَحِمَهُ الله په نيز دا صورت جائز نه دی؛ ځکه د زمانې په اعتبار سره يوازي په يوه غلام کي هم تفاوت او توپير وي، ځکه کله هغه زيات کار کوي او زياته کرايه راوړي او کله بيا سستي کوي چي نفع او کرايه يې کمه وي، لهذا کله چي په يوه غلام کي هم تفاوت وي، نو په دوو غلامانو کي به نور هم تفاوت وي، نو ځکه دا صورت ناجائز وګرځول سو، کنې د مهايات اصلي مقصد (يعني اعتدال او برابري) فوتيږي.

والتهايؤ في الخدمة إلخ: په دې سره د صاحبينو د قياس جواب ورکول سوی دی چي پر تهايؤ في الخدمت په قياس کولو سره تهايؤ في الاستغلال جائز ګرځول صحيح نه دي؛ ځکه چي په خدمت کي د انساني ضرورت په وجه تهايؤ جائز ګرځول سوی دی، او پاته سو په کرايه ورکولو ته ضرورت نسته، ځکه چي کور او مکان عين شی دی چي په دې وجه د هغه د منفعت او کرايې تقسيم آسانه دی، په دې توګه چي دوی کورونه په کرايه ورکړي او بيا له هغه شخخه حاصليدونکې کرايه په مشترکه توګه سره تقسيم کړي.

دويمه وجه دا ده چي په عامه توګه په خدمت کي خلک نرمي او چشم پوشي کوي، او د کرايې په اخيستلو کي سختي کوي چي د يوې دقيقې حساب هم لګوي، نو کله چي په دواړو کي فرق دی، نو بيا يو پر بل قياسول هم صحيح نه دي.

ولايجوز إلخ: په دې سره دا رابنيي چي په دوو څارويو کي د امام صاحب رَحِمَهُ الله په نيز تهايؤ في الاستغلال جائز نه دی او د صاحبينو رَحِمَهُمَا الله په نيز جائز دی (لکه مخکي چي ذکر سوه)؛ ځکه صاحبينو رَحِمَهُمَا الله د څارويو د داسي تقسيم پر جائز کېدلو په قياس کولو سره د دوی تهايؤ هم جائز ګرځولی دی، او امام صاحب رَحِمَهُ الله د راکبينو (سپريدونکو) تر مينځ د تفاوت په وجه هغه ممنوع ګرځولی دی.

## د درختو او څارويو د مهايات حکم

وَلَوْكَانَ نَخْلٌ أَوْ شَجَرٌ أَوْ غَنَمٌ بَيْنَ اثْنَيْنِ او که د دهو کسانو تر مينځ د خُرما درختي يا نوري درختي يا بزې مشترک وي فَتَهَايَئَا عَلَى أَنْ يَأْخُذَ كُلُّ وَاحِدٍ مِنْهُمَا طَائِفَةً يَسْتَثْمِرُهَا أَوْ يَرْعَاهَا وَيَشْرَبُ أَلْبَانَهَا بيا دوی دواړه پر دې شرط مهايات وکړي چې له دوی څخه به هريو يوه حصه اخلي چې له هغه څخه به مېوه ترلاسه کوي يا به يې څروي او د هغوی شيدې به څيښي لَايَجُوزُ نو دا جائز نه دي لِأَنَّ الْمُهَايَأَةَ فِي الْمَنَافِعِ ضَرُورَةً أَنَّهَا لَا تَبْقَى ځکه په منافعو کې مهايات د دې ضرورت په وجه [جائز] دي چې هغوی باقي نه پاتېږي فَيَتَعَذَّرُ قِسْمَتُهَا نو د هغوی تقسيمول متعذر دي وَهٰذِهِ أَعْيَانٌ بَاقِيَةٌ يَرِدُ عَلَيْهَا الْقِسْمَةُ عِنْدَ حُصُولِهَا او دغه [درختي او داسي نور] عين شيان دي کوم چې باقي پاتېدونکي دي چې د هغوی د حاصلېدلو په وخت کې هغوی تقسيمول کېدای سي وَالْحِيلَةُ أَنْ يَبِيعَ حِصَّتَهُ مِنَ الْآخَرِ ثُمَّ يَشْتَرِيَ كُلَّهَا بَعْدَ مُضِيِّ نَوْبَتِهِ او حيله دا ده چې يو شريک دې خپله حصه پر بل شريک خرڅه کړي بيا دې د خپل نوبت تر تېرېدلو وروسته هغه ټوله حصه خپله رانيسي أَوْ يَنْتَفِعَ بِاللَّبَنِ بِمِقْدَارٍ مَعْلُومٍ اسْتِقْرَاضًا لِنَصِيبِ صَاحِبِهِ يا دې [په خپل نوبت کې] په معلوم مقدار سره له شيدو څخه نفع اخلي د قرض اخيستلو په توګه د خپل ملګري له حصې څخه [په آسانه وينا دا چې يا دې په خپل نوبت کې د خپل ملګري شيدې په قرض اخلي او استعمالوي] إِذْ قَرْضُ الْمُشَاعِ جَائِزٌ ځکه چې د مشترک شي قرض جائز دی.

**اللغات**: ﴿نخل﴾ واحد نَخْلَةٌ: د خرما درخته. ﴿شَجَر﴾ واحد شَجَرَةٌ: عامه درخته. مراد ځني له خرما څخه بغير نوري درختي دي، ﴿غنم﴾ د "غَنَم" لفظ اسم جنس دی، مذکر او مؤنث دواړو لره شامليږي، همدارنګه د پسه، ميږي، سېرلي او بزې ټولو لپاره استعماليږي (معجم لغة الفقهاء)، خو دلته د "ألبان" په قرينه سره ميږې او بزې (وزې) ځني مراد دي، ﴿طائفة﴾ يوه حصه، يوه مجموعه، ﴿يستثمر﴾ د استفعال د باب مضارع ده: مېوه حاصلول (ترلاسه کول). ﴿يرعى﴾ د فتح د باب مضارع ده: څرول، پوول (رمه د خوراک لپاره دباندي څر ځای [چراګاه] ته بېول). ﴿استقراض﴾ د استفعال مضارع ده: په قرض اخيستل، قرض غوښتل.

**تشریح: صورت دَ مسئلې:** دا دی کـه د دوو شریکانو مثلاً د زید او خالد تر مینځ د خرما درختې یا نورې درختې یا بزې، میږې او داسې نور مشترک وي. او دوی په خپل مینځ کې داسې مهایات وکړي چې د دې مشترک شي یوه حصه به زید او بله به خالد اخلې چې هر یو به له خپل حصې څخه نفع اخلي. یا په بله وینا دا چې مثلاً دوې بزې (وزې) د زید او خالد په مینځ کې مشترکې دي او دوی په خپل مینځ کې داسې تقسیم وکړي چې یوه بزه به زه واخلم او بله به ته واخلې چې د هرې یوې شیدې به د هغه وي او هرې یوې ته به خوراکه هم هغه ورکوي (یا مثلاً ډېرې بزې. یا درختې وي او په دې توګه یې تقسیم وکړي)، نو دا جائز نه دي؛ ځکه چې دا شیان له أعیانو څخه دي او أعیان باقي پاتېږي. نو ځکه د دوی مهایات به هم جائز نه وي. او په منافعو کې چې مهایات جائز ګرځول سوي دي، هغه ځکه دي چې منافع تر ډېره باقي نه پاتېږي او د هغوی تقسیم مشکل وي، نو ځکه یو پر بل قیاسول صحیح نه دي.

والحیلة إلخ: په دې سره صاحب د هدایې رَحِمَهُ الله د درختو، پسونو او داسې نورو د مهایات د جائز کېدلو یو حیله ښیي. چې د هغه حاصل دا دی چې مثلاً زید دې خپل حصه یعني خپل درختې یا بزې مثلاً د یوې هفتې (اوونۍ) لپاره پر خالد خرڅې کړي نو اوس هغه ټوله د خالد ملکیت سوې او د خالد لپاره نفع اخیستل جائز سوه. او کله چې یوه هفته ختمه سي نو زید دې له هغه څخه خپل او د هغه ټوله درختې یا بزې رانیسي نو اوس به هغه ټوله د زید ملکیت سي او د هغه لپاره به نفع اخیستل جائز سي (او دا خرڅول او رانیول به د قرض په توګه وي. یعني یو شریک به هم په دې بیع و شراء کې بل شریک ته پیسې او روپۍ نه ورکوي [احسن الهدایه] والله أعلم) نو په دې توګه دا مهایات جائز کېږي.

او بله حیله داسې هم کېدای سي چې زید دې د خالد شیدې په قرض واخلي (چې مثلاً تر یوې هفتې یا لس ورځو پورې ستا د بزو [وزو] شیدې زه لوښم او هغه به ستا پر ما قرض وي) او د دواړو بزې شیدې دې استعمالوي. او کله چې د زید نوبت (یوه هفته یا لس ورځې) ختم سي او د خالد نوبت راسي. نو خالد دې د خپلو بزو شیدې هم استعمالوي او کومې شیدې چې یې زید ته په قرض ورکړي دي، هغه دې هم له هغه څخه واخلي (یعني په خپل نوبت کې دې د خپل قرض په عوض کې د زید د بزو شیدې هم لوښي). نو په دې توګه به هر شریک په خپل نوبت کې له دواړو بزو (وزو) له شیدو څخه نفع اخلي، په دې صورت کې که څه هم د مشترک شي په قرض ورکول او اخیستل راځي، خو د مشترک شي قرض جواز لري، نو ځکه دا صورت به هم جائز وي. فقط والله أعلم وعلمه أتم

❀❀❀

# كِتَابُ الْمُزَارَعَةِ

## (دا) كتاب د كښتكرۍ په بيان كي دى

**تشريح:** څرنګه چي په كتابُ القسمه كي د ځمكي او د هغه د پيداوار له تقسيم څخه بحث كيږي، همداسي په مزارعت هم كي د ځمكي د پيداوار له تقسيم څخه بحث كيږي. نو ځكه تر كتابُ القسمة وروسته يې كتابُ المزارعة بيان كړي دى.

**د مزارعة، مخابرة او مساقاة مطلب:** مزارعة له زراعت څخه مشتق دى: كښتكري كول. د كښت كرني معامله كول چي ځمكه د يوه كس له طرفه وي او كار (عمل) د بل كس له طرفه وي، او كوم پيداوار (حاصلات) چي وسي هغه د دواړو تر مينځ نيم په نيمه يا يوه حصه د يوه او دوې حصې د بل وي، نو دې ته مزارعت يا مخابره وي.

مخابره له خيبر څخه مشتق ده، نبي كريم ﷺ د خيبر خلكو ته ځمكه په كښتكرۍ وركړې وه، په همدې وجه مزارعت ته مخابره هم ويل كيږي.

په مزارعت او مساقات كي فرق دا دى چي كه ځمكه په كښتكرۍ وركول سي نو دې ته مزارعت وايي او كه درختي وركول سي نو دې ته مساقات وايي؛ ځكه چي په هغه كي د بل څه ضرورت نسته بلكي صرف په سَقي يعني په اوبه كولو سره ميوه ځني حاصليږي، نو ځكه مساقات ورته ويل كيږي (او په مزارعت كي غوبيې او داسي نورو ته هم ضرورت وي د ځمكي اړولو او داسي نورو لپاره).

### د مزارعت تعريف او د امامانو اقوال

قَالَ أَبُوْحَنِيْفَةَ: اَلْمُزَارَعَةُ بِالثُّلُثِ وَالرُّبُعِ بَاطِلَةٌ امام صاحب رَحِمَهُ الله فرمايي: پر دريمه او څلورمه حصه كښتكري كول باطل دي ٭اعْلَمْ أَنَّ الْمُزَارَعَةَ لُغَةً مُفَاعَلَةٌ مِنَ الزَّرْعِ پوه سه! چي مزارعت لغتاً له زرع څخه د مفاعلت (د باب) مصدر دى وَفِي الشَّرِيعَةِ: هِيَ عَقْدٌ عَلَى الزَّرْعِ بِبَعْضِ الْخَارِجِ او په [اصطلاح د] شريعت كي عقد كول دي پر كښتكرۍ په بدله كي [د كښت] د بعضي پيداوار وَهِيَ فَاسِدَةٌ عِنْدَ أَبِيْ حَنِيْفَةَ او دا [مزارعت] د امام صاحب رَحِمَهُ الله په نيز فاسد دى

وَقَالَا ●: هِيَ جَائِزَةٌ او صاحبين رَحِمَهُمَا الله فرمايي: چې جائز دی لِمَا رُوِيَ أَنَّ النَّبِيَّ ﷺ عَامَلَ أَهْلَ خَيْبَرَ عَلَى نِصْفِ مَا يَخْرُجُ مِنْ ثَمَرٍ أَوْ زَرْعٍ ځکه روايت سوی دی چې نبي ﷺ داهلِ خيبر سره د راوتونکو [پيدا کېدونکو] مېوو يا کښتونو پر نيم مقدار معامله وکړه وَلِأَنَّهُ عَقْدُ شِرْكَةٍ بَيْنَ الْمَالِ وَالْعَمَلِ او ځکه چې مزارعت د مال او کار په مينځ کې د شرکت عقد دی فَيَجُوزُ اعْتِبَارًا بِالْمُضَارَبَةِ نو پر مضاربت په قياس کولو سره به دا [هم] جائز وي وَالْجَامِعُ دَفْعُ الْحَاجَةِ او جامع [او اصل بنياد] د ضرورت دفع کول دي فَإِنَّ ذَا الْمَالِ قَدْ لَا يَهْتَدِيْ إِلَى الْعَمَلِ ځکه کله د مال خاوند [د کښتکرۍ] کار ته لار نه موندي [يعني ځينې وخت مال لرونکی کس د کښتکرۍ په کار نه پوهېږي] وَالْقَوِيُّ عَلَيْهِ لَا يَجِدُ الْمَالَ او پر کار قادر کس بيا مال نه موندي فَمَسَّتِ الْحَاجَةُ إِلَى انْعِقَادِ هٰذَا الْعَقْدِ بَيْنَهُمَا نو ځکه د داسې دوو کسانو تر مينځ د دغه عقد منعقد کېدلو ته ضرورت پېښ سو بِخِلَافِ دَفْعِ الْغَنَمِ وَالدَّجَاجِ وَدُوْدِ الْقَزِّ مُعَامَلَةً بِنِصْفِ الزَّوَائِدِ په خلاف د بزو [وزو] چرګو او د وربښمي چينجيو د ورکولو د زوائد [يعني له وزو، چرګو او چنجيو څخه د پيدا کېدونکو شيانو] په نصف سره د معامله کولو په توګه [يعني د وزو شيدې او بچې، د چرګو هګۍ او وربښم به زما ستا ترمينځ نيم په نيمه وي، نو داسې معامله جائز نه ده] لِأَنَّهُ لَا أَثَرَ هُنَاكَ لِلْعَمَلِ فِيْ تَحْصِيْلِهَا ځکه چې دلته د زوائدو په حاصلولو کې د يوه د عمل هيڅ اثر نسته فَلَمْ يَتَحَقَّقْ شِرْكَةٌ نو شرکت ثابت نه سو.

**اللغات:** ﴿مزارعة﴾ د مفاعلې د باب مصدر دی: کښتکري، د يو چا سره د کښت کرنې معامله کول. يا په بله وينا: بزګر (کښتګر) ته ځمکه ورکول چې هغه يې وکري او څه چې وکري (يعني پيداوار او غله) هغه به د دواړو تر مينځ مشترک وي. ﴿عَامَلَ﴾ د مفاعلې د باب ماضي ده: معامله کول. ﴿غنم﴾ د دې لفظ وضاحت څه مخکې تېر سو. ﴿دجاج﴾ واحد يې دجاجةٌ راځي: چرګې. ﴿دود﴾ واحد يې دودةٌ راځي: چينجي. ﴿القز﴾ وربښم، رېښم، ابرېشم.

● القول الراجح: قول الصاحبين رَحِمَهُمَا الله، قال العلامة جلال الدين الخوارزمي رَحِمَهُ الله: إلا أن الفتوى على قولهما لحاجة الناس إليها، ولظهور تعامل الناس بها، والقياس يترك بالتعامل (كفايه ج:٨، ص:٣٨٦)، وفي الخانية: وقال صاحباه: (المزارعة) تجوز إذا استجمعت شرائطها، والفتوى على قولهما، لتعامل الناس في جميع البلدان (ج:٣، ص:٢٢٢)، وفي الدر المختار: وعندهما تصح وبه يفتى للحاجة وقياسا على المضاربة (ج:٥، ص:١٩٣). [القول الراجح ج:٢، ص:٢٨٥]

**تشريح**. مزارعت د مفاعلې د باب مصدر دی او له زرع څخه مشتق دی چې د هغه معنیٰ ده: إِلْقَاءُ الحَبِّ فِي الأَرْضِ (په ځمکه کې دانه [تخم] اچول) چې په عامه اصطلاح کښت کرنه ورته وايي. او د شريعت په اصطلاح کې د مزارعت معنیٰ ده: د پيداوار (حاصلاتو) د يوې مخصوصې حصې په عوض کې کښتګري کول. د امام صاحب رَحِمَهُ الله په نيز مزارعت باطل دی. برابره ده هغه پر ربع وي او که پر ثُلث وي (يعني چې ځمکه د پيداوار د څلورمې يا درېيمې حصې په کښتګري ورکول سي. په بله وينا: چې ځمکه څومره غله او پيداوار وکړي له هغه څخه يوه حصه زماده او دوې حصې ستا دي [چې دې ته درېيمه حصه وايي] يا له هغه څخه درې حصې ستا دي او يوه زماده [چې دې ته څلورمه وايي]. دا د امام صاحب رَحِمَهُ الله په نيز باطل دي)، صاحبين رَحِمَهُمَا الله فرمايي چې مزارعت صحيح او جائز دی.

د صاحبينو دليل: د صاحبينو رَحِمَهُمَا الله نقلي دليل دا دی چې نبي کريم ﷺ د اهلِ خيبر سره د ميوې او کښت د پيداوار پر نصف معامله کړې وه. که دا ناجائز وای. نو نبي ﷺ به دا ډول معامله نه کولای.

عقلي دليل يې دا دی چې څرنګه مضاربت د مال او عمل په مينځ کې د شرکت عقد دی (يعني د يوه کس له طرفه مال دی او د بل له طرفه کار دی چې دا د مال او عمل شرکت دی)، همدغه ډول مزارعت هم يو داسي عقد دی. او مضاربت جائز دی. نو د مزارعت په جواز کې هم څه شبهه پکار نه ده. او پر مضاربت د مزارعت قياسولو دليل دا دی چې څرنګه مضاربت ته د خلکو ضرورت پيښيږي، همداسي مزارعت ته هم د خلکو ضرورت او مجبوري پيښيږي؛ ځکه ځيني وخت داسي وي چې يو سړی مال خو لري. لېکن د کښتګرۍ په کار نه پوهيږي، يا يو څوک د کښتګرۍ په کار خو پوهيږي او پکښې ماهره وي، لېکن مال نه لري. نو ځکه دا ډول عقد ته د خلکو ضرورت پيدا سو. او د همدې ضرورت په خاطر هغه جائز ګرځول سوی دی.

بخلاف دفع الغنم إلخ: دا د يو اشکال جواب دی. اشکال دا دی چې څرنګه تاسو د عقد شرکت پر بناء د مزارعت د جائز کېدلو قائلين ياست. همداسي که ميږې (يا بزې) د يوه سړي وي او بل څوک هغوی څروي (پووي) او د هغوی په شيدو او بچيو کې دواړه مشترک وي (مثلاً د مال مالک يو شپانه ته ووايي چې ته زما دغه ميږې او پسونه څروه چې د دې په عوض کې به د هغوی شيدې يا بچي زما او ستا تر مينځ نيم په نيمه وي)، يا چرګاني د يوه وي او بل يو د هغه ساتنه او پالنه کوي، او د هغوی په هګيو او چيچيو کې دواړه مشترک وي. يا همداسي د يوه کس د ورېښم چينجيان وي، او بل يو له هغوی څخه ورېښم تياروي او په هغه کې دواړه مشترک وي. نو دغه صورتونه هم جائز کېدل پکار دي چې په دوی کې د يوه کس له

طرفه مال دی او د بل کس له طرفه کار دی (لهذا دې ته باید جائز وویل سي)، حال دا چې تاسو دغه صورتونه ناجائز ګرځوی.

د دې په جواب کي صاحب د هدايې فرمايي چي موږ هغه عقد شرکت جائز ګرځولی دی، چي هلته په حاصل سوي شي او زوائدو کي د عامل کار او عمل لره اثر وي، او په مذکوره صورتونو کي د عامل د عمل هيڅ اثر نسته، بلکي بچي ايستل، هګۍ اچول دا خپله د ميږي (او بزې) او چرګي فعل او د هغوی د عمل اثر دی، لهذا په دې شيانو کي ګرسره شرکت متحقق نه دی، او کله چي شرکت نسته، نو په هغوی کي به شرکت هم جائز نه ګرځول کيږي.

## د امام صاحب رَحِمَهُ الله دليل

وَلَهُ مَا رُوِيَ أَنَّهُ الطَّيْلاً نَهٰى عَنِ الْمُخَابَرَةِ او د امام صاحب رَحِمَهُ الله دليل دا روايت دی چي نبي ﷺ له مخابرة څخه منع کړې ده وَهِيَ الْمُزَارَعَةُ او مخابره همدا مزارعت دی وَلِأَنَّهُ اِسْتِئْجَارٌ بِبَعْضِ مَا يَخْرُجُ مِنْ عَمَلِهٖ او ځکه چي دا مزارعت په اُجرت نيول دي د هغه څه په بعضي حصې سره کوم چي د ده [اجير (بزګر)] د کار په وجه راوتلي [پيدا سوي] دي [يعني د عامل او بزګر د کار په وجه چي کوم کښت راوځي، ده ته په اُجرت کي د هغه بعضي حصه ورکوي] فَيَكُوْنُ فِي مَعْنٰى قَفِيْزِ الطَّحَّانِ نو دا د قفيز طحان په معنیٰ سره سو وَلِأَنَّ الْأَجْرَ مَجْهُوْلٌ أَوْ مَعْدُوْمٌ او ځکه چي اُجرت مجهول دی يا [تر اوسه] معدوم دی وَكُلُّ ذٰلِكَ مُفْسِدٌ او دا هر يو فاسدونکی دی وَمُعَامَلَةُ النَّبِيِّ ﷺ أَهْلَ خَيْبَرَ كَانَ خَرَاجَ مُقَاسَمَةٍ بِطَرِيْقِ الْمَنِّ وَالصُّلْحِ او د اهلِ خيبر سره د نبي ﷺ معامله د احسان او صلح په طريقه سره د خراج مقاسمت په توګه وه وَهُوَ جَائِزٌ او دا جائز دي.

**اللغات:** ﴿**مخابرة**﴾ د مفاعلې د باب مصدر دی: عقد مزارعت، ﴿**استئجار**﴾ د استفعال مصدر دی: په اُجرت او مزدورۍ نيول، په کرايه اخيستل، ﴿**قفيز الطحان**﴾ د قفيز تعريف مخکي تېر سوی دی چي دا يو پيمانه ده او د طحَّان معنیٰ ده: ميده کونکی، د غنمو اوړه کونکی (ژرندي والا)، قفيز الطحان يو فقهي اصطلاح ده، صورت يې دا دی چي يو شوک طحان يعني ژرندي والا ته د اوړه کولو لپاره غنم ورکړي او فيصله پر دې وکړي چي کله دا غنم اوړه سي نو تا ته په اُجرت کي له همدې اوړو څخه يو قفيز يا مثلاً شل سېره يا پنځويشت سېره اُوړه درکوم، دا ناجائز دي، ﴿**خراج مقاسمة**﴾ ځمکه چي شومره پيداوار (مثلاً غنم) وکړي، د هغه شلورمه حصه يا درېيمه حصه د خراج په توګه اخيستل، دې ته خراجِ مقاسمت وايي، ﴿**مَنّ**﴾ احسان.

**تشريح**: د امام صاحب رَحِمَهُ الله نقلي دليل دا دی چې نبي ﷺ له مخابرة څخه منع کړې ده او مخابره همدې مزارعت ته وايي، معلومه سوه چې نبي ﷺ له مزارعت څخه منع کړې ده.

د امام صاحب رَحِمَهُ الله عقلي دليل دا دی چې په مزارعت کې عامل (بزگر) ته په أجرت او مزدورۍ کې هغه څه ورکول کيږي کوم چې د خودې عامل په عمل سره حاصليږي (مثلاً که عامل د غنمو کښتکري وکړي، نو ښکاره ده چې هغه ته له همدې غنمو څخه أجرت ورکول کيږي)، او همدا صورت په قفيز طحان کې هم وي چې کله د ژرندي والا غنم اوړه کړي، نو د غنمو مالک هغه ته په أجرت کې له همدې اُوړو څخه اُوړه ورکوي، او مخکې ذکر سوه چې له قفيز طحان څخه په حديث کې منع سوې ده، نو کوم شی چې د قفيز طحان په درجه کې وي (يعني مزارعت)، پر هغه به هم د ممانعت حکم لگول کيږي.

دويم عقلي دليل دا دی چې دا معلومه نه ده چې پيداوار به وسي، که نه؟، که چيري پيداوار کيږي (يعني دا معلومه وي چې څمکه مثلاً غنم کوي)، نو په دې صورت کې أجرت مجهوله دی؛ ځکه دا معلومه نه ده چې څومره پيداوار (غنم) به وسي، بيا له هغه څخه ربع يا ثلث ويستل سي، او که چيري پيداوار نه کيږي، نو أجرت گرسره معدوم پاتيږي (يعني عامل ته هيڅ أجرت نه حاصليږي). او د أجرت مجهول کېدل او معدوم کېدل دا دواړه د اجاره لپاره مفسد دي. نو ځکه په دې وجه هم مزارعت باطل دی.

ومعاملة النبي ﷺ إلخ: په دې سره د صاحبينو د قياس جواب ورکوي چې دوی پر دې قياس مزارعت جائز گرځولی دی چې نبي کريم ﷺ د اهلِ خيبر سره دا معامله کړې وه، د جواب حاصل دا دی چې ستاسو دا قياس صحيح نه دی؛ ځکه د اهلِ خيبر سره د نبي ﷺ دا معامله د خراجِ مقاسمت په توگه وه، نه د مزارعت په توگه (په بله وينا دا چې دا به نبي ﷺ له اهلِ خبير څخه خراج اخيستو. چې د هغه صورت دا وو چې ستاسو څمکه څومره پيداوار وکړي له هغه څخه به څلورمه يا دريمه په خراج کې راکوئ) او نبي کريم ﷺ د صلح او احسان په توگه د دوی سره دا معامله کړې وه، لهذا پر هغه قياس کول او پر دې بناء مزارعت ته جائز ويل صحيح نه دي.

## د امام صاحب رَحِمَهُ الله د قول تفريعات

وَإِذَا فَسَدَتْ عِنْدَهُ او کله چې د امام صاحب رَحِمَهُ الله په نيز مزارعت فاسد سو فَإِنْ سَقَى الْأَرْضَ وَكَرَبَهَا وَلَمْ يَخْرُجْ شَيْءٌ مِنْهُ نو که عامل څمکه اوبه کړي او هغه سره واړوي او هيڅ نه را ووځي [يعني هيڅ پيداوار او غله نه وسي] فَلَهُ أَجْرُ مِثْلِهِ نو د عامل لپاره أجرت مثلي دی [يعني په دې صورت کې به بزگر ته أجرت مثلي ورکول کيږي] لِأَنَّهُ فِي مَعْنَى إِجَارَةٍ فَاسِدَةٍ ځکه چې دا د اجارهٔ فاسده په معنیٰ سره

دي وَهٰذَا إِذَا كَانَ الْبَذْرُ مِنْ قِبَلِ صَاحِبِ الْأَرْضِ او دا هغه وخت کله چې تخم د ځمکې والا [مالک أرض] له طرفه وي وَإِذَا كَانَ الْبَذْرُ مِنْ قِبَلِهِ او که تخم د عامل له طرفه وي فَعَلَيْهِ أَجْرُ مِثْلِ الْأَرْضِ نو [په دې صورت] پر هغه د ځمکې اُجرت مثلي لازم دی وَالْخَارِجُ فِي الْوَجْهَيْنِ لِصَاحِبِ الْبَذْرِ او پیداوار په دواړو صورتونو کې د تخم والا دی لِأَنَّهُ نَمَاءُ مِلْكِهِ ځکه چې دا د هغه د ملکیت وده [او پیداوار] دی وَلِلْآخَرِ الْأَجْرُ او د بل لپاره اُجرت دی كَمَا فَصَّلْنَا لکه څرنګه چې موږ په تفصیل سره بیان کړه إِلَّا أَنَّ الْفَتْوٰى عَلٰى قَوْلِهِمَا خو فتویٰ د صاحبینو رَحِمَهُمَا الله پر قول ده لِحَاجَةِ النَّاسِ إِلَيْهَا ځکه چې مزارعت ته د خلکو ضرورت دی وَلِظُهُورِ تَعَامُلِ الْأُمَّةِ بِهَا او [ځکه چې] پرې د اُمت تعامل ښکاره دی وَالْقِيَاسُ يُتْرَكُ بِالتَّعَامُلِ او د تعامل په وجه قیاس پرېښوول کیږي كَمَا فِي الِاسْتِصْنَاعِ لکه څرنګه چې په استصناع کې کیږي.

**اللغات**: ﴿سقي﴾ د ضرب د باب ماضي ده: اوبه کول، اوبه ورکول. ﴿كَرَبَ﴾ د نصر د باب ماضي ده، كَرَبَ يَكْرُبُ كَرْبًا وَكِرَابًا: ځمکه د کرنې لپاره اړول او سمول چې د کښت کرنې قابله سي، یوې (یېوې) کول. ﴿أجر مثل﴾ اُجرت مثلي (مثلي اُجرت)، د یو کار، یوشي او مزدور چې کوم عمومي اُجرت وي، یا په بازار کې چې د یو کار یا یو شي کوم عام رېټ چلیږي، هغه ته أجر مثل وایي، ﴿نماء﴾ اضافه، وده. ﴿استصناع﴾ د استفعال د باب مصدر دی. له صُنع څخه مشتق دی: په اړه یو شي جوړول (په فرمایش جوړول) مثلاً یو کس کمپنۍ والا ته د خپلې پښې ناپ ورکړي چې دومره څپلۍ زما لپاره جوړې کړه، یا مثلاً یو نجار ته ناپ ورکړي چې زما لپاره دومره پلنګ یا کټ جوړ کړه نو دې ته استصناع وایي، څرنګه چې اوس هغه څپلۍ یا پلنګ معدوم دي، لهذا د هغه بیع جائز کېدل پکار نه دي، لېکن څرنګه چې پر دې د خلکو تعامل دی. نو ځکه هغه اوس جائز دي.

**تشریح**: په دې عبارت کې صاحب د هدایې رَحِمَهُ الله د امام ابو حنیفه رَحِمَهُ الله پر مسلک مسئله متفرع کړې ده، حاصل یې دا دی چې کله د امام صاحب رَحِمَهُ الله په نیز مزارعت فاسد دی، نو که دوه کسان مزارعت سره وکړي چې یو صاحب الأرض وي او بل عامل وي (یعني ځمکه د یوه له طرفه وي او د کښتګرۍ عمل د بل له طرفه وي). او عامل خپل عمل او محنت وکړي، لېکن هیڅ پیداوار نه وسي، نو د دې دوه صورتونه دي: ① ... که چېرې عامل خپل محنت کړی وي او تخم د ځمکې د مالک (صاحب الارض) له طرفه وي، نو عامل ته به د خپل محنت په عوض کې اُجرت مثلي ورکول کیږي.

② ... كه عامل محنت کړی وي او تخم هم د هغه له طرفه وي (خپل تخم يې کرلی وي)، نو په دې صورت کې د عامل پر غاړه د صاحبُ الأرض د ځمکې مثلي اُجرت واجبيږي، يعني پيداوار په هر حال کې تخم والا ته حاصليږي، برابره ده تخم د ځمکې د مالک وي يا د عامل.

لېکن د مزارعت په باب کې د صاحبينو رَحِمَهُمَا الله قول مفتىٰ به دی؛ ځکه پر همهغه د خلکو عمل دی او د خلکو مزارعت ته ضرورت هم پيښيږي، او اُصول دا دی چې د تعامل په وجه قياس او داسې نور پرېښوول کيږي، مثلاً استصناع يعني په اډر او فرمايش يو شی جوړول، ښکاره خبره ده چې په دې کې د معدوم شي بيع ده (ځکه شی تر اوسه جوړ سوی نه دی بلکې تر اډر وروسته يې جوړوي) کوم چې د قياس له رويه غير صحيح دي، خو د خلکو د تعامل په وجه دا ضورت جائز ګرځول سوی دی او په خلکو کې مشهور، معروف او متداول دی، نو همدغه ډول د تعامل او ضرورت پر بناء مزارعت هم جائز ګرځول سوی دی او نن سبا همدا مفتىٰ به قول دی.

## د صاحبينو د قول تفريعات

ثُمَّ الْمُزَارَعَةُ لِصِحَّتِهَا عَلَى قَوْلِ مَنْ يُجِيزُهَا شُرُوطٌ بيا د مزارعت د صحيح کېدو لپاره د هغه چا پر قول چې مزارعت جائز ګرځوي [يعني د صاحبينو په نېز] څو شرطونه دي أَحَدُهَا كَوْنُ الْأَرْضِ صَالِحَةً لِلزِّرَاعَةِ [۱] يو شرط دا دی چې ځمکه به د کښتکرۍ قابله وي [يعني د څه را شنه کولو صلاحيت به لري] لِأَنَّ الْمَقْصُودَ لَا يَحْصُلُ بِدُونِهِ ځکه چې له دې څخه بغير مقصود نه حاصليږي وَالثَّانِي أَنْ يَكُونَ رَبُّ الْأَرْضِ وَالْمُزَارِعُ مِنْ أَهْلِ الْعَقْدِ [۲] او دويم شرط دا دی چې ځمکې والا او کښتګر به له اهلِ عقد څخه وي [د عقد کولو اهل به وي] وَهُوَ لَا يَخْتَصُّ بِهِ او دا شرط [اهلِ عقد کېدل] يوازې د دغه عقد سره خاص نه دي لِأَنَّهُ عَقْدًا مَا لَا يَصِحُّ إِلَّا مِنَ الْأَهْلِ ځکه چې هيڅ عقد هم نه صحيح کيږي مګر د اهل له طرفه وَالثَّالِثُ بَيَانُ الْمُدَّةِ [۳] او دريم شرط د مودت بيانول دي لِأَنَّهُ عَقْدٌ عَلَى مَنَافِعِ الْأَرْضِ أَوْ مَنَافِعِ الْعَامِلِ ځکه چې دا [مزارعت] د ځمکې يا عامل پر منافعو عقد دی وَالْمُدَّةُ هِيَ الْمِعْيَارُ لَهَا لِتُعْلَمَ بِهَا او همدا مودت د منافعو لپاره ميعار دی چې د هغه په ذريعه منافع معلوميږي وَالرَّابِعُ بَيَانُ مَنْ عَلَيْهِ الْبَذْرُ [۴] او څلورم شرط د دې بيانول دي چې تخم پر چا دی قَطْعًا لِلْمُنَازَعَةِ وَإِعْلَامًا لِلْمَعْقُودِ عَلَيْهِ د نزاع ختمولو او د معقود عليه ښوولو لپاره وَهُوَ مَنَافِعُ الْأَرْضِ أَوْ مَنَافِعُ الْعَامِلِ او هغه [معقود عليه] د ځمکې يا عامل [کښتګر] منافع دي.

**اللغات**: ﴿يجيز﴾ د افعال د باب مضارع ده: اجازت ورکول. ﴿صالحة﴾ د کرُم د باب فاعل دی: صلاحت او وړتیا لرونکی. ﴿أهل عقد﴾ یعني عاقل، بالغ او آزاد به وي. ﴿إعلام﴾ د افعال د باب مصدر دی: اګاه کول او خبرول، اطلاع ورکول. ﴿معقود علیه﴾ پر کوم شي چي عقد او معامله سوې وي.

**تشریح**: صاحبین رَحِمَهُمَا الله مزارعت جائز خو ګرځولی دی لېکن مطلقاً نه، بلکي په اته (۸) شرطو سره کوم چي په ترتیب سره صاحب د هدایې بیان کړي دي:

① ... اول شرط دا دی چي مزارعت په داسي ځمکه کي جائز دی کوم چي د کښت قابله وي، ځکه که په ځمکه کي یو شی نه سي کرل کېدای او نه راشین کیږي، نو د مزارعت مقصد یعني انتفاع فوتیږي.

② ... دویم شرط دا دی چي مزارع (عامل) او د ځمکي مالک دواړه به عاقل، بالغ او پر تصرّفاتو قادر وي؛ ځکه د نا اهل هیڅ کار هم معتبر نه وي، لکه څرنګه چي په نورو معاملاتو کي هم د عاقدَینو اهل کېدل مطلوب دي.

③ ... دریېم شرط دا دی چي د مزارعت مدت به هم ټاکل کیږي (چي مثلاً دا ځمکه زه دیوه کال لپاره په مزارعت او بزګرۍ درکوم)، ځکه چي مزارعت د ځمکي پر منافعو عقد کول دي یا د عامل پر منافعو عقد کول دي (کله چي تخم د عامل له طرفه وي)، او د دواړو منافعو د متعیّنولو معیار همدا مودت دی، یعني په همدې مودت سره معلومیږي چي منافع څومره دي، نو ځکه د مودت تعیین او ټاکل ضروري دي.

④ ... څلورم شرط دا دی چي دا به هم معلومول کیږي چي تخم به پر کوم یوه وي، د دې لپاره چي معقود علیه معلوم سي چي هغه د ځمکي د مالک نفع ده یا د عامل؛ ځکه که تخم د ځمکي د مالک وي نو پیداوار د هغه کیږي او هغه ګواکي عامل په اُجرت نیولی دی، او که تخم د عامل وي، نو پیداوار د عامل کیږي او عامل ګواکي ځمکه په اُجرت نیولې ده، نو تخم به پر چا وي د دې په متعیّنولو سره دا معلومیږي چي پیداوار به د چا وي او عامل و مزدور به څوک وي، نو ځکه د هغه متعیّنول ضروري دی، د دې لپاره چي وروسته مزارعت د جنګ او جنجال سبب جوړ نه سي.

## د پورتني مسئلي پاته حصه

وَالْخَامِسُ بَيَانُ نَصِيبِ مَنْ لَا بَذْرَ مِنْ قِبَلِهِ [۵] او پنځم شرط د هغه یوه د حصې بیانول دي چي د هغه له طرفه تخم نه وي لِأَنَّهُ يَسْتَحِقُّهُ عِوَضًا بِالشَّرْطِ ځکه چي هغه د حصې مستحق کیږي د عوض په توګه د شرط پر بناء [یا په لنډه وینا دا چي هغه د شرط په وجه د عوض مستحق کیږي] فَلَا بُدَّ أَنْ يَكُونَ مَعْلُومًا نو ځکه د هغه معلومېدل ضروري دي وَمَا لَا يُعْلَمُ او کوم شی چي معلوم نه وي لَا

يَسْتَحِقُّ شَرْطًا بِالْعَقْدِ هغه په عقد سره په شرطولو سره نه مستحق کيږي [يا په بله وينا دا چي هغه شی په عقد کي په شرط جوړولو سره نه مستحق کيږي] وَالسَّادِسُ أَنْ يُخَلِّيَ رَبُّ الْأَرْضِ بَيْنَهَا وَبَيْنَ الْعَامِلِ [۶] او شپږم شرط دا دی چي د ځمکي مالک به ځمکه او عامل سره پريږدي [يعني کاملاً به ځمکه عامل ته سپاري] حَتَّى لَوْشَرَطَ عَمَلَ رَبِّ الْأَرْضِ همدا وجه ده که د ځمکي د مالک د کار کولو شرط ولګوي يَفْسُدُ الْعَقْدُ نو عقد فاسديږي لِفَوَاتِ التَّخْلِيَةِ ځکه چي تخليه [او ورسپارل] فوت سوه وَالسَّابِعُ الشَّرِكَةُ فِي الْخَارِجِ بَعْدَ حُصُولِهِ [۷] اووم شرط د پيداوار تر حاصليدو وروسته په هغه کي [د دواړو] شريک کيدل دي [يعني چي څومره پيداوار وسي په هغه کي به د دواړو شرکت وي] لِأَنَّهُ يَنْعَقِدُ شَرِكَةً فِي الِانْتِهَاءِ ځکه چي دا عقد [مزارعت] په انتهاء کي شرکت منعقد کيږي [يا په بله وينا دا چي دا عقد په آخر کي شرکت وي] فَمَا يَقْطَعُ هٰذِهِ الشَّرِكَةَ نو کوم شرط چي دغه شرکت ختموي كَانَ مُفْسِدًا لِلْعَقْدِ هغه به د عقد فاسدونکی وي وَالثَّامِنُ بَيَانُ جِنْسِ الْبَذْرِ [۸] او اتم شرط د تخم جنس بيانول دي [چي کوم شی کري] لِيَصِيرَ الْأَجْرُ مَعْلُومًا د دې لپاره چي [د عامل] اُجرت معلوم سي.

**اللغات**: ﴿يخلّي﴾ د تفعيل د باب مضارع ده، خَلّٰى يُخَلِّيْ تَخْلِيَةً: د دې باب څو معناوي دي چي د صلې په بدلون سره يې معنیٰ هم بدليږي: آزاد پريښوول، دوه شيان يا دوه کسان په خپل مينځ کي سره پريښوول، کله چي د مبيع او داسي نورو سره ذکر سي، نو د "ورسپارلو" معنیٰ ورکوي، دلته يې مطلب دا دی چي له ځمکي څخه خپل قبضه ختمول او د بزګر (عامل) په قبضه کي ورکول چي ته پوه سوې کار دي پوه سو!.

**تشريح**: د صاحبينو رَحِمَهُمَا الله په نيز د مزارعت د جواز ⑤ پنځم شرط دا دی چي د کوم يوه له طرفه تخم نه وي، د هغه حصه (اجرت) به متعيّنول کيږي، مثلاً څلورمه حصه (رُبع) يا دريمه، ځکه چي دا کس د شرط په وجه د خپل حصې (اجرت) مستحق کيږي، نو ځکه د حصې متعيّنول ضروري دي، کنې د شرط په وجه به د هغه استحقاق څنګه ثابت سي (وما لا يعلم لا يستحق... يعني که له مخکي څخه حصه او اُجرت متعين نه وي، نو بيا هغه ته د عقد په وجه هيڅ نه حاصليږي، ځکه د هغه اُجرت متعيّن نه دی).

⑥... د شپږم شرط حاصل دا دی چي د ځمکي مالک دي ځمکه او عامل سره پريږدي يعني خپل قبضه دي ختم کړي او ځمکه دي عامل (بزګر) ته وسپاري، لهذا که د ځمکي د مالک د عمل شرط

ولګول سي (چي هغه به هم په دې ځمکه کي د کښتګرۍ کار کوي)، نو مزارعت فاسديږي؛ ځکه تخليه (ځمکه او عامل سره پرېښوول) شرط او ضروري دي.

⑦... داووم شرط تفصيل دا دی چي کوم پيداوار (مثلاً غنم) وسي، په هغه کي به د ځمکي مالک او عامل دواړه شريکان وي، لهذا که له مخکي څخه يو دا شرط ولګوي چي مثلاً ما ته به لس منه (غنم) راکول کيږي، نو په دې صورت کي مزارعت فاسيږي؛ ځکه چي دا شرط د عقد د متقضا خلاف دی.

⑧... اتم شرط دا دی چي دا به هم بيانوي چي د کوم شي کښت کوي (کوم شی کري) مثلاً غنم، يا اوربشي يا جوار او داسي نور؛ ځکه چي اُجرت له همدې پيداوار څخه ورکول کيږي، نو چي کرل کېدونکی شی هم متعيّن کړی سي نو عامل ته به له مخکي څخه معلومه وي چي ما ته کوم شی په اُجرت کي راکول کيږي، غنم يا اوربشي يا وريجي؛ ځکه له مخکي څخه د اُجرت د جنس معلومېدل ضروري دي.

## د صاحبينو په نيز د مزارعت صورتونه

قَالَ: وَهِيَ عِنْدَهُمَا عَلَى أَرْبَعَةِ أَوْجُهٍ [امام قدوري رَحِمَهُ الله] فرمايي: او مزارعت د صاحبينو رَحِمَهُمَا الله په نيز پر څلورو صورتونو دی [يعني د دوی په نيز د مزارعت څلور طريقې او صورتونه دي] إِنْ كَانَتْ الْأَرْضُ وَالْبَذْرُ لِوَاحِدٍ وَالْبَقَرُ وَالْعَمَلُ لِوَاحِدٍ [۱] که چيري ځمکه او تخم د يوه وي او غويي او کار د بل وي جَازَتِ الْمُزَارَعَةُ نو مزارعت جائز دی لِأَنَّ الْبَقَرَ آلَةُ الْعَمَلِ ځکه چي غويي د عمل [کار] آله ده فَصَارَ كَمَا إِذَا اسْتَأْجَرَ خَيَّاطًا لِيَخِيطَ بِإِبْرَةِ الْخَيَّاطِ نو داسي سو لکه څوک چي [پر دې شرط] خياط په اُجرت ونيسي چي هغه به په خپل ستن سره ګنډل کوي وَإِنْ كَانَتِ الْأَرْضُ لِوَاحِدٍ وَالْعَمَلُ وَالْبَقَرُ وَالْبَذْرُ لِوَاحِدٍ او که چيري ځمکه د يوه وي او کار، غويي او تخم د بل يوه وي جَازَتْ نو هم مزارعت جائز دی لِأَنَّهُ اسْتِئْجَارُ الْأَرْضِ بِبَعْضٍ مَعْلُومٍ مِنَ الْخَارِجِ ځکه چي دا د پيداوار د بعضي معلوم مقدار په عوض کي په اُجرت اخيستل دي فَيَجُوزُ نو دا به جائز وي كَمَا إِذَا اسْتَأْجَرَهَا بِدَرَاهِمَ مَعْلُومَةٍ لکه څرنګه چي څوک د معلومو دراهمو په عوض کي ځمکه په اُجرت واخلي.

**اللغات**: ﴿أوجه﴾ جمع د "وَجْهٌ" ده: شکل، صورت، طريقه. ﴿بقر﴾ غويی، کوم چي د ځمکي اړولو او يوې کولو آله ده. ﴿خيّاط﴾ کپړه ګنډونکی، جامه جوړونکی، درزي. ﴿إبرة﴾ ستن (ستنه).

**تشريح**: دا تاسو ته معلومه سوه چي د صاحبينو رَحِمَهُمَا الله په نيز په اتو شرطونو سره مزارعت جائز دی، اوس له دې ځايه د مزارعت څو صورتونه بيانوي:

(۱)... که چيري ځمکه او تخم د يوه له طرفه وي او غوايي او عمل (کار) د بل له طرفه وي، نو په دې صورت کي مزارعت جائز دی؛ ځکه چي غوايي د عمل آله ده، د دې مثال داسي دی لکه څوک چي خياط ته پر دې شرط خپل کپړه په اُجرت ورکړي چي خياط به خاص په خپل ستن سره زما کپړه جوړوي (يعني صراحتاً دا شرط ولګوي)، نو دا صورت جائز دی، لهذا همدغه ډول دلته هم د مزارعت مذکوره صورت جائز دی، ځکه دلته د ځمکي مالک خپل ځمکه عامل ته په اُجرت ورکوي.

(۲)... د مزارعت دويم صورت دا دی چي فقط ځمکه د يوه له طرفه وي او تخم، غوايي او کار درې سره د بل يوه له طرفه وي، نو دا صورت هم جائز دی؛ ځکه چي په دې صورت کي تخم والا (عامل) د پيداوار د متعيّن مقدار په عوض کي ځمکه په اُجرت اخيستې ده، او دا داسي ده لکه څوک چي د متعينو دراهمو په عوض کي ځمکه په اُجرت واخلي چي هغه جائز دي، نو د پيداوار د معلوم مقدار په عوض کي به هم د ځمکي په اُجرت اخيستل جائز وي.

## د مزارعت يو بل صورت

وَإِنْ كَانَتِ الْأَرْضُ وَالْبَذْرُ وَالْبَقَرُ لِوَاحِدٍ وَالْعَمَلُ مِنْ آخَرَ [۳] او که چيري ځمکه، تخم او غوايي د يوه وي او عمل د بل له طرفه وي جَازَتْ نو هم مزارعت جائز دی لِأَنَّهُ اسْتَأْجَرَهُ لِلْعَمَلِ بِآلَةِ الْمُسْتَأْجِرِ ځکه چي مستأجِر [يعني د ځمکي مالک] په خپل آله سره عامل د عمل لپاره په اُجرت نيولی دی فَصَارَ كَمَا إِذَا اسْتَأْجَرَ خَيَّاطًا لِيَخِيطَ ثَوْبَهُ بِإِبْرَتِهِ نو داسي سو لکه څوک چي خياط [پر دې شرط] په اُجرت ونيسي چي هغه به زما کپړه زما په ستن ګنډي أَوْ طَيَّانًا لِيُطَيِّنَ بِمَرِّهِ يا خټګر [مستري] په اُجرت ونيسي چي هغه به زما په بېلچه سره خټګري کوي.

**اللغات**: ﴿طيان﴾ خټګر، معمار او مستري، ګلکار. ﴿يطين﴾ خټګري کول، ګل کول. ﴿مَرّ﴾ صاحب د معجم الوسيط د دې لفظ معنیٰ په مِسْحَاة سره کړې ده چي د هغه معنیٰ ده: آلةُ القَشْر والجَرْف يعني د کيندلو، پوستولو او توږلو آله، چي پر ګلنګ، تېشه، بېلچه ټولو د دې اطلاق کيږي.

**تشريح**: (۳)... د مزارعت د درېيم صورت حاصل دا دی چي که ځمکه، تخم او غوايي درې سره د يوه له طرفه وي او فقط کار د بل يوه له طرفه وي، نو په دې صورت کي هم مزارعت جائز دی؛ ځکه دا داسي ده لکه د ځمکي مالک چي په خپل آله يعني بقر سره عامل په اُجرت نيولی دی (چي عامل د هغه په

غوبي سره کار کوي، لنډه دا چې دلته د ځمکې مالک عامل په اُجرت او مزدورۍ نيولی دی). نو د دې مثال دا دی لکه څوک چې په دې شرط خياط په اُجرت ونيسي يعني په دې شرط خپل کپړه په اُجرت ورکړي چې صرف زما په ستن به هغه جوړوې، يا مستري پر دې شرط په اُجرت ونيسي چې صرف زما په ګلماله به کار کوې، نو دا صورت جائز دی، همدغه ډول مذکوره صورت هم جائز دی.

## په ظاهر روايت کې باطل صورت کوم چې د امام ابو يوسف رَحِمَهُ الله په نيز جائز دی

وَإِنْ كَانَتِ الْأَرْضُ وَالْبَقَرُ لِوَاحِدٍ وَالْبَذْرُ وَالْعَمَلُ لِآخَرَ [۴] او که چيرې ځمکه او غويي د يوه وي او تخم او عمل [کار] د بل يوه وي فَهِيَ بَاطِلَةٌ نو دا مزارعت باطل دی وَهٰذَا الَّذِي ذَكَرَهُ ظَاهِرُ الرِّوَايَةِ او دغه [قول] کوم چې امام قدوري رَحِمَهُ الله ذکر کړی دی ظاهر روايت دی وَعَنْ أَبِي يُوسُفَ أَنَّهُ يَجُوزُ أَيْضًا او له امام ابو يوسف رَحِمَهُ الله څخه نقل سوي دي چې دا هم جائز دي لِأَنَّهُ لَوْ شَرَطَ الْبَذْرَ وَالْبَقَرَ عَلَيْهِ ځکه که پر ځمکي والا [مالک أرض] باندې تخم او غويي شرط کړی سي يَجُوزُ نو دا جائز دي فَكَذَا إِذَا شَرَطَ وَحْدَهُ نو همداسې [به دا هم جائز وي] کله چې پر هغه صرف غويي شرط کړی سي وَصَارَ كَجَانِبِ الْعَامِلِ او دا د عامل د جانب په څېر سو [يعني لکه پر هغه چې صرف د غويي شرط کول جائز دي] وَجْهُ الظَّاهِرِ: أَنَّ مَنْفَعَةَ الْبَقَرِ لَيْسَتْ مِنْ جِنْسِ مَنْفَعَةِ الْأَرْضِ د ظاهر روايت دليل دا دی: چې د غويي منفعت د ځمکې د منفعت له جنس څخه نه دی لِأَنَّ مَنْفَعَةَ الْأَرْضِ قُوَّةٌ فِي طَبْعِهَا يَحْصُلُ بِهَا النَّمَاءُ ځکه چې د ځمکې منفعت د هغې په فطرت کې يو قوت دی چې په هغه سره وده [پيداوار] حاصليږي وَمَنْفَعَةُ الْبَقَرِ صَلَاحِيَةٌ يُقَامُ بِهَا الْعَمَلُ او د غويي منفعت يو صلاحيت دی چې په هغه سره [د ځمکې اړولو] کار قائمول کيږي كُلُّ ذٰلِكَ بِخَلْقِ اللهِ تَعَالَىٰ او دا ټول د الله د خلق [تخليق] په وجه دي فَلَمْ يَتَجَانَسَا نو د دواړو منفعت سره همجنس نه سو فَتَعَذَّرَ أَنْ تُجْعَلَ تَابِعَةً لَهَا نو متعذر [ناممکن] سوه چې د غويي منفعت د ځمکې د منفعت تابع کړی سي بِخِلَافِ جَانِبِ الْعَامِلِ په خلاف د عامل د طرف لِأَنَّهُ تَجَانَسَتِ الْمَنْفَعَتَانِ ځکه چې [هلته] دوه منفعتونه سره همجنس دي فَجُعِلَتْ تَابِعَةً لِمَنْفَعَةِ الْعَامِلِ نو د غويي منفعت د عامل د منفعت تابع کړی سو.

**اللغات**: ﴿نماء﴾ اضافه، وده. ﴿لـم يتجانسا﴾ د تفاعل له بابه د جحد صيغه ده: يو د بل سره هم جنس کېدل (همجنس کېدل).

تشریح: (۴)... دا د مزارعت څلورم صورت دی کوم چې د ظاهر روايت مطابق باطل او د امام ابو يوسف رَحِمَهُ الله په نيز جائز دی، هغه صورت دا دی چې ځمکه او غويی د يوه له طرفه وي او تخم او کار د بل له طرفه وي، نو امام ابو يوسف رَحِمَهُ الله دا صورت جائز ګرځولی دی؛ د هغه دليل دا دی چې څرنګه چې دا صورت جائز دی چې بذر او بقر دواړه د ځمکي د مالک له طرفه وي، نو همداسي که د هغه له طرفه له بذر او بقر څخه صِرف يو شی وي، نو هم به مزارعت جائز وي. او لکه کله چې بقر (غويی) د عامل له طرفه وي، نو مزارعت جائز دی، نو همداسي که بقر د ځمکي د مالک له طرفه وي، نو هم به مزارعت جائز کيږي.

وجه الظاهرإلخ: له دې ځايه د ظاهر روايت دليل بيانوي، چې آسانه حاصل يې دا دی چې ځمکه دا صلاحيت لري چې له هغې څخه پيداوار (مثلاً غنم) راوځي او د غويي صلاحيت دا دی چې په هغه سره ځمکه اړول کيږي، نو د بقر منفعت د ځمکي د منفعت له جنس څخه نه دی، لهذا د بقر منفعت د ځمکي د منفعت نه سي تابع کول کېدای، او د دې رواج هم نسته چې د غويي منفعت (يعني غويی) د پيداوار په عوض کي په اُجرت ونيول سي (مثلاً د څو منه غنمو په عوض کي غويی په اُجرت واخيستل سي)، لنډه دا چې دوی دوه جلا جنسونه سوه، نو د بقر منفعت بغير له اُجرته باقي پاته سو، نو ځکه د مزارعت دا صورت باطل دی. (اثمار الهدايه)

بخلاف جانب العامل إلخ: په دې سره د امام ابو يوسف رَحِمَهُ الله د قياس جواب ورکوي (چې هغه وفرمايل چې لکه کله چې بقر د عامل له طرفه وي...). حاصل يې دا دی چې دا مذکوره (څلورم) صورت د عامل والا پر صورت قياسول صحيح نه دي؛ ځکه چې هلته د بقر منفعت او د عامل منفعت يو جنس دی (نه جلا دوه جنسونه)؛ ځکه د عامل کار عمل (د کښتګرۍ کار کول) دي او بقر د هغه د عمل يو جنس دی. لهذا کله چې هلته دواړه منفعتونه د يوه جنس دي، نو يو د بل په تابع ګرځولو سره هلته مزارعت جائز کړی سوی دی. او چيري چې منفعتونه مختلف الجنس وي (لکه دا مذکوره صورت) نو هلته يو د بل نه سي تابع کول کېدای، نو ځکه په مذکوره صورت کي مزارعت نه دی جائز کړی سوی.

## د مزارعت څو ناجائز صورتونه

وَهٰهُنَا وَجْهَانِ آخَرَانِ لَمْ يَذْكُرْهُمَا او دلته دوه نور صورتونه هم سته کوم چې امام قدوري رَحِمَهُ الله نه دي ذکر کړي أَحَدُهُمَا أَنْ يَكُونَ الْبَذْرُ لِأَحَدِهِمَا وَالْأَرْضُ وَالْبَقَرُ وَالْعَمَلُ لِآخَرَ [۱] د هغوی يو صورت دا دی چې تخم د يوه وي او ځمکه، تخم او عمل [کار] د بل يوه وي فَإِنَّهُ لَا يَجُوزُ نو دا جائز نه دی لِأَنَّهُ

يَتِمُّ شَرِكَةً بَيْنَ الْبَذْرِ وَالْعَمَلِ ځکه چي دا عقد د تخم او عمل تر مينځ په شرکت سره پوره .سو[يا په بله وينا دا چي دا د تخم او عمل تر مينځ شرکت سو] وَلَمْ يَرِدْ بِهِ الشَّرْعُ حال دا چي په دې باره کي شريعت نه دی وارد سوی وَالثَّانِي أَنْ يُجْمَعَ بَيْنَ الْبَذْرِ وَالْبَقَرِ [۲] دويم صورت دا دی چي د تخم او عمل تر مينځ [عقد] جمع کړی سي [يعني تخم او غويی ديوه وي لو ځمکه او عمل د بل يوه وي] وَأَنَّهُ لَا يَجُوزُ أَيْضًا او دا هم جائز نه دي لِأَنَّهُ لَا يَجُوزُ عِنْدَ الِانْفِرَادِ ځکه چي دا د انفراد په وخت کي جائز نه دي [يعني که يوازي تخم يا يوازي غويی ديوه وي او نور د بل چا وي، نو دا جائز نه دي] فَكَذَا عِنْدَ الِاجْتِمَاعِ نو همداسي به د اجتماع په وخت کي [چي تخم او غويی دواړه ديوه وي] هم جائز نه وي وَالْخَارِجُ فِي الْوَجْهَيْنِ لِصَاحِبِ الْبَذْرِ فِي رِوَايَةٍ او پيداوار په دواړو صورتونو کي د تخم والا کيږي ديوه روايت مطابق اعْتِبَارًا بِسَائِرِ الْمُزَارَعَاتِ الْفَاسِدَةِ پر نورو فاسدو مزارعتونو په قياس کولو سره وَفِي رِوَايَةٍ لِصَاحِبِ الْأَرْضِ او ديوه روايت مطابق پيداوار د ځمکي د مالک کيږي وَيَصِيرُ مُسْتَقْرِضًا لِلْبَذْرِ قَابِضًا لَهُ لِاتِّصَالِهِ بِأَرْضِهِ او هغه د تخم قرض اخيستونکی ګرځي [او] په داسي حال کي هغه پر تخم قبضه کونکی کيږي د هغه د ځمکي سره د تخم متصل کېدلو په وجه [په آسانه وينا: دويم روايت دا دی چي کله مزارعت فاسد سو. نو پيداوار د ځمکي والا کيږي. او د دې تأويل به داسي کيږي چي د ځمکي مالک له تخم والا شخه تخم په قرض واخيستی، او کله چي دا تخم د هغه په ځمکه کي کښېښول سو او وکرل سو. نو پر دې تخم د ځمکي د مالک قبضه راغله (يعني تخم د ځمکي والا سو). لهذا کله چي تخم د ځمکي والا سو. نو پيداوار او غله به هم د هغه وي (اثمار الهدايه)].

**اللغات:** ﴿مستقرض﴾ د استفعال د باب فاعل دی: په قرض اخيستونکی.

**تشريح:** صاحب د هدايې رَحِمَهُ الله په دې عبارت کي د مزارعت باطلېدلو دوه نور صورتونه بيان کړي دي چي هغه امام قدوري رَحِمَهُ الله نه دي ذکر کړي، له هغوی شخه اول صورت دا دی چي ديوه کس له طرفه صرف تخم وي او د بل له طرفه ځمکه غويی او عمل درې سره شيان وي، دا صورت باطل دی، او په دې صورت کي د مزارعت باطلېدلو يوه وجه خو همدا ده چي دا صورت د شرع د مورد خلاف دی، او دويمه وجه دا ده چي دلته د تخم او عمل په مينځ کي شرکت کيږي کوم چي صحيح نه دي؛ ځکه کله چي ديوه له طرفه صرف تخم وي او پاته شيان د بل چا له طرفه وي. نو ځمکه او عمل به دواړه ديوه وطرف ته وي، حال دا چي د عامل او ځمکي تر مينځ تخليه ضروري ده او د مزارعت

صحیح کېدو لپاره تخلیه شرط ده، د دې لپاره چې عامل بالکل فارغ البال سي او خپل کار وکړ سي. نو د دغه شرط د فوتېدلو په وجه دلته مزارعت باطلیږي. (احسن الهدایه)

دریم صورت دا دی چې د یوه له طرفه تخم او غویی وي او د بل له طرفه عمل او ځمکه وي، په دې صورت کې هم مزارعت باطل دی، او د مزارعت باطلېدلو وجه دا ده چې که یو طرف ته یوازې غویی وي او بل طرف ته نور شیان (یعني عمل، ځمکه او تخم) وي. یا یوه طرف ته یوازې تخم وي او بل طرف ته نور شیان وي، نو هم مزارعت فاسدیږي، او کوم شی په انفرادي حالت کې صحیح نه دی، هغه په اجتماعي حالت کې څنګه صحیح کېدای سي.

والخارج إلخ: په دې سره یو بله مسئله بیانوي. چې د هغه حاصل دا دی چې د مذارعت په دې پورتنی دوو صورتونو کې پیداوار د چا حق کیږي، نو په دې باره کې دوه قولونه دي:

①... څرنګه چې په نورو مزارعات فاسده وو کې پیداوار د تخم والا (صاحب البذر) کیږي، همداسي به دلته هم د هغه وي.

②... دویم قول دا دی چې پیداوار د ځمکي والا (صاحب الأرض) کیږي او هغه به له تخم والا څخه مستقرض منل کیږي، مګر بیا دا اشکال کیږي چې د قرض لپاره خو قبضه ضروري ده، او دلته قبضه نسته، نو د دې په جواب کې فرمایي چې څرنګه چې د صاحب الأرض د ملکیت (ځمکي) سره د تخم اتصال دی، لهذا همدغه اتصال د قبضې په ځېر منل سوی او صاحبُ الأرض مستقرض ګڼل سوی دی. (احسن الهدایه)

## د مزارعت د صحیح کېدلو لپاره د مودت معلومېدل ضروري دي

قَالَ: وَلَا تَصِحُّ الْمُزَارَعَةُ إِلَّا عَلَى مُدَّةٍ مَعْلُوْمَةٍ فرمایي: او مزارعت نه صحیح کیږي مګر په یو معلوم مودت سره لِمَا بَيَّنَّا د هغه دلیل په وجه کوم چې موږ بیان کړی وَأَنْ يَكُوْنَ الْخَارِجُ شَائِعًا بَيْنَهُمَا او [بل] دا چې پیداوار به د دواړو تر مینځ مشترک وي تَحْقِيْقًا لِمَعْنَى الشَّرِكَةِ د شرکت د معنیٰ ثابتولو لپاره فَإِنْ شَرَطَا لِأَحَدِهِمَا قُفْزَانًا مُسَمَّاةً نو که دوی [په خپل مینځ کې] د یوه لپاره د څو معلومو قفیزونو شرط ولګوي فَهِيَ بَاطِلَةٌ نو مزارعت باطل دی لِأَنَّ بِهِ تَنْقَطِعُ الشَّرِكَةُ ځکه چې په دې شرط سره شرکت ختمیږي لِأَنَّ الْأَرْضَ عَسَاهَا لَا تُخْرِجُ إِلَّا هٰذَا الْقَدْرَ ځکه کېدای سي چې ځمکه له دغه مقدار څخه بغیر نور نه راوباسي [یعني نور پیداوار نه وکړي] فَصَارَ كَاشْتِرَاطِ دَرَاهِمَ مَعْدُوْدَةٍ لِأَحَدِهِمَا فِي الْمُضَارَبَةِ نو داسي سو لکه په مضاربت کې چې له شریکینو څخه د یوه لپاره د څو درهمو شرط ولګول سي.

**اللغات:** ﴿بذر﴾ تخم، ﴿خارج﴾ د نصر د باب فاعل دی: له ځمکې څخه راوتونکې څه، پیداوار، حاصلات. ﴿شائع﴾ د ضرب د باب فاعل دی: خپله معنی یې ده: غوړېدلی، منتشر او خپور. اصطلاحي معنی یې ده: مشترک، مشاع، (داسې مشترک شی کوم چې تر اوسه تقسیم سوی او سره جلا کړی سوی نه وي).

﴿مسماة﴾ د تفعیل د باب اسم مفعول دی: نومول سوی، مُتعیّن، ټاکل سوی.

**تشریح:** مخکې تر دې صاحب د هدایې (د صاحبینو په نیز) د مزارعت صحیح کېدلو اته (۸) شرطونه بیان کړه، چې له هغوی څخه یو شرط د مزارعت د مودت سره متعلق وو (چې د مزارعت مودت به هم بیانوي)، پر هغه دلته دا مسئله متفرع کوي فرمایي چې له مودت بیانولو څخه بغیر مزارعت نه صحیح کېږي؛ دلیل مخکې ذکر سو چې اُجرت له منافعو څخه ورکول کېږي (یعني په مزارعت کې عامل ته د هغه له کرل سوي شي مثلاً غنمو څخه اُجرت ورکول کېږي). او د منافعو درک په همدې مودت سره معلومېږي، نو ځکه د مودت بیانول ضروري دي.

وأن یکون الخارج شائعًا إلخ: مخکې یو شرط دا هم ذکر سو چې پیداوار به د دواړو تر مینځ مشترک وي، یعني څومره غله (مثلاً غنم) چې وسي، هغه به د ځمکې والا او عامل (بزګر) تر مینځ مشترک وي، داسې به نه کېږي چې د یوه لپاره اول معلوم مقدار خاص کړی سي او بیا له پاتې غلې څخه دواړو ته خپل حصه ورکول سي، مثلاً ځمکې والا ووایي چې څومره غنم وسي له هغه څخه مثلاً شل منه زما دي او پاتې غنم زما او ستا تر مینځ مشترک دي؛ ځکه دا ممکنه ده چې فقط شل منه غنم وسي نو هغه به ځمکې والا واخلي او عامل ته به هیڅ هم حاصل نه سي او د هغه محنت او عمل به ضایع ولاړ سي، او بل دا چې څومره مقدار د یوه لپاره خاص کړی سي، په هغه کې شرکت نه راغلی. حال دا چې معامله پر شرکت واقع سوې وه، نو ځکه وویل سوه چې د یوه لپاره به د مخصوص مقدار شرط نه لګول کېږي (برابره ده مزارعت پر څلورمه حصه وي او که پر دریمه وي)، کنې مزارعت باطلېږي.

او دا داسې ده لکه په مضاربت کې چې یو د ځان لپاره یو معلوم مقدار خاص کړي مثلاً ربُ المال ووایي چې کومه ګټه وسي له هغه څخه سل درهمه زما دي او پاتې دراهم زما او ستا تر مینځ مشترک دي، نو مضاربت باطلېږي ځکه چې په دې شرط سره شرکت ختمېږي، نو همداسې دلته هم د شرکت ختمېدلو پر بناء مزارعت باطلېږي.

## هر هغه شرط مزارعت فاسدوي کوم چې د شرکت ختمونکی وي

وَكَذَا إِذَا شَرَطَا أَنْ يَرْفَعَ صَاحِبُ الْبَذْرِ بَذْرَهُ وَيَكُونَ الْبَاقِي بَيْنَهُمَا نِصْفَيْنِ او همدارنګه [مزارعت باطلېږي] کله چې دواړه دا شرط ولګوي چې تخم والا به [اول] خپل تخم پورته کوي [یعني له پیداوار څخه به

اول د خپل تخم مقدار جلا کوي] او پاته پیداوار به د دوی تر مینځ نیم په نیمه وي لِأَنَّهُ يُؤَدِّيْ إِلَى قَطْعِ الشَّرِكَةِ فِي بَعْضٍ مُعَيَّنٍ ځکه دا شرط په بعضي معيّن مقدار کي د شرکت ختمولو سبب ګرځي أَوْ فِي جَمِيْعِهِ بِأَنْ لَمْ يُخْرِجْ إِلَّا قَدْرَ الْبَذْرِ یا په ټوله پیداوار کي [د قطع شرکت سبب ګرځي] په دې توګه چي فقط د تخم په اندازه پیداوار وسي فَصَارَ كَمَا إِذَا شَرَطَا رَفْعَ الْخَرَاجِ وَالْأَرْضُ خَرَاجِيَّةٌ وَأَنْ يَكُوْنَ الْبَاقِيْ بَيْنَهُمَا نو دا داسي سوه لکه دواړه چي د خراج پورته کولو [جلا کولو] شرط ولګوي او ځمکه خراجي وِي او دا چي پاته پیداوار به د دوی تر مینځ مشترک وي [یعني چي دواړه عاقدین په خراجي ځمکه کي د خراج ایستلو او د ما بقي پیداوار د مشترک کېدلو شرط ولګوي] بِخِلَافِ مَا إِذَا شَرَطَ صَاحِبُ الْبَذْرِ عُشْرَ الْخَارِجِ لِنَفْسِهِ أَوْ لِلْآخَرِ وَالْبَاقِيْ بَيْنَهُمَا په خلاف د دې صورت کله چي تخم والا د ځان لپاره یا د بل یوه لپاره د پیداوار د لسمي حصې شرط ولګوي او پاته پیداوار د دوی تر مینځ مشترک وي [نو دا مزارعت جائز دی] لِأَنَّهُ مُعَيَّنٌ مُشَاعٌ ځکه چي دا معین مشاع دی [په بله وینا دا چي دغه لسمه حصه مشترکه ده] فَلَا يُؤَدِّيْ إِلَى قَطْعِ الشَّرِكَةِ نو ځکه دا د شرکت ختمولو سبب نه ګرځي كَمَا إِذَا شَرَطَا رَفْعَ الْعُشْرِ وَقِسْمَةَ الْبَاقِيْ بَيْنَهُمَا وَالْأَرْضُ عُشْرِيَّةٌ لکه کله چي دواړه د عشر پورته کولو [جلا کولو] او په خپل مینځ کي د پاته پیداوار د تقسیمولو شرط ولګوي او ځمکه عشري وي [نو مزارعت جائز دی].

**اللغات**: ﴿قطع﴾ د فتح د باب مصدر دی: غوڅول او پرېکول، ختمول. ﴿مشاع﴾ د ضرب د باب اسم مفعول دی، شایع شُده (خپور)، مشترک شی (یعني هغه شی چي دواړه په ګډه پکښي شریکان وي).

**تشریح**: دا یو اُصول په یاد لرئ! چي هر هغه شرط کوم چي شیوع او شرکت ختموي، هغه مزارعت فاسدوي.

**صورت د مسئلي**: دا دی که تخم والا (صاحبُ البذر) ووايي چي څومره پیداوار (مثلاً غنم) وسي، زه له هغه څخه اول د خپل تخم (خپل کرل سوو غنمو) مقدار اخلم او پاته پیداوار (غنم) به زما او ستا تر مینځ نیم په نیمه تقسیمول کیږي، نو دا شرط مزارعت فاسدي.

ځکه که پیداوار د تخم له مقدار څخه زیات وسي نو د تخم په اندازه شرکت ختم سو، او که د تخم له مقدار څخه زیات پیداوار نه وسي (بلکي د تخم په اندازه یا تر هغه کم وي)، نو په کل کي شرکت ختم سو او دا هم مزارعت فاسدوي.

او دا بالکل داسي ده چي مثلاً يو خراجي ځمکه ده چي د کاله د هغه ځمکي خراج متعيّن دی مثلاً د کاله لس منه غله د خراج په توګه پر مقرر دي، اوس که په داسي ځمکه کي مزارعت وسي او دواړه عاقدين دا شرط ولګوي چي اول به د خراج مقدار له پيداوار څخه ايستل کيږي او بيا به پاته پيداوار زموږ تر مينځ نيم په نيمه تقسيمول کيږي، نو دا جائز نه دي؛ ځکه چي په بعضي معيّن (يعني د تخم په مقدار) يا کل کي شرکت ختم سو، او په دې سره مزارعت فاسديږي، نو همدغه ډول په اول صورت کي هم مزارعت فاسديږي.

بخلاف ما إذا إلخ: د دې حاصل دا دی چي که په مزارعت کي داسي شرط ولګول سي چي اول به د پيداوار عشر ايستل کيږي چي هغه به تخم والا يا بل عاقد ته ورکول کيږي او بيا به ما بقي پيداوار نيم په نيمه تقسيمول کيږي، نو په دې صورت کي مزارعت صحيح دی؛ ځکه دلته د متعيّن پيداوار شرط نه دی لګول سوی دی بلکي د مشترک پيداوار شرط لګولی دی او په ما بقيه کي شرکت دی، ځکه د عشر ايستلو شرط، شرط مشترک او معيّن دي؛ ځکه د ځمکي په هر پيدلوار کي عشر وي، نو ځکه دا شرط د شرکت ختمولو سبب نه جوړيږي او تر عشر ايستلو وروسته هم په مابقي کي شرکت باقي پاتيږي، چي هغه به دوی دواړه نيم په نيمه تقسيموي.

او د دې مثال داسي دی لکه په عشري ځمکه کي چي دواړه دا شرط ولګوي چي اول به له پيداوار څخه عشر ايستل کيږي او بيا ما بقي تقسيمول کيږي، نو څرنګه چي دلته په دې شرط لګولو سره شرکت نه ختميږي، همدغسي په اول صورت کي هم د عشر ايستلو په شرط لګولو سره شرکت نه ختميږي او مزارعت بالکل جائز کيږي.

## د مزارعت فاسدونکي نور شرائط

قَالَ: وَكَذٰلِكَ إِنْ شَرَطَا مَا عَلَى الْمَاذِيَانَاتِ وَالسَّوَاقِيْ [امام قدوري رَحِمَهُ الله] فرمايي: او همدارنګه [مزارعت فاسديږي] که دواړه شرط ولګوي د هغه پيداوار کوم چي پر غټو او کوچنيو والو [ويالو] وي مَعْنَاهُ لِأَحَدِهِمَا يعني د يوه لپاره [د هغه پيداوار شرط ولګوي] لِأَنَّهُ إِذَا شَرَطَ لِأَحَدِهِمَا زَرْعُ مَوْضِعٍ مُعَيَّنٍ ځکه کله چي د يوه لپاره د يو ټاکلي ځای کښت شرط کړل سي أَفْضٰى ذٰلِكَ إِلَى قَطْعِ الشَّرِكَةِ نو دا د شرکت ختمولو سبب جوړيږي لِأَنَّهُ لَعَلَّهُ لَا يَخْرُجُ إِلَّا مِنْ ذٰلِكَ الْمَوْضِعِ ځکه کېدای سي چي فقط له دغه ټاکلي ځای څخه پيداوار وسي وَعَلٰى هٰذَا إِذَا شَرَطَ لِأَحَدِهِمَا مَا يَخْرُجُ مِنْ نَاحِيَةٍ مُعَيَّنَةٍ وَلِلْآخَرِ مَا يَخْرُجُ مِنْ نَاحِيَةٍ أُخْرٰى او همدارنګه [مزارعت فاسديږي] کله چي د يوه لپاره د يو ټاکلي طرف پيداوار

شرط کړل سي او د بل يوه لپاره د بل طرف پيداوار شرط کړل سي وَكَذَا إِذَا شُرِطَ لِأَحَدِهِمَا التِّبْنُ وَلِلْآخَرِ الْحَبُّ او همدارنګه کله چي ديوه لپاره [د کښت] پروړ او د بل لپاره غله [دانې] شرط کړل سي لِأَنَّهُ عَلَى أَنْ يُصِيبَهُ آفَةٌ ځکه کېداى سي چي کښت ته يو آفت ورسيږي فَلَا يَنْعَقِدُ الْحَبُّ وَلَا يَخْرُجُ إِلَّا التِّبْنُ او غله [او پيداوار] نه وسي او فقط پروړ راووځي وَكَذَا إِذَا شُرِطَ التِّبْنُ نِصْفَيْنِ وَالْحَبُّ لِأَحَدِهِمَا بِعَيْنِهِ او همدارنګه که دا شرط ولګول سي چي پروړ به نيم په نيمه وي او غله به په دوى کي خاص ديوه لپاره وي لِأَنَّهُ يُؤَدِّي إِلَى قَطْعِ الشَّرِكَةِ فِيمَا هُوَ الْمَقْصُودُ وَهُوَ الْحَبُّ ځکه چي دا شرط په مقصود شي يعني غله کي د شرکت ختمولو سبب ګرځي.

**اللغات**: ﴿مأذيانات﴾ معرب لفظ دى (له فارسي څخه عربي ته را اوښتى لفظ دى). هغه واله (وياله) ته وايي کوم چي نه ډېره غټه وي لکه نهر (لويه واله) او نه ډېره کوچنۍ وي لکه نرى لښتى. او د سواقي هم دغه تعريف نقل سوى دى، لکه څرنګه چي په "المغرب" قاموس کي دي. نو بناء پر دې مأذيانات او سواقي مترادف (هَم معنى) الفاظ دى. او ځيني وايي چي مأذيانات غټو والو (ويالو) ته وايي او سواقي کوچنيو والو ته وايي. ﴿سواقي﴾ جمع د سَاقِيَةٌ ده. وضاحت يې وسو. ﴿أفضى﴾ د افعال د باب ماضي ده: رسول، رسېدل، سبب جوړېدل. ﴿تبن﴾ پروړ، بوس، د کښت او پيداوار تر غوبل او ميده کولو وروسته چي د هغه کوم فضله مواد او خاشاک پاته سي (کوم چي د څاروېو د خوراک او داسي نورو لپاره کارول کېږي). ﴿حَبّ﴾ حبوب، دانې، غله.

**تشريح**: دا خو تاسي ته معلومه سوه چي په هغه شرطونو سره مزارعت فاسديږي کوم چي د شرکت ختمونکي وي، صاحب د هدايې رَحِمَهُ الله پر دغه أصول ډيري مسئلې متفرع کړي دي، له هغوى څخه يوه دا ده چي که له دواړو عاقدَينو څخه يو دا شرط ولګوي چي د کښت د والو او لښتيو تر څنګ پيداوار به زما وي او پاته پيداوار به زما او ستا تر مينځ مشترک وي، نو څرنګه چي په داسي شرط سره شرکت ختميږي (ځکه کېداى شي چي فقط د والو او لښتيو تر څنګ پيداوار وسي او پاته حصه پيداوار نه وکړي)، نو ځکه مزارعت په داسي شرط سره فاسديږي.

يا يو دا شرط ولګوي چي د کښت د دغه طرف پيداوار به زما وي او د دې بل طرف پيداوار به ستا وي. او ګورئ! په دې صورت کي هم شرکت ختميږي. نو ځکه مزارعت فاسديږي.

وكذا إذا شرط لأحدهما إلخ: د مزارعت فاسدېدلو يو صورت دا دی چې دا شرط پکښې ولګول سي چې د يوه لپاره به فقط پرور وي او د بل لپاره به فقط غله (دانې) وي، نو دا صورت هم قاطع شرکت دی، په دې توګه چې پر کښت يو آفت راسي او غله خرابه سي، بيا فقط پرور ترلاسه کړل سي، لهذا په دې صورت کي هم د شرکت ختمېدلو احتمال سته، نو ځکه دلته هم مزارعت فاسدېږي.

همدارنګه که دا شرط ولګول سي چې په پرورو کي به دواړه شريکان وي، لېکن غله به د يوه وي، نو په دې صورت کي هم مزارعت فاسدېږي، ځکه د کښت و کروندې اصل مقصد غله ده، او دلته په غله کي شرکت نسته.

**که دا شرط ولګول سي چي غله به د دواړو وي لېکن د پرورو تذکره نه وسي**

وَلَوْشَرَطَا الْحَبَّ نِصْفَيْنِ وَلَمْ يَتَعَرَّضَا لِلتِّبْنِ او که دواړه دا شرط ولګوي چي غله [دانې] به نيم په نيمه وي [لېکن] دوی د پرورو په باره کي هيڅ طلب [او ځرګندونه] نه وکړي صَحَّتْ نو مزارعت صحيح دی لِاشْتِرَاطِهِمَا الشِّرْكَةَ فِيْمَا هُوَالْمَقْصُودُ ځکه دوی په مقصود شي [غله] کي شرکت شرط کړی دی ثُمَّ التِّبْنُ يَكُوْنُ لِصَاحِبِ الْبَذْرِ بيا پرور د تخم والا کيږي [تخم والا يې حقداره دی] لِأَنَّهُ نَمَاءُ بَذْرِهِ ځکه چي دا د هغه د ملکيت وده [او پيداوار] دی وَفِي حَقِّهِ لَايَحْتَاجُ إِلَى الشَّرْطِ او د هغه په حق کي د شرط لګولو ضرورت نسته [يعني د تخم والا د حقداره کېدلو لپاره د شرط لګولو ضرورت نسته] وَالْمُفْسِدُ هُوَالشَّرْطُ وَهٰذَا سُكُوتٌ عَنْهُ او [د مزارعت] فاسدونکي همدا شرط لګول دي [چي پرور به د تخم والا وي] او دلته له هغه څخه سکوت سوی دی [ځکه عاقدينو صراحتاً دا شرط نه دی لګولی لکه مخکي چي ذکر سوه: لأنه لم يتعرضا للتبن] وَقَالَ مَشَايِخُ بَلْخَ: التِّبْنُ بَيْنَهُمَا أَيْضًا او د بلخ مشايخو رَحِمَهُمُ الله فرمايلي دي: چي پرور هم د دوی تر مينځ مشترک دي اِعْتِبَارًا لِلْعُرْفِ فِيمَالَمْ يَنُصَّ عَلَيْهِ الْمُتَعَاقِدَانِ د عرف په اعتبار کولو سره په هغه شي کي چي پر هغه دواړو عقد کونکو صراحت نه وي کړی [يا په بله وينا دا چي د عاقدينو په غير منصوص شي کي پر عرف په قياس کولو سره پرور هم د دوی تر مينځ مشترک دي] وَلِأَنَّهُ تَبَعٌ لِلْحَبِّ او ځکه چي پرور د غلې [دانو] تابع دي وَالتَّبَعُ يَقُوْمُ بِشَرْطِ الْأَصْلِ او تابع د اصل د شرط مطابق قائمېږي.

**اللغات:** ﴿حَبّ﴾ دانې، غله. ﴿لم يتعرضا﴾ د تفعل له بابه د تثنيه غائب جحد صيغه ده، تَعَرَّضَ لِلأَمرِ و إلى الأمرِ (يعني د دې باب په صله کې چې لام يا إلى راسي لکه دلته: لِلتّبن) نو معنىٰ يې ده: په پسې کېدل، طلب کول (مصباح اللغات). ﴿نماء﴾ وده، اضافه.

**تشریح:** مسئله دا ده که عاقدَين دا شرط ولګوي چې غله به زما او ستا دواړو تر مينځ مشترکه وي لېکن د پروړو هيڅ ذکر او څرګندونه ونه کړي (چې دا به چا وي)، نو څرنګه چې اصل مقصود همدا غله ده او په دې کې شرکت سته، نو ځکه مزارعت صحيح کيږي.

اوس سوال دا دی چې په دې صورت کې پروړ د کوم يوه کيږي، نو فرمايي چې په دې باره کې دوه قوله دي: ① پروړ د تخم والا کيږي؛ ځکه دا د هغه د ملکيت نما ده، كما هو ظاهر. ②دويم قول دا دی چې د عرف په اعتبار کولو سره په دې صورت کې پروړ هم مشترک ګرځي، او څرنګه چې غله اصل ده او پروړ تابع دي، او د تابع همغه حکم وي کوم چې د اصل وي، نو ځکه پروړ به هم مشترک وي.

**وفي حقه لايحتاج إلخ:** يعني د تخم والا په حق کې د پروړو د ثابتېدلو لپاره د شرط ضرورت نسته، او په کومو صورتونو کې چې مزارعت فاسديږي هغه د شرط په وجه وي، او دلته خو له سره شرط سته نه بلکې سکوت دی، او سکوت مفسد زراعت نه دی.

### که د تخم والا لپاره د پروړو شرط ولګول سي

وَلَوْ شَرَطَا الْحَبَّ نِصْفَيْنِ وَالتِّبْنُ لِصَاحِبِ الْبَذْرِ او که دواړه دا شرط ولګوي چې غله [دانې] به نيم په نيمه وي او پروړ به د تخم والا وي صَحَّتْ نو [هم] مزارعت صحيح دی لِأَنَّهُ حُكْمُ الْعَقْدِ ځکه همدا د عقد حکم دی [ځکه که په عقد مزارعت کې د پروړو په باره کې سکوت وسي او د تخم والا لپاره شرط نه کړل سي نو هم هغه د تخم والا کيږي، لهٰذا کله چې شرط کړل سي نو هم به د تخم والا وي چې دغه شرط د عقد د حکم او تقاضا عين مطابق دی] وَإِنْ شَرَطَا التِّبْنَ لِلْآخَرِ او که دواړه د بل يوه لپاره پروړ شرط کړي فَسَدَتْ نو مزارعت فاسديږي لِأَنَّهُ شَرْطٌ يُؤَدِّي إِلَىٰ قَطْعِ الشَّرِكَةِ بِأَنْ لَا يَخْرُجَ إِلَّا التِّبْنُ ځکه دا يو داسې شرط دی کوم چې د شرکت ختمولو سبب ګرځي په دې توګه چې فقط پروړ راوو‌ځي [او نور پيداوار (غله) نه وسي] وَاسْتِحْقَاقُ غَيْرِ صَاحِبِ الْبَذْرِ بِالشَّرْطِ او له تخم والا څخه بغير د بل يوه [د پروړو] مستحق کېدل د شرط پر بناء وي [او دا شرط د عقد د حکم او تقاضا خلاف دی، نو ځکه مزارعت فاسديږي].

**اللغات:** ﴿تبن﴾ پروړ، بوس.

**تشريح**: د عبارت حاصل دا دی چي که دا شرط ولګول سي چي غله به د دواړو تر مينځ مشترکه وي او پروړ به د تخم والا وي، نو ځرنګه چي دا شرط د عقد د تقاضا خلاف نه دی بلکي عين مطابق يې دی، نو ځکه دا مزارعت صحيح دی.

ها! که له تخم والا څخه بغير د بل عاقد لپاره د پروړ اخيستلو شرط ولګول سي، نو اوس مزارعت فاسديږي؛ ځکه دا شرط د عقد د تقاضا خلاف دی.

واستحقاق إلخ: يعني تخم والا خو بلا شرطه هم د پروړو مستحق کېدای سي، او له هغه څخه بغير بل عاقد فقط د شرط په وجه مستحق کېدای سي او ځرنګه چي دا شرط د عقد د تقاضا خلاف دی ځکه چي شرط فاسد دی، ځکه په دې سره شرکت ختميږي او په شرکت ختمېدلو سره مزارعت فاسديږي.

## د مزارعت د منعقد کېدلو په صورت کي به پيداوار د شرط مطابق تقسيمول کيږي

قَالَ: وَإِذَا صَحَّتِ الْمُزَارَعَةُ [امام قدوري رَحِمَهُ الله] فرمايي: او کله چي مزارعت صحيح سي فَالْخَارِجُ عَلَى الشَّرْطِ نو پيداوار به [د دواړو تر مينځ] د شرط مطابق وي لِصِحَّةِ الِالْتِزَامِ د التزام د صحيح کېدلو په وجه [يعني کوم څه چي يې لازم کړي دي د هغه د صحيح کېدلو په وجه] وَإِنْ لَمْ تُخْرِجِ الْأَرْضُ شَيْئًا او که ځمکه هيڅ نه را وباسي [يعني هيڅ پيداوار نه وکړي] فَلَا شَيْءَ لِلْعَامِلِ نو د کار کونکي [بزګر] لپاره هيڅ شی [أجرت] نسته لِأَنَّهُ يَسْتَحِقُّهُ شَرِكَةً ځکه چي هغه د شرکت پر بناء د څه [أجرت] مستحق کيږي وَلَا شَرِكَةَ فِي غَيْرِ الْخَارِجِ او له پيداوار څخه بغير په بل څه کي شرکت نسته وَإِنْ كَانَتْ إِجَارَةً او که اجاره وي [يعني که دا مزارعت اجاره ومنل سي] فَالْأَجْرُ مُسَمًّى نو أجرت متعيّن وو فَلَا يَسْتَحِقُّ غَيْرَهُ نو ځکه عامل به د بل څه [غير مسمی] نه مستحق کيږي بِخِلَافِ مَا إِذَا فَسَدَتْ په خلاف د هغه صورت کله چي مزارعت فاسد سي لِأَنَّ أَجْرَ الْمِثْلِ فِي الذِّمَّةِ ځکه چي [په دې صورت کي] أجرت مثلي پر ذمه لازميږي وَلَا تَفُوتُ الذِّمَّةُ بِعَدَمِ الْخَارِجِ او د پيداوار په نشتوالي سره ذمه نه فوتيږي [يعني کوم څه چي پر ذمه واجب او لازم وي هغه له ذمې څخه نه ساقطيږي که څه هم پيداوار نه وسي] قَالَ: وَإِذَا فَسَدَتْ فرمايي او کله چي مزارعت فاسد سي فَالْخَارِجُ لِصَاحِبِ الْبَذْرِ نو پيداوار د تخم والا کيږي

لِأَنَّهُ نَمَاءُ مِلْكِهِ ځکه چې دا د هم هغه د ملکیت وده [او پیداوار] دی وَاسْتِحْقَاقُ الْآخَرِ بِالتَّسْمِيَةِ او د بل يوه [د أجرت] مستحق کېدل په تسميه [متعيّن کولو او شرط لګولو] سره دي وَقَدْ فَسَدَتْ او تسميه فاسده سوه فَبَقِيَ النَّمَاءُ كُلُّهُ لِصَاحِبِ الْبَذْرِ نو ځکه پيداوار ټوله د تخم والا لپاره پاته سو.

**اللغات**: ﴿التزام﴾ د افتعال د باب مصدر دی: پر ځان لازمول، په خپل ذمه اخيستل. ﴿تسمية﴾ د تفعيل د باب مصدر دی: نومول، متعيّن کول (ټاکل).

**تشريح**: په دغه عبارت کي امام قدوري رَحِمَهُ الله دوې مسئلې بيان کړي دي: (۱)... کله چې مزارعت صحيح سي (يعني مخکيني ټوله شرطونه موجود سي او مزارعت منعقد سي)، نو اوس چې پر کوم شرط مزارعت سوی وي (چې مثلاً د پيداوار يوه حصه به د عامل وي او دوې حصې به د ځمکي والا وي)، د هغه شرط په حساب سره به پيداوار تقسيمول کيږي؛ ځکه کله چې مزارعت صحيح سو، نو کوم شرط چې په دې مزارعت کي پر ځانو لازم کړی سوی وو، هغه هم صحيح سو، نو ځکه د هغه مطابق به عمل هم کيږي؛ لأن المسلمون عند شروطهم.

لېکن که په دې پورتني صورت کي (يعني چې مزارعت پر شرط سوی وي) هيڅ پيداوار نه وسي، نو عامل (بزګر) ته هيڅ هم نه حاصليږي او د هيڅ نه مستحق کيږي؛ ځکه د عامل مستحق کېدل د شرکت پر بناء وه او شرکت په پيداوار کي وو (چې مثلاً د پيداوار دوې حصې به د ربُ الأرض وي او يوه حصه به د عامل وي...)، او دلته پيداوار بالکل سوی نه دی، نو ځکه عامل ته به هيڅ هم نه ورکول کيږي.

وإن كانت إجارة إلخ: دا د يو اشکال جواب دی، اشکال دا دی چې مزارعت خو په ابتداء کي د اجاره په حکم کي وي (او بيا انتهاءً شرکت ګرځي)، لهذا عامل ته أجرت حاصلېدل پکار دي؟.

د دې په جواب کي فرمايي چې صحيح ده مونږ هم هغه اجاره منو، خو په پورتني صورت کي له همدې پيداوار څخه أجرت ټاکل سوی وو (چې د پيداوار دومره حصه به د عامل وي او دومره د ځمکي والا). او دلته د پيداوار نه کېدلو په وجه دا ټاکل سوی أجرت ورته حاصل نه سو، او له پيداوار څخه بغير د بل څه هغه مستحق نه دی، نو ځکه هيڅ به نه ورته حاصليږي (لکه څرنګه چې ځمکي والا ته هم هيڅ حاصل نه سوه).

بخلاف ما إذا إلخ: د دې حاصل دا دی چې دلته خو أجرت له پيداوار څخه ټاکل سوی دی کوم چې د پيداوار نه کېدلو په وجه نه سي ورکول کېدای، لېکن په مزارعت فاسده کي په هر صورت کي عامل ته أجرت مثلي ورکول کيږي. د هغه وجه دا ده چې په مزارعت فاسده کي أجرت مثلي پر ذمه

واجبيږي؛ او کوم شی چي واجب فی الذمه وي، هغه د پيداوار نه کېدلو په وجه نه سي ختمېدلای، نو ځکه هلته په هرحال کي عامل ته أجرت حاصليږي.

قال إلخ: (۲)... دويمه مسئله دا ده چي کله مزارعت فاسد سي، نو پيداوار د تخم والا کيږي؛ ځکه پيداوار د همدې تخم والا د ملکيت وده او نما ده، او بل عاقد خو د تسميه يعني د شرط لګولو په وجه د پيداوار مستحق کيږي، او کله چي عقد (مزارعت) فاسد سو، نو تسميه يعني شرط هم فاسد سو، او چي شرط فاسد سو، نو پيداوار به ټوله هغه يوه ته حاصليږي چي د هغه د ملکيت (تخم) په وجه پيداوار سوی وي، او ملکيت د تخم والا وو، نو ځکه پيداوار به هم د هغه وي.

## په مزارعت فاسده کي د أجرت مسئله

قَالَ: وَلَوْكَانَ الْبَذْرُ مِنْ قِبَلِ رَبِّ الْأَرْضِ [امام قدوري رَحِمَهُ الله فرمايي]: او که تخم د ځمکي والا له طرفه وي فَلِلْعَامِلِ أَجْرُمِثْلِهِ نو د عامل لپاره أجرتِ مثلي دی. لَايُزَادُعَلَى مِقْدَارِ مَاشُرِطَ لَهُ مِنَ الْخَارِجِ چي هغه به نه زياتول کيږي تر هغه مقدار کوم چي له پيداوار څخه د عامل لپاره شرط کړی سوی وي لِأَنَّهُ رَضِيَ بِسُقُوطِ الزِّيَادَةِ ځکه چي عامل خپله د زياتوب په ساقطولو راضي سو وَهٰذَا عِنْدَ أَبِي حَنِيفَةَ وَأَبِي يُوسُفَ او دا [حکم] د شيخينو رَحِمَهُمَا الله په نيز دی وَقَالَ مُحَمَّدٌ ۞: لَهُ أَجْرُ مِثْلِهِ بَالِغًا مَابَلَغَ او امام محمد رَحِمَهُ الله فرمايي: چي د عامل لپاره أجرتِ مثلي دی هر څو ته چي ورسيږي لِأَنَّهُ اسْتَوْفَى مَنَافِعَهُ بِعَقْدٍ فَاسِدٍ ځکه د ځمکي مالک په فاسد عاقد سره د عامل منافع ترلاسه کړي دي فَتَجِبُ عَلَيْهِ قِيمَتُهَا نو ځکه پر هغه به د منافعو قيمت واجب وي إِذْ لَا مِثْلَ لَهَا ځکه چي منافعو لره هيڅ مثل نسته وَقَدْ مَرَّ فِي الْإِجَارَاتِ او په إجاراتو [کتابُ الإجارات] کي دا بحث تېرسو وَإِنْ كَانَ الْبَذْرُ مِنْ قِبَلِ الْعَامِلِ او که چيري تخم د عامل له طرفه وي فَلِصَاحِبِ الْأَرْضِ أَجْرُ مِثْلِ أَرْضِهِ نو د ځمکي د مالک لپاره د خپل ځمکي أجرت مثلي دی لِأَنَّهُ اسْتَوْفَى مَنَافِعَ الْأَرْضِ بِعَقْدٍ فَاسِدٍ ځکه عامل په فاسد عقد سره د ځمکي منافع ترلاسه کړي دي فَيَجِبُ رَدُّهَا نو د دې منافعو واپس کول به ضروري وي وَقَدْ تَعَذَّرَ لېکن هغه [يعني د منافعو واپس کول] مشکل دي [نه يې سي واپس کولای] وَلَا

---

۞ القول الراجح: قول الشيخين رَحِمَهُمَا الله، کما فی رد المحتار (ج:۵، ص:۱۹۶)، ومجمع الأنهر (ج:۴، ص:۱۴۲). [القول الراجح ج:۲، ص:۲۸۵]

مِثْلَ لَهَا او منافعو لره مثل هم نسته فَيَجِبُ رَدُّ قِيمَتِهَا نو ځکه د هغوی د قیمت واپس کول ضروري دي وَهَلْ يُزَادُ عَلَى مَا شُرِطَ لَهُ مِنَ الْخَارِجِ او آیا دا قیمت به تر هغه مقدار زیاتول کیږي کوم چې له پیداوار څخه د هغه لپاره شرط کړی سوی وو؟ فَهُوَ عَلَى الْخِلَافِ الَّذِي ذَكَرْنَاهُ نو دا خبره پر همغه اختلاف ده کوم چې موږ [څه مخکې] ذکر کړه.

**اللغات:** ﴿استوفیٰ﴾ د استفعال د باب ماضي ده: ترلاسه کول، وصولول، اخیستل. ﴿تعذر﴾ د تفعل د باب ماضي ده، د دې باب دوې معناوې نقل سوې دي: ناممکن کېدل، مشکل کېدل.

**تشريح: صورت د مسئلې:** دا دی چې که تخم د ځمکې د مالک له طرفه وو او مزارعت فاسد سو، نو په دې صورت کې عامل ته اجر مثل حاصلیږي یعني اُجرت مثلي به ورکول کیږي (یا په بله وینا دا چې په بازار او تولنه کې چې د عامل د دغسې کارشومره اُجرت وي، هغه به ورکول کیږي. او پاته سو پیداوار او غله هغه ټوله ځمکې والا ته حاصلیږي) او دا اُجرت به د شیخینو رَحِمَهُمَا الله په نېز د هغه مقدار مطابق ورکول کیږي کوم چې له پیداوار څخه د ده لپاره شرط کړی سوی (ټاکل سوی) وي او تر هغه مقدار به نه اضافه کول کیږي (یعني که د بازار او ټولني اجرت زیات وي تر هغه حصې کوم چې په پیدوار کې د عامل لپاره ټاکل سوې وي، نو د شیخینو رَحِمَهُمَا الله په نېز به د پیدوار له حصې څخه زیات اُجرت نه ورکول کیږي بلکې د هغه حصې په اندازه به وي)؛ ځکه کله چې ده په مفسد مزارعت کې لاس ووهی، نو دا د ده له طرفه د خپل اضافي او زائد حق ساقطول سوه، او کله چې څوک خپله د خپل حق په ساقطولو راضي وي، نو بل ته د اضافه کولو څه ضرورت دی!.

امام محمد رَحِمَهُ الله فرمايي چې عامل ته به خپل اُجرت مثلي ورکول کیږي هغه که هر شومره وي یعني که څه هم تر مشروط مقدار یعني تر هغه مقدار زیات وي کوم چې په پیداوار کې د عامل لپاره ټاکل سوی دی (یا په بله وینا دا چې په هر صورت کې به اُجرت مثلي یعني د بازار او ټولني اُجرت ورکول کیږي که څه هم هغه د ده د پیداوار له حصې څخه زیات وي)؛ ځکه د ځمکې مالک د عقد فاسد په ذریعه د ده منافع حاصل کړل، او څرنګه چې منافع غیرِ مثلي دي (یعني مثل نه لري) نو د هغوی د عین واپس کول ناممکن دي (یعني دا ناممکنه ده چې اوس د ځمکې مالک عامل ته خپل منافع واپس کړي)، نو ځکه اوس د منافعو قیمت لازمیږي چې د ځمکې مالک به د هغوی ټوله قیمت واپس کوي، که څه هم هغه له مشروط مقدار څخه زیات وي.

وإن كان البذر إلخ: په دې سره بعینه همدا پورتنی صورت بیان سوی دی، خو فرق یې دا دی چې په پورتني صورت کې تخم د ځمکې والا له طرفه وو او په دې صورت کې د عامل له طرفه دی، حاصل یې دا دی چې څرنګه عامل ته له مشروط مقدار څخه د زیات اُجرت ورکولو په هکله د امام محمد او

شیخینو رَحِمَهُمُ الله اختلاف وو، همدارنګه د ځمکې مالک ته هم له مشروط مقدار ځخه د زیات ورکولو په هکله د دوی اختلاف دی.

## د مزارعت فاسده د اُجرت بله مسئله

وَلَوْجَمَعَ بَيْنَ الْأَرْضِ وَالْبَقَرِحَتَّى فَسَدَتِ الْمُزَارَعَةُ او که چیرې [دیوه له طرفه] ځمکه او غویی سره جمع کړل سي او مزارعت فاسد سي فَعَلَى الْعَامِلِ أَجْرُمِثْلِ الْأَرْضِ وَالْبَقَرِ نو پر کار کونکي [بزګر] د ځمکي او غويي مثلي أجرت دی هُوَالصَّحِيحُ همدا صحیح ده لِأَنَّ لَهُ مَدْخَلًا فِي الْإِجَارَةِ ځکه غويي لره په اجاره کي دخل وي [يعني غويي هم په أجرت او کرايه ورکول کیږي او اخیستل کیږي] وَهِيَ إِجَارَةٌ مَعْنًى او مزارعت هم د معنیٰ په اعتبار سره اجاره ده.

**اللغات:** ﴿مدخل﴾ د نصر له بابه مصدر دی: دخل، تعلق.

**تشريح:** مخکي دا مسئله تېره سوې ده چي که غويي او ځمکه د يوه وي او کار او تخم د بل يوه وي (يا په لنډه وينا دا چي د ځمکي د مالک له طرفه غويي هم وي)، نو په دې صورت کي مزارعت فاسدېږي، او کله چي مزارعت فاسد سو، نو ښکاره خبره ده چي تخم د عامل وو نو پیداوار د هغه کیږي، خو هغه به د ځمکي مالک ته د ځمکي او غويي دواړو أجرت مثلي ورکوي؛ ځکه مزارعت په معنوي توګه داسي دی لکه اجاره (يعني لکه د ځمکي مالک چي عامل ته خپل ځمکه او غويي په أجرت ورکړی دي)، او څرنګه چي ځمکه په أجرت او کرايه اخيستل کيږي، همداسي غويي هم په أجرت اخيستل کيږي، نو ځکه د ځمکي د أجرت سره به د غويي أجرت هم ورکوي.

## په مزارعت فاسده کي د پيداوار د استحقـاق بيان

وَإِذَا اسْتَحَقَّ رَبُّ الْأَرْضِ الْخَارِجَ لِبَذْرِهِ فِي الْمُزَارَعَةِ الْفَاسِدَةِ او کله چي د ځمکي مالک په مزارعت فاسده کي د خپل تخم په وجه د پيداوار مستحق سي طَابَ لَهُ جَمِيعُهُ نو د هغه لپاره ټول پيداوار حلال دی لِأَنَّ النَّمَاءَ حَصَلَ فِي أَرْضٍ مَمْلُوكَةٍ لَهُ ځکه چي [د پيداوار] وده د هغه په خپل مملوکه ځمکه کي حاصل سوې ده وَإِنِ اسْتَحَقَّهُ الْعَامِلُ او که کار کونکی [بزګر] د پيداوار مستحق سي أَخَذَ قَدْرَ بَذْرِهِ وَقَدْرَ أَجْرِ الْأَرْضِ وَتَصَدَّقَ بِالْفَضْلِ نو هغه به د خپل تخم په اندازه او د ځمکي د أجرت په اندازه اخلي او [له هغه ځخه] زائد به صدقه کوي لِأَنَّ النَّمَاءَ يَحْصُلُ مِنَ الْبَذْرِ وَيَخْرُجُ مِنَ

الْأَرْضِ ځکه چې وده له تخم څخه حاصليږي او له ځمکې څخه راوځي وَفَسَادُ الْمِلْكِ فِي مَنَافِعِ الْأَرْضِ أَوْجَبَ خُبْثًا فِيهِ او د ځمکې په منافعو کې د ملکيت فاسدېدل په هغه کې خبث پيدا کوي فَمَا سُلِّمَ لَهُ بِعِوَضٍ نو کوم څه چې د عوض په بدله کې ده ته سپارل سوي [حاصل] وي طَابَ لَهُ هغه خو د ده لپاره حلال دي وَمَا لَا عِوَضَ لَهُ او د څه چې عوض نه وي تَصَدَّقَ بِهِ هغه به صدقه کوي.

**اللغات**: ﴿طـاب﴾ د ضـرب ماضـي ده: بنـه کېـدل. مـراد ځنـي "حـلال کېـدل او روا کېـدل" دي.

﴿خبث﴾ بدي، ناپاکي، خرابي.

**تشريح**: پـه دې عبارت کـې صـاحب د هـدايې رَحِمَهُ الله دوې مسـئلې بيـان کـړې دي: (۱)... پـه مزارعت فاسده کې کـه تخـم د مالک له طرفه وو. نو د هغه لپاره د ټولـه پيـداوار اخيسـتل حلال او روا دي؛ ځکه ځمکه هم د هغه ده او تخم هم د هغه له طرفه دی (او تاسې ته معلومه ده چې پيداوار يعني فصل او غله له همدې دوو شيانو [تخم او ځمکې] څخه حاصليږي). نو ځکـه پـه ټولـه پيـداوار کـې د ده استحقاق دی او ور ته حلال دی. لهذا ده ته له هغه څخه د څه صدقه کولو ضرورت نسته.

(۲)... که تخم د عامل له طرفـه وو چې ټولـه پيـداوار د هغـه سو، او مزارعـت فاسـده وو. نو عامل دې صرف د خپل تخم په اندازه او د ځمکې د اُجرت په اندازه (يعني په ځمکه کې د کار کولو په بدله کې چې د ده لپاره څومره اُجرت ټاکل سوی وي د هغه په اندازه) پيداوار دې واخلي او نور پاته پيداوار دې صدقه کړي؛ ځکه کـه څـه هـم هغـه تخـم والا دی چې پـه دې وجـه د ټولـه پيـداوار مستحق دی، خـو څرنګـه چې مزارعت فاسد سو، نو د ځمکې په منافعو (پيداوار) کې د ملکيـت پـه اعتبـار سره خبث پيدا سو، او د دغه خبث د لېرې کولو طريقه همدا ده چې کوم شی د عامل دی يعني تخـم او د ځمکې اُجرت د هغـه پـه اندازه پيداوار او غله دې واخلي؛ ځکه له تخم څخه پيدوار حاصل سوی دی او ځمکه د پيداوار او نما سبب جوړه سوې ده. او دا دواړه شيان عوض دي. نو ځکه د دوی په بدله کې دې عامل د پيـداوار عوض واخلي؛ او څرنګه چې لـه دوی څخه بغير نور پيداوار عامـل تـه بلا عوضـه حاصليږي، نو ځکـه هغه مقدار دې صدقه کړي، چې په خبث مبتلا نه سي. (احسن الهدايه)

## له مزارعت کولو څخه وروسته د يوه عاقد د انکار کولو بيان

قَالَ: وَإِذَا عُقِدَتِ الْمُزَارَعَةُ فَامْتَنَعَ صَاحِبُ الْبَذْرِ مِنَ الْعَمَلِ [امام قدوري رَحِمَهُ الله] فرمايي: او کله چې عقد مزارعـت وسـي بيـا تخـم والا لـه کـار کولـو څخـه منع سي لَمْ يُجْبَرْ عَلَيْهِ نو هغه به پر کار نه مجبورول کيږي لِأَنَّهُ لَا يُمْكِنُهُ الْمُضِيُّ فِي الْعَقْدِ إِلَّا بِضَرَرٍ يَلْزَمُهُ ځکه چې له ضرر [او نقصان] لازمېدلو

ښځه بغیر د هغه لپاره د دې عقد جاري ساتل [او پوره کول] ممکن نه دي فَصَارَ كَمَا إِذَا اسْتَأْجَرَ أَجِيرًا لِيَهْدِمَ دَارَهُ نو داسي سو لکه یو څوک چي یو مزدور ونیسي چي هغه د ده کور ونړوي وَإِنِ امْتَنَعَ الَّذِي لَيْسَ مِنْ قِبَلِهِ الْبَذْرُ او که هغه یو منع سي چي د هغه له طرفه تخم نه وي أَجْبَرَهُ الْحَاكِمُ عَلَى الْعَمَلِ نو حاکم به هغه پر کار مجبوره کوي لِأَنَّهُ لَا يَلْحَقُهُ بِالْوَفَاءِ بِالْعَقْدِ ضَرَرٌ ځکه د عقد په پوره کولو سره هغه ته هیڅ ضرر نه لاحقیږي [یعني د عقد مزارعت په جاري ساتلو او پوره کولو کي د هغه هیڅ نقصان نسته] وَالْعَقْدُ لَازِمٌ بِمَنْزِلَةِ الْإِجَارَةِ او عقد لازم دی د اجارې په درجه کي [یا په بله وینا دا چي عقد د اجارې په څېر لازم دی] إِلَّا إِذَا كَانَ عُذْرٌ يُفْسَخُ بِهِ الْإِجَارَةُ خو کله چي داسي عذر وي چي د هغه په وجه اجاره ماتول کیږي فَيُفْسَخُ بِهِ الْمُزَارَعَةُ نو د هغه عذر په وجه به مزارعت هم فسخ کول کیږي.

**اللغات**: ﴿مضیٰ﴾ د ضرب د باب مصدر دی: تېرېدل، جاري کېدل. ﴿مضیٰ فی العقد﴾ عقد جاري ساتل او پوره کول، یا په بله وینا د عقد مطابق کار کول او پای ته رسول. ﴿استأجر﴾ د استفعال د باب ماضي ده: په اُجرت او مزدوري نیول، په کرایه نیول.

**تشریح**: **صورت د مسئلې**: دا دی چي کله د ربُ الأرض او عامل تر مینځ د مزارعت معامله وسي، بیا له دوی ښځه یو له دغه عقد (معاملې) ښځه انکار وکړي، نو دې ته به کتل کیږي چي کوم یو انکار کوي، که چیري تخم والا (صاحب البذر) انکار کوي، نو حاکم به هغه د عقد پر پوره کولو (د عقد پر جاري ساتلو او پای ته رسولو) نه مجبوره کوي؛ ځکه د عقد په پوره کولو کي د هغه نقصان دی، په دې توګه چي اوس به هغه تخم کړي او د منافعو درک نه دی معلوم، کېدای سي چي کښت په یو آفت مبتلا سي او هیڅ پیداوار هم نه وسي، نو څرنګه چي په دې صورت کي د هغه نقصان دی، نو ځکه د عقد مزارعت پر کولو او پوره کولو به هغه نه مجبورول کیږي، او دا داسي ده لکه د یو ځای مالک چي د خپل ځای نړولو لپاره یو کس په اُجرت ونیسي، بیا د ځای مالک د نړولو ښځه انکار وکړي چي نه! زما ځای مه نړوه!، نو څرنګه چي په ځای نړول کېدو کي د هغه نقصان دی چي په دې وجه اوس هغه د ځای پر نړولو نه مجبورول کیږي، همدغسي به په مزارعت کي هم کیږي.

وان امتنع الذی إلخ: هو! که له تخم والا ښځه بغیر بل عاقد انکار وکړي چي زه دغه عقد او معامله نه کوم، نو حاکم هغه د عمل او عقد پر کولو او پوره کولو مجبوره کولای سي؛ ځکه کله چي تخم د هغه نه دی، نو د عقد او کار په کولو سره د هغه نقصان هم نه کیږي (ځکه په کار کولو سره د هغه پیسې نه ځي)، نو ځکه د عقد پر پوره کولو به مجبوره کول کیږي.

او بل دا چي د هغه په عقد يعني ترون او معامله کولو سره دا عقد مزارعت لازم سو، ځکه چي مزارعت د اجارة په درجه کي دی، او اجارة په عقد سره لازميږي، نو همداسي مزارعت به هم په عقد سره لازميږي او د هغه پوره کول به ضروري وي. خو هغه عذرونه چي اجاره په فاسديږي (مثلاً سخت مرض، يا ډېر قرض او داسي نور)، په هغه عذرونو سره مزارعت هم فاسديږي او بيا د هغه پوره کول نه لازميږي، او د هغه عذرونو په خاطر انکار کونکی عاقد به د عقد پر کولو هم نه مجبورول کيږي. (احسن الهدايه)

## د پورتني مسئلې نور وضاحت

قَالَ: وَلَوِامْتَنَعَ رَبُّ الْأَرْضِ وَالْبَذْرُ مِنْ قِبَلِهِ فرمايي: او که چيري د ځمکي مالک [له مزارعت څخه] منع سي او تخم د هغه له طرفه وي وَقَدْ كَرَبَ الْمُزَارِعُ الْأَرْضَ حال دا چي کښتګر [بزګر] ځمکه سره اړولې وي فَلَاشَيْءَ لَهُ فِي عَمَلِ الْكِرَابِ نو د ځمکي اړولو د کار په عوض کي د هغه لپاره هيڅ [أجرت] نسته قِيْلَ: هٰذَا فِي الْحُكْمِ ويل سوي دي: چي دا په حکم [قضاء] کي دي [يعني دا د قضاء فيصله ده] فَأَمَّا فِيْمَا بَيْنَهُ وَبَيْنَ اللهِ تَعَالٰى يَلْزَمُهُ اسْتِرْضَاءُ الْعَامِلِ او پاته سو د هغه او الله تر مينځ مسئله نو پر هغه [يعني د ځمکي پر مالک] د عامل راضي کول ضروري دي لِأَنَّهُ غَرَّهُ فِي ذٰلِكَ ځکه چي هغه په دې معامله کي عامل ته دوکه ورکړې ده قَالَ: وَإِذَا مَاتَ أَحَدُ الْمُتَعَاقِدَيْنِ فرمايي: او کله چي له عاقدينو څخه يو مړ سي بَطَلَتِ الْمُزَارَعَةُ نو مزارعت باطليږي اعْتِبَارًا بِالْإِجَارَةِ پر اجاره په قياس کولو سره وَقَدْ مَرَّ الْوَجْهُ فِي الْإِجَارَاتِ او وجه په اجاراتو [كتاب الإجارات] کي تېره سوې ده.

**اللغات:** ﴿امتنع﴾ د افتعال د باب ماضي ده: منع کېدل، انکار کول. ﴿استرضاء﴾ د استفعال د باب مصدر دی: طلب د رضاء کول، راضي کول. ﴿غرّ﴾ د نصر د باب ماضي ده: فريب او دوکه ورکول (ټوک دوکه کول)، لکه په قرآن کريم کي چي هم دا کليمه ذکر سوې ده: يَا أَيُّهَا الْإِنْسَانُ مَا غَرَّكَ بِرَبِّكَ الْكَرِيمِ [الانفطار: ۶].

**تشريح:** د عبارت حاصل دا دی چي کله د دوو کسانو (عاقدينو) تر مينځ د مزارعت ترون وسي او دا وټاکل سي چي تخم به د ځمکي والا (ربُّ الأرض) له طرفه وي، او تر ترون وروسته عامل د ځمکي اړول او سمول شروع کړي، خو بيا د ځمکي مالک له تخم ورکولو څخه انکار وکړی چي زه يې نه کرم، نو په دې صورت کي عامل ته قضاءً د کښت او ځمکي د اړولو او سمولو اُجرت نه حاصليږي؛

ځکه د معاملې تر تړون وروسته پر عامل دا ضروري سوه چې ځمکه واړوي او کرنې ته يې آماده کړي، او هغه دا کار وکړي، او د تخم کرلو پړاو خو تر دې وروسته دی، لېکن بيا هم څرنګه چې تخم والا د خپل وعدې مخالفت وکړی او عامل ته يې دوکه ورکړه، نو ځکه تخم والا ته پکار دي چې عامل ته دومره اُجرت ورکړي چې هغه په راضي سي، ځکه هغه زحمت کښلی دی.

قال إلخ: له دې ځايه يوه بله مسئله بيانوي چې څرنګه په عاقدېنو کې د يوه په مړګ سره اجاره باطليږي، همدغسې که تر تخم کرلو او داسې نورو مخکې يو عاقد وفات سي، نو مزارعت باطليږي، او د باطلېدلو وجه يې دا ده چې که د يوه عاقد تر مرګ وروسته هم عقد (مزارعت) باقي پرېښوول سي، نو د غير عاقد يعني د عاقد د وارث لپاره د نفع استحقاق لازميږي (يعني تر دې وروسته د مزارعت نفع وارث ته حاصليږي)؛ ځکه چې د عاقد تر مرګ وروسته د هغه حق وارثانو ته حاصليږي، او وارث غير عاقد دی (ځکه ښکاره خبره ده چې دا عقد د هغه سره نه دی سوی بلکې د مورث [مړي] سره سوی دی)، نو ځکه وارث د نفع مستحق ګرځول صحيح نه دي.

همدغه توجيه صاحب د هدايې رَحِمَهُ الله په كتابُ الإجارات کې بيان کړې ده. (احسن الهدايه)

## د مدت مزارعت په دوران کې د ځمکې د مالک د وفات کېدلو يو صورت

فَلَوْكَانَ دَفَعَهَا ثَلَاثَ سِنِيْنَ نو که ځمکه يې د دريو کالو لپاره ورکړه فَلَمَّا نَبَتَ الزَّرْعُ فِي السَّنَةِ الْأُولٰى وَلَمْ يُسْتَحْصَدْ حَتّٰى مَاتَ رَبُّ الْأَرْضِ بيا چې کله په اول کال کښت شين سو او [تر اوسه] رېبل سوی نه وو چې د ځمکې مالک مړ سو تُرِكَ الْأَرْضُ فِي يَدِ الْمُزَارِعِ نو ځمکه به د کښتګر [بزګر عامل] په لاس کې پرېږدي حَتّٰى يَسْتَحْصِدَ الزَّرْعَ وَيُقْسِمَ عَلَى الشَّرْطِ تر دې چې هغه کښت ورېبي او د شرط مطابق يې تقسيم کړي وَتَنْتَقِضُ الْمُزَارَعَةُ فِيْمَا بَقِيَ مِنَ السَّنَتَيْنِ او په پاتو دوو کلونو کې مزارعت ماتيږي لِأَنَّ فِي إِبْقَاءِ الْعَقْدِ فِي السَّنَةِ الْأُولٰى مُرَاعَاةُ لِلْحَقَّيْنِ ځکه په اول کال کې د عقد په باقي پرېښوولو کې د دواړو [طرفونو د] حقونو رعايت دی بِخِلَافِ السَّنَةِ الثَّانِيَةِ وَالثَّالِثَةِ په خلاف د دويم او دريم کال لِأَنَّهُ لَيْسَ فِيهِ ضَرَرٌ بِالْعَامِلِ ځکه په دې کې د کار کوونکي [کښتګر] هيڅ ضرر نسته فَيُحَافَظُ فِيهِمَا عَلَى الْقِيَاسِ نو په هغوی کې به د قياس خيال ساتل کيږي.

**اللغات:** ﴿دفع﴾ د فتح د باب ماضي ده چې يوه معنیٰ يې ده: ورکول، ورسپارل. ﴿نبت﴾ د نصر د باب ماضي ده: شين کېدل (راشنه کېدل). ﴿زرع﴾ کښت، فصل. ﴿لم يُستحصد﴾ د استفعال له بابه د

جحد صيغه ده: لوول، رېبل، شکول (پرېکول)، ﴿ضرر﴾ نقصان، تاوان، ﴿تـنـتقض﴾ دافتعال دباب مضارع ده: ماتېدل، ﴿فيحافظ﴾ دافعال دباب مضارع مجهوله ده: حفاظت کول، خيال ساتل.

**تشريح: مسئله:** دا ده چې دعاقدينو ترمينځ دمزارعت معامله وسوه او دځمکې مالک (ربُ الأرض) د دريو کالو لپاره خپل ځمکه ورکړه، او عامل (کښتګر) محنت وکړې او کښت يې وکړې، لېکن کښت پخېدلو او رسېدلو ته نژدې وو چې په همدې اول کال دځمکې مالک مړ سو، اوس څرنګه چې کښت شين سوی او را پورته سوی دی، نو ځکه د پخېدلو او پرېکېدلو تر وخته به دا ځمکه دعامل په لاس کې پرېښوول کېږي، چې دا کښت او پيداوار پوخ سي او هغه يې ورېبي او دهمغه شرط مطابق پيداوار تقسيم کړي کوم چې دده او دربُ الأرض ترمينځ ټاکل سوی وو (چې مثلاً که يوه حصه دعامل او دوې حصې دربُ الأرض لپاره ټاکل سوې وې نو همداسې به يې تقسيموي...).

خو په پاتو دوو کلونو کې دا عقد مزارعت فسخ کېږي؛ ځکه په اول کال کې داستحسان پر بناء دعامل او وارثانو درعايت په خاطر مزارعت باقي پرېښوول سوی وو؛ ځکه د کښت تر پخېدلو (رسېدلو) مخکې که مزارعت ختم کړی سوې وای، نو هم به دعامل ضرر پکښې وای او هم دوارثانو، او په را روانو دوو کلونو کې خو هيڅ کار هم نه دی سوی، لهذا ديوه ضرر هم پکښې نسته، نو دقياس په رعايت کولو سره به په پاتو دوو کلونو کې مزارعت ختمول کېږي؛ ځکه قياساً له عاقدينو څخه د يوه په مرګ سره مزارعت او داسې نور عقدونه باطلېږي.

## له تخم کرلو څخه مخکې د ځمکې د مالک د وفات کېدلو حکم

وَلَوْمَاتَ رَبُّ الْأَرْضِ قَبْلَ الزِّرَاعَةِ بَعْدَ مَا كَرَبَ الْأَرْضَ وَحَفَرَ الْأَنْهَارَ او که دځمکې مالک له کښت کرنې څخه مخکې مړ سي وروسته تر دې چې عامل ځمکه سره اړولې او والې [وياله] يې کښلې وي اِنْتَقَضَتِ الْمُزَارَعَةُ نو مزارعت ماتېږي لِأَنَّهُ لَيْسَ فِيهِ إِبْطَالُ مَالٍ عَلَى الْمُزَارِعِ ځکه په دې کې د کښتګر د مال ضايع کول نسته۔ وَلَا شَيْءَ لِلْعَامِلِ بِمُقَابَلَةِ مَا عَمِلَ او د کار کولو په بدله کې دعامل لپاره هيڅ شی نسته لِمَا نُبَيِّنُهُ إِنْ شَاءَ اللهُ تَعَالَى د هغه دليل په وجه چې مونږ به يې ان شاء الله بيان کړو وَإِذَا فُسِخَتِ الْمُزَارَعَةُ بِدَيْنٍ فَادِحٍ لَحِقَ صَاحِبَ الْأَرْضِ او کله چې ديو درونډ قرض په وجه کوم چې دځمکې مالک ته لاحق سوی وي مزارعت فسخ سي فَاحْتَاجَ إِلَى بَيْعِهَا فَبَاعَ او هغه دځمکې خرڅولو ته مجبوره سي او خرڅه يې کړي جَازَ نو دا جائز دي كَمَا فِي الْإِجَارَةِ لکه څرنګه چې په اجاره کې کېږي وَلَيْسَ لِلْعَامِلِ أَنْ يُطَالِبَهُ بِمَا كَرَبَ الْأَرْضَ وَحَفَرَ الْأَنْهَارَ بِشَيْءٍ او کار کوونکي ته دا

حق نسته چې د ځمکې اړولو او د والو کښلو په بدله کې د څه [أجرت] مطالبه وکړي لِأَنَّ الْمَنَافِعَ إِنَّمَا تَتَقَوَّمُ بِالْعَقْدِ ځکه چې منافع د عقد په وجه قيمتي ګرځي وَهُوَ إِنَّمَا قُوِّمَ بِالْخَارِجِ او د عقد قيمت دلته په پيداوار سره لګول سوی دی فَإِذَا انْعَدَمَ الْخَارِجُ نو کله چې پيداوار معدوم سو [هيڅ پيداوار نه وسو] لَمْ يَجِبْ شَيْءٌ نو هيڅ څه به هم نه واجبيږي.

**اللغات:** ﴿كرب﴾ د نصر د باب ماضي ده، كَرَبَ يَكْرُبُ كَرْبًا وَكِرَابًا: ځمکه د کرنې لپاره اړول او سمول چې د کښت کرنې قابله سي، ﴿حفر﴾ د ضرب د باب ماضي ده: کيندل، کښل، ﴿أنهار﴾ جمع د نَهْرٌ ده: واله (ويالہ)، ﴿فادح﴾ د فتح له بابه د اسم فاعل صيغه ده: ګران باره، درون باره (درونند بوجه)، درونونکی مشکل، ﴿لَحِق﴾ د سمع د باب ماضي ده: لاحق کېدل، پيوست کېدل...

**تشريح: مسئله:** دا ده چې د دوو کسانو تر مينځ د مزارعت معامله او تړون وسو، تر دې وروسته عامل په کار لاس پوري کړی، ځمکه يې سره واړول او سمه يې کړل، والې او لښتيان يې پکښې جوړ کړل، اوس له تخم کرلو څخه مخکې د ځمکې مالک وفات سو، نو فرمايي چې مزارعت باطليږي؛ ځکه کله چې تر اوسه عامل په ځمکه کې تخم نه دی کرلی، نو د مزارعت په فسخ کېدلو کې د هغه نقصان هم نسته. ها! د ځمکې په اړونه او د والو (ويالو) په جوړونه کې هغه زحمت کښلی دی، خو د هغه د زحمت کښلو او کار کولو اُجرت له پيداوار څخه تاکل سوی دی يا په بله وينا دا چې د عامل د منافعو (کار) قيمت پيداوار دی (ځکه په مزارعت کې د عامل د کار اُجرت او قيمت له پيداوار څخه ټاکل کيږي)، او پيداوار سوی نه دی، نو ځکه هغه ته به د خپل زحمت کښلو يعني د ځمکې اړولو او داسې نورو اُجرت هم نه ورکول کيږي، په کما نبيّنه سره صاحب د هدايې د همدغه توجيه وطرف ته اشاره کړې ده.

يو بل صورت دا دی چې د دوو کسانو تر مينځ د مزارعت معامله وسوه او عامل ځمکه سره واړول، والې او لښتيان يې پکښې جوړ کړل، اوس له تخم کرلو څخه مخکې پر ربُ الأرض دومره قرض ښکاره سو چې بغير د ځمکې له خرڅولو څخه د هغه د اداء کولو بله لاره نه وه، نو په دې صورت کې د ځمکې خرڅولو لپار مزارعت فسخ کول کېدای سي؛ ځکه قرض يو عذر دی او د قرض په وجه اجاره هم فسخ کول کيږي، نو ځکه د همدې قرض پر بناء به مزارعت هم فسخ کول کيږي کوم چې د اجارې په شېر دی. او په دغه صورت کې هم عامل ته د ځمکې اړولو او د والو جوړولو اُجرت نه حاصليږي؛ ځکه دلته په عقد کې د عامل د منافعو قيمت پيداوار ټاکل سوی دی (يعني د کار کولو په

اُجرت کي هغه ته د پيداوار يو حصه ورکول کيږي، مثلاً دريمه حصه يا داسي نور)، او پيداوار سوی نه دی، نو اُجرت او قيمت هم نه واجبيږي.

ښکاره دي وي چي دا ټوله تفصيلات هغه وخت دي کله چي تخم د عامل له طرفه وي، لېکن که تخم د ځمکي د مالک له طرفه وي، نو عامل ته په دواړو صورتونو کي اجرت مثلي حاصليږي (يعني په عام بازار کي چي د ده د عمل او کار څومره اُجرت جوړيږي، هغه به ورکول کيږي). (احسن الهدايه)

## د مقروض ربُ الأرض په قرض کي د هغه د ځکمي د نه خرڅولو يو صورت

| |
|---|
| وَلَوْنَبَتَ الزَّرْعُ وَلَمْ يُسْتَحْصَدْ او که چيري کښت شين سوی وي خو [تر اوسه] رېبل سوی نه وي لَمْ تُبَعْ الْأَرْضُ فِي الدَّيْنِ حَتَّى يُسْتَحْصَدَ الزَّرْعُ نو په قرض کي به ځمکه نه خرڅول کيږي تر دې چي کښت ورېبل سي لِأَنَّ فِي الْبَيْعِ إِبْطَالَ حَقِّ الْمُزَارِعِ ځکه په بيع کي د کښتګر د حق باطلول سته وَالتَّأْخِيرُ أَهْوَنُ مِنَ الْإِبْطَالِ او [د بيع] ځنډول له باطلولو څخه زيات آسانه دي وَيُخْرِجُهُ الْقَاضِيْ مِنَ الْحَبْسِ إِنْ كَانَ حَبَسَهُ بِالدَّيْنِ او قاضي به د ځمکي مالک له بنده راباسي که چيري د قرض په وجه يې بندي کړی وي لِأَنَّهُ لَمَّا امْتَنَعَ بَيْعُ الْأَرْضِ ځکه کله چي د ځمکي بيع منع سوه لَمْ يَكُنْ هُوَ ظَالِمًا نو د ځمکي مالک [د ځمکي نه خرڅولو په وجه] ظالم نه سو وَالْحَبْسُ جَزَاءُ الظُّلْمِ او بندي کول خو د ظلم سزا ده. |

**اللغات:** ﴿نبت، يستحصد﴾ د دې وضاحت څه مخکي تېر سو. ﴿أهون﴾ د اسم تفضيل ضيغه ده: زيات سپک. ﴿حبس﴾ د ضرب مصدر دی: بندي کول، راګرځول.

**تشريح: صورت د مسئلې:** دا دی چي کله د عاقدينو تر مېنځ د مزارعت معامله وسوه، تخم وکرل سو او کښت هم راشين سو، بيا د ځمګي پر مالک ډېر قرض ښکاره سو (چي د ځمکي له خرڅولو څخه بغير د هغه اداء کول ناشوني وه)، نو فرمايي چي په دې صورت کي به د کښت د پخېدلو او رېبل کېدلو تر وخته پوري ځمکه نه خرڅول کيږي او مزارعت به نه فسخ کول کيږي؛ ځکه که د کښت له پخېدلو څخه مخکي ځمکه خرڅه کړل سي، نو په دې کي د کښتګر (مزارع) نقصان دی، چي د هغه تخم او زحمت به ضايع سي، او د ځمکي خرڅولو په تأخير کي که څه هم د قرضخواهانو نقصان دی، لېکن د عامل نقصان د هغو تر نقصان زيات دی، او اُصول دا دی چي "إذا اجتمع مفسدتان روعي أعظمهما ضرراً بإرتكاب أخفهما" يعني کله چي دوه نقصانونه سره جمع سي، نو په دې وخت کي به أخف او سپک والا ضرر اختيارول کيږي، نو دلته به هم أخف اختيارول کيږي او د کښت پخېدو او رېبل

بیا که د قرض نه اداء کولو په وجه قاضي د ځمکي مالک بندي کړي وي (لکه څرنګه چي همدا اصول دی چي که مقروض د قدرت باوجود په قرض اداء کولو کي تأخیر کوي، نو قاضي ته دا حق ستنه چي د قرض اداء کولو تر وخته هغه بندیخانې ته واچوي)، نو په دې صورت کي قاضي ته پکار دي چي اوس دا غریب ایله کړي، ځکه کله چي فی الحاله ځمکه خرڅول او قرض په اداء کول مشکل دي، نو هغه د فی الحاله قرض نه اداء کولو په وجه ظالم يعني زیاتوب کونکی نه سو، او بندي کول خو د ظلم و زیاتوب سزا ده او د هغه ظلم ثابت نه دی، لهذا اوس د هغه خوشي کول انصاف دی. (احسن الهدایه)

## له کښت پخېدلو څخه مخکي د مودت مزارعت د ختمېدلو بیان

قَالَ: وَإِذَا انْقَضَتْ مُدَّةُ الْمُزَارَعَةِ وَالزَّرْعُ لَمْ يُدْرِكْ [امام قدوري رَحِمَهُ الله] فرمایي: او کله چي د مزارعت مودت ختم سي او کښت [تر اوسه] رسېدلی نه وي كَانَ عَلَى الْمُزَارِعِ أَجْرُ مِثْلِ نَصِيبِهِ مِنَ الْأَرْضِ إِلَى أَنْ يُسْتَحْصَدَ نو پر کښتګر [عامل] د کښت رېبل کېدلو تر وخته له ځمکي څخه د خپل حصې په مثل اُجرت لازم دی [یا په بله وینا دا چي: له ځمکي څخه د خپلي حصې اُجرتِ مثلي پر کښتګر لازم دی د کښت رېبل کېدلو تر وخته] وَالنَّفَقَةُ عَلَى الزَّرْعِ عَلَيْهِمَا عَلَى مِقْدَارِ حُقُوقِهِمَا او د کښت خرڅ پر دواړو عاقدینو د خپلو حقوقو په اندازه لازم دی [یا په بله وینا دا چي: پر کښت کوم خرڅ کیږي هغه پر دواړو دی، د دوی د حقوقو مطابق] مَعْنَاهُ حَتَّى يُسْتَحْصَدَ د دې مطلب دا دی چي تر دې چي کښت ورېبل سي [يعني د کښت رېبل کېدلو تر وخته اُجرت او پر دواړو خرڅ لازمیږي] لِأَنَّ فِي تَبْقِيَةِ الزَّرْعِ بِأَجْرِ الْمِثْلِ تَعْدِيلَ النَّظَرِ مِنَ الْجَانِبَيْنِ ځکه د اُجرت مثلي په بدله کي د کښت په باقي ساتلو کي له دواړو طرفونو څخه د مصلحت [او شفقت] برابري ده [او له دواړو طرفونو څخه انصاف دی] فَيُصَارُ إِلَيْهِ نو ځکه د همهغه وطرف ته به رجوع کیږي وَإِنَّمَا كَانَ الْعَمَلُ عَلَيْهِمَا لِأَنَّ الْعَقْدَ قَدِ انْتَهَى بِانْتِهَاءِ الْمُدَّةِ او کار [او خرڅ] په دې وجه پر دواړو لازم دی ځکه چي د مودت ختمېدلو په وجه عقد ختم سو وَهَذَا عَمَلٌ فِي الْمَالِ الْمُشْتَرَكِ او [اوس] دا په مالِ مشترک کي کار کول دي وَهَذَا بِخِلَافِ مَا إِذَا مَاتَ رَبُّ الْأَرْضِ وَالزَّرْعُ بَقْلٌ او دا د هغه صورت په خلاف دي کله چي د ځمکي مالک مړ سي او کښت [تر اوسه] اوم وي حَيْثُ يَكُونُ الْعَمَلُ فِيهِ عَلَى الْعَامِلِ ځکه په هغه صورت کي کار پر عامل [بزګر] وي لِأَنَّ هُنَاكَ أَبْقَيْنَا الْعَقْدَ فِي مُدَّتِهِ ځکه چي هلته موږ د عقد تر مودته پوري عقد باقي پرې ایښی دی

وَالْعَقْدُ يَسْتَدْعِي الْعَمَلَ عَلَى الْعَامِلِ او عقد پر عامل د کار تقاضا کوي [يعني عقد دا تقاضا کوي چي کار به عامل او بزګر کوي] أَمَّا هٰهُنَا الْعَقْدُ قَدِ انْتَهٰى او پاته سو دلته خو عقد ختم سوی دی فَلَمْ يَكُنْ هٰذَا إِبْقَاءُ ذٰلِكَ الْعَقْدِ نو دا به د هغه عقد باقي پرېښول نه وي فَلَمْ يَخْتَصَّ الْعَامِلُ بِوُجُوبِ الْعَمَلِ عَلَيْهِ نو ځکه عامل به هم په دې سره مختص نه وي چي کار کول پرې واجب سي [يعني کله چي دلته عقد باقي پاته نه سو، نو پر عامل کار کول هم واجب پاته نه سو] فَإِنْ أَنْفَقَ أَحَدُهُمَا بِغَيْرِ إِذْنِ صَاحِبِهِ وَأَمْرِ الْقَاضِي بيا که له عاقدينو څخه یو څه خرچ وکړي بغير د خپل ملګري له اجازت او د قاضي له حکم څخه فَهُوَ مُتَطَوِّعٌ نو هغه متبرّع دی لِأَنَّهُ لَا وِلَايَةَ لَهُ عَلَيْهِ ځکه چي ده لره پر خپل ملګري ولايت نسته.

**اللغات:** ﴿تبقية﴾ د تفعيل د باب مصدر دی: پاته کول، باقي ساتل او باقي پرېښوول، او همدا د إِبْقَاء معنیٰ ده. ﴿تعديل﴾ مخکنی صيغه ده: برابرول، برابري کول. ﴿يستدعي﴾ د استفعال د باب مضارع ده: تقاضا کول. ﴿متطوع﴾ د تفعّل د باب فاعل دی: احسان کونکی، بلا عوضه (مفت) کار کونکی (چي پر خپل کار هيڅ عوض نه ورته حاصليږي).

**تشريح: صورت د مسئلې:** دا دی چي د دوو کسانو تر مينځ د مزارعت معامله سوه چي په هغو کي د ځمکي مالک مثلاً د پنځو (۵) مياشتو لپاره عامل ته ځمکه ورکړه، او عامل په هغه کي کښتګري وکړه، اوس کښت پوخ سوی او رسېدلی لا نه وو چي پنځه مياشتي بيا پوره سوې او د مزارعت مودت ختم سو، نو په دې صورت کي به څه کيږي؟.

فرمايي چي دلته دوه صورتونه دي: ① يو دا چي کښت فوراً ورېبل سي، ② دويم صورت دا چي د پخېدو تر وخته کښت پرېښوول سي، او په دې دواړو صورتونو کي د عاقدينو ضرر او نقصان دی؛ ځکه که کښت فوراً (تر پخيدو مخکي) ورېبل سي، نو په دې کي د عامل ضرر دی چي د هغه تخم او زحمت به ضايع ولاړ سي، او که د پخېدو تر وخته کښت پرېښوول سي، نو په دې کي د ځمکي د مالک نقصان دی چي ځمکه به له ټاکل سوي مودت څخه زياته مشغوله پاته سي. نو ځکه داسي طريقه به اختيارول کيږي چي نه پکښي د ربُ الأرض نقصان وي او نه د عامل، نو داسي حکم به کيږي چي د مودت زارعت تر ختمېدلو وروسته به کښت خو پرېښوول کيږي لېکن تر هغه وروسته چي څومره وخت کښت پر ځمکه پاته وي، د هغومره وخت به عامل د خپلي حصې په اندازه د ځمکي کرايه ورکوي (مثلاً د مودت مزارعت تر ختمېدلو وروسته د کښت پخېدو ته يوه مياشت پاته وه نو کښت به يوه مياشت پرېښوول کيږي او عامل به د خپلي حصې مطابق د دغه يوې مياشتي أجرت مثلي ورکوي. يعني پ

مزارعت کي چي د عامل څومره حصه ټاکل سوې وي مثلاً که مزارعت پر نصف سوی وي چي نیمه حصه به د عامل وي او نیمه حصه د ځمکي د مالک. نو په دې صورت کي به عامل ديوې میاشتي د اُجرت مثلي نیمه حصه ورکوي؛ ځکه په پیداوار کي د هغه لپاره نیمه حصه ټاکل سوې ده. لهذا د خپل حصې مطابق به ربُ الأرض ته دیوې میاشتي نیمه کرایه ورکوي)، دا د دې لپاره چي هم ربُ الأرض له نقصان او تاوان څخه محفوظ سي او هم عامل.

او څرنګه چي اوس د مودت تر ختمېدلو وروسته عقد مزارعت ختم سو او کبنت د دواړو تر مینځ د مال مشترک په څېر سو، نو ځکه اوس د کار او خرچ ذمه واري پر عامل او ربُ الأرض دواړو ده (د هریوه د حصې مطابق. مثلاً که په مزارعت کي د دواړو نیمه. نیمه حصه وي نو پر دواړو نیم. نیم خرچ لازمیږي، او که دیوه لپاره دوې حصې وي او د بل لپاره یوه [درېیمه] حصه وي، نو د کوم یوه چي یوه حصه وي پر هغه یوه حصه خرچ لازمیږي او د کوم یوه چي دوې وي. پر هغه دوې حصې خرچ لازمیږي)؛ ځکه په مال مشترک کي همداسي کیږي.

وهذا بخلاف رب الأرض إلخ: دا د یو اشکال جواب دی. اشکال دا دی چي کله ربُ الأرض مړ سي او کبنت تر اوسه پوخ سوی (رسېدلی) نه وي، نو په دې صورت کي ولي پر دواړو عاقدینو کار او خرچ نه واجبیږي. بلکي صرف د عامل پر ذمه کار واجب پاتیږي (چي صرف هغه به کار کوي)، آخر د دې څه وجه ده؟.

د دغه اعتراض په جواب کي صاحب د هدایې رَحِمَهُ الله فرمایي چي کله ربُ الأرض مړ سي او کبنت پوخ سوی نه وي، نو په دې وخت کي (د مصلحت په وجه) عقد باقي پرېښوول کیږي او د عقد د بقاء په صورت کي فقط د عامل پر ذمه کار لازم پاتیږي (ځکه په عقد کي همدا شرط لګول سوی دی چي کار به صرف عامل او بزګر کوي). او پاته سو په دغه مذکوره صورت کې خو د مودت ختمېدلو په وجه عقد ختمیږي او کبنت مال مشترک ګرځي، او په مال مشترک کي کار د دواړو طرفونو پر ذمه وي. نو ځکه دلته به هم د دواړو پر ذمه وي او فقط د عامل سره به خاص نه وي.

فإن أنفق إلخ: د دې حاصل دا دی چي که په مذکور صورت کي یو عاقد د بل عاقد له اجازت څخه بغیر همدارنګه د قاضي له حکم څخه بغیر په کبنت یو خرچ وکړي. نو هغه په خپل دغه خرچ کي متبرع او احسان کونکی دی. لهذا هغه ته دا حق نسته چي له خپل ملګري (یعني بل عاقد) څخه د هغه نیم خرچ واخلي؛ ځکه ده ته پر خپل ملګري ولایت نسته او نه ده د قاضي په حکم سره داسي کړي دي چي د قاضي تر ولایت لاندي د ده ملګری هم داخل سي او نیم خرچ اداء کړي. نو ځکه دئ متبرع دی او د نصف اخیستلو حق ورته نسته.

## د پورتنی مسئلې نور وضاحت

وَلَوْ أَرَادَ رَبُّ الْأَرْضِ أَنْ يَأْخُذَ الزَّرْعَ بَقْلًا او که چیري د ځمکي مالک د اُومه [نارسېدلي] کبنت اخیستل وغواړي لَمْ يَكُنْ لَهُ ذٰلِكَ نو هغه ته د دې اختیار نسته لِأَنَّ فِيهِ إِضْرَارًا بِالْمُزَارِعِ ځکه چي په دې کي کبنتګر ته نقصان رسیږي وَلَوْ أَرَادَ الْمُزَارِعُ أَنْ يَأْخُذَهُ بَقْلًا او که چیري کبنتګر د اُومه کبنت

اخیستل وغواړي قِيْلَ لِصَاحِبِ الْأَرْضِ: اِقْلَعِ الزَّرْعَ فَيَكُونُ بَيْنَكُمَا نو د ځمکي مالک ته به ویل کیږي: ① چي [دا نارسېدلی] کښت وربه چي هغه به ستاسي دواړو تر مینځ مشترک وي أَوْ أَعْطِهِ قِيمَةَ نَصِيْبِهِ ② یا کښتګر ته د خپل حصې قیمت ورکړه أَوْ أَنْفِقْ أَنْتَ عَلَى الزَّرْعِ وَارْجِعْ بِمَا تُنْفِقُهُ فِي حِصَّتِهِ. ③ یا ته خپله پر کښت خرچ کوه او د کښتګر په حصه کي چي ته کوم خرچ وکړې هغه واپس ځني واخله لِأَنَّ الْمُزَارِعَ لَمَّا امْتَنَعَ مِنَ الْعَمَلِ ځکه کښتګر چي کله له کار کولو ځخه منع سي لَا يُجْبَرُ عَلَيْهِ نو پر هغه پر کار کولو نه مجبورول کیږي لِأَنَّ إِبْقَاءَ الْعَقْدِ بَعْدَ وُجُودِ الْمُنْهِيِّ نَظَرٌ لَهُ ځکه چي د عقد د ختمونکي شي تر موجودېدلو وروسته د عقد باقي پرېښوول د کښتګر د مصلحت لپاره وه [یا په بله وینا دا چي د عقد مزارعت تر ختمېدلو وروسته هغه باقي ساتل د کښتګر د فایدې لپاره وه] وَقَدْ تَرَكَ النَّظَرَ لِنَفْسِهِ حال دا چي هغه خپله د خپل ځان [فایده او] مصلحت پرېښوولی وَرَبُّ الْأَرْضِ مُخَيَّرٌ بَيْنَ هٰذِهِ الْخِيَارَاتِ لِأَنَّ بِكُلِّ ذٰلِكَ يُسْتَدْفَعُ الضَّرَرُ او د ځمکي مالک ته [په دې وجه] د دغه دریو اختیاراتو تر مینځ اختیار ورکول سوی دی ځکه چي په دې هر یوه سره هغه ضرر دفع کولای سي.

**اللغات:** ﴿بقل﴾ شین، زرغون، مراد: اُوم نارسېدلی کښت، ﴿اِقلع﴾ د فتح له بابه د واحد مذکر امر حاضر صیغه ده: کاږل، له خپل ځایه لیري کول، ﴿مُنهِی﴾ او مُنهٖی دواړه ویل کېدای سي اول د افعال له بابه د فاعل صیغه ده او دویم د تفعیل له بابه چي د دواړو معنیٰ ده: انتهاء ته رسونکی، پوره کونکی، ختمونکی، ځکه چي د موت ختمېدل مزارعت ته انتهاء ته رسوي او ختموي یې.

**تشریح: صورت د مسئلې:** دا دی چي کښت تر اوسه پوخ سوی (رسېدلی) نه دی او مودت مزارعت ختم سو، اوس که د ځمکي مالک د دغه اُوم کښت تقسیمول او اخیستل غواړي (مثلاً عامل ته وایي چي زه په همدغه اُوم حالت کي کښت او پیداوار ربېم چي له هغه ځخه به ما او تا خپل تاکل سوې حصه اخلو)، نو هغه ته د دې حق او اختیار نسته؛ ځکه د هغه په دې فعل کي د کښتګر (عامل) نقصان دی چي زحمت وغیره به یې ضایع ولاړ سي، لېکن که خپله کښتګر د اُوم کښت اخیستل وغواړي، نو هغه ته د دې اختیار سته او په دې صورت کي د ځمکي مالک ته درې اختیارات حاصلیږي چي هر یو وغواړي هغه دي اختیار کړي:

① ... یو دا چي هغه دي د کښتګر (عامل) د خوښۍ مطابق دا اُوم نارسېدلی کښت وربېي او په خپل مینځ کي دي یې تقسیم کړي.

②... دويم دا چي ټوله کښت دي خپله واخلي او د کښتګر د حصې موجوده قيمت دي ورکړي (يعني په غه اُوم او نارسېدلي حالت کي چي د کښتګر د حصې څومره قيمت جوړېږي، هغه دي ورکړي).

③... او درېيم اختيار دا دي چي کښت دي پر خپل حال پرېږدي او پر کښت چي څومره خرچ راسي هغه دي له خپل جېبه اداء کړي (يعني کوم خرچ چي د کښتګر په حصه کي راځي هغه دي هم خپله اداء کړي)، او بيا چي کښت او پيداوار ورسيږي، نو د کښتګر د حصې څومره خرچ چي ده اداء کړی وي، هغه دي له پيداوار څخه واخلي او پاته پيداوار دي کښتګر ته ورکړي.

او دا درې اختيارات ځکه ورته سته چي کله کښتګر (عامل) له کار کولو څخه انکار وکړی، نو هغه پر کار کولو نه مجبورول کيږي؛ ځکه د منهي تر موجودېدلو وروسته يعني تر مودت ختمېدلو وروسته خو عقد ختميږي، لېکن د کښتګر د مصلحت اوفايدې په خاطر هغه باقي پرېښوول کيږي، لېکن اوس چي کله خپله هغه خپل مصلحت او فايده نه غواړي، نو ځکه عقد ختميږي، او ځمکي والا ته د هغه د فايدې لپاره درې اختيارات حاصليږي کوم چي پورته ذکر سول، او دا ځکه ورته حاصليږي چي په دې اختياراتو کي د هريوه په اختيارولو سره د ځمکي مالک او عامل دواړه له ضرر او نقصان څخه خوندي کېدای سي.

## له کښت پخېدلو څخه مخکي د عامل (کښتګر) د وفات کېدلو حکم

وَلَوْمَاتَ الْمُزَارِعُ بَعْدَ نَبَاتِ الزَّرْعِ او که له کښت راشنه کېدو څخه وروسته کښتګر مړ سي فَقَالَتْ وَرَثَتُهُ: نَحْنُ نَعْمَلُ إِلَى أَنْ يُسْتَحْصَدَ الزَّرْعُ نو د هغه وارثان ووايي: چي [اوس د هغه پر ځای] موږ کار کوو تر دې چي کښت ورېبل سي وَأَبَى رَبُّ الْأَرْضِ او د ځمکي مالک انکار وکړی فَلَهُمْ ذٰلِكَ نو وارثانو ته د دې اختيار سته لِأَنَّهُ لَا ضَرَرَ عَلَى رَبِّ الْأَرْضِ ځکه چي د ځمکي د مالک [په دې کي] هيڅ ضرر نسته وَلَا أَجْرَ لَهُمْ بِمَا عَمِلُوا او وارثانو لره د هغو د کار کولو په عوض کي هيڅ اُجرت نسته لِأَنَّا أَبْقَيْنَا الْعَقْدَ نَظَرًا لَهُمْ ځکه چي موږ د هغو د مصلحت لپاره عقد باقي پرې ايښی دی فَإِنْ أَرَادُوا قَلْعَ الزَّرْعِ بيا که وارثان د [اُومه] کښت رېبل وغواړي لَمْ يُجْبَرُوا عَلَى الْعَمَلِ نو هغوی به پر کار کولو نه مجبورول کيږي لِمَا بَيَّنَّا د هغه دليل په وجه کوم چي موږ بيان کړی وَالْمَالِكُ عَلَى الْخِيَارَاتِ الثَّلَاثِ او [په دې صورت کي] د ځمکي مالک ته [هماغه] درې اختيارات دي [کوم چي مخکي ذکر سول] لِمَا بَيَّنَّا د هغه دليل په وجه کوم چي موږ بيان کړی.

**اللغات:** ﴿مزارع﴾ د مفاعلې د باب فاعل دی: کښتګر، د کښت کار کونکی. ﴿أَبیٰ﴾ د فتح د باب ماضي ده: انکار کول.

**تشريح: صورت د مسئلې:** دا دی چې د مزارعت له معاملې کولو څخه وروسته عامل تخم وکری او کښت راشین سو، لېکن تر اوسه پوخ سوی او رسېدلی نه وو چې عامل (کښتګر) مړ سو، او د عامل وارثان د کښت پخېدلو تر وخته د عامل پر ځای کار کولو ته تیار سول، نو هغو ته به د کار کولو اجازت ورکول کیږي، که څه هم د ځمکي مالک په دې ناخوښه وي او انکار وکړي؛ ځکه څرنګه چې د عامل د کار کولو په صورت کې د ځمکي د مالک نقصان نه وو بلکي د دواړو فایده وه، همداسي کله چې د عامل وارثان کار کوي، نو په دې کي هم د هغه هیڅ نقصان نسته بلکي کله چې کښت ورسیږي نو دواړو ته به فایده حاصله سي.

خو وارثان چې کوم د عامل پر ځای کار کوي، هغو ته د دې هیڅ أجرت نه حاصلیږي (یعني د دې کار په عوض کي به هیڅ أجرت او حق الزحمه نه ورکول کیږي)، ځکه د عامل په مرګ سره خو عقد ختم سو. مګر د هغو د رعایت او فایدې په خاطر د کښت پخېدلو تر وخته هغه باقي پرېښوول سو. لهذا هغو ته د خپل مورث "عامل" حصه خو حاصلیږي، لېکن د خپل کار او عمل په بدله کي هیڅ هم نه ورته حاصلیږي.

او که د عامل تر مرګ وروسته وارثان وغواړي چې همدا نارسېدلی اُوم کښت وربېي او تقسیم یې کړي او کار کول نه غواړي، نو هغو ته د دې اختیار سته؛ ځکه چې دا عقد مزارعت د همدوی د مصلحت او فایدې په خاطر پرېښوول سوی وو، اوس دوی خپله د هغه ختمول غواړي او د خپل مصلحت په ختمولو راضي دي. لهذا اوس دوی پر کار کولو نه سي مجبورول کېدای. او په دې صورت کي هم د ځمکي مالک ته هماغه درې اختیارات حاصلیږي کوم چې څه مخکي بیان سول. (احسن الهدایه)

## د کښت اضافي خرچونه او لګښتونه پر دواړو د خپل حصو په اندازه لازم دي

قَالَ: وَكَذٰلِكَ أُجْرَةُ الْحَصَادِ وَالرِّفَاعِ وَالدِّيَاسِ وَالتَّذْرِيَةِ عَلَيْهِمَا بِالْحِصَصِ فرمايي: او همدارنګه دلو کولو، درمند ځای ته دوړلو، غوبل کولو او د غلې بادولو [صفا کولو] أجرت پر دوی دواړو دی د خپلو حصو مطابق فَإِنْ شَرَطَاهُ فِي الْمُزَارَعَةِ عَلَى الْعَامِلِ نو که دوی په مزارعت کي دا أجرت پر عامل [بزګر] شرط کړي فَسَدَتْ نو مزارعت فاسدیږي وَهٰذَا الْحُكْمُ لَيْسَ بِمُخْتَصٍّ بِمَا ذَكَرَ مِنَ الصُّوْرَةِ وَهُوَ انْقِضَاءُ الْمُدَّةِ وَالزَّرْعُ لَمْ يُدْرِكْ او دغه حکم [یعني پر دواړو أجرت لازمېدل] صرف د مذکوره صورت یعني چې مودت تېر سوی وي او کښت تر اوسه پوخ سوی نه وي سره خاص نه دی بَلْ هُوَ عَامٌّ فِي جَمِيعِ الْمُزَارَعَاتِ بلکي دا په ټولو مزارعاتو کي عام دی [هر مزارعت لره شامل دی] وَوَجْهُ ذٰلِكَ أَنَّ الْعَقْدَ

يَتَنَاهٰى بِتَنَاهِي الزَّرْعِ لِحُصُولِ الْمَقْصُودِ او د دې وجه دا ده چې د کښت په رسېدو [پخېدو] سره عقد هم رسيږي [ختميږي] فَيَبْقَى مَالٌ مُشْتَرَكٌ بَيْنَهُمَا وَلَا عَقْدَ نو د عاقدينو تر مينځ مال مشترک پاتېږي په داسې حال کې چې [د دوی تر مينځ] عقد نسته فَيَجِبُ مُؤْنَتُهُ عَلَيْهِمَا نو ځکه د هغه خرڅ [او مصرف] به پر دواړو لازم وي.

**اللغات:** ﴿حصاد﴾ لو کول، فصل رېبل (کښت رېبل). ﴿رِفَاع﴾ او رَفَاع: فصل او پيداوار له رېبولو څخه وروسته درمندځای ته وړل (ځکه کله چې فصل مثلاً غنم لو کړل سي [ورېبل سي] او سره جمع کړل سي چې هغه ته درمند وايي، نو بيا د پاکولو او مېده کولو لپاره بل ځای ته وړل کيږي چې هغه ته درمندځای او په عربي کې ورته بَيْدَر او داسې نور وايي، همدغه وړلو او منتقل کولو ته رِفَاع ويل کيږي. ﴿دِياس﴾ غوبل کول، له وږو څخه دانې (يعني غنم او داسې نور) را ايستل. ﴿تذرية﴾ د تفعيل د باب مصدر دی: درمند بادول (لونل)، غله پورته غورځول چې د باد په ذريعه پروړ ځني جلا سي، د باد په ذريعه دانې له پروړو څخه جلا کول. ﴿يتناهٰى﴾ د تفاعل د باب مضارع ده: انتهاء ته رسېدل، مراد: د کښت پخېدل.

**تشريح: مسئله:** دا ده چې څرنګه د کښت تر پخېدلو مخکې د مودت مزارعت د ختمېدلو په صورت کې د کښت باقي پرېښوولو خرڅه پر دواړو عاقدينو ده، همدارنګه کله چې کښت پوخ او تيار سي، نو تاسي ته معلومه ده چې په دې سره هم مزارعت ختميږي، او کله چې مزارعت ختم سي، نو بيا کار او خرڅ پر دواړو وي، لهذا اوس د کښت رېبلو او لو کولو اُجرت د دواړو پر ذمه دی او بيا درمندځای ته د هغه راوړل هم د دواړو کار دی، که يې خپله راوړي يا مزدوران نيسي، همدارنګه د غوبل کولو او د غلې بادولو اُجرت هم د دواړو پر ذمه دی، نن سبا خو د غوبل او داسې نورو رواج ختم سوی دی هر کار په مشين سره کيږي چې د هغه په ذريعه په ډېر آسانه او صفا توګه پروړ او غله سره جلا کيږي.

او که په عقد مزارعت کې دا شرط ولګول سي چې لو کول او داسې نور به يوازې د عامل پر ذمه وي، څرنګه چې دا شرط د عقد د مقتضاء خلاف دی، او په داسې شرطونو سره عقد فاسديږي.

او دا حکم صرف د مذکوره صورت سره خاص نه دی، بلکې په نورو مزارعاتو کې هم که د لو کولو او داسې نورو اُجرت يوازې د يوه پر ذمه وټاکل سي، نو په دې سره عقد فاسديږي: ځکه کله چې کښت پوخ او تيار سو، نو عقد مزارعت هم ختم سو، ځکه د عقد مقصود حاصل او پوره سو. لهذا د عقد تر ختمېدلو وروسته دا پوخ فصل او کښت د عاقدينو تر مينځ د مال مشترک په درجه کې سو، او تر مال مشترک لاندې راتلونکي هر کار د عاقدينو تر مينځ مشترک وي، نو د مذکوره شيانو اُجرتونه او لګښتونه به هم د دوی تر مينځ د دوی د حصو په اندازه مشترک وي.

## په عقد مزارعت کې د عقد د مقتضا خلاف شرط لګولو تفصيل

وَإِذَا شُرِطَ فِي الْعَقْدِ ذٰلِكَ وَلَا يَقْتَضِيهِ او کله چې په عقد کې هغه [يعني حصاد (لو کول) او داسې نور] شرط کړې سي حال دا چې عقد د هغه تقاضا نه کوي وَفِيهِ مَنْفَعَةٌ لِأَحَدِهِمَا او په هغه کې د يوه عاقد نفع وي يَفْسُدُ الْعَقْدُ نو عقد مزارعت فاسديږي كَشَرْطِ الْحَمْلِ أَوِ الطَّحْنِ عَلَى الْعَامِلِ لکه [د پيداوار] د وړلو او ميده کولو شرط چې پر عامل وي وَعَنْ أَبِي يُوسُفَ أَنَّهُ يَجُوزُ إِذَا شَرَطَ ذٰلِكَ عَلَى الْعَامِلِ او له امام ابو يوسف رَحِمَهُ الله څخه روايت سوی دی چې که پر عامل هغه [حصاد او داسې نور] شرط کړې سي نو جائز دي اِعْتِبَارًا بِالِاسْتِصْنَاعِ پر استصناع په قياس کولو سره وَهُوَ اخْتِيَارُ مَشَايِخِ بَلْخٍ او همدا د بلخ د مشايخو اختيار سوی قول دی قَالَ شَمْسُ الْأَئِمَّةِ السَّرَخْسِيُّ: هٰذَا هُوَ الْأَصَحُّ فِي دِيَارِنَا شمس الائمه سرخسي رَحِمَهُ الله فرمايي: چې زموږ په علاقو کې همدغه قول زيات صحيح دی.

**اللغات:** ﴿حمل﴾ د ضرب مصدر دی: پورته کول، وړل او باروول. ﴿طحن﴾ د فتح مصدر دی: ميده کول (اوړه کول).

**تشريح: مسئله:** دا ده که په عقد مزارعت کې يو داسې شرط ولګول سي کوم چې د عقد د مقتضاء خلاف وي او په هغه کې د يوه عاقد فايده هم وي، نو د ظاهر روايت مطابق داسې شرط مزارعت باطلوي، لکه دا شرط چې ولګول سي چې د پيداوار (مثلاً د حاصل سوو غنمو) د راوړلو او د ميده کولو ذمه واري پر عامل ده، نو څرنګه چې دا شرط د مقتضاء عقد خلاف دی او په دې کې د ځمکې د مالک (ربُّ الأرض) فايده هم ده، نو ځکه په دې سره مزارعت فاسديږي.

حضرت امام ابو يوسف رَحِمَهُ الله فرمايي چې څرنګه په اډر (فرمايش) د يو شي جوړولو معامله او د هغه راغوښتل او را وړل صحيح دي، همداسې که مذکور شرطونه يوازې د عامل پر ذمه ولګول سي، نو مزارعت هم صحيح کيږي، د بلخ مشايخو همدغه قول اختيار کړی دی او شمس الائمې سرخسي رَحِمَهُ الله هم دا قول د خپلو علاقو لپاره غوره ګڼلی دی، او همدا مفتیٰ به قول دی.

## د کښت د خرچونو او لګښتونو نور وضاحت

فَالْحَاصِلُ أَنَّ مَا كَانَ مِنْ عَمَلٍ قَبْلَ الْإِدْرَاكِ كَالسَّقْيِ وَالْحِفْظِ نو خلاصه دا چې کوم کار د کښت تر رسېدلو [پخېدلو] مخکې والا وي مثلاً کښت اوبول [اوبه ورکول] او پالنه يې کول فَهُوَ عَلَى الْعَامِلِ نو هغه پر عامل دی وَمَا كَانَ مِنْهُ بَعْدَ الْإِدْرَاكِ قَبْلَ الْقِسْمَةِ او کوم چې د کښت تر رسېدلو وروسته او

تر تقسیم مخکې والا کار وي فَهُوَعَلَيْهِمَافِي ظَاهِرِالرِّوَايَةِ نو د ظاهر روایت مطابق هغه پر دواړو دی كَالْحَصَادِوَالدِّيَاسِ وَأَشْبَاهِهِمَا لکه لوول [کنبت ربېل] غو بلول او داسې نور عَلٰى مَا بَيَّنَّاهُ لکه څرنګه چې مونږ بیان کړه وَمَا كَانَ بَعْدَالْقِسْمَةِ او کوم کار چې تر تقسیم وروسته وي فَهُوَعَلَيْهِمَا نو هغه هم پر دواړو دی وَالْمُعَامَلَةُ عَلٰى قِيَاسِ هٰذَا او مساقات هم پر دغه قیاس دی [یعني د درختو او بوټو د معاملې هم دغه حکم دی] مَا كَانَ قَبْلَ إِدْرَاكِ الثَّمَرِ مِنَ السَّقْيِ وَالتَّلْقِيحِ وَالْحِفْظِ چې کوم کار د میوې تر رسېدلو [پخېدلو] مخکې وي یعني درختې اوبول [اوبه ورکول] او پېوندکاري کول او پالنه یې کول فَهُوَعَلَى الْعَامِلِ نو هغه پر عامل دی وَمَا كَانَ بَعْدَ الْإِدْرَاكِ كَالْجِدَادِوَالْحِفْظِ او کوم چې د میوې له رسېدلو څخه وروسته وي لکه مېوه شکول او پالنه یې کول فَهُوَعَلَيْهِمَا نو هغه د دوی دواړو پر ذمه دی.

**اللغات:** ﴿سقی﴾ د ضرب مصدر دی: اوبه کول، اوبه ورکول. ﴿حفظ﴾ د سمع مصدر دی: حفاظت او پالنه کول. ﴿تلقیح﴾ د تفعیل مصدر دی: پېوندکاري، د خرما وغیره په درختو کې نر او ماده سره پېوندول. ﴿الجِداد﴾ و الجَداد (بالکسر والفتح، و بالدال وبالذال یعني جذاذ هم ویل کېدای سي): خرما او مېوه راشکول.

**تشریح:** په دې عبارت کې صاحب د هدایې رَحِمَهُ الله د استحضارِ ذهن لپاره د مخکینیو مسئلو خلاصه بیانوي چې د ظاهر روایت مطابق د اعمالو او کارونو درې صورتونه دي، برابره ده د مزارعت وي او که د مساقات وي: ① هغه کار کوم چې د کښت یا مېوې تر پخېدلو او رسېدلو مخکې والا پړاو کې کیږي، مثلاً اوبه کول (اوبه ورکول)، ساتنه او پالنه او داسې نور، داسې کارونه یوازې د عامل پر ذمه دي (د بزګر په غاړه دي). ② هغه کار کوم چې د کښت یا مېوې تر پخېدلو وروسته والا پړاو سره متعلق دی، هغه د عاقدینو تر مینځ مشترک دي، مثلاً لو کول او ربېل، د مېوو شکول او داسې نور. ③ هغه کار کوم چې د پیداوار (غلې یا مېوې) له وېشلو او تقسیمولو څخه وروسته کیږي، هغه هم د عاقدینو تر مینځ مشترک دي، مثلاً پیداوار بل ځای ته وړل، میده کول او داسې نور.

نو اوس چې په دې هر صورت کې کار د کوم یوه پر ذمه دی، که په هغه کې د بل یوه پر ذمه د کار شرط ولګول سي یا په مشترک والا صورت کې یوازې د یوه پر ذمه د کار شرط ولګول سي، څرنګه چې داسې شرط د مقتضاء عقد خلاف دی، نو ځکه په دې سره مزارعت فاسدیږي.

## که د مېوې شکول يوازې پر عامل شرط کړی سي

وَلَوْ شَرَطَ الْجِدَادُ عَلَى الْعَامِلِ او که چيرې [يوازې] پر عامل د مېوې شکول شرط کړی سي لَا يَجُوزُ بِالِاتِّفَاقِ نو دا بالاتفاق جائز نه دي لِأَنَّهُ لَا عُرْفَ فِيهِ ځکه په دې کې هيڅ عرف نسته وَمَا كَانَ بَعْدَ الْقِسْمَةِ او کوم کار چې تر تقسيم وروسته وي فَهُوَ عَلَيْهِمَا نو هغه پر دوی دواړو دی لِأَنَّهُ مَالٌ مُشْتَرَكٌ وَلَا عَقْدَ ځکه چې دا مشترک مال دی او عقد نسته وَلَوْ شَرَطَ الْحَصَادُ فِي الزَّرْعِ عَلَى رَبِّ الْأَرْضِ او که په کښت کې د ځمکې پر مالک لو کول [د کښت رېبل] شرط کړل سي لَا يَجُوزُ بِالْإِجْمَاعِ نو دا بالاتفاق جائز نه دي لِعَدَمِ الْعُرْفِ فِيهِ ځکه چې په دې کې عرف نسته وَلَوْ أَرَادَا قَصْلَ الْقَصِيلِ او که عاقدَين د اُومه کښت د رېبلو اراده وکړي أَوْ جَدَّ التَّمْرِ بُسْرًا يا د نيم پخته خرماوو د شکولو أَوْ الْتِقَاطَ الرُّطَبِ يا د تازه پخو خرماوو د را اخيستلو [اراده وکړي] فَذَلِكَ عَلَيْهِمَا نو دا کار پر دوی دواړو دی لِأَنَّهُمَا أَنْهَيَا الْعَقْدَ لَمَّا عَزَمَا عَلَى الْقَصْلِ وَالْجِدَادِ بُسْرًا ځکه چې دوی دا عقد ختم کړی کله چې يې د اُومه کښت رېبلو او د نيم پخته خرماوو د شکولو اراده وکړه فَصَارَ كَمَا بَعْدَ الْإِدْرَاكِ نو داسي سو لکه تر پخېدلو وروسته [چې د رېبلو او شکولو اراده وکړي].

**اللغات**: ﴿قصل﴾ د ضرب مصدر دی، د دې باب څو معناوې دي چې له هغوی څخه يوه ده: پرېکول، رېبل، ﴿قصيل﴾ د دې لفظ څو معناوې نقل سوي دي: ① خسيل (يعني د شنو غنمو او شنو اوربشو رېبل سوې برخه کوم چې څارويو ته ورکول کيږي)، ② خو د فقهاؤ په اصطلاح کې تصيل هر هغه کښت ته وايي کوم چې تر اوسه رسېدلی (پوخ سوی) نه وي يعني اُوم کښت (مصباح اللغات)، همداسي په حاشيه کې هم ليکل سوي دي: يُقال لكلّ زرعٍ بعد النبات قبل الإدراك. ﴿بُسر﴾ تر پخېدلو مخکي خرما ته "بسر" وايي، نيم پخته خرما، يعني خرما چې کله جوړه سي لېکن تر اوسه لا کوچنۍ وي او رسېدلې نه وي نو دا "بُسر" خرما ده. ﴿التقاط﴾ د افتعال د باب مصدر دی: را اخيستل، چاڼول. ﴿رطب﴾ تازه (خيشته) خرما.

**تشريح**: مخکي ذکر سوه چې کوم کار د کښت يا ميوې تر پخېدو وروسته کيږي، هغه د دواړو عاقدينو پر ذمه دی. لېکن که داسي کار يوازې د عامل (بزګر) پر ذمه شرط کړی سي، نو بالاتفاق جائز نه دی. په ظاهر روايت کې خو په دې وجه چې دا د کښت تر پخېدو وروسته والا عمل دی چې په

هغه کي د دواړو عاقدينو اشتراک ضروري دی، او د امام ابو يوسف رَحِمَهُ الله په نيز په دې وجه جائز نه دی چي يوازي ديوه کس د مېوې شکولو عرف نسته.

وماكان بعد القسمة إلخ: دا صورت مخکي ذکر سو چي هغه کار کوم چي د پيداوار (غلې يا مېوې) له وېشلو او تقسيمولو څخه وروسته کيږي، هغه هم د عاقدينو تر مينځ مشترک دی يعني د دواړو عاقدينو پر ذمه دی، مثلاً پيداوار بل ځای ته وړل، ميده کول او داسي نور؛ ځکه چي دا مالِ مشترک دی.

**سوال:** مصنف رَحِمَهُ الله تر وېشولو او تقسيمولو وروسته والا پيدوار ته مالِ مشترک ويلي دي. حال دا چي اوس اشتراک نسته؟.

**جواب:** دې ته په اعتبار د "ماكان عليه" مشترک ويل سوي وي (کوم چي د مجاز له څلورويشتو علاقو څخه يو علاقه ده)، ځکه تر تقسيم وروسته هم د پيداوار ټوله مجموعه د دوی دواړو ده، مثال يې داسي دی چي په يو ځمکه کي د څو خلګو جلا، جلا حصه وي، نو بيا هم دا ويل کيږي چي دوی ټوله په دې ځمکه کي شريکان دي.

ولوشرط إلخ: د دې حاصل دا دی چي په کښت کي د لَوْ او رېبلو پر او د کښت تر پخېدو وروسته راځي، چي داسي کار د دواړو پر ذمه لازم وي لهذا که يوازي د ربُ الأرض پر ذمه د لَوْ او رېبلو کار شرط کړی سي، نو دا هم جائز نه دي، او دليل هغه د مېوې شکولو والا دی کوم چي اوس تېر سو.

ولوأراد إلخ: د دې حاصل دا دی چي که دواړه عاقدين له پخېدو او رسېدو څخه مخکي د کښت يا مېوې د پرېکولو او شکولو اراده وکړي (يا په بله وينا دا چي د اومه کښت او مېوې پرېکول وغواړي)، نو اوس به کوم يو دا کار کوي؟، فرمايي چي کوم حکم تر پخېدلو وروسته دی، هاغه حکم دلته هم دی، يعني دا کارونه (رېبل، پرېکول او شکول) د دواړو پر ذمه دي؛ ځکه کله چي دوی دا اراده وکړه، نو ګواکي عقد مزارعت او عقد مساقاة ختم سو، لکه د کښت او مېوې تر پخېدو وروسته چي ختميږي، او مخکي ذکر سوه چي د عقد تر ختمېدو وروسته به کار د دواړو پر ذمه وي، نو همداسي به دلته هم د دواړو پر ذمه وي.

❀❀❀

# كِتَابُ الْمُسَاقَاةِ

## (دا) فصل په (بيان د) مساقات کې دی

**تشريح**: مُسَاقَاة له سَقْيٌ څخه مشتق دی چې ذهغه معنیٰ ده: اُوبښول، اوبه ورکول. اصطلاحي معنیٰ يې ده: باغ او درختې يو چا ته د حفاظت (پالنې) او اُوبولو لپاره ورکول او په اُجرت کې يې مېوه تاکل. مثلاً د بالغ مالک يو مزدور ونيسي او ورته ووايي چې ته زما دغه باغ ته اوبه ورکوه او حفاظت يې کوه او کله چې دا مېوه وکړي له هغه څخه به دومره حصه ستا وي، همدې ته مساقات وايي.

علامه عيني رَحِمَهُ الله وايي چې که څه هم مساقات په حديث شريف سره ثابت دی (لکه مخکې چې ذکر سوه) او زياتره علماء د مساقات د جواز قائل دي (نو بايد مساقات تر مزارعت مخکې سوي وای)، خو څرنګه چې مزارعت زيات واقع، کيږي نو هغه ته ضرورت زيات دی همدارنګه د مزارعت احکامِ فرعيه او تفريعات هم زيات دي (د مساقات په نسبت)، نو ځکه اول مزارعت او تر هغه وروسته بيا مساقات بيان سوی دی.

### د مساقاة شرعي حيثيت

قَالَ أَبُوْحَنِيْفَةَ: اَلْمُسَاقَاةُ بِجُزْءٍ مِنَ الثَّمَرِ بَاطِلَةٌ امام صاحب رَحِمَهُ الله فرمايي: د مېوې [مېوو] په يو حصه سره مساقات کول باطل دي وَقَالَا*: جَائِزَةٌ او صاحبين رَحِمَهُمَا الله فرمايي: جائز دی [هغه وخت إذا ذُكر...] إِذَا ذُكِرَ مُدَّةٌ مَعْلُوْمَةٌ کله چې يو معلوم مودت ذکر کړی سي وَسُمِّيَ جُزْءٌ مِنَ الثَّمَرِ مُشَاعًا او د مېوې [مېوو] يو حصه د شيوع په توګه متعيّنه کړل سي [يا په بله وينا دا چې (د عامل لپاره) د ميوې يو جزءِ شائع (شائع حصه) وټاکل سي، لکه د رېيمه حصه، يا څلورمه او داسې نور، داسې حصې ته جزء شائع وايي، وجه د تسميه يې مخکې تېر سوې ده] وَالْمُسَاقَاةُ هِيَ الْمُعَامَلَةُ او مساقات همدا د درختو معامله ده [چې د اهل مدينې په لغت کې "معامله" ورته وايي، او د کښتګرۍ معاملې ته مزارعت وايي]

* القول الراجح: قول الصاحبين رَحِمَهُمَاالله، كما مرّ فى المزارعة، و كما ذكر فى مجمع الأنهر: يفتىٰ علىٰ صحتها (ج:۲، ص:۱۴۸)، وفى الهندية: وعندهما جائزة إذا ذكر مدة معلومة وسمى جزءا مشاعاً، والفتوىٰ على أنه تجوز و إن لم يبين المدة كذا فى السراجية (الهندية ج:۵، ص:۲۷۸). [القول الراجح ج:۲، ص:۲۸۶]

وَالْكَلَامُ فِيْهَا كَالْكَلَامِ فِي الْمُزَارَعَةِ او خبره [اختلاف] په مساقات کي د مزارعت د خبري [اختلاف] په څېر دی [يعني په مساقات کي هم داسي اختلاف دی لکه په مزارعت کي چي وو].

**اللغات:** ﴿بجزء الثمر﴾ د مېوې په يو جزء او حصه سره، مثلاً درېيمه حصه يا څلورمه حصه چي دې ته جزء شائع هم وايي، د مساقات يو صورت خو دا دی چي عامل (يعني د باغ اوبه کونکي او پالونکي) ته په اُجرت کي دراهم يا دنانير ورکول سي يا د شکول سوي (حاصلي کړل سوي) مېوې څه حصه ورکول سي، دا خو جائز دی، او بل صورت يې دا دی چي عامل ته په اول کي وويل سي چي دا باغ چي هرڅومره مېوه وکړي له هغه څخه مثلاً درېيمه يا څلورمه حصه ستا ده (يعني د عامل په اُجرت کي د مېوې جزءِ شائع وټاکل سي)، نو دا د امام صاحب رَحِمَهُ الله په نيز باطل دی، او د صاحبينو په نيز جائز دی.

**تشريح:** د عبارت حاصل دا دی چي د امام صاحب رَحِمَهُ الله په نيز مساقات باطل دی که څه هم د عامل لپاره د مېوې جزءِ شائع (مثلاً درېيمه يا څلورمه حصه) متعينه کړل سي، لنډه دا چي د مزارعت په څېر مساقات هم د امام صاحب رَحِمَهُ الله په نيز باطل دی

او د صاحبينو رَحِمَهُمَا الله په نيز که د مساقات موده معلوم سي او د مېوې جزء شائع متعين کړل سي، نو د مساقات په جواز کي هيڅ شبهه نسته.

د امام صاحب رَحِمَهُ الله دليل هماغه دی کوم چي په مزارعت کي تېر سو چي حاصل يې داسي راځي چي په مساقات کي هم د مزارعت په څېر د پيداوار پر څه حصې معامله کيږي يعني په اُجرت کي د مېوې بعضي حصه ورکول کيږي، او پيداوار نا معلومه دی چي وبه سي او که نه، او که وسي نو مقدار يې مجهول دی چي څومره پيداوار به وسي، لنډه دا چي په مساقات کي ورکول کېدونکی اُجرت يا مجهول المقدار دی يا ګرسره معدوم دی، او دا دواړه صورتونه صحيح نه دي، نو مساقات به له کومه صحيح سي!.

صاحبينو رَحِمَهُمَا الله د خلکو د ضرورت او حاجت پر بناء مساقات جائز ګرځولی دی، همدا مفتیٰ به قول دی او پر همدې د خلکو عمل هم دی. او ځرنګه چي مساقات د مزارعت او اجارې په څېر دی او په دې دواړو کي د مودت بيانول ضروري دي، نو ځکه په مساقات کي هم د مودت بيانول مشروط دی. او ځرنګه چي مساقات يو ډول عقد شرکت دی، نو ځکه د مېوې جزءِ شائع متعينول هم ضروري دي، د دې لپاره چي دا عقد مفضي إلى النزاع نه سي، په دې وجه صاحبينو رَحِمَهُمَا الله په همدې دوو شرطونو سره مساقات جائز ګرځولی دی.

## د مساقات او مزارعت په هکله د امام شافعي رَحِمَهُ الله مذهب او دليل

وَقَالَ الشَّافِعِيُّ : اَلْمُعَامَلَةُ جَائِزَةٌ وَلَا تَجُوْزُ الْمُزَارَعَةُ إِلَّا تَبْعًا لِلْمُعَامَلَةِ او امام شافعي رَحِمَهُ الله فرمايي: چي مساقات جائز دی او مزارعت جائز نه دی مګر د مساقات په تابع کېدو سره [يعني مزارعت صرف د مساقات په متابعت کي جائز دی] لِأَنَّ الْأَصْلَ فِي هٰذَا الْمُضَارَبَةُ ځکه چي په دې باره کي اصل [بنياد] مضاربت دی وَالْمُعَامَلَةُ أَشْبَهُ بِهَا او مساقات د مضاربت زيات مشابه دی لِأَنَّ فِيهِ شَرِكَةً فِي الزِّيَادَةِ دُوْنَ الْأَصْلِ ځکه چي په مساقات کي په زائد شي [مېوه] کي شرکت وي، نه په اصل [درختو] کي وَفِي الْمُزَارَعَةِ لَوْ شُرِطَ الشَّرِكَةُ فِي الرِّبْحِ دُوْنَ الْبَذْرِ او په مزارعت کي که چيري له تخم څخه بغير صرف په نفع کي شرکت شرط کړی سي نه په تخم کي بِأَنْ شُرِطَ رَفْعُهُ مِنْ رَأْسِ الْخَارِجِ په دې توګه چي له پيداوار څخه د تخم ايستل شرط کړل سي تَفْسُدُ نو مزارعت فاسديږي فَجَعَلْنَا الْمُعَامَلَةَ أَصْلًا وَ جَوَّزْنَا الْمُزَارَعَةَ تَبْعًا لَهَا نو ځکه موږ مساقات اصل وګرځوی او د هغه په متابعت کي مو مزارعت جائز وګرځوی كَالشِّرْبِ فِي بَيْعِ الْأَرْضِ وَالْمَنْقُوْلِ فِي وَقْفِ الْعَقَارِ لکه د ځمکي په بيع کي د اوبو لښتي او د جايداد په وقف کي منقولي [منتقل کېدونکی] شی.

**اللغات:** ﴿معاملة﴾ اهل مدينه په مساقات ته "معامله" ويل. ﴿رفع﴾ د فتح مصدر دی: پورته کول. مراد: ايستل. ﴿خارج﴾ راوتونکي او پيدا کېدونکي څه. مراد پيداوار دی. ﴿شِرب﴾ د اوبو لښتي (نالي).

**تشريح:** د عبارت حاصل دا دی چي د امام شافعي رَحِمَهُ الله په نېز مساقات جائز دی خو مزارعت جائز نه دی، لېکن کله چي مزارعت د مساقات تابع سي، نو بيا د هغه په نېز مزارعت هم (بناء بر تبعيت) جائز دی، مثلاً يو باغ دی چي په يوه حصه کي يې درختي دي او بله حصه يې خالي ځمکه ده کوم چي د کښت لپاره ده. يا مثلاً يوه خالي ځمکه د کښت لپاره پر ښونول سوې ده او د هغې چار طرفه درختي دي، نو مالک دي د درختو سره يو ځای هغه خالي ځمکي هم عامل ته ورکړي چي د کښت کرني کار پکښي وکړي (يعني درختي دي د مساقات لپاره ورکړي او د هغه په متابعت کي دي هغه خالي ځمکه د مزارعت لپاره ورکړي) نو داسي جائز دي. کنې يوازي ځمکه د مزارعت لپاره ورکول جائز نه دي.

د امام شافعي رَحِمَهُ الله دليل دا دی چي په داسي عقودو کي اصل بنياد مضاربت دی کوم چي د تولو په نېز جائز دی او په مساقات او مزارعت کي د مضاربت سره زيات مشابه مساقات دی، نه مزارعت. نو ځکه مساقات جائز دی او د هغه په متابعت کي بيا مزارعت هم جائز کېږي، او مساقات

د مضاربت زيات مشابه ځکه دی چي په مضاربت کي په رأسُ المال کي د مضارب (عامل) هيڅ شرکت نه وي بلکي د هغه شرکت په حاصلېدونکې نفع (ګټه) کي وي. همداسي په مساقات کي هم په رأس المال يعني په درختو کي د عامل هيڅ شرکت نه وي، بلکي په حاصلېدونکې نفع يعني مېوه کي يې شرکت وي، خو مزارعت بيا د دې برعکس دی چي هلته په تخم کي هم شرکت وي، تر دې چي که تخم والا دا شرط ولګوي چي زه اول له پيداوار څخه د خپل تخم په اندازه باسم او اخلم (او پاته پيداوار به سره تقسيمو) نو مزارعت فاسدېږي، لهذا ثابته سوه چي د مضاربت سره مساقات زيات مشابه دی، نو ځکه موږ مساقات جائز ګرځوو او مزارعت ناجائز، خو د مساقات د تبعيت (تابع والي) په توګه مزارعت هم جائز کيږي، او د تبعيت په اعتبار سره ډېر ځله په احکامو کي تفاوت راځي، لکه د شِرب (لښتي او نالې) بيع مستقلاً جائز نه ده، خو د ځمکي په متابعت کي جائز ده. همدارنګه د منقولي شي وقف مستقلاً جائز نه دی، خو د جايداد په متابعت کي د هغه د وقف هم جائز دی. مثلاً يو غسلخانه ده چي په هغه کي څو منقولي شيان پراته دي لکه بدنۍ او داسي نور. نو د دې منقولي شيانو وقف جائز نه دی لېکن د غسلخانې په متابعت کي د هغوی وقف هم جائز دی. نو پر همدې په قياس کولو سره مستقلاً مزارعت خو جائز نه دی، لېکن د مساقات په تابع کولو سره مزارعت هم جائز دی.

**يادونه:** د منقولي شي مستقلاً وقف د خلکو د تعامل په وجه جائز دي، د تفصيل لپاره وګورئ! شامي (ج: ٣، ص: ٣٧٤)

## د مساقات لپاره مودت شرط دی که نه؟

وَشَرْطُ الْمُدَّةِ قِيَاسٌ فِيهَا او په مساقات کي د مودت متعيّنولو شرط د قياس تقاضا ده لِأَنَّهَا إِجَارَةٌ مَعْنًى كَمَا فِي الْمُزَارَعَةِ ځکه چي هغه په معنوي توګه اجاره ده لکه څرنګه چي په مزارعت کي دي وَفِي الِاسْتِحْسَانِ إِذَا لَمْ يُبَيِّنِ الْمُدَّةَ يَجُوزُ [لېکن] په استحسان کي که مودت متعيّن نه کړي نو هم مساقات جائز دی وَيَقَعُ عَلَى أَوَّلِ ثَمَرٍ يَخْرُجُ او واقع کيږي پر اوله راتونکې [پيدا کېدونکې] مېوه باندي لِأَنَّ الثَّمَرَ لِإِدْرَاكِهَا وَقْتٌ مَعْلُومٌ ځکه چي د مېوې د رسېدلو [پخېدلو] يو معلوم وخت دی وَقَلَّمَا يَتَفَاوَتُ چي په هغه کي ډېر کم تفاوت راځي وَيَدْخُلُ فِيهَا مَا هُوَ الْمُتَيَقَّنُ او په مساقات کي هغه مېوه داخلېږي کوم چي يقيني وي [چي هغه اوله راوتونکې مېوه ده].

**اللغات:** ﴿إدراك﴾ د افعال د باب مصدر دی. د دې باب څو معناوي دي. دلته يې معنیٰ ده: (مېوه) د پخېدلو حدّ ته رسېدل، پخېدل.

**تشریح**: د عبارت حاصل دا دی چې کله مساقات د معنیٰ په اعتبار سره اجاره ده، او اجاره له مودت بیانولو څخه بغیر نه صحیح کیږي، نو د قیاس تقاضا همدا وه چې له مودت بیانولو څخه بغیر مساقات هم صحیح نه سي، لېکن د استحسان پر بناء له بیان مودت څخه بغیر هم مساقات جائز گرځول سوي دی، او کله چې مودت بیان نه کړی سو، نو دا عقد مساقات پر اوله مېوه واقع کیږي؛ ځکه چې اوله مېوه متیقنه ده، او د رسېدلو وخت یې متعیّن دی چې په هغه کي ډېر کم تفاوت وي، لهذا کله چې د مېوې د رسېدلو وخت متعیّن دی، نو مساقات به هم د هاغه وخت پر میوه واقع کیږي.
(احسن الهدایه ج: ۱۳، ص: ۲۳۲)

**یادونــه**: د مذکوره عبارت تشریح صاحب د اثمار الهدایې غفرالله لهٔ په نورو الفاظو سره کړې ده، ستاسي د آسانۍ لپاره هغه هم مورږ دلته را نقل کوو، فرمایي:

(حاصل د عبارت دا دی چې) د قیاس تقاضا دا ده چې په مساقات کي هم د وخت متعیّنول ضروري سي، لکه څرنګه چې په مزارعت کي د وخت متعیّنول ضروري دي؛ ځکه چې په مساقات کي هم په باطني توګه اُجرت سته، نو څرنګه چې په اجاره او اُجرت کي د وخت متعیّنول ضروري دي، نو همداسي باید دلته هم ضروري سي، لېکن د استحسان په توګه حکم دا دی چې که څه هم وخت متعیّن نه کړی سي، نو هم مساقات جائز کیږي.

وجه او دلیل یې دا دی چې د میوې پخېدلو وخت تقریباً متعیّن دی چې په هغه کي زیات تفاوت نه وي چې مثلاً په دریو میاشتو کي مېوه پخیږي، خو کم از کم مودت چې په هغه کي مېوه پخیږي، هغه مودت به مراد کیږي. (اثمار الهدایه ج: ۱۲، ص: ۲۵۶)

وَإِدْرَاكُ الْبَذْرِ فِيْ أُصُوْلِ الرَّطْبَةِ فِيْ هٰذَا بِمَنْزِلَةِ إِدْرَاكِ الثِّمَارِ او د شپیشتو په بېخو کي [په بله وینا دا چې د شپیشتو او داسي نورو د بېخو په معامله کي] د تخم رسېدل په دې باره کي داسي دي لکه [په درختو کي] د مېوو رسېدل لِأَنَّ لَهُ نِهَايَةً مَعْلُوْمَةً ځکه د تخم رسېدلو لره یو معلومه انتهاء سته [یعني مودت یې معلوم دی] فَلَا يُشْتَرَطُ بَيَانُ الْمُدَّةِ نو ځکه د مودت بیانول شرط نه دي بِخِلَافِ الزَّرْعِ په خلاف د کښت لِأَنَّ ابْتِدَاءَهُ يَخْتَلِفُ كَثِيْرًا خَرِيْفًا وَصَيْفًا وَرَبِيْعًا ځکه چې د هغه ابتداء مختلفه کیږي د موسم خزان [مني]، ګرمۍ [دوبي] او پسرلي په اعتبار سره [یعني د مني، دوبي او پسرلي په راتللو سره ابتداء د کښت بدلیږي را بدلیږي] وَالِانْتِهَاءُ بِنَاءٌ عَلَيْهِ او انتهاء پر همدې ابتداء مبني وي فَتَدْخُلُهُ الْجَهَالَةُ نو په هغه کي جهالت داخلیږي [نو ځکه له بیان مودت څخه بغیر مزارعت نه صحیح کیږي].

**اللغات**: ﴿اُصول﴾ جمع د اُصل ده، مراد: بېخونه. ﴿رَطْبَة﴾ د دې لفظ څو معناوې نقل سوي دي: ① د حیوانو شنه واښه، لکه شپېشتي، شوتل او داسې نور، او کله چې وچ کړل سي نو هغوی ته "قَتّ" وايي چې په پښتو کې ورته "بېده" وايي، ② همدارنګه هغه واښه او سبزیجات کوم چې تر وتازه خوړل کیږي. لکه کاهو او داسې نور، ③ د شپېشتو او غاتې په څېر یو ډول بوټی دی کوم چې تر کلو. کلو پوري په ځمکه کې ولاړ وي او کله چې هم پرېکړل سي نو بیا راپورته سي، او شپېشتي هم دا خاصیت لري چې د هغوی بېخونه تر څو کالو پوري په ځمکه کې پاتېږي او کله چې هم ورېبل سي نو دویم ځل را پورته سي. او خلک یې (غالباً) په څلورم، پنځم ځل کې تخم ترلاسه کوي او بیا یې له سره کري. ﴿خریف﴾ خزان، منی (د کال دریم موسم). ﴿صیف﴾ ګرمي، دوبی. ﴿ربیع﴾ پسرلی، سپرلی (څرمنی).

**تشریح**: مخکې ذکر سوه چې له مودت بیانولو څخه بغیر مساقات جائز دي، نو دلته پر هغه قیاس کوي فرمايي چې څرنګه له مودت بیانولو څخه بغیر مساقات استحساناً جائز ګرځول سوي دي، همدارنګه که د شپېشتو او داسي نورو په آخري پړاو کي مساقات وسي، نو دا هم له مودت بیانولو څخه بغیر جائز دي؛ ځکه د مېوې په څېر د شپېشتو او داسې نورو د تخم وغیره د پخېدلو هم انتهایي مودت معلوم دی.

صورت د مسئلې یې دا دی چې مالک یو عامل او بزګر ته ځمکه ورکړه چې په هغه کې د شپېشتو بېخونه وه (چې همدا یې د رېبلو آخري پړاو او نوبت وو) او عامل ته یې ووېل چې ته دې ته اوبه ورکوه، حفاظت او پالنه یې کوه، تر دې چې تخم یې راووځي، او څومره تخم چې و کړي هغه به زما او ستا تر مینځ مشترک وي، نو له مودت بیانولو څخه بغیر دا عقد جائز دی؛ ځکه څرنګه چې د مېوې د رسېدلو او پخېدلو وخت معلوم دی، همداسې د شپېشتو او تخم د رسېدلو وخت هم معلوم دی، نو ځکه د مودت بیان پکښې شرط نه دی.

بخلاف الزرع: د دې حاصل دا دی چې څرنګه په مېوه، شپېشتو او داسې نورو کې له بیان مودت څخه بغیر استحساناً عقد جائز دی، خو په کښت کې بیا له بیان مودت څخه بغیر عقد جائز نه دی؛ ځکه د موسم د بدلون په وجه د کښت ابتداء مختلفه وي، او کله چې یې په ابتداء کې اختلاف دی، نو په انتهاء کې به یې هم خامخا اختلاف وي؛ ځکه انتهاء پر ابتداء موقوفه او مبني وي، نو بعضې کښتونه په دوو، دریو میاشتو کې پخېږي، او بعضې په څلورو کې پخېږي وغیره. لهذا که په کښت کې مودت متعیّن نه کړی سي، نو مودت مجهول پاتېږي، نو ځکه په مزارعت کې د مودت بیانول شرط دي.

**یادونه**: چیري چې د کښت ابتداء او انتهاء معلومه وي، هلته له بیان مودت څخه بغیر هم مزارعت جائز دی.

## د پورتنی مسئلې مستثنیات

وَبِخِلَافِ مَا إِذَا دَفَعَ إِلَيْهِ غَرْسًا قَدْ عُلِّقَ وَلَمْ يَبْلُغِ الثَّمَرُ مُعَامَلَةً او په خلاف د هغه صورت کله چې د معاملې [مساقات] په توګه نهال [نیالګی] ورکړي کوم چې راشین سوی وي او د میوې حد ته نه وي رسېدلای [یعني کوچنی نهال او بوټی کوم چې اوس میوه نه سي کولای د مساقات په توګه ورکړي] حَيْثُ لَا يَجُوزُ إِلَّا بِبَيَانِ الْمُدَّةِ نو دا له مودت بیانولو څخه بغیر جائز نه دي لِأَنَّهُ يَتَفَاوَتُ بِقُوَّةِ الْأَرَاضِي وَضُعْفِهَا تَفَاوُتًا فَاحِشًا ځکه د ځمکې په قوت او هغې د کمزورۍ په وجه په نهال [نیالګي] کې ډېر زیات تفاوت راځي وَبِخِلَافِ مَا إِذَا دَفَعَ نَخِيلًا أَوْ أُصُولَ رَطْبَةٍ عَلَى أَنْ يَقُومَ عَلَيْهَا او په خلاف د هغه صورت کله چې د خرماوو درختي یا د شپېشتو بېخونه پر دې شرط ورکړي چې پالنه به یې کوي أَوْ أَطْلَقَ فِي الرَّطْبَةِ یا په شپېشتو کې اطلاق وکړي [یعني مطلقاً یې ورکړي. څه شرط نه ولګوي] تَفْسُدُ الْمُعَامَلَةُ نو هم مساقات فاسدېږي لِأَنَّهُ لَيْسَ لِذَلِكَ نِهَايَةٌ مَعْلُومَةٌ ځکه چې هغه لره یو معلومه انتهاء نسته لِأَنَّهَا تَنْمُو مَا تُرِكَتْ فِي الْأَرْضِ ځکه هغه چې تر څو په ځمکه کې پاته وي تر هغه وخته غټېږي [وده کوي] فَجُهِلَتِ الْمُدَّةُ نو مودت مجهوله سو وَيُشْتَرَطُ تَسْمِيَةُ الْجُزْءِ مُشَاعًا او د شیوع په توګه د یوې حصې [جزء شائع] متعینول شرط دي لِمَا بَيَّنَّا فِي الْمُزَارَعَةِ د هغه دلیل په وجه کوم چې موږ په مزارعت کې بیان کړی إِذْ شَرْطُ جُزْءٍ مُعَيَّنٍ يَقْطَعُ الشَّرِكَةَ ځکه چې د جزء معین [متعینې حصې] شرط لګول شرکت ختموي.

**اللغات:** ﴿غَرْس﴾ لګول سوی (ښندول) سوی بوټی او نهال. نیالګی. ﴿علق﴾ د تفعیل ماضي مجهوله ده. مراد: راشنه کېدل ﴿أَراضي﴾ جمع د أَرضٌ ده: ځمکه (مځکه). ﴿تفاوت﴾ د تفاعل مصدر دی: یو له بل څخه مختلف کېدل. فرق او توپیر. ﴿نخيل﴾ جمع د نَخْلَةٌ ده: د خرما درختي. ﴿يقوم﴾ د نصر مضارع ده. خپله معنیٰ یې ده: پورته کېدل. ولاړېدل او جګېدل. خو چې په صله کې یې علیٰ راسي نو معنیٰ یې ده: نګراني او پالنه کول. ﴿نهاية﴾ انتهاء. آخر. ﴿تنمو﴾ د نصر مضارع ده: وده او نما کول. غټېدل.

**تشریح:** په مخکنۍ مسئله کې له مودت بیانولو څخه بغیر مساقات جائز ګرځول سوی دی. دلته د دوو صورتونو استثناء کوي:

(۱) يو صورت دا چي يو څوک نهال (نيالگی) ولگوي او هغه شين سي او بيا يې يو عامل او مزدور ته وسپاري چي ته دې ته اوبه ور کوه، حفاظت او پالنه يې کوه!، هر کله چي له دې څخه درخته جوړه سي او مېوه وکړي، نو هغه به زما او ستا تر مينځ نيمه په نيمه وي (په لنډه توګه دا چي راشين سوی نهال د مساقات په توګه ورکړي)، فرمايي چي دا عقد مساقات جائز نه دی؛ ځکه بعضي ځمکي طاقتوري وي چي که په هغه کي نهال ولګول سي نو په دوو، درېو کالو کي درخته ځني جوړېږي او مېوه کوي، او بعضي ځمکي کمزوري وي چي په هغه کي تر پنځو، شپږو کالو پوري نهال د مېوې ځای ته رسيږي، لهذا کله چي په ځمکو کي دومره قدر تغيّر دی، نو له مودت بيانولو څخه بغير ښکاره ده چي جهالت فاحشه لازميږي، او جهالت يسيره که څه هم معاف دی، خو جهالت فاحشه نه دی معاف، نو ځکه په دې صورت کي مساقات فاسديږي.

(۲) وبخلاف إذا دفع نخيلاً إلخ: د دې صورت دا دی چي يو څوک د خُرما درختي عامل ته ورکړي او هغه ته ووايي چي ته د دې حفاظت او پالنه کوه چي مېوه (خرما) به يې زما او ستا تر مينځ نيم په نيمه وي يا داسي نور او دا عقد به تر هغه وخته زما او ستا مينځ وي (تر هغه وخته به د درختو اوبول او پالنه کوې) تر څو چي دا درختي وچيږي او هيڅ مودت متعيّن نه کړي، نو داسي مساقات فاسد دی، ځکه چي مودت مجهول دی.

أو (دفع) أصول الرطبة إلخ: له دې څخه مخکي دا صورت ذکر سو چي د شپيشتو بيخونه په دې توګه ورکړي چي کله هغوی تخم وکړي نو هغه به زما او ستا تر مينځ مشترک وي او د تخم کولو وخت معلوم دی.

او دلته دا صورت دی چي د شپيشتو بيخونه په دې توګه ورکړي (يعني ځمکه ورکړي چي په هغه کي د شپيشتو، يا شوتلو وغيرهما بېخونه وي او داسي ورته ووايي) چي ته دې ته اُوبه ورکوه او پالنه يې کوه تر هغه وخته چي د بېخو وده او شنه کېدل ودريږي، يعني بيخونه يې وچ سي، نو ښکاره خبره ده چي د ودې ختمېدلو او وچېدلو مودت معلوم نه دی (ځکه تر هر څو چي اوبه ورکول کيږي تر هغه وخته وچېدل نه راځي)، نو مودت مجهول پاته سو، نو ځکه له بيان مودت څخه بغير دا عقد جائز نه دی.

همدارنګه که اطلاق وکړي يعني مطلقاً يې ورکړي او د بېخو د وچېدلو وغيره شرط نه ولګوي او د دې هيڅ تذکر نه وکړي، نو هم داغه حکم دی چي دا عقد فاسد او ناجائز دی.

**يادونه**: که د خرما درختي مطلقاً ورکړي او د وچيدلو وغيره شرط نه ولګوي، نو عقد صحيح کيږي او د مخکي په څېر عقد پر اوله ښکارېدونکې ميوه واقع کيږي، لېکن په شپيشتو او داسي نورو کي د اطلاق په صورت کي هم فساد راځي.

**یادونه**: د مخکینۍ عبارت د مسئلې او د دې مذکوره مسئلې تر مينځ د فرق مدار د انتهاء پر علم او عدمِ علم دی، په مخکنۍ مسئله کې انتهاء معلومه ده، نو ځکه هغه ته جائز ويل سوي دي، او دلته انتهاء معلومه نه ده، نو ځکه فاسد ورته ويل سوي دي، لهذا که د خرما درختې يا شپېشتې په دې توګه عامل ورکړې چې د وچېدلو او د حتی تذهب أصولها شرط نه ولګوي او د مېوې ښکاره کېدلو او تخم کولو وخت معلوم وي، نو دا عقد جائز دی، او که د تخم کولو وخت معلوم نه وي، نو بيا عقد فاسديږي.

لکه څرنګه چې د علامه کاساني رَحِمَهُ الله دا عبارت همدې ته اشاره کوي چې د جواز او عدمِ جواز مدار د انتهاء پر علم او عدم علم دی: ولو دفع أرضًا ليزرع فيها الرطاب أو دفع أرضًا فيها أُصول رطبةٍ ثابتةٍ، ولم يسمّ المدة، فإن كان شيئًا ليس لابتداءِ نباتهٖ ولا لإنتهائه جذه وقتٌ معلومٌ، فالمعاملہ فاسدة، وإن كان وقت جذه معلومًا يجوز، ويقع على الجذةِ الأُولٰى كما في الشجرة المثمرة. (بدائع ج: ۶، ص: ۱۸۶)

خلاصه دا چې عبارت د صاحب د هدايې رَحِمَهُ الله صفا او څرګند نه دی، بلکې په کلام کې يې څه خنډ دی، د بدائع عبارت بالکل څرګند دی.

<u>ويشترط تسمية إلخ</u>: د دې حاصل دا دی چې د مزارعت په څېر په مساقات کې هم دا ضروري ده چې کومه مېوه وسي په هغه کې به د دواړو حصه په مشترکه (په ګډه) توګه وي، هغه که نيم په نيمه وي او که ديوه لپاره دوې حصې وي او د بل لپاره يوه حصه وي يا داسې نور، لهذا که چېرې ديوه لپاره متعيّنه حصه شرط کړل سي نو مساقات فاسديږي، مثلاً زيد او خالد عقد مساقات سره وکړی او زيد وويل چې هر څومره مېوه وسي، اول زه له هغه څخه سل سېره مېوه اخلم، پاته مېوه به ما و تا سره تقسيموو، نو په دې سره مساقات فاسديږي، ځکه چې په دغه جزء معيّن (سل سېره) کې شرکت نه راغلی، حالانکې د اجارې په څېر مساقات هم عقد شرکت دی چې په هغه کې د شرکت لحاظ ضروري دی، او دلته په دغه شرط سره شيوع او شرکت ختم سو، نو په دې وجه مساقات فاسديږي.

## په عقدِ مساقات کې د لږ مودت ټاکلو حکم

| |
|---|
| <u>وَإِنْ سَمَّيَا فِي الْمُعَامَلَةِ وَقْتًا يُعْلَمُ أَنَّهُ لَا يَخْرُجُ الثَّمَرُ فِيهَا</u> او که عاقدين په مساقات کې داسې وخت وټاکي چې معلومه وي چې په دومره مودت مېوه نه راوځي <u>فَسَدَتِ الْمُعَامَلَةُ</u> نو معامله فاسديږي <u>لِفَوَاتِ الْمَقْصُودِ وَهُوَ الشَّرِكَةُ فِي الْخَارِجِ</u> د مقصود فوتېدلو په وجه چې هغه په پيداوار [مېوه] کې شرکت دی [يعني په مېوه کې چې کوم شرکت مقصود دی هغه فوتيږي] <u>وَلَوْ سَمَّيَا مُدَّةً قَدْ يَبْلُغُ الثَّمَرُ فِيهَا</u> |

وَقَدْ يَتَأَخَّرُ عَنْهَا او كه يو داسې مودت وټاكي چي كله خو په هغومره مودت كي مېوه پخيږي او كله بيا له هغه مودت څخه ځنډيږي جَازَتْ نو مساقات جائز دى لِأَنَّا لَا نَتَيَقَّنُ بِفَوَاتِ الْمَقْصُودِ ځكه [په دې صورت كي] د مقصود فوتېدلو يقين موږ ته نسته ثُمَّ لَوْ خَرَجَ فِي الْوَقْتِ الْمُسَمّٰى بيا كه په هغه ټاكل سوي وخت كي مېوه راووځي [مېوه وسي] فَهُوَ عَلَى الشَّرِكَةِ نو مېوه [دعاقدينو ترمينځ] پر شركت [مشتركه] پاتيږي لِصِحَّةِ الْعَقْدِ ځكه عقد مساقات صحيح سو وَإِنْ تَأَخَّرَ او كه مېوه وځنډيږي فَلِلْعَامِلِ أَجْرُ الْمِثْلِ نو د عامل لپاره اُجرِ مثل دى [يعني په دې صورت كي به عامل او كاريګر ته اُجرتِ مثلي وركول كيږي] لِفَسَادِ الْعَقْدِ ځكه عقد مساقات فاسد سو لِأَنَّهُ تَبَيَّنَ الْخَطَأُ فِي الْمُدَّةِ الْمُسَمَّاةِ ځكه چي په ټاكل سوي مودت كي غلطي ښكاره سوه فَصَارَ كَمَا إِذَا عُلِمَ ذٰلِكَ فِي الِابْتِدَاءِ نو داسې سو لكه په ابتداء كي چي دا معلومه سي [چي په دومره مودت كي مېوه نه كيږي] بِخِلَافِ مَا إِذَا لَمْ يَخْرُجْ أَصْلًا په خلاف د هغه صورت كله چي بالكل مېوه نه راووځي [هيڅ مېوه نه وسي] لِأَنَّ الذَّهَابَ بِآفَةٍ ځكه د مېوې ختمېدل [مېوه نه كېدل] د يو آفت په وجه دي فَلَا يَتَبَيَّنُ فَسَادُ الْمُدَّةِ نو [په دې صورت كي] د مودت فاسدېدل نه ښكاره كيږي فَيَبْقَى الْعَقْدُ صَحِيحًا نو ځكه عقد صحيح سالم پاتيږي وَلَا شَيْءَ لِكُلِّ وَاحِدٍ مِنْهُمَا عَلَى صَاحِبِهِ او په دواړو عاقدينو كي د يوه عاقد پر خپل ملګري [بل عاقد] هيڅ نسته [يعني يو له بل څخه د هيڅ شي مطالبه نه سي كولاى].

**اللغات:** ﴿سمّيا﴾ د تفعيل له بابه د تثنيه غائب ماضي صيغه ده: نومول، متعينول، ټاكل (مقرر كول)، ﴿تبيّن﴾ د تفعّل د باب ماضي ده: څرګندېدل، ښكاره كېدل. ﴿المساة﴾ د تفعيل له بابه د مؤنث مفعول صيغه ده: نومول سوى، متعيّن سوى، ټاكل سوى.

**تشريح:** تاسي ته دا معلومه سوه چي په مساقات كي هم د مودت او وخت متعينول ضروري او شرط دي، نو اوس واورئ! چي كه عاقدَين مودت خو متعيَّن كړي، لېكن هغه دومره مودت وي چي په هغه كي د ميوې نه كېدل يقيني وي (يعني دا يقيني وي چي په دومره وخت كي مېوه نه پخيږي)، مثلاً درختو په شپږ مياشتو كي مېوه كوله او پخېده. اوس كه عاقدين درې مياشتي د مساقات لپاره وټاكي. نو ښكاره ده چي په دې صورت كي مقصود نه حاصليږي. يعني نه خو په دې دريو مياشتو كي مېوه پخيږي او نه په هغه كي د دوى شركت كېدلاى سي، نو ځكه په دې صورت كي مساقات فاسديږي.

ولو سميا مدة قد إلخ: او كه دومره مودت متعين كړي چي په هغه‌کي كله مېوه رسيږي او كله نه رسيږي او پخيږي، نو په دې صورت كي مساقات نه فاسديږي؛ ځكه دلته د مقصود فوتېدل يقيني نه دي، لهذا صرف د مېوې نه پخېدلو په وهم سره عقد نه فاسديږي، ځكه دا اُميد سته چي مېوه به پخه سي.

بيا كه په دې متعين شوي مودت كي مېوه پخه سي، نو مساقات صحيح كيږي او مېوه به د عاقدَينو تر مېنځ د ټاكل سوي شرط مطابق مشترکه وي. او كه مېوه په دې متعين سوي مودت كي پخه نه سي، نو مساقات فاسديږي او عامل ته به اُجرتِ مثلي وركول كيږي؛ ځكه كله چي په متعين سوي مودت كي مېوه پخه نه سوه، نو معلومه سوه چي مودت غلط وو، او دا داسي سوه لكه له شروع څخه چي كم مودت متعين سوی وو (چي په هغه كي ميوه نه پخيږي)، او دا ښكاره ده چي ابتداءً د كم مودت متعينولو په وجه مساقات فاسديږي، نو ځكه دلته به هم مساقات فاسديږي.

بخلاف إلخ: د دې حاصل دا دی چي كه مېوه بالكل نه وكړي (پخېدل خو هلته پرېږده!) نو دا د دې خبرې علامت دی چي مودت خو صحيح دی، لېكن د يو آفت آسماني په وجه مېوه نه ده سوې، نو دلته عقد صحيح دی، يا په بله وينا دا چي دلته به دا ګڼل كيږي چي د وخت د كمښت په وجه عقد نه دی فاسد سوی بلكي عقد صحيح پاته سوی دی (ځكه فساد د يو آفتِ آسماني په وجه دی كوم چي غيرِ اختياري دی)، او څرنګه چي دلته هيڅ مېوه نه ده سوې، نو ځكه نه به عامل ته څه اُجرت وركول كيږي، او نه د درختو مالك (باغ والا) له عامل څخه د څه مطالبه كولای سي؛ ځكه چي شركت په پيداوار (مېوه) كي وو، او پيداوار بالكل نه دی سوی، لهذا يو هم له بل څخه هيڅ ډول مطالبه نه سي كولای.

## مساقات په كومو شيانو كي كېدلای سي؟

قَالَ: وَتَجُوزُ الْمُسَاقَاةُ فِي النَّخْلِ وَالشَّجَرِ وَالْكَرْمِ وَالرِّطَابِ وَأُصُولِ الْبَاذِنْجَانِ [امام قدوري رَحِمَهُ الله] فرمايي: او مساقات جائز دی د خرماوو په درختو، عامو درختو، انګورو، سبزيجاتو او د بانجنو په بوټو كي وَقَالَ الشَّافِعِيُّ فِي الْجَدِيدِ: لَا تَجُوزُ إِلَّا فِي الْكَرْمِ وَالنَّخْلِ او په قول جديد كي امام شافعي رَحِمَهُ الله فرمايي: چي صرف په انګورو او خرماوو كي مساقات جائز دی لِأَنَّ جَوَازَهَا بِالْأَثَرِ ځكه چي مساقات په حديث سره ثابت دی وَقَدْ خَصَّهُمَا او حديث صرف دغه دوه [انګور او خرما] خاص كړي دي وَهُوَ حَدِيثُ خَيْبَرَ او هغه د خيبر حديث دی وَلَنَا: أَنَّ الْجَوَازَ لِلْحَاجَةِ او زموږ دليل دا دی: چي د مساقات جائز كېدل د ضرورت په وجه دي وَقَدْ عَمَّتْ او ضرورت عام دی وَأَثَرُ خَيْبَرَ لَا يَخُصُّهُمَا او

د خیبر حدیث صرف دغه دوه خاص کړي نه دي لِأَنَّ أَهْلَهَا كَانُوا يَعْمَلُونَ فِي الْأَشْجَارِ وَالرِّطَابِ أَيْضًا ځکه چي اهلِ خیبر به په نورو درختو او سبزیجاتو کي هم مساقات کاوه وَلَوْ كَانَ كَمَا زَعَمَ او که خبره داسي وي لکه امام شافعي رَحِمَهُ الله چي وایي [چي اهلِ خیبر صرف په انګورو او خرماوو کي مساقات کاوه] فَالْأَصْلُ فِي النُّصُوصِ أَنْ تَكُونَ مَعْلُولَةً نو [موږ جواب ورکوو چي] اصل په نصوصو کي دا ده چي هغوی هغه معلول بالعلت وي [یعني په هر نص او حدیث کي علت ته کتل کیږي چي په حدیث کي د دې شي د جواز علت او وجه څه ده] سِيَّمَا عَلَى أَصْلِهِ په ځانګړې توګه دامام شافعي رَحِمَهُ الله پر اصل.

**اللغات:** ﴿نخل﴾ جمع د نخلةٌ ده: د خرما (کجوري) درختي، ﴿رطاب﴾ جمع د رطبة ده: سبزیجات، ﴿أصول﴾ جمع د أصل ده: بیخ، هغه څه کوم چي د فرع په مقابله کي وي.

**تشریح:** زموږ په نیز په ټولو درختو او سبزیجاتو کي مساقات جائز دي، امام شافعي رَحِمَهُ الله هم مخکي د دې قائل وو، خو وروسته هغه د خرما په درختو او انګورو کي مساقات منحصر کړی او له دې څخه بغیر په نورو درختو او سبزیجاتو کي يې د مساقات نه جائز کېدلو فتویٰ ورکړه.

دامام شافعي رَحِمَهُ الله دلیل دا دی چي مساقات خو د خیبر په حدیث سره ثابت دی او په هغه حدیث کي فقط د خرماوو او انګورو یادونه سوې ده، نو ځکه په نورو کي به مساقات جائز نه وي.

زموږ دلیل دا دی چي د مساقات ثبوت د ضرورت پر بناء دی او ضرورت چي څرنګه په خرماوو او انګورو کي سته، همداسي په نورو مېوو او سبزیجاتو کي هم ثابت دی، لهذا فقط د دې دوو شیانو سره به مساقات خاص نه وي، بلکي په نورو مېوو او سبزیجاتو کي به هم ثابت وي.

**وأثرخیبرالخ:** او دامام شافعي رَحِمَهُ الله د دلیل یو (انکاري) جواب دا دی چي د خیبر په حدیث سره فقط د خرماوو او انګورو سره مساقات خاصول صحیح نه دي؛ ځکه اهل خیبر چي څرنګه په دې شیانو کي مساقات کاوه، همداسي يې په نورو درختو او سبزیجاتو کي هم مساقات کاوه، لهذا د دې دوو شیانو تخصیص بې معنیٰ او بې ځایه دی.

او بل (تسلیمي) جواب يې دا دی چي سمه ده! موږ دا در سره ومنو چي د خیبر په نص (حدیث) کي صرف د دغه دوو شیانو تخصیص سته، خو تاسي ته به دا أصول معلوم وي چي نصوص معلول بالعلت وي، او له غور او فکر څخه وروسته په دغه دوو شیانو کي د مساقات ثابتېدلو چي کوم علت لیدل کیږي هغه حاجت او ضرورت دی، لهذا کله چي د ضرورت پر بناء په دې دوو

شيانو کې مساقات ثابت دی، نو په نورو شيانو کې به هم ثابت وي؛ ځکه چې امامان خصوصاً بيا امام شافعي رَحِمَهُ الله نصوص په علت سره مقيّد کوي.

## بغير له عذره به مساقات نه فسخ کول کيږي او عامل به نه ايستل کيږي

وَلَيْسَ لِصَاحِبِ الْكَرْمِ أَنْ يُخْرِجَ الْعَامِلَ مِنْ غَيْرِ عُذْرٍ او د انګورو [مېوې] مالک ته دا حق نسته چې بېله يو عذره عامل وباسي لِأَنَّهُ لَا ضَرَرَ عَلَيْهِ فِي الْوَفَاءِ بِالْعَقْدِ ځکه د عقد په پوره کولو کې د ده هيڅ نقصان نسته وَكَذَا لَيْسَ لِلْعَامِلِ أَنْ يَتْرُكَ الْعَمَلَ بِغَيْرِ عُذْرٍ او همدارنګه نه عامل ته دا اختيار سته چې بېله يو عذره کار پرېږدي بِخِلَافِ الْمُزَارَعَةِ بِالْإِضَافَةِ إِلَى صَاحِبِ الْبَذْرِ په خلاف د مزارعت، د تخم والا وطرف ته په نسبت کولو سره عَلَى مَا قَدَّمْنَاهُ لکه څرنګه چې مخکې مو بيان کړه.

**اللغات:** ﴿كَرْم﴾ د انګورو تاک، انګور، ﴿ضرر﴾ نقصان، تاوان، ﴿وفاء﴾ د ضرب له بابه مصدر دی: پوره اداء کول.

**تشريح:** د عبارت حاصل دا دی چې که يو سخت عذر نه وي نو د باغ مالک ته دا حق او اختيار نسته چې عامل له عقد څخه وباسي؛ ځکه اوس عقد لازم سوی دی، کوم چې فقط د عذر شديد په وجه فسخ کول کېدای سي، او ځکه کله چې عذر نه وي، نو د مالک هيڅ ضرر او نقصان هم نه کيږي، نو ځکه د عقد پوره کول غوره دي، همدارنګه عامل ته هم دا حق نسته چې له کار څخه انکار وکړي، ها! که چيري سخت مرض او داسي نور سخت اعذار وي (چې د هغوی په وجود کې عامل کار نه سي کولای)، نو په دې وخت کې د انکار اختيار ور ته سته.

خو د مزارعت مسئله د دې برعکس ده، په مزارعت کې که تخم والا د کښت راشنه کېدلو څخه مخکې انکار کول وغواړي چې زه دا عقد مزارعت نه کوم، نو هغه ته د دې اختيار سته؛ ځکه چې في الحاله د عقد مزارعت په پرېښوولو کې د هغه نقصان دی؛ ځکه کېدای سي چې دا تخم راشين نه سي او هيڅ پيداوار نه وسي.

## مېوه داره درختې د مساقات په توګه ورکول (حکم او تفصيل)

قَالَ: فَإِنْ دَفَعَ نَخِيلًا فِيهِ تَمْرٌ مُسَاقَاةً فرمايي: او که د خرما درختې ورکړې چې په هغوی کې خرما [کجوري] وي، د مساقات په توګه [په بله وينا دا چې مېوه داره درختې د مساقات په توګه ورکړي] وَالتَّمْرُ يَزِيدُ بِالْعَمَلِ حال دا چې دا خرما [مېوه] په عمل سره نوره وده کوي [يعني خپل انتهاء ته نه وي رسېدلې بلکې

څه کار لا غواړي چي انتهاء ته ورسيږي او پخه سي] جَازَ نو جائز دي وَإِنْ كَانَتْ قَدِ انْتَهَتْ او که خرما انتهاء ته رسېدلې وي [وده يې پوره سوې وي] لَمْ يَجُزْ نو جائز نه دي وَكَذَا عَلَى هٰذَا إِذَا دَفَعَ الزَّرْعَ وَهُوَ بَقْلٌ جَازَ او همدارنګه کله چي کښت ورکړي حال دا چي هغه تر اوس شين [اُوم] وي نو جائز دي وَلَوِ اسْتُحْصِدَ وَأُدْرِكَ او که کښت د رېبل کېدلو لائق وي او پوخ سوی وي لَمْ يَجُزْ نو جائز نه دي لِأَنَّ الْعَامِلَ إِنَّمَا يَسْتَحِقُّ بِالْعَمَلِ ځکه عامل خو د کار په وجه [د اُجرت (حصې)] مستحق کيږي وَلَا أَثَرَ لِلْعَمَلِ بَعْدَ التَّنَاهِيْ وَالْإِدْرَاكِ او انتهاء ته له رسېدلو او پخېدلو څخه وروسته د کار هيڅ اثر نسته فَلَوْ جَوَّزْنَاهُ نو که موږ دا جائز وګرځوو لَكَانَ اسْتِحْقَاقًا بِغَيْرِ عَمَلٍ نو دا به بغير له عمل څخه مستحق کېدل وي [يعني بغير له کاره به عامل مستحق سي] وَلَمْ يَرِدْ بِهِ الشَّرْعُ حال دا چي شريعت په دې باره کي نه دی وارد سوی بِخِلَافِ مَا قَبْلَ ذٰلِكَ په خلاف انتهاء ته له رسېدلو [پخېدلو] څخه د مخکي والا صورت لِتَحَقُّقِ الْحَاجَةِ إِلَى الْعَمَلِ ځکه چي [هلته] عمل ته ضرورت ثابت دی قَالَ: وَإِذَا فَسَدَتِ الْمُسَاقَاةُ فرمايي: او کله چي مساقات فاسد سي فَلِلْعَامِلِ أَجْرُ مِثْلِهِ نو د عامل لپاره اجرت مثلي دی لِأَنَّهُ فِي مَعْنَى الْإِجَارَةِ الْفَاسِدَةِ ځکه چي دا د اجارهٔ فاسده په معنیٰ سره دی وَصَارَ كَالْمُزَارَعَةِ إِذَا فَسَدَتْ او [تر فاسدېدلو وروسته] دا مساقات د مزارعت په څېر سو کله چي هغه فاسد سي [يعني د فاسد شده مزارعت په ډول سو].

**اللغات**: بقل﴾ شين، زرغون، مراد: اُوم نارسېدلی کښت، ﴿استحصد﴾ د استفعال له بابه د ماضي مجهولي صيغه ده: دلو او رېبل کېدلو قابل کېدل. (احسن الهدايه)

**تشريح**: د عبارت حاصل دا دی چي که د باغ مالک داسي وکړي چي کله درختي مېوه وکړي نو هغه يې په مساقات ورکړي او تر اوسه مېوه پخ سوې او رسېدلې نه وي بلکي څو وخت د عامل تر کار کولو وروسته رسيږي او پخيږي (په بله وينا دا چي د عامل په عمل او لاسوهني سره وده کوي او پخيږي)، نو دا صورت جائز دی. لېکن که مېوه په کامله توګه رسېدلې وي او حتی الامکان وده پکښي راغلې وي، او داسي باغ د مساقات په توګه ورکول وغواړي. نو دا جائز نه دي، همدا حکم د کښت هم دی چي که هغه اُوم وي، نو هغه ورکول کېدای سي، لېکن که کښت رسېدلی او پوخ سوې وي کوم چي لو او رېبل کېدلو ته آماده وي. نو د هغه ورکول جائز نه دي.

صاحب د هدايې رَحِمَهُ الله په دې دواړو صورتونو کي فرق بيانوي فرمايي چي د ميوې او کښت د اُوم والي په صورت کي چي کله هغوی عامل ته ورکول سي، نو د هغوی په وده کولو او پخېدلو کي به د عامل د عمل او کار دخل وي، خو که تر بشپړ رسېدلو او پخېدلو وروسته ورکول سي، نو په دې ميوه او کښت کي به د هغه د عمل هيڅ دخل نه وي، حالانکي عامل ته چي اُجرت ورکول کيږي هغه د عمل په عوض کي ورکول کيږي، نو ځکه چيري چي د هغه د عمل دخل وي، نو هلته موږ هغه ته ورکول جائز ګرځوو، او چيري د هغه د عمل هيڅ اثر نه وي، هلته منع کوو؛ ځکه په هغه صورت کي عامل له عمل څخه بغير د اُجرت مستحق کيږي کوم چي په شريعت کي هيڅ ځای هم ثابت نه دي، او څرنګه چي د ميوې له رسېدلو او پخېدلو څخه مخکي عمل او کار ته ضرورت وي، نو ځکه په هغه صورت کيّ موږ عامل ته ورکول جائز ګرځوو.

قال وإذا إلخ: په دې سره دا رابنيي چي که په يو وجه مساقات فاسد سي، نو عامل ته به اُجرت مثلي ورکول کيږي؛ ځکه چي د فاسدېدلو په صورت کي هغه د اجارهٔ فاسده او مزارعت فاسده په شېر سو، او د هغوی د فاسدېدلو په صورت کي اُجرت مثلي ورکول کيږي، نو ځکه د مساقات د فاسدېدلو په صورت کي به هم اُجرت مثلي ورکول کيږي. (احسن الهدايه)

## د ځمکي د مالک (رب الأرض) د مرګ په صورت کي د مساقات حکم

قَالَ: وَتَبْطُلُ الْمُسَاقَاةُ بِالْمَوْتِ فرمايي: او مساقات په مرګ سره باطليږي لِأَنَّهَا فِي مَعْنَى الْإِجَارَةِ ځکه چي مساقات د اجارې په معنیٰ سره دی وَقَدْ بَيَّنَّاهُ فِيهَا او په اجاره کي موږ د دې بيان کړی دی فَإِنْ مَاتَ رَبُّ الْأَرْضِ وَالْخَارِجُ بُسْرٌ نو که چيري د ځمکي مالک مړ سي حال دا چي پيداوار [ميوه (خرما)] تر اوسه نيم پخته وي فَلِلْعَامِلِ أَنْ يَقُومَ عَلَيْهِ كَمَا كَانَ يَقُومُ قَبْلَ ذٰلِكَ إِلَى أَنْ يُدْرِكَ الثَّمَرُ نو عامل ته پکاري دي چي د هغه پالنه کوي لکه څرنګه چي يې مخکي کوله [او دا پالنه به يې کوي] تر دې چي خرما [ميوه] ورسيږي وَإِنْ كَرِهَ ذٰلِكَ وَرَثَةُ رَبِّ الْأَرْضِ که څه هم د ځمکي د مالک وارثان دا ناخوښه ګڼي اِسْتِحْسَانًا [دا حکم] استحساناً [دی] فَيَبْقَى الْعَقْدُ دَفْعًا لِلضَّرَرِ عَنْهُ نو له عامل څخه د ضرر ليري کولو لپاره به عقد باقي پاتيږي وَلَا ضَرَرَ فِيهِ عَلَى الْآخَرِ او په دې کي د بل يوه هيڅ ضرر [نقصان] نسته وَلَوِ الْتَزَمَ الْعَامِلُ الضَّرَرَ او که عامل خپله د ضرر التزام وکړي يُتَخَيَّرُ وَرَثَةُ الْآخَرِ بَيْنَ أَنْ يَقْسِمُوا الْبُسْرَ عَلَى الشَّرْطِ نو د بل يوه وارثانو ته اختيار دی ① په مينځ د دې کي چي دوی دا نيم

پخته خرما د شرط مطابق تقسیم کړي وَبَيْنَ أَنْ يُعْطُوهُ قِيمَةَ نَصِيبِهِ مِنَ الْبُسْرِ ② او په مینځ د دې کي چي عامل ته د هغه د حصې د نیم پخته خرما قیمت ورکړي وَبَيْنَ أَنْ يُنْفِقُوا عَلَى الْبُسْرِ حَتَّى يَبْلُغَ فَيَرْجِعُوا بِذَلِكَ فِي حِصَّةِ الْعَامِلِ مِنَ الثَّمَرِ ③ او په مینځ د دې کي چي دوی پر دغه نیم پخته خرما خرچ وکړي تر دې چي هغه ورسیږي [پخه سي] نو بیا د هغه مطابق د عامل په حصه کي له خرما څخه واپس واخلي [یعني بیا چي د عامل په حصه کي څومره خرچ راسي هغه د عامل له خرما څخه واخلي] لِأَنَّهُ لَيْسَ لَهُ إِلْحَاقُ الضَّرَرِ بِهِمْ ځکه چي عامل لره د ځمکي د مالک وارثانو ته د نقصان رسولو اختیار نسته وَقَدْ بَيَّنَّا نَظِيرَهُ فِي الْمُزَارَعَةِ او مونږ په مزارعت کي د دې بیان کړی دی.

**اللغات:** ﴿بسر﴾ نیم پخته (نارسېدلې) خرما. ﴿التزم﴾ د افتعال ماضي ده: پر ځان لازمول. په خپله ذمه اخیستل.

**تشریح:** فرمايي چي مساقات د اجارې په درجه کي دی او څرنګه چي اجاره د یوه عاقد په مرګ سره فاسدیږي، همداسي مساقات هم فاسدیږي، نو که چیري د ځمکي مالک (ربُ الأرض) مړ سي او مېوه وغیره تر اوسه پخ سوې نه وي، نیم پخته وي، نو عامل ته پکار دي چي څرنګه د ربُ الأرض په ژوند کي کار او د درختو پالنه کوي، همداسي د هغه تر مرګ وروسته به یې هم کوي د مېوې پخېدلو تر وخته. برابره د ربُ الأرض وارثان د هغه په دې عمل راضي وي، که نه وي؛ ځکه چي په عاقدینو کي د یوه عاقد تر مرګ وروسته قیاساً خو عقد ختمېدل پکار دي، خو له عامل څخه د ضرر او نقصان دفع کولو لپاره د استحسان پر بناء هغه باقي پرېښوول سوی دی؛ ځکه کله چي مېوه اومه او نیم پخته ده، نو اوس د عقد په ختمولو کي د عامل ضرر دی چي کچه نیم پخته مال به اخلي، نو ځکه د رسېدلو او پخېدلو تر وخته به عقد باقي پرېښوول کیږي.

ولو التزم الخ: او که عامل خپله پر ځان ضرر لازمول وغواړي یعني د ربُ الأرض تر مرګ وروسته عامل خپله د عقد ختمول وغواړي، نو هغه ته د دې اختیار سته؛ ځکه د عقد باقي پرېښوول د عامل په وجه وه. خو کله چي هغه د خپل حق په ساقطولو خپله راضي دی، نو بیا څه خبره نسته. خو په دې صورت کي د ربُ الأرض وارثانو ته هماغه د مزارعت والا درې اختیارات حاصلیږي: ① یو دا چي: وارثان دا نیم پخته مېوه د شرط مطابق د عامل سره تقسیم کړي. ② دویم: د عامل په حصه کي چي څومره نیم پخته خرما راځي، د هغه قیمت دي ورکړي. ③ دریم: د رسېدلو او پخېدلو تر وخته چي پر دې نیم پخته خرماوو څومره خرچ کیږي، هغه دي وارثان خپله وکړي، او بیا دي خرچ ته حساب وکړي نو د عامل په حصه کي چي څومره خرچ راسي، هغه دي د عامل له مېوې (خرما) څخه

واخلي، او دغه درې اختيارات ځکه دوی ته حاصليږي چې څرنګه د عامل د کار کولو په صورت کې وارثان د عامل سره جبراً تقسيم نه سي کولای چې په دې کې د عامل ضرر دی، همداسې په دې صورت کې عامل جبراً د وارثانو سره تقسيم نه سي کولای چې په دې کې د وارثانو ضرر دی، نو ځکه له وارثانو څخه د ضرر لیرې کولو لپاره به وارثانو ته مذکوره اختيارات ورکول کيږي؛ ځکه د فقهې دا مشهوره قاعده ده: لا ضرر ولا ضرار، يعني څوک به نه چا ته په نا حقه نقصان ورکوي او نه به يې پر خپل سر اخلي. (احسن الهدايه)

## د عامل يا دواړو عاقدينو د مرګ په صورت کې د مساقات حکم

وَلَوْمَاتَ الْعَامِلُ او که چيرې عامل مړ سي فَلِوَرَثَتِهِ أَنْ يَقُوْمُوْاعَلَيْهِ نو د هغه وارثانو ته دا اختيار سته چې دوی د هغه [درختو] پالنه وکړي وَإِنْ كَرِهَ رَبُّ الْأَرْضِ که څه هم د ځمکې مالک دا ناخوښه کړي لِأَنَّ فِيْهِ النَّظَرَ مِنَ الْجَانِبَيْنِ ځکه چې په دې کې د دواړو طرفونو مصلحت [او فايده] ده فَإِنْ أَرَادُوْا أَنْ يَصْرِمُوْهُ بُسْرًا بيا که د عامل وارثان وغواړي چې دا نيم پخته خرما [مېوه] وشکوي كَانَ صَاحِبُ الْأَرْضِ بَيْنَ الْخِيَارَاتِ الثَّلَاثَةِ الَّتِيْ بَيَّنَّاهَا نو د ځمکې مالک د همغه دريو اختياراتو په مينځ کې [مختاره] دی کوم چې موږ بيان کړه وَإِنْ مَاتَا جَمِيْعًا او که [عامل او ربُّ الأرض] دواړه مړه سي فَالْخِيَارُ لِوَرَثَةِ الْعَامِلِ نو اختيار د عامل وارثانو [ميراث خورو] لره دی لِقِيَامِهِمْ مَقَامَهُ ځکه چې دوی د هغه قائم مقام [نائبين] دي وَهٰذَا خِلَافَةٌ فِيْ حَقٍّ مَالِيٍّ او دا په حق مالي کې خلافت [نيابت] دی وَهُوَ تَرْكُ الثِّمَارِ عَلَى الْأَشْجَارِ إِلٰى وَقْتِ الْإِدْرَاكِ او حق مالي د پخېدلو تر وخته مېوه پر درختو پرېښوول دي لَا أَنْ يَكُوْنَ وَرَاثَةً فِي الْخِيَارِ او داسې نه ده چې دا په خيار کې وراثت دی [يا په بله وينا دا چې دا خيار د وراثت په توګه ورته حاصل نه دی] فَإِنْ أَبٰى وَرَثَةُ الْعَامِلِ أَنْ يَقُوْمُوْا عَلَيْهِ او که د عامل وارثان د هغه [درختو] د پالنې څخه انکار وکړي كَانَ الْخِيَارُ فِيْ ذٰلِكَ لِوَرَثَةِ رَبِّ الْأَرْضِ نو اوس په دې کې اختيار د ځمکې د مالک وارثانو لره دی [منه مخکينی درې اختياره] عَلٰى مَا وَصَفْنَا بناء پر هغه تفصيل کوم چې موږ [مخکې] بيان کړی.

**اللغات:** ﴿يقوموا عليه﴾ مخکې ذکر سوه چې کله د دې باب په صله کې عَلٰى راسي نو معنٰی يې ده: پالنه او نګرانې کول. ﴿يصرموا﴾ د ضرب له بابه د جمع مذکر غائب مضارع صيغه ده: پرېکول، شکول.

**تشریح**: فرمايي كه عامل مړ سي، نو په دې وخت كي دعمل (كار) ذمه واري دهغه پر وارثانو ده. برابره ده رب الأرض په راضي وي او كه نه؛ ځكه كله چي دعامل وارثان دمېوې پخېدلو تر وخته د هغه كار (د درختو پالنه) كوي، نو ښكاره ده چي دواړو طرفونو ته په كامله توګه نفع حاصلیږي. لهذا د دواړو طرفونو د مصلحت او ښېګڼي په خاطر دعامل وارثانو ته دا حق وركول سوى دى. لېكن كه د عامل وارثان دعمل پرېښوول او في الحاله د دې نيم پخته مېوې تقسيمول وغواړي، نو په دې صورت كي ربُ الأرض ته همغه درې اختيارات حاصلیږي كوم چي په مخكني مسئله كي تېر سول. -

**وإن ماتا جميعًا إلخ**: او كه عاقدين دواړه يو ځاى مړه سي، نو په دې صورت كښي هم دعامل وارثانو ته اختيار دى چي د ميوې پخېدلو تر وخته دعامل كار وكړي؛ ځكه چي دوى دعامل نائبين دي. او څرنګه چي عامل ژوندى واى، نو د مالک تر مرګ وروسته به عامل د مېوې پخېدلو تر وخته د مساقات كار جاري ساتلاى، نو همداسي به وارثان هم دا كوي.

**وهذا خلافة إلخ**: دا د يو اشكال جواب دى. اشكال دا دى چي خيار شرط داحنافو په نېز عرض دى. او عرض انتقال نه قبلوي او وارثت نه پكښي جاري كيږي. نو بيا تاسي ولي په دې مسئله كي دعامل اختيار دهغه د وارثانو طرف ته منتقل كړى؟.

د دې په جواب كي صاحب د هدايې رَحِمَهُ الله فرمايي چي دمړه عامل وارثانو ته حاصل سوى اختيار په وراثت كي حاصل سوى اختيار نه دى، بلكي دا حقِ مالي دى، او په حقِ مالي كي داسي اختيار جاري كيږي. او دلته حق مالي پر درختو دمېوې په پرېښوولو كي دى. لهذا دوى ته به دا حق او اختيار حاصلیږي.

لنډه دا چي كله د وارثانو لپاره دا اختيار ثابت سو، نو كه دوى د هغه اختيارول وغواړي، نو ښه دى، خو كه دوى انكار وكړي، نو په دې صورت كي د ځمكي د مالک وارثانو ته اختيار حاصلیږي؛ ځكه چي د پخېدلو تر وخته دمېوې په پرېښوولو كي د دواړو طرفونو مصلحت او فايده ده. نو ځكه حتى الامكان به د هغه خيال ساتل كيږي. (احسن الهدايه)

## د مېوې تر پخېدلو مخكي د مودت ختمېدلو حكم

قَالَ: وَإِذَا انْقَضَتْ مُدَّةُ الْمُعَامَلَةِ فرمايي: او كله چي د مساقات مودت تېر سي [ختم سي] وَالْخَارِجُ بُسْرٌ أَخْضَرُ حال دا چي پيداوار [مېوه] شنه نيم پخته وي فَهٰذَا وَالْأَوَّلُ سَوَاءٌ نو دا او اول صورت برابر دى [يعني دا مساقات او اول يعني د مرګ په وجه چي كوم مساقات ختم سي د دواړو حكم يو دى] وَلِلْعَامِلِ أَنْ يَقُومَ عَلَيْهَا إِلَى أَنْ يُدْرِكَ او عامل لره حق دى چي د مېوې پخېدلو تر وخته د هغه [درختو] پالنه كوي

لٰكِنْ بِغَيْرِ أَجْرٍ لېکن له أجرت څخه بغير [به يې کوي] لِأَنَّ الشَّجَرَ لَا يَجُوزُ اسْتِئْجَارُهُ ځکه چي درختي په اجاره اخيستل جائز نه دي بِخِلَافِ الْمُزَارَعَةِ فِي هٰذَا په خلاف د مزارعت په دې [د مودت تېرېدلو په] صورت کي لِأَنَّ الْأَرْضَ يَجُوزُ اسْتِئْجَارُهَا ځکه چي ځمکه په اجاره اخيستل جائز دي وَكَذٰلِكَ الْعَمَلُ كُلُّهُ عَلَى الْعَامِلِ هٰهُنَا او همدارنګه دلته کار ټوله پر عامل دی وَفِي الْمُزَارَعَةِ فِي هٰذَا عَلَيْهِمَا او په مزارعت کي په داسي صورت کي پر دواړو دی لِأَنَّهُ لَمَّا وَجَبَ أَجْرُ مِثْلِ الْأَرْضِ بَعْدَ انْتِهَاءِ الْمُدَّةِ عَلَى الْعَامِلِ ځکه له مودت ختمېدلو څخه وروسته چي کله پر عامل د ځمکي اجرت مثل واجب سو لَا يَسْتَحِقُّ عَلَيْهِ الْعَمَلَ نو پر هغه د کار استحقاق نه راځي [په بله وينا دا چي: نو پر هغه کار کول واجب نه پاتېږي] وَهٰهُنَا لَا أَجْرَ او دلته [په مساقات کي] هيڅ اجرت نسته فَجَازَ أَنْ يَسْتَحِقَّ الْعَمَلَ نو ځکه [دلته] جائز دي چي پر عامل د کار استحقاق پاته سي كَمَا يَسْتَحِقُّ قَبْلَ انْتِهَائِهَا لکه څرنګه چي له مودت ختمېدلو څخه پر هغه د کار استحقاق وو.

**اللغات**: ﴿انقضت﴾ د انفعال د باب ماضي ده: تېرېدل، ختمېدل. ﴿بُسر﴾ نيم پخته خرما. ﴿استئجار﴾ د استفعال مصدر دی: په أجرت اخيستل، په أجرت (په کرايه) نيول.

**تشريح**: فرمايي که مېوه (خرما) تر اوسه نيم پخته وي چي په دې حالت کي د مساقات مودت ختم سي، نو په دې صورت کي به د مېوې پخېدلو تر وخته مساقات باقي پرېښوول کېږي او د پخېدلو تر وخته به عامل خپل کار کوي، لکه څرنګه چي په اول صورت کي يعني چي د ځمکي د مالک (رب الأرض) د مرګ په وجه مساقات ختم سي، نو عامل د مېوې پخېدلو تر وخته کار کوي. او څرنګه چي په مزارعت کي که مودت ختم سي، نو د کښت پخېدلو تر وخته عامل کار کوي، همدغسي حکم دلته هم دی چي د مېوې پخېدلو تر وخته به هغه کار جاري ساتي.

خو د مزارعت او مساقات تر مينځ فرق دا دی چي که په مزارعت کي مودت ختم سي او کښت تر اوسه پوخ سوی نه وي، نو د کښت پخېدلو تر وخته چي څومره خرچ او کار کيږي هغه پر دواړو لازم دی او د کښت پخېدلو تر وخته چي څومره ورځي يا مياشتي کښت پر ځمکه پاته وي، د هغومره وخت به عامل د ځمکي أجرت (کرايه) ورکوي؛ لېکن دلته په مساقات کي حکم دا دی چي دغه أجرت او کرايه پر عامل نسته، همدارنګه خرچ او کار پر دواړو نه لازمېږي بلکي صرف پر عامل لازمېږي، وجه يې دا ده چي ځمکه په اجاره (په کرايه) اخيستل کېدای سي (نو ګواکي عامل د خپل حصې

لپاره ځمکه په اجاره واخیستله)، لیکن درختي په اجاره نه اخیستل کیږي او جائز نه دي، لهذا کله چي په مزارعت کي ځمکه په اجاره اخیستل جائز دي، نو ځکه هلته د مودت ختمېدلو په صورت کي د کښت پخېدلو تر وخته به عامل د ځمکي اُجرت ورکوي.

وکذا العمل إلخ: فرمايي چي دلته (په مساقات کي) چي کله مودت ختم سي نو کار ټوله صرف پر عامل لازم دی، او په مزارعت کي چي کله مودت ختم سي، نو کار پر دواړو لازم دی؛ د دې وجه دا ده چي ځمکه په اجاره اخیستل کیږي. لهذا کله چي عامل ځمکه په اجاره واخیستله، نو پر هغه کار واجب پاته نه سو، نو په دې وجه پر دواړو کار او خرچ لازم سو، او په مساقات کي درختي په اجاره اخیستل جائز نه دي، نو ځکه پر عامل کار واجب پاتیږي، لکه څرنګه چي مودت ختم سوي نه وای، نو پر هغه به د مېوې پخېدلو تر وخته کار واجب وای.

خلاصه دا چي په کوم صورت کي پر عامل اُجرت لازم وي (چي هغه مزارعت دی)، نو هلته یوازي پر هغه کار لازم نه دی، بلکي د دواړو پر ذمه دی، او چیري چي پر عامل اُجرت نه وي (چي هغه مساقات دی)، نو هلته ټوله کار یوازي د عامل پر ذمه دي.

## د عذر په وجه د مساقات فسخ کېدلو بیان

قَالَ: وَتُفْسَخُ بِالْأَعْذَارِ [امام قدوري رَحِمَهُ الله] فرمايي: چي د عذرونو په وجه به اجاره فسخ کول کیږي [ماتول کیږي] لِمَا بَيَّنَّا فِي الْإِجَارَاتِ د هغه دلیل په وجه کوم چي موږ په کتابُ الإجاره کي بیان کړی دی وَقَدْ بَيَّنَّا وُجُوهَ الْعُذْرِ فِيهَا او هلته موږ د عذر صورتونه هم بیان کړي دي وَمِنْ جُمْلَتِهَا أَنْ يَكُونَ الْعَامِلُ سَارِقًا يُخَافُ عَلَيْهِ سَرِقَةُ السَّعَفِ وَالثَّمَرِ قَبْلَ الْإِدْرَاكِ او د هغوی له جملې څخه یو عذر دا دی چي عامل غل وي چي پر هغه بېره [او خطره] وي د درختو د ښاخونو د غلا کولو او تر پخېدلو مخکي د مېوې غلا کولو لِأَنَّهُ يَلْزَمُ صَاحِبَ الْأَرْضِ ضَرَرٌ لَمْ يَلْتَزِمْهُ ځکه چي [په دې صورت کي] د ځمکي پر مالک داسي ضرر لازمیږي کوم چي ده پر ځان لازم کړی نه دی فَيُفْسَخُ بِهِ نو ځکه د دې ضرر په وجه به اجاره فسخ کول کیږي وَمِنْهَا مَرَضُ الْعَامِلِ إِذَا كَانَ يُضْعِفُهُ عَنِ الْعَمَلِ او له هغه عذرونو څخه یو عذر د عامل مریض کېدل دي کله چي دا مرض هغه له کار کولو څخه کمزوری کوي لِأَنَّ فِي إِلْزَامِهِ اسْتِئْجَارَ الْأُجَرَاءِ زِيَادَةَ ضَرَرٍ عَلَيْهِ ځکه چي پر عامل د مزدورانو د استئجار [اُجرت نیولو] په لازمولو کي پر هغه نور ضرر سته [یعني که پر عامل دا لازم کړی سي چي اوس به

د خپل کار لپاره نور مزدوران نیسي. نو په دې سره هغه ته زائد نقصان رسیږي] وَلَمْ يَلْتَزِمْهُ حال دا چې هغه دا پر ځان لازم کړی نه دی فَيُجْعَلُ ذٰلِكَ عُذْرًا نو دا به عذر ګرځول کیږي وَلَوْأَرَادَ الْعَامِلُ تَرْكَ ذٰلِكَ الْعَمَلِ او که چیرې عامل د دې کار پرېښوول وغواړي هَلْ يَكُوْنُ عُذْرًا؟ نو آیا دا به عذر وي فِيْهِ رِوَايَتَانِ په دې باره کې دوه روایتونه دي وَتَأْوِيلُ إِحْدَاهُمَا أَنْ يُشْتَرَطَ الْعَمَلُ بِيَدِهِ او له هغوی څخه د یوه تأویل دا دی چې [که چیرې] د عامل په خپل لاس سره کول شرط وي [چې عامل به خپله دا کار کوي] فَيَكُونَ عُذْرًا مِنْ جِهَتِهِ نو دا به د هغه له طرفه عذر وي.

**اللغات:** ﴿تفسخ﴾ د نصر مضارع ده: فسخ کول، عقد ماتول، فسخ کېدل. ﴿السَّعَف﴾ جمع د سَعفةٌ ده: د خرما د درختي وچ ښاخونه چې پاڼې هم وربانـدي وي (أغصـان شـجر النخيـل اليابسـة مـا دامت بأوراقها) (معجم لغة الفقهاء). ﴿يضعّف﴾ د تفعيل مضارع ده: ضعيفه کول، کمزوري کول.

**تشریح:** د عبارت حاصل دا دی چې څرنګه اجاره او مزارعت د سخت عذرونو په وجه فسخ کول کېدای سي، همداسي مساقات هم د سخت عذر په وجه فسخ کول کېدای سي، مخکې د هدایې پر صفحه: ۳۲۵، ج: ۳ د "باب فسخ الإجارات" په ضمن کې د دې اعذارو او اسبابو ذکر تېر سوی دی.

خو صاحب د هدایې له هغه اعذارو څخه دلته د دوو نورو یادونه کوي، چې ① یو عذر دا دی چې عامل غل وي او دا بېره وي چې له پخېدو څخه مخکې به مېوه وشکوي او کور ته به یې یووسي یا د درختو وچ ښاخونه او د باغ بوټي او لرګي به غلا کړي، نو په دې صورت کې مساقات او مزارعت فسخ کول کېدای سي.

② او بل عذر دا دی چې عامل دومره سخت مریض سي چې له کاره ووځي او په کار کولو سره نور ضعیفه کیږي، نو دا هم عذر دی او په دې صورت کې به مساقات او مزارعت فسخ کول کیږي، او که دا وویل سي چې په دې صورت کې دې دغه مریض عامل د خپل کار لپاره نور خلک په مزدوري ونیسي او هغو ته دې أجرت او مزدوري ورکړي، نو دا بیا ځکه صحیح نه دی چې په شروع کې خو عامل د خپل کار کول شرط کړی وو چې زه به خپله کار کوم، او په بل چا د کار کولو په صورت کې هغه ته نور ضرر رسیږي، کوم چې هغه پر ځان لازم کړی نه وو، نو ځکه سخت مرض به هم عذر شمېرل کیږي او عقد به فسخ کول کیږي.

ولوأراد إلخ: فرمایي که عامل وغواړي چې دا کار بالا نه کوم او دغه عقد مساقات او کار پرېږدم، نو آیا دا عذر دی، که نه؟، په دې باره کې دوه روایتونه دي: ① یو روایت دا دی چې څرنګه دلته د عقد په پوره

كولو كي د عامل هيڅ ضرر نسته، نو ځكه د كار پرېښوول عذر نه دي، عامل به پر كار كولو مجبورول كيږي، ② د دويم روايت حاصل دا دی چي كه خودي د عامل كار كول شرط وي (چي خپله هغه به دا كار كوي)، او هغه يې نه كول غواړي، نو دا عذر دي، او كه چيري د هغه كار كول شرط نه وي، نو په دې صورت كي عذر نه كيږي او په نورو مزدورانو به كار كوي، ځكه چي دا عذر د همده له طرفه راغلی دی، نو ځكه د هغه نقصان به هم دئ پوره كوي.

## د مساقات يو ناجائز صورت

وَمَنْ دَفَعَ أَرْضًا بَيْضَاءَ إِلَى رَجُلٍ سِنِيْنَ مَعْلُوْمَةً او څوک چي يو سړي ته د څو معلومو كلونو لپاره ځمكه وركړي يَغْرِسُ فِيْهَا شَجَرًا عَلَى أَنْ تَكُوْنَ الْأَرْضُ وَالشَّجَرُ بَيْنَ رَبِّ الْأَرْضِ وَالْغَارِسِ نِصْفَيْنِ چي هغه په دې ځمكه كي درختي كښېږدي [نهالان شنه كړي] پر دې شرط [يې وركړي] چي ځمكه او درختي به د ربُ الأرض او نهال ايښوونكي [عامل] تر مينځ نيم په نيمه وي لَمْ يَجُزْ ذٰلِكَ نو دا جائز نه دي لِاشْتِرَاطِ الشَّرِكَةِ فِيْمَا كَانَ حَاصِلًا قَبْلَ الشَّرِكَةِ لَا بِعَمَلِهِ ځكه چي [دلته] شركت په هغه شي [يعني ځمكه] كي مشروط دی كوم چي له شركت څخه مخكي حاصل دی، نه د عامل په عمل سره، [يعني كوم چي د عامل په كار سره حاصل سوی نه دی] وَجَمِيْعُ الثَّمَرِ وَالْغَرْسِ لِرَبِّ الْأَرْضِ او ټوله مېوه او ايښوول سوي نهالان د ځمكي د مالک دي وَلِلْغَارِسِ قِيْمَةُ غَرْسِهِ وَأَجْرُ مِثْلِهِ فِيْمَا عَمِلَ او نهال ايښوونكي [عامل] لره د خپل نهالانو قيمت او د خپل كړي كار أجرت مثلي دی لِأَنَّهُ فِيْ مَعْنَى قَفِيْزِ الطَّحَّانِ ځكه چي دا صورت د قفيز الطحان په معنیٰ سره دی إِذْ هُوَ اسْتِئْجَارٌ بِبَعْضِ مَا يَخْرُجُ مِنْ عَمَلِهِ ځكه دا په أجرت نيول دي په بعضي هغه څه سره كوم چي د عامل په عمل سره راوځي وَهُوَ نِصْفُ الْبُسْتَانِ او هغه نيم باغ دی [يعني دا صورت د عامل په كار سره د پيدا كېدونكي شي د بعضي حصې په بدله كي يعني د نيم باغ په بدله كي په أجرت اخيستل دي] فَيَفْسُدُ نو ځكه دا صورت به فاسديږي وَتَعَذَّرَ رَدُّ الْغِرَاسِ او د نهالانو واپس كول مشكل دي لِاتِّصَالِهَا بِالْأَرْضِ ځكه چي هغه د ځمكي سره متصل دي فَيَجِبُ قِيْمَتُهَا وَأَجْرُ مِثْلِهِ نو ځكه د هغوی قيمت او د عامل أجرت مثلي به واجب وي لِأَنَّهُ لَا يَدْخُلُ فِيْ قِيْمَةِ الْغِرَاسِ ځكه أجرت مثلي د نهالانو په قيمت كي نه داخليږي لِتَقَوُّمِهَا بِنَفْسِهَا ځكه چي نهالان بذات خود متقوم [قيمتداره] دي وَفِيْ تَخْرِيْجِهَا طَرِيْقٌ آخَرُ بَيَّنَّاهُ فِيْ كِفَايَةِ الْمُنْتَهِيْ او د دغه مسئلې په

تخريج کي يو بله طريقه هم سته کوم چې مونږ په كفايت المنتهي کي بيان کړې ده وَهٰذَا أَصَحُّهُمَا لیکن دا طريقه [کوم چې مو اوس ذکر کړه] زياته صحيح ده په دواړو کي.

**اللغات**: ﴿بيضاء﴾ د مؤنث اسم تفضيل صيغه ده. مراد: خالي ځمکه چې څه پر کرل سوي نه وي، ﴿يغرس﴾ د ضرب مضارع ده: نهال او بوټي ايښوول (نيالکی لګول، شنه کول)، ﴿الغارس﴾ نهال او بوټي ايښوونکی، ﴿الغرس﴾ ايښوول سوی نهالان او بوټي (لګول سوي او شنه کړل سوي نيالګي چې وروسته بيا درختي ځني جوړيږي)، جمع: الغِرَاس او الأَغْرَاس. ﴿قفيز الطحان﴾ د قفيز تعريف مخکي تېر سوی دی چې دا يو پېمانه ده او د طَحَّان معنیٰ ده: ميده کونکی، د غنمو اوړه کونکی (ژرندي والا)، قفيز الطحان د فقهي يو اصطلاح ده، صورت يې دا دی چې يو څوک طحان يعني ژرندي والا ته داوړه کولو لپاره غنم ورکړي او فيصله پر دې وسي چې کله دا غنم اوړه سي نو تا ته به اُجرت کي له همدې اُوړو څخه يو قفيز يا مثلاً شل سېره يا پنځويشت سېره اُوړه درکوم، دا ممنوع او ناجائز دي.

**تشريح**: **صورت د مسئلې**: داسي دی چې که يو څوک بل چا ته د يو څو معلومو کلونو لپاره خپل خالي ځمکه ورکړي چې په دې کي نهالان يعني کوچنی درختي کښېږده او دوی دا شرط سره ولګوي چې کله دا کوچنی درختي کښېښول سي، نو درختي او ځمکه دواړه به د عامل او ربُ الأرض تر مينځ نيم په نيمه تقسيمول کيږي، نو فرمايي چې دا صورت فاسد او غيرِ صحيح دی، ځکه تاسي ته مخکي ذکر سوه چې عامل ته چې نفع او اُجرت حاصليږي هغه د عمل او کار په وجه ورته حاصليږي، او دلته په يو داسي شي (ځمکه) سره هغه ته نفع حاصليږي، چې په هغه کي نه خو د عامل د عمل دخل سته او نه د شرکت؛ ځکه چې ځمکه خو د دوی له شرکت څخه مخکي موجوده ده، نو ځکه په دې صورت کي عقد فاسديږي. (يا په بله وينا دا چې ځمکه له مخکي څخه سته، د عامل د کار په وجه په ځمکه کي زياتوب راتلونکی نه دی، او کوم څه چې د عقد په صورت کي له مخکي څخه وي، په هغه کي د چا شرکت صحيح نه دی، نو ځکه دا عقد فاسديږي [اثمار الهدايه]).

او بل دا چې دا صورت د قفيز الطحان په درجه کي هم دی؛ ځکه چې دلته هم د عامل په کار او محنت سره درختي او نهالان ايښوول کيږي او شنه کيږي، او بيا داغه درختي او نهالان ده ته په اُجرت کي ورکول کيږي، نو دا د قفيز الطحان په څېر سو، او تاسي ته معلومه ده چې له قفيز الطحان څخه منع سوې ده، نو ځکه دا عقد به هم ممنوع او فاسد وي.

وجميع الثمر إلخ: اوس چي کله عقد فاسد سو، نو ټوله مېوه او درختې د ربُ الأرض کيږي، او عامل (غارس) ته به د خپل اينبوول سوو درختو قيمت او د خپل کار أجرت مثلي ورکول کيږي: ځکه کله چي اينبوول سوي درختي او نهالان د ربُ الأرض د ځمکي سره متصل دي، نو د هغوی کښل او مثل يې واپس کول متعذر او مشکل دي، او د ردّ مثل د متعذر کېدلو په صورت کي د شي قيمت ورکول کيږي، نو ځکه دلته به هم عامل ته د نهالانو (اينبوول سوو درختو) قيمت ورکول کيږي.

لأنه لا يدخل إلخ: دا د يو مقدر اعتراض جواب دی، اعتراض دا دی چي کله عامل ته د نهالانو (اينبوول سوو درختو) قيمت ورکول کيږي، نو بيا هغه ته د أجرت مثلي ورکولو څه ضرورت دی.

د همدې په جواب کي فرمايي چي په کار او نهالانو کي فرق دی، نهالان جوهر دي او بذات خود متقوّم دي، او کار عرض دی، بذات خود متقوّم نه دی، نو ځکه د نهالانو په قيمت کي د کار دخل نسته او د هغه به جلا أجرت ورکوي.

وفي تخريجها إلخ: او دا مسئله په کفاية المنتهي کي په بله طريقه سره ذکر سوې ده، کوم چي د دې مسئلې د فاسدېدلو د يو بل دليل حيثيت لري (يعني ګواکي هغه د دغه عقد او مسئلې د فاسدېدلو يو بل دليل دی). هغه داسي ذکر سوې ده چي ربُ الأرض د خپل نصف ځمکي په عوض کي له عامل (غارس) څخه هغه نصف نهالان رانيسي کوم چي يې عامل اړدي، يا د نصف ځمکي او نصف پيداوار په عوض کي د عامل ټوله نهالان رانيسي، او په دې صورت کي عقد په دې وجه فاسديږي چي په دې صورت کي د عقد پر مهال نهالان معدوم دي، او کله چي نهالان معدوم دي، نو ثمن مجهول سو، او د ثمن د جهالت په وجه عقد فاسديږي، نو ځکه په دې صورت کي به هم عقد فاسديږي، خو غوره صورت (او دليل) هغه دی کوم چي دلته په هدايه کي ذکر سوی دی. (احسن الهدايه) والله أعلم وعلمه أتم

# كِتَابُ الذَّبَائِحِ

## (دا) کتاب د ذبح کېدونکو څارويو (په بيان کې) دی

**تشريح**: لکه څرنګه چې په مزارعت او مساقات کې له ځمکې او درختو څخه وروسته (په مستقبل کې) نفع اخيستل کيږي. همداسې ذبيحه څاروی اول ذبح کول کيږي. بيا وروسته د هغه له غوښو وغيره څخه نفع اخيستل کيږي. يا په بله وينا دا چې په مزارعت او مساقات کې چې کوم شی فی الحاله د خوړلو قابل نه دی. همداسې په ذبائح کې هم دي. بلکې په دواړو کې وروسته (په مستقبل) کې د انتفاع قابل ګرځي. په همدې مناسبت صاحب د هدايې رَحِمَهُ الله ذبائح له مزارعت او مساقات څخه وروسته بيان کړي دي.

**د څاروي د حلال کېدو لپاره**: په ذبح سره د څاروي د حلال ګرځېدلو لپاره پنځه خبرې ضروري دي: ① يو دا چې پر څاروي به "بسم الله" وايي. ② دويم دا چې په ذبح سره به له څاروي څخه وينه وځي. که چيرې ذبح اختياري وي نو د څاروي د غاړې څلور سره رګونه به ورپرېکوي او توله وينه به باسي. او که ذبح اضطراري وي. نو په غشي وغيره سره به د څاروي څه نا څه وينه باسي. نو بيا څاروی حلال ګرځي. تفصيل به يې وروسته راسي. ③ درېيم شرط دا دی چې ذبح کونکی (حلالونکی) به مسلمان وي. يا به کتابي يعني يهودي يا نصراني وي. ④ څلورم دا چې څاروی به داسې وي کوم چې په ذبح کولو سره حلاليږي. يعني خنزير. سپی وغيره به نه وي. ⑤ پنځم دا چې که د حرم ښکار ذبح کوي. نو ذبح کونکی به محرم (احرام تړونکی) نه وي او د حرم په حدودو کې به نه وي. هو! عام څاروی (کوم چې د ښکار نه وي) محرم ذبح کولای سي او د حرم په حدودو کې يې ذبح کولای سي.

### د ذبح شرعي حيثيت، تعريف او شرائط

قَالَ: الذَّكَاةُ شَرْطُ حِلِّ الذَّبِيحَةِ فرمايي: د ذبيحه [څاروي] د حلال کېدو لپاره ذبح کول شرط دي لِقَوْلِهِ تَعَالَى ﴿إِلَّا مَا ذَكَّيْتُمْ﴾ [المائدة: ٣] د الله تعالیٰ د دې فرمان "إِلَّا مَا ذَكَّيْتُم" په وجه وَلِأَنَّ بِهَا يَتَمَيَّزُ الدَّمُ النَّجِسُ مِنَ اللَّحْمِ الطَّاهِرِ او ځکه چې په ذکاة [ذبح کولو] سره ناپاکه وينه له پاکې غوښې څخه جلا کيږي وَكَمَا يَثْبُتُ بِهِ الْحِلُّ يَثْبُتُ بِهِ الطَّهَارَةُ فِي الْمَأْكُولِ وَغَيْرِهِ او څرنګه چې په ذبح کولو

سره حلال والی ثابتیږي همداسي په هغه سره په خوړل کېدونکي ځاروي او نا خوړل کېدونکي ځاروي [دواړو] کي پاکوالی هم ثابتیږي [چي بيا يې د غوښو او داسي نورو سره لمونځ کول جواز لري] فَإِنَّهَا تُنْبِئُ عَنْهَا ځکه چي ذکاة د طهارت خبر ورکوي [يعني د ذکاة مراد دی: پاکوالی او پاکي] وَمِنْهَا قَوْلُهُ عليه السلام: «ذَكَاةُ[1] الْأَرْضِ يُبْسُهَا» او له همدې قبيل څخه دی د نبي ﷺ دا فرمان چي: د ځمکي ذکاة [يعني د ځمکي پاکوالی] د هغې وچوالی دی [يعني لنده ناپاکه ځمکه چي کله وچه سي نو پاکيږي] وَهِيَ اخْتِيَارِيَّةٌ كَالْجُرْحِ فِيمَا بَيْنَ اللَّبَّةِ وَاللَّحْيَيْنِ او دا ذکاة او ذبح [پر دوه قسمه ده: يو] اختياري ده [او هغه] لکه زخمي کول [پرېکول] په هغه ځای کي چي په مينځ کي د سينې او زامو دی وَاضْطِرَارِيَّةٌ وَهِيَ الْجُرْحُ فِي أَيِّ مَوْضِعٍ كَانَ مِنَ الْبَدَنِ او [دويم] ذبح ضطراري ده او هغه زخمي کول [زخم لګول] دي په هر يو حصه د بدن کي وَالثَّانِي كَالْبَدَلِ عَنِ الْأَوَّلِ او دويم [ذبح اضطراري] د اول [ذبح اختياري] د بدل [او نائب] په څېر دی لِأَنَّهُ لَا يُصَارُ إِلَيْهِ إِلَّا عِنْدَ الْعَجْزِ عَنِ الْأَوَّلِ ځکه چي و دې دويم ته صرف له اول څخه د عاجزه کېدو په وخت کي رجوع کيږي وَهَذَا آيَةُ الْبَدَلِيَّةِ او دا د بدل والي [او نائب والي] نښه ده وَهَذَا لِأَنَّ الْأَوَّلَ أَعْمَلُ فِي إِخْرَاجِ الدَّمِ او دا ځکه چي اول [ذبح اختياري] د وينې په ايستلو [باسلو] کي زيات کارګذاره دی وَالثَّانِي أَقْصَرُ فِيهِ او دويم [ذبح اضطراري] په دې کي کوتاه دی فَاكْتُفِيَ بِهِ عِنْدَ الْعَجْزِ عَنِ الْأَوَّلِ نو ځکه په دې دويم [ذبح اضطراري] سره له اول څخه د عاجزه کېدو په صورت کي اکتفاء کيږي إِذِ التَّكْلِيفُ بِحَسَبِ الْوُسْعِ ځکه مکلف کېدل د وس مطابق وي [يعني انسان د خپل وس او ګنجايش مطابق مکلف سوی دی] وَمِنْ شَرْطِهِ أَنْ يَكُونَ الذَّابِحُ صَاحِبَ مِلَّةِ التَّوْحِيدِ او د ذبح له شرط څخه دا ده چي ذبح کونکی به د توحيد د ملت والا وي [يعني د توحيد له اقرار کونکو څخه به وي] إِمَّا اعْتِقَادًا يا خو په عقيدوي اعتبار سره [به له ملت توحيد څخه وي] كَالْمُسْلِمِ لکه مسلمان [چي حقيقتاً د توحيد عقيده لري] أَوْ دَعْوَى يا د دعوې په اعتبار سره [به له ملت توحيد څخه وي]

---

[1] تخريج: اخرجه ابن ابي شيبه في كتاب الطهارة. باب في الرجل يطأ الموضع القذر. حديث رقم: ٦٢٤. صاحب د اثمار الهدايه غفرالله له فرمايي چي دا قول صحابي دی کوم چي د مصنف ابن أبي شيبه په ج: ١. ص: ٥٩ کي ذکر سوی دی.

كَالْكِتَابِيِّ لکه کتاب والا [يعني يهودي او نصراني] وَأَنْ يَكُوْنَ حَلَالًا خَارِجَ الْحَرَمِ او [بل شرط] دا چي ذبح کونکی به حلال او له حرم څخه بهر وي عَلَىٰ مَا نُبَيِّنُهُ إِنْ شَاءَ اللهُ تَعَالَىٰ بناء بر هغه تفصيل چي موږ به يې ان شاء الله [څه وروسته] بيان کړو.

**اللغات:** ﴿ذكاة﴾ (په ذال سره) اسم مصدر دی: ذبح کول، حلالول (معجم الوسيط، مصباح المنير). ﴿الذبيحة﴾ د صفت مشبه صيغه ده: ذبح کړی سوی څاروی، ﴿تنبئ﴾ د افعال مضارع ده: خبر ورکول، ﴿لَبَّة﴾ د دې لفظ مختلفه معناوي نقل سوي دي چي د ټولو مطلب يو کېدای سي: ① أَسْفَلُ العنقِ يعني له غاړي څخه لاندي والا حصه (معجم لغة الفقهاء)، ② المَنْحر، يعني مَوضعُ النحر (مصباح المنير)، ③ مَوضعُ القلادة من العنق (معجم الوسيط)، ④ سينه (احسن، اثمار)، ﴿لحيين﴾ تثنيه د لَحْيٌ ده: زامه، ژامه، برغبنی، ﴿وُسْع﴾ (بضم الواو وسكون السين): وس، توان، طاقت، ﴿الملة﴾ دين، مذهب، دلته يې مراد دی: د توحيد اعتقاد (د الله ﷻ ديو والي عقيده لرل).

**تشريح:** فرمايي چي د څاروي د روا کېدو او حلال ګرځېدو لپاره ذبح (حلالول) شرط دي؛ ځکه په دې آيت شريف ﴿إِلّا ما ذكيتم... إلخ﴾ کي تر ذبح وروسته څاروی حلال ګرځول سوي دي، او بل دا چي د ذبح په ذريعه ناپاکه وينه له پاکي غوښي څخه جلا کيږي، همدارنګه په ذبح سره چي څرنګه مأكول اللحم پاکيږي، همداسي د هغه په ذريعه په غير مأكول اللحم کي هم پاکي راځي نو بيا د هغه د غوښو او اجزاؤ سره لمونځ جائز کيږي، يعني د کوم حيوان غوښي چي حلال نه وي لکه شپږ (زمری) او داسي نور. نو که هغه ذبح کړی سي نو په غوښو کي يې طهارت راځي چي که هغه په جېب کي وساتل سي لمونځ ور سره روا دی، نو ځکه اسلام ذبح کول لازم او ضروري ګرځولي دي. صاحب د هدايې رَحِمَهُ الله ذكاة د طهارت په معنیٰ سره استعمال کړی دی. او د دې پر صحت يې يو حديث هم پېش کړی دی چي په "ذكاة الأرض يبسها" کي هم ذكاة د طهارت په معنیٰ سره دی.

وهي اختيارية إلخ: له دې ځايه صاحب د هدايې رَحِمَهُ الله د ذبح اقسام بيانوي، نو ياد لرئ! چي ذبح پر دوه قسمه ده: ① اختياري: يعني د څاروي د سينې او زامو تر مينځ (يعني پر غاړه) د چاړه وغيره تېرولو ته ذبح اختياري وايي، ② اضطراري: د څاروي د بدن په هسي يو حصه کي زخم جوړولو (زخمي کولو) ته ذبح اضطراري وايي. او څرنګه چي اصل ذبح اختياري ده. نو ځکه پر اصل د قدرت نه لرلو په صورت کي د ذبح اضطراري وطرف ته رجوع کيږي (مثلاً که يو څاروی وترهيږي او ذبح ته غاړه نه ږدي، نو بيا به په غشي وغيره سره ويشتل کيږي...)، په همدې وجه ذبح اضطراري ته د ذبح اختياري بدل

ویل کیږي. او د دغه بدل کېدو (نائب والي) یوه بله وجه دا هم ده چې په ذبح اختیاري کې کما حقهٗ وینه ایستل کېدای سي، خو په ذبح اضطراري کې دا کیفیت په کامله توګه نسته. نو ځکه له ذبح اختیاري څخه د عاجزه کېدو په صورت کې بیا ذبح اضطراري اختیارول کیږي؛ ځکه کله چې ځاروی وترهیږي او وتښتیږي، نو ښکاره ده چې انسان هلته پر ذبح اختیاري قدرت نه لري. او انسان حسب القدرة په احکامو مکلف دی. نو ځکه پر ذبح اختیاري د قدرت نه لرلو په صورت کې د ذبح اضطراري وطرف ته رجوع کول دا هم د هغه د بدل کېدو نښه ده چې ذبح اضطراري د ذبح اختیاري بدل ده.

ومن شرطه إلخ: له دې ځایه صاحب د هدایې رَحِمَهُ الله د ذبح د شرائطو یادونه کوي چې یو شرط یې دا دی چې ذبح کونکی (حلالونکی) به د توحید اقرار کونکی وي، برابره ده هغه اعتقاداً وي یعني حقیقتاً توحید والا وي لکه مسلمان. یا دعویٰ یې وي یعني حقیقتاً توحید والا خو نه وي، لېکن د دې دعویٰ کوي چې موږ توحید والا یو. لکه کتابي (یعني نصراني او یهودي). همدارنګه د ذبح کونکي حلال والی هم شرط دی کله چې ذبیحه د ښکار ځاروی وي؛ ځکه چې د محرم (احرام تړونکي) ذبیحه حلاله نه ده. همدارنګه له حرم شریف څخه د ذبح کونکي خارج والی هم شرط دی؛ چې وروسته به یې تفصیل ذکر سي.

## د ذبح د اهلیت بیان

قَالَ: وَذَبِيحَةُ الْمُسْلِمِ وَالْكِتَابِيِّ حَلَالٌ [امام قدوري رَحِمَهُ الله] فرمایي: چې د مسلمان او کتابي ذبیحه حلاله ده لِمَا تَلَوْنَا د هغه آیت په وجه کوم چې موږ تلاوت کړی وَلِقَوْلِهِ تَعَالَىٰ ﴿وَطَعَامُ الَّذِينَ أُوتُوا الْكِتَابَ حِلٌّ لَّكُمْ﴾ [المائدة: ۵] او د الله تعالیٰ د دې فرمان په وجه چې: طعام یعني ذبیحه د اهلِ کتابو ستاسي لپاره حلاله ده وَيَحِلُّ إِذَا كَانَ يَعْقِلُ التَّسْمِيَةَ او ذبیحه [ځاروی] حلال ګرځي په دې شرط [۱] کله چې ذبح کونکی بسم الله پېژني وَالذَّبِيحَةَ [۲] او په ذبح کولو پوهیږي وَيَضْبِطُ [۳] او شرائط د ذبح [یعني د اوداجو او رګونو پرېکول] یې ضبط کړي [یاد] وي وَإِنْ كَانَ صَبِيًّا أَوْ مَجْنُونًا أَوِ امْرَأَةً بیا که څه هم دا ذبح کونکی کوچنی یا لېونی یا ښځه وي [نو ذبیحه یې حلاله ده] أَمَّا إِذَا كَانَ لَا يَضْبِطُ وَلَا يَعْقِلُ التَّسْمِيَةَ وَالذَّبِيحَةَ لېکن که هغه شرائط د ذبح ضبط کړي نه وي او نه په بسم الله او په ذبح کولو پوهیږي لَا تَحِلُّ نو د هغه ذبیحه حلاله نه ده لِأَنَّ التَّسْمِيَةَ عَلَى الذَّبِيحَةِ شَرْطٌ بِالنَّصِّ

ځکه چي پر ذبيحه بسم الله ويل د نص [آيت] په وجه شرط دي وَذٰلِكَ بِالْقَصْدِ او دا په اراده سره کيږي [چي په قصد او اراده سره بسم الله ووايي] وَصِحَّةُ الْقَصْدِ بِمَا ذَكَرْنَا او د ارادې صحيح کېدل په هغه [دريو] شيانو سره دي کوم چي مونږ ذکر کړه [يعني: يعقل التسمية والذبيحة ويضبط] وَالْأَقْلَفُ وَالْمَخْتُونُ سَوَاءٌ او ناسنته او سنت کړی سوی دواړه سره برابر دي لِمَا ذَكَرْنَا د هغه دليل په وجه کوم چي مونږ ذکر کړی وَإِطْلَاقُ الْكِتَابِيِّ يَنْتَظِمُ الْكِتَابِيَّ الذِّمِّيَّ وَالْحَرْبِيَّ وَالْعَرَبِيَّ وَالتَّغْلِبِيَّ او اطلاق د کتابي [يعني په متن کي چي لفظ د کتابي مطلق دی دا] ذمي کتابي، حربي کتابي. عربي کتابي او د قوم تغلب کتابي ټولو لره شامل دی لِأَنَّ الشَّرْطَ قِيَامُ الْمِلَّةِ ځکه چي شرط د ملت توحيد قائمېدل دي [چي ذبح کونکی به له ملت توحيد څخه وي يعني د توحيد اقرار کونکی به وي] عَلَىٰ مَا مَرَّ لکه [مخکي] چي تېر سوه.

**اللغات**: ﴿ذبيحة﴾ د صفت مشبه صيغه ده په معنیٰ سره د مذبوحة: ذبح کړی سوی څاروی. جمع: ذبائح. ﴿الملة﴾ دين، مذهب. مراد: د توحيد اعتقاد ﴿يعقل﴾ د ضرب مضارع ده: په پوهېدل. پوهه لرل. ﴿أقلف﴾ هغه کس چي تر اوسه سنت سوی نه وي. ناسنته. نا ختنه سويز

**تشريح**: څرنګه چي په دې آيت ﴿إلا ما ذكيتم إلخ﴾ سره د مسلمان او کتابي د ذبيحې حلت ثابتيږي، همداسي په دغه آيت ﴿وطعام الذين إلخ﴾ سره هم د اهل کتابو د ذبيحې حلت ثابتيږي.
په صحيح بخاري کي ذکر سوي دي چي د ابن عباس رضي الله عنه په نيز له "طعام" څخه مراد ذبيحه ده. بيا ذبح کونکی برابره ده صغير (کوچنی) وي، او که ښځه وي، يا مجنون وي. که چيري هغه په تسميه (بسم الله ويلو) خبر وي او بسم الله ووايي هم، همدارنګه د ذبح په کيفيت او شرائطو (يعني د څلورو سره رګونو په پرېکولو) پوهيږي، نو د هغه ذبيحه حلاله ده. لېکن که هغه تسميه نه پېژني، يا په کيفيت د ذبح نا خبره وي، نو د هغه ذبيحه حلاله نه ده؛ ځکه چي د ذبيحې د حلت لپاره تسميه على الذبيحه (يعني پر مذبوحه څاروي بسم الله ويل) شرط دي، او د تسميه وجود په قصد سره کيږي (چي په اراده سره به بسم الله وايي)، او د قصد او ارادې صحيح والی په مذکوره شيانو سره راځي يعني ذبح کونکي به په تسميه. د ذبح په کيفيت او شرائطو پوهيږي.

والأقلف والمختون إلخ: فرمايي چي په مختون او غير مختون (سنت شده او ناسنته) کي هيڅ فرق نسته، که چيري په دوی کي مذکوره اوصاف وي، نو د دوی ذبيحه معتبره ده. کنې معتبره نه ده. او صاحب د هدايې رَحِمَهُ الله د دې يادونه ځکه کړې ده چي د حضرت ابن عباس رَضِيَ اللهُ عَنْهُمَا په نيز د غير

مختون (نابسته) شهادت او د هغه ذبيحه معتبره نه ده. لېکن څرنګه چې د ﴿إلّا ما ذَكّيتم إلخ﴾ او د ﴿وطعام إلخ﴾ په عموميت کې دا ټوله داخل دي، نو ځکه کله چې په دوی کې د ذبح شرائط موجود وي، نو ذبيحه يې حلاله ده.

واطلاق الكتابي إلخ: د دې حاصل دا دی چې په متن کې چې کوم د "الكتابي" لفظ دی. په هغه کې هر ډول کتابي داخل دي، برابره ده هغه ذمي وي او که حربي وي، عربي او تغلبي وي. او که د بل ځای اوسېدونکی وي، په دې شرط چې هغه د توحيد مُقر او په مذکوره اوصافو متصف وي. نو د هغه ذبيحه حلاله ده؛ ځکه چې د ذبح د حلت لپاره د ملت توحيد قائمېدل شرط دي. برابره ده هغه په اعتقادي توګه وي. يا د دعوې په توګه وي (لکه مخکې چې يې وضاحت وسو).

**يادونه:** د امريکې، بريطانيې او داسې نورو عيسايان (نصارىٰ) تش په نامه عيسايان دي او په حقيقت کې دهريان دي چې بالکل په بسم الله ويلو خبر نه دي نو وايي به يې چيري!. کوم چې د مسلمان لپاره هم ضروري ده. نو ځکه د دوی له ذبيحې څخه ځان ساتنه ضروري ده.

## د مجوسي او مرتد د ذبيحې حکم

قَالَ: وَلَا تُؤْكَلُ ذَبِيْحَةُ الْمَجُوْسِيِّ [امام قدوري رَحِمَهُ الله] فرمايي: او د مجوسي ذبح کړی سوی څاروی به نه خوړل کيږي لِقَوْلِهِ عَلَيْهِ السَّلَامُ [1]: «سُنُّوْا بِهِمْ سُنَّةَ أَهْلِ الْكِتَابِ غَيْرَ نَاكِحِي نِسَائِهِمْ وَلَا آكِلِي ذَبَائِحِهِمْ» د نبي کريم ﷺ د دې فرمان په وجه: چې تاسي د مجوسيانو سره د اهلِ کتابو طريقه [چلند] اختيار کړئ خو د هغوی د ښځو سره نکاح مه کوئ او مه يې ذبيحې خورئ وَلِأَنَّهُ لَا يَدَّعِي التَّوْحِيْدَ او ځکه چې مجوسي د توحيد دعویٰ نه کوي [لکه کتابي چې يې کوي] فَانْعَدَمَتِ الْمِلَّةُ اعْتِقَادًا وَدَعْوَى نو [د مجوسي په حق کې] د عقيدې او دعوې دواړو په اعتبار سره ملت توحيد معدوم سو قَالَ: وَالْمُرْتَدِّ فرمايي: او نه به د مرتد ذبيحه خوړل کيږي لِأَنَّهُ لَا مِلَّةَ لَهُ ځکه چې هغه لره هيڅ ملت نسته فَإِنَّهُ لَا يُقَرُّ عَلَى مَا انْتَقَلَ إِلَيْهِ ځکه چې مرتد پر هغه ملت باقي [برقرار] نه ساتل کيږي د کوم وطرف ته چې هغه منتقل سوی دی بِخِلَافِ الْكِتَابِيِّ إِذَا تَحَوَّلَ إِلَى غَيْرِ دِيْنِهِ په خلاف د کتابي کله چې هغه بل

---

[1] تخريج: دغه حديث په اصل کې د دوو حديثونو مجموعه ده چې د هغه اوله حصه (سنوا بهم سنة اهل الكتاب) د مصنف عبد الرزاق په ج: ٩، ص: ٥٥٢ کې ذکر سوې ده. حديث رقم: ١٩٣٧٣. او دويمه حصه يې هم په مذکوره جلد ص: ٥٥٣ کې ذکر سوې ده. حديث رقم: ١٩٣٧٦. او مذکوره حديث په مصنف ابن أبي شيبه کې هم نقل سوی دی. حديث رقم: ٣٢٦٣٥.

دین ته واوړي لِأَنَّهُ يُقَرُّ عَلَيْهِ عِنْدَنَا ځکه هغه زموږ په نېز پر هغه دین برقرار ساتل کیږي فَيُعْتَبَرُ مَا هُوَ عَلَيْهِ عِنْدَ الذَّبْحِ لَا مَا قَبْلَهُ نو اعتبار به کیږي د هغه حالت چي پر هغه دا کتابي د ذبح په وخت کي دی، نه تر هغه د مخکي حالت [يعني عند الذبح والا حالت يې معتبر دی. او تر هغه مخکيني حالت يې معتبر نه دی] قَالَ: وَالْوَثَنِيِّ او نه به د بت پرست ذبیحه خوړول کیږي لِأَنَّهُ لَا يَعْتَقِدُ الْمِلَّةَ ځکه چي هغه د ملت توحیده عقیده نه لري.

**اللغات**: ﴿سُنُّوا﴾ د نصر له بابه د جمع مذکر امر حاضر صیغه ده. د دې باب ډېري معناوي دي، چي يو څو معناوي يې دا دي: جاري کول، تاکل، اختیارول، مراد ځني سلوک او طريقه اختیارول دي، ﴿سنة﴾ طريقه، خصلة، سلوک (چلند)، ﴿انعدمت﴾ د افعال له بابه د ماضي صیغه ده: نیستي کېدل، ختمېدل، ﴿لا يُقر﴾ د افعال له بابه د مضارع صیغه ده. د دې باب هم ډېري معناوي دي، دلته يې معنی ده: باقي او بر قرار ساتل (باقي پرېښوول)، پاته کول، ﴿وثني﴾ بت پرست، د بت عبادت کونکی.

**تشریح**: په دې عبارت کي درې جلا، جلا مسئلي بيان سوي دي:

(۱)... د مجوسي (اور لمانځي) ذبیحه حلاله نه ده او نه به خوړل کیږي؛ ځکه په حدیث شریف کي صراحتاً د هغه له ذبیحې څخه منع سوې ده، يعني که څه هم د اهل کتابو په څېر مجوسیان هم جزیه ورکوي او د جزیې په بدله کي امن ورکول کیږي، خو مسلمان به نه د دوی د ښځو سره نکاح کوي او نه به د دوی ذبیحه خوري. او بل دا چي د ذبح د صحت لپاره د توحید اقرار شرط دی او مجوسي د توحید منکر وي، لهذا د اعتقاد او عمل دواړو په اعتبار سره د هغه په حق کي ملت توحید معدوم دی، حالانکي د صحت ذبح لپاره د ملت توحید وجود شرط دی. که څه هم صرف د هغه دعوی وي.

(۲)... همدارنګه د مرتد ذبیحه هم حلاله نه ده؛ ځکه چي هغه لره هیڅ ملت نسته. ځکه تر اسلام وروسته چي هغه کوم ملت اختیاروي، زموږ په نېز دئ پر هغه برقرار نه شمېرل کیږي (يعني مرتد چي اوس کوم مذهب اختیار کړی دی، د هغه مذهب والا به نه ګرځول کیږي. بلکي توبه پر لازمه ده يا به قتلول کیږي؛ ځکه هغه د کافر په درجه کي دی)، نو ځکه ذبیحه يې حلاله نه ده.

لېکن که يو کتابي خپل ملت بدل کړي او بل ملت اختیار کړي، مثلاً يهودي نصراني سي يا د دې برعکس، نو د ذبح پر مهال به د هغه ملت ته کتل کیږي، که ملت توحید وي، نو ذبیحه يې حلاله ده. کنې خوړل يې حلال نه دي؛ او د کتابي په حق کي دا رعایت ځکه سوی دی چي زموږ په نېز حکم دا دی چي که له مسلمان څخه بغیر بل مذهب والا خپل مذهب بدل کړي. نو دئ به پر هغه مذهب باقي منل کیږي (او نه به قتلول کیږي)، نو ځکه د ذبح پر وخت به د هغه ملت ته په کتو سره فیصله کیږي.

(۳)... او د بت پرست ذبيحه هم حلاله نه ده؛ ځکه چي هغه د ملتِ توحيد معتقد نه دی او نه يې دعوی کوي (يعني ديوه خدای عقيده نه لري)، بلکي مشرک دی او د زرهاوو خدايانو عقيده لري. لهذا هغه که څه هم ديوه خدای نوم (يعني بسم الله) ووايي او څاروی ذبح کړي، نو بيا هم حلال نه ګرځي.

## د محرم (احرام تړونکي) ذبيحه

قَالَ: وَالْمُحْرِمِ يَعْنِيْ مِنَ الصَّيْدِ فرمايي: او نه به د محرم ذبيحه خوړل کيږي يعني ښکار والا ذبيحه وَكَذَا لَايُؤْكَلُ مَا ذُبِحَ فِي الْحَرَمِ مِنَ الصَّيْدِ او همداسي به هغه ښکار والا ذبيحه هم نه خوړل کيږي کوم چي په حرم کي ذبح کړی سوی وي وَالْإِطْلَاقُ فِي الْمُحْرِمِ يَنْتَظِمُ الْحِلَّ وَالْحَرَمَ او د محرم اطلاق حل او حرام دواړو لره شامل دی وَالذَّبْحُ فِي الْحَرَمِ يَسْتَوِي فِيهِ الْحَلَالُ وَالْمُحْرِمُ او [د ښکار] ذبح کول په حرم کي په دې کي حلال او محرم دواړه برابر دي وَهٰذَا لِأَنَّ الذَّكَاةَ فِعْلٌ مَشْرُوعٌ او دا ځکه چي ذبح يو مشروع فعل دی وَهٰذَا الصَّنِيْعُ مُحَرَّمٌ او دغه کار [يعني په حرم کي (او د محرم لپاره) ښکار ذبح کول] حرام دي فَلَمْ تَكُنْ ذَكَاةً نو ځکه دا به ذبح کول [حلالول] نه وي بِخِلَافِ مَا إِذَا ذَبَحَ الْمُحْرِمُ غَيْرَ الصَّيْدِ په خلاف د هغه صورت کله چي محرم غير ښکار [عام څاروی] ذبح کړي أَوْ ذَبَحَ فِي الْحَرَمِ غَيْرَ الصَّيْدِ يا په حرم کي کي غيرِ ښکار ذبح کړي صَحَّ نو دا صحيح دي لِأَنَّهُ فِعْلٌ مَشْرُوعٌ ځکه دا مشروع فعل دی إِذِ الْحَرَمُ لَا يُؤَمِّنُ الشَّاةَ ځکه چي حرم پسه [بزه او داسي نورو يعني عام څاروي] ته پناه نه ورکوي وَكَذَا لَا يَحْرُمُ ذَبْحُهُ عَلَى الْمُحْرِمِ او همداسي پر محرم هم د پسه [عام څاروي] ذبح کول حرام نه دي.

**اللغات**: ﴿مُحْرِم﴾ هغه کس چي احرام يې تړلی وي، د احرام په حالت کي وي. ﴿صَيد﴾ ښکار، يعني د ښکار حيوان، هغه څاروی چي خلک يې ښکاروي. ﴿صنيع﴾ کار، کاروايي. ﴿شاة﴾ عام اسم دی: پسه، وزګري، بزه (وزه) ټولو لره شامل دی.

**تشريح**: په دې عبارت کي دوې مسئلې بيان سوي دي:

(۱)... محرم کس نه د حرم ښکار ذبح کولای سي، او نه د حِل، که داسي وکړي، نو ذبيحه يې حلاله نه ده.

(۲)... حرم يعني د مکې مبارکي چار طرفه چي کوم معلوم حدود دي، په هغه کي يو ښکار نه محرم کس ذبح کولای سي، او نه حلال کس، که يې ذبح کړي، نو حلال نه دی لهذا نه به خوړل کيږي.

والإطلاق إلخ: يعني په متن كې چې كوم د محرم لفظ مطلق ذكر سوى دى، د هغه مطلب دا دى چې محرم كس نه د حرم ښكار ذبح كولاى سي او نه د حل ښكار؛ ځكه چې دواړه ممنوع دي.

والـذبح إلخ: يعني په حرم كې برابره ده حلال كس ښكاره ذبح كړي او كه محرم كس، د دواړو د ښكار ذبيحه حلاله نه ده؛ ځكه په حرم كې ښكار ذبح كول حرام دي، لهذا په دې ذبح سره هغه نه حلاليږي.

وهٰذا لأن الزكاة إلخ: د پورتني مسئلې دليل بيانوي چې ذبح يو مشروع او روا كار دى، او په حرم كې ښكار ذبح كول يا د محرم لپاره ښكار ذبح كول ممنوع كار دى (ځكه په آيتو كې له دې څخه منع سوې ده: ﴿حُرِّمَ عَلَيْكُمْ صَيْدُ الْبَرِّ مَا دُمْتُمْ حُرُمًا﴾، ﴿يَا أَيُّهَا الَّذِيْنَ آمَنُوْا لَا تَقْتُلُوا الصَّيْدَ وَأَنْتُمْ حُرُم﴾). نو ځكه دا كار كول به ذكاة (حلالول) نه وي.

بخلاف ما إلخ: فرمايي كه محرم له ښكار څخه بغير بل څاروى ذبح كړي مثلاً عام پسه، بزه او داسې نور، نو ذبيحه يې حلاله ده، او همدارنګه كه دا عام څاروى په حرم كې ذبح كړي، نو حلال دى؛ ځكه چې حرم صرف ښكار ته پناه وركوي، او پاته سو عام څارويو (غير صيد) ته امن او پناه نه وركوي، بلكې په حرم كې دننه د هغه ذبح كول روا دي او همدارنګه د محرم لپاره د هغه ذبح كول روا دي. لنډه دا چې ممانعت فقط د ښكار والا څارويو سره خاص دى، ولا حرج في غيره.

## قصداً د تسميه (بسم الله) پرېښوولو بيان

قَالَ: وَإِنْ تَرَكَ الذَّابِحُ التَّسْمِيَةَ عَامِدًا فرمايي: او كه چيرې ذبح كونكى قصداً بسم الله ويل پرېږدي فَالذَّبِيحَةُ مَيْتَةٌ لَا تُؤْكَلُ نو ذبيحه مرداره ده، نه به خوړل كيږي وَإِنْ تَرَكَهَا نَاسِيًا او كه په هېره سره بسم الله ويل پرېږدي أُكِلَ نو خوړول كيږي به وَقَالَ الشَّافِعِيُّ: أُكِلَ فِي الْوَجْهَيْنِ او امام شافعي رَحِمَهُ الله فرمايي: چې په دواړو صورتونو كې به خوړل كيږي وَقَالَ مَالِكٌ: لَا تُؤْكَلُ فِي الْوَجْهَيْنِ او امام مالك رَحِمَهُ الله فرمايي: چې په دواړو صورتونو كې به نه خوړل كيږي وَالْمُسْلِمُ وَالْكِتَابِيُّ فِي تَرْكِ التَّسْمِيَةِ سَوَاءٌ او د بسم الله په پرېښوولو كې مسلمان او كتابي دواړه سره برابر دي وَعَلَىٰ هٰذَا الْخِلَافِ إِذَا تَرَكَ التَّسْمِيَةَ عِنْدَ إِرْسَالِ الْبَازِيْ وَالْكَلْبِ وَعِنْدَ الرَّمْيِ او پر همدغه اختلاف دي كله چې بسم الله ويل پرېږدي په وخت كې د ايله كولو د باز او سپي او په وخت كې د غشي ويشتلو.

**اللغات:** ﴿ذابح﴾ د فتح د باب فاعل دی : ذبح کونکی، حلالونکی. ﴿بازی﴾ باز، مشهوره مرغه دی چي ځيني وخت د ښکار لپاره ګارول کيږي. ﴿رمی﴾ د ضرب مصدر دی : ويشتل، غورځول.

**تشريح: صورت د مسئلي :** دا دی چي که ذبح کونکی (حلالونکی) بسم الله پريږدي، نو د شوافعو په نېز که يې قصداً پرې اينښې وي او که ناسياً، په دواړو صورتونو کي ذبيحه حلاله ده او خوړل يې روا دي، امام مالک رَحِمَهُ الله فرمايي چي په دواړو صورتونو کي د هغه خوړل صحيح نه دي، او د احنافو په نېز تفصيل دی چي که قصداً بسم الله پريږدي، نو په دې صورت کي ذبيحه مرداره ده او خوړل يې حرام دي، او که په هېره يې پريږدي، نو ذبيحه حلاله ده او خوړل يې روا دي، او په دې سلسله کي د مسلمان او کتابي تر مينځ هيڅ فرق نسته، يعني برابره ده ذبح کونکی کس مسلمان وي، او که يهودي يا نصراني وي هريو که بسم الله پريږدي، نو ذبيحه يې حلاله نه ده.

وعلى هذا إلخ: همدارنګه که د ښکار نيولو لپاره د باز يا تازي او داسي نورو د ايله کولو پر مهال که بسم الله پريږدي، يا پر ښکار د غشي غورځولو پر مهال يې پريږدي، نو په دې باره کي هم د فقهاؤ مذکوره اختلاف دی، يعني د شوافعو په نېز مطلقاً حلال دی، د امام مالک رَحِمَهُ الله په نېز په دواړو صورتونو کي حرام دی او زموږ په نېز د قصداً بسم الله پرېښوولو په صورت کي ښکار حرام دی او د ناسياً پرېښوولو په صورت کي حلال دی.

## د امام شافعي رَحِمَهُ الله د قول حيثيت

وَهٰذَا الْقَوْلُ مِنَ الشَّافِعِيِّ مُخَالِفٌ لِلْإِجْمَاعِ او د امام شافعي رَحِمَهُ الله دغه قول د اجماع مخالف دی فَإِنَّهُ لَا خِلَافَ فِيمَنْ كَانَ قَبْلَهُ فِي حُرْمَةِ مَتْرُوكِ التَّسْمِيَةِ عَامِدًا ځکه چي له هغه شخصه په مخکينيو [فقهاؤ او صحابه وو] کي د قصداً بسم الله پرېښوول سوي ښاروي د حرمت په هکله هيڅ اختلاف نه وو وَإِنَّمَا الْخِلَافُ بَيْنَهُمْ فِي مَتْرُوكِ التَّسْمِيَةِ نَاسِيًا او د دوی تر مينځ خو اختلاف صرف په هغه ښاروي کي وو چي په هېره بسم الله باندي پرېښوول سوې وي فَمِنْ مَذْهَبِ ابْنِ عُمَرَ رَضِيَ اللهُ عَنْهُمَا أَنَّهُ يَحْرُمُ چي د ابن عمر رض مذهب دا وو چي هغه حرام دی وَمِنْ مَذْهَبِ عَلِيٍّ وَابْنِ عَبَّاسٍ رَضِيَ اللهُ عَنْهُمْ أَنَّهُ يَحِلُّ او د حضرت علي او ابن عباس رض مذهب دا وو چي هغه حلال دی بِخِلَافِ مَتْرُوكِ التَّسْمِيَةِ عَامِدًا په خلاف د هغه ښاروي چي قصداً بسم الله باندي پرېښول سوې وي [چي په هغه کي د هيچا اختلاف نه وو] وَلِهٰذَا قَالَ أَبُو يُوسُفَ وَالْمَشَايِخُ : إِنَّ مَتْرُوكَ التَّسْمِيَةِ عَامِدًا لَا يَسَعُ فِيهِ الِاجْتِهَادُ

په همدې وجه امام ابو يوسف او نورو مشايخو رَحِمَهُمُ الله فرمايلي دي: چې پر کوم څاروي قصداً بسم الله پرېښوول سوې وي په هغه کي د اجتهاد ګنجايش هم نسته وَلَوْقَضَى الْقَاضِي بِجَوَازِ بَيْعِهِ او که يو قاضي د داسي څاروي د بيع د جواز فيصله وکړي لَايَنْفُذُ نو هغه به نه نافذيږي لِكَوْنِهِ مُخَالِفًا لِلْإِجْمَاعِ ځکه چي هغه د اجماع په خلاف ده.

**اللغات**: ﴿التسمية﴾ د تفعيل د باب مصدر د. د دې باب څو معناوي دي چي يوه معنىٰ يې ده: بسم الله ويل. ﴿متروك﴾ د نصر د باب اسم مفعول دی: پرېښوول سوی. ﴿متروك التسمية﴾ لفظي هغه څاروی چي د هغه ذبح کولو پر مهال بسم الله پرېښوول سي.

**تشريح**: د عبارت حاصل دا دئ چي امام شافعي رَحِمَهُ الله کوم چي د قصداً بسم الله پرېښوولو په صورت کي هم د ذبيحې د حلت قائل دی، د هغه دا قول د اجماع خلاف دی؛ ځکه چي تر هغه ډېر مخکي صحابه کرامو او فقهاؤ په متفقه توګه داسي څاروی (يعني متروک التسمية عامداً) حرام ګرځولی دی، او په دې باره کي د يوه اختلاف هم منقول نه دی، ها! په هېره د بسم الله پرېښوولو په صورت کي د صحابه وو اختلاف دی، چي حضرت ابن عمر رضی الله عنهما په دې صورت کي د ذبيحې د حرمت قائل وو، او حضرت علي او ابن عباس رضی الله عنهم يې د حلت قائل وه. لېکن د عمداً په صورت کي خو يو هم د ذبيحې د حلت قائل نه وو.

**ولهذا قال**: فرمايي ځرنګه چي په صحابه وو او متقدمينو کي د متروک التسمية عامداً پر حرمت اجماع منعقد سوې وه. نو ځکه امام ابو يوسف او داسي نورو مشايخو رحمهم الله په دې سلسله کي اجتهاد منلی نه دی. همدا وجه ده که يو قاضي د متروک التسميه عامداً د صحت او د هغه د بيع د جواز فتوىٰ ورکړي، نو دا فتوىٰ او فيصله يې نه نافذيږي او نا معتبره ده؛ ځکه چي قاضي په دې مکلف دی چي د دين د اُصولو پابندي به کوي، او دلته هغه يو اَهم اصل يعني د اجماع مخالفت کوي، نو ځکه د هغه فتوىٰ او فيصله نامعتبره او د قبلولو لائق نه ده.

## د جانبینو دلائل

لَهُ قَوْلُهُ عَلَيْهِ السَّلَامُ [1] : اَلْمُسْلِمُ يَذْبَحُ عَلَى اِسْمِ اللهِ تَعَالٰى سَمّٰى أَوْلَمْ يُسَمِّ د امام شافعي رَحِمَهُ الله دليل د نبي ﷺ دا فرمان دی چي: مسلمان د الله پر نامه ذبح کوي [برابره ده] بسم الله يې ويلې وي او که يې ويلې نه وي وَلِأَنَّ التَّسْمِيَةَ لَوْكَانَتْ شَرْطًا لِلْحِلِّ او ځکه که چیري بسم الله ويل [د ځناروي] د حلال کېدلو لپاره شرط وای لَمَا سَقَطَتْ بِعُذْرِ النِّسْيَانِ نو د هیري په عذر سره به نه ساقطېدای كَالطَّهَارَةِ فِي بَابِ الصَّلَاةِ لکه پاکي کول د لمانځه په باب کي [چي که څه هم اودس ځني هېر سي نو بيا هم نه ساقطيږي] وَلَوْ كَانَتْ شَرْطًا او [بيا هم] که چيري بسم الله ويل شرط سي فَالْمِلَّةُ أُقِيمَتْ مَقَامَهَا نو ملت توحيد د هغه قائم مقام دی كَمَا فِي النَّاسِي لکه د هېرونکي په حق کي وَلَنَا الْكِتَابُ وَهُوَ قَوْلُهُ تَعَالٰى: ﴿وَلَا تَأْكُلُوا مِمَّا لَمْ يُذْكَرِ اسْمُ اللهِ عَلَيْهِ﴾ [الأنعام: ۱۲۱] او زموږ دلیل کتابُ الله دی او هغه د الله تعالیٰ دا فرمان دی: او تاسي مه خورئ له هغه ځارویو څخه چي پر هغوی د الله نوم ذکر سوی نه وي نَهْيٌ وَهُوَ لِلتَّحْرِيمِ دا نهي ده کوم چي د تحريم لپاره ده وَالْإِجْمَاعُ وَهُوَ مَا بَيَّنَّا او [زموږ دليل] اجماع هم ده کوم چي [څه مخکي] موږ بيان کړه وَالسُّنَّةُ وَهُوَ حَدِيثُ عَدِيِّ بْنِ حَاتِمِ الطَّائِيِّ رَضِيَ اللهُ عَنْهُ [2] او [زموږ بل دليل] حديث دی او هغه د حضرت عدی بن حاتم الطائي رضي الله عنه حديث دی فَإِنَّهُ عَلَيْهِ السَّلَامُ قَالَ فِي آخِرِهِ: «فَإِنَّكَ إِنَّمَا سَمَّيْتَ عَلٰى كَلْبِكَ وَلَمْ تُسَمِّ عَلٰى كَلْبِ غَيْرِكَ» چي د هغه حديث په آخر کي نبي ﷺ فرمايلي دي: چي تا خو پر خپل سپي بسم الله ويلې ده او د بل چا پر سپي دي نه ده ويلې ده عَلَّلَ الْحُرْمَةَ بِتَرْكِ التَّسْمِيَةِ [او گورئ! په دې حديث کي] نبي ﷺ د حرمت علت د بسم الله پرېښوول گرځولی دی وَمَالِكٌ يَحْتَجُّ بِظَاهِرِ مَا ذَكَرْنَا او امام مالک رَحِمَهُ الله زموږ د ذکر کړه دليلونو په ظاهر سره دليل

---

[1] تخریج: غریب بهذا اللفظ، لېکن دې ته په مفهوم کي نږدې حديث په دار قطني او سنن بيهقي کي نقل سوی دی (دار قطني، ج:۱، ص:۱۹۸، حديث رقم: ۴۷۶۲، سنن بيهقي، ج:۹، ص:۴۰۱، حديث رقم: ۱۸۸۹۰)، همدارنگه په دار قطني او سنن بيهقي کي د مذکوره حديث څنګ ته قول صحابي هم ذکر سوی دی کوم چي د امام شافعي رَحِمَهُ الله دليل جوړېدلای سي. هغه دا دی: عن ابن عباس (رض) قال: إذا ذبح المسلم فلم يذكر اسم الله فليأكل، فإن المسلم فيه إسماً من أسماء الله تعالى.

[2] تخریج: أخرجه البخاري، باب صيد المعراض، ص:۹۷۵، ومسلم في كتاب الصيد، باب الصيد بالكلاب المعلمة.

نیسي إِذْ لَا فَصْلَ فِيهِ ځکه چې په هغوی کې [د هیري او قصداً پرېښوولو] تفصیل نشته.

**اللغات:** ﴿سمّی﴾ د تفعیل د باب ماضي ده، مخکې ذکر سوه چې د دې باب یوه معنیٰ ده: بسم الله ویل.

**تشریح:** له دې ځایه صاحب د هدایې رَحِمَهُ الله بالترتیب د شوافعو او زمونږ دلیلونه بیانوي. د امام شافعي رَحِمَهُ الله دلیل هغه حدیث دی چې پکښې ذکر سوي دي چې مسلمان د الله پر نامه ذبح کوي برابره ده بسم الله ووایي، که یې نه ووایي (بس دا د مسلمان نوم د ده لپاره کافي دی). په دې حدیث سره امام شافعي رَحِمَهُ الله په دې توګه دلیل نیسي چې په دغه حدیث کې د عمد او نسیان له څه قید څخه بغیر د مسلمان د ذبیحې خوړلو اجازت ورکول سوی دی، برابره ده هغه بسم الله ویلې وي، که نه. معلومه سوه چې په دواړو صورتونو کې ذبیحه حلاله ده. برابره ده عمداً بسم الله نه ووایي او که یې سهواً نه ووایي.

ولأن التسمية إلخ: د امام شافعي رَحِمَهُ الله عقلي دلیل دا دی چې که بسم الله ویل د ذبیحې د حلت لپاره شرط وای، نو د نسیان (هیري) په صورت کې به هم هغه نه ساقطېدلای، یعنې د بسم الله پرېښوولو په صورت کې باید بالکل څاروی حلال نه وای، لکه څرنګه چې اودس د لمانځه لپاره شرط دی چې هغه د عمد او نسیان په دواړو صورتونو کې نه ساقطیږي (بلکې که څوک په هېره اودس پرېږدي، نو هم یې لمونځ نه صحیح کیږي). حال دا چې په هېره د بسم الله پرېښوولو په صورت کې څاروی حلال پاتیږي. معلومه سوه چې بسم الله ویل د څاروي د حلت لپاره شرط نه دي.

او که بالفرض بسم الله ویل د څاروي د حلت شرط ومنل سي، نو څرنګه چې د هیري په صورت کې ملت توحید (اسلام) د هیرونکي ذابح په حق کې د بسم الله قائم مقام منل کیږي. نو همداسې به د قصداً پرېښوولو په صورت کې هم ملت توحید د بسم الله قائم مقام منل کیږي، او په هېره د پرېښوولو په صورت کې څاروی حلال دی. لهذا د قصداً پرېښوولو په صورت کې به هم حلال وي.

ولنا إلخ: د احنافو درې دلیلونه دي او درې سره نقلي دي:

(۱)... په قرآن کریم کې د داسې څارویو له خوړلو څخه منع سوې ده چې بسم الله پر ویل سوې نه وي ﴿ولا تأكلوا ممّا لم يُذكرِ اسمُ الله عليه﴾. اوګورئ! په دې آیت کې صراحتاً د متروک التسمية عامداً د حرمت اعلان سوی دی.

(۲)... د هغه پر حرمت د ټولو صحابه وو او متقدمینو اجماع ده، نو ځکه د دې مخالف هیڅ قول به هم معتبر نه وي.

(۴)... د عدي بن حاتم ﷺ روايت دی کله چي هغه له نبي ﷺ څخه پوښتنه وکړه چي اې د الله نبي! زه چي کله ښکار کوم نو د ښکار لپاره بسم الله ووايم او خپل سپی پر هغه ور ايله کړم. خو زما د سپي سره نور سپيان هم يوځای سي او ما ته معلومه نه وي چي کوم يوه ښکار ونيوی. نو آيا زه دا ښکار خوړلای سم؟. نبي کريم ﷺ وفرمايل چي "تا خو پر خپل سپي بسم الله ويلې ده. نه د بل چا پر سپي". د دې مطلب دا سو چي که د بل چا سپی ښکار وکړي پر کوم چي تا بسم الله نه ده ويلې. نو بيا هغه ښکار مه خوره! حرام دی، او ګورئ! دلته نبي ﷺ بسم الله پرېښوول د حرمت سبب ګرځولی دی. نو معلومه سوه چي متروک التسمية عامداً څاروی مردار دی او خوړل يې حرام دي.

ومالك رَحِمَهُ الله إلخ: او امام مالک رَحِمَهُ الله د احنافو د مذکوره دليلونو په ظاهري مفهوم سره دليل نيسي فرمايي چي په دې دلائلو کي د عمد او نسيان له څه تفصيل څخه بغير مطلقاً متروک التسمية څاروی حرام ګرځول سوی دی (يعني په آيت او حديث کي دا تفصيل نسته چي که په هېره يې پرېښووله نو حلال دی. بلکي مطلقاً داسي ذکر دي چي پر کومه ذبيحه بسم الله نه وويل سي. هغه مه خورئ)، نو ځکه په هېره د بسم الله پرېښوولو په صورت کي به هم ذبيحه حرامه وي.

**زموږ له طرفه جوابونه**

وَلٰكِنَّا نَقُولُ فِي اعْتِبَارِ ذٰلِكَ مِنَ الْحَرَجِ مَا لَا يَخْفٰى لېکن موږ [جواباً] وايو: چي د دې په اعتبار کولو کي [د خلکو لپاره] ښکاره ستونزه ده کوم چي پټه نه ده لِأَنَّ الْإِنْسَانَ كَثِيرُ النِّسْيَانِ ځکه چي انسان ډېر هيري وألا دی وَالْحَرَجُ مَدْفُوعٌ او حرج [په شريعت کي] ليري کړی سوی دی وَالسَّمْعُ غَيْرُ مُجْرًى عَلٰى ظَاهِرِهِ او نقلي دليل هم پر خپل ظاهر جاري [او محمول] نه دی إِذْ لَوْ أُرِيدَ بِهِ ځکه که چيري ظاهر مراد وای لَجَرَتِ الْمُحَاجَّةُ وَظَهَرَ الِانْقِيَادُ نو [د صحابه وو په زمانه کي] به پر دې حجت وينه جاري کېدای او [د مخالف فريق] تسليم به ښکاره کېدای وَارْتَفَعَ الْخِلَافُ فِي الصَّدْرِ الْأَوَّلِ او د شروع په دور کي به اختلاف ليري سوي وای وَالْإِقَامَةُ فِي حَقِّ النَّاسِي وَهُوَ مَعْذُورٌ لَا يَدُلُّ عَلَيْهَا فِي حَقِّ الْعَامِدِ وَلَا عُذْرَ او [ملت توحيد د بسم الله] قائم مقام کېدل د هېرونکي په حق کي [بناء پر دې] چي هغه معذور دی دا دلالت نه سي کولای د دې [ملت توحيد] پر قائم مقام والي د قصداً پرېښوونکي په حق کي ځکه چي د هغه هيڅ عذر نسته وَمَا رَوَاهُ مَحْمُولٌ عَلٰى حَالَةِ النِّسْيَانِ او کوم حديث چي امام شافعي رَحِمَهُ الله روايت کړی دی هغه د هيري پر حالت حمل کړی سوی دی.

**اللغات**: ﴿السمع﴾ اورېدل سوي څه. مراد: نقلي دليل (قرآني او نبوي دليل). ﴿محاجة﴾ د مفاعلې د باب مصدر دی: د حجت او دليل په ذريعه مغلوبه کول. بحث او مناظره کول او حجتونه پېشول. ﴿انقياد﴾ د انفعال د باب مصدر دی: غاړه اېښودل او فرمان برداري کول (منل او تسليمول).

**تشريح**: امام مالک رَحِمَهُ الله ته زموږ جواب دا دی چې دلته د ظاهر په اعتبار کولو (او د ظاهري مفهوم په اخيستلو) کې ډېره غټه خرابي لازميږي؛ ځکه هېره د انسان په فطرت اخښلې ده او د انساني ژوند جزء لا ينفک دی، لهذا که هېره عذر نه وشمېرل سي، نو اُمت په حرج کې مبتلا کيږي، حالانکې په شريعت کې حرج دفع کړی سوی دی. او بل جواب دا چې که د دې دلائلو ظاهري معنیٰ معتبره وای. نو صحابه وو به هم په دې سره حجت نيولای او ټوله به پر دې خبره متفق وای چې په هېره د بسم الله پرېښوولو په صورت کې هم څاروی نه حلاليږي، حالانکې داسې نه ده او د صحابه وو په دور کې د دې هيڅ څرک نه ليدل کيږي، معلومه سوه چې دلته د آيت او حديث ظاهري معنیٰ مراد نه ده.

والإقامة في حق الناسي إلخ: مخکې امام شافعي رَحِمَهُ الله د ناسي حالت د عامد پر حالت قياس کړی وو او د دواړو په حق کې يې ملتِ توحيد د بسم الله قائم مقام منلی وو. د هغه په جواب کې فرمايي چې ناسي پر عامد قياسول صحيح نه دي؛ ځکه چې ناسي د بسم الله په پرېښوولو کې معذوره دی او عامد معذوره نه دی، لهذا چيري چې عذر وي، هلته به ملتِ توحيد د بسم الله قائم مقام منل کيږي او چيري چې عذر نه وي، هلته به ملت د بسم الله قائم مقام نه منل کيږي، لهذا د مقيس او مقيس عليه تر مينځ د تضاد په وجه دا قياس صحيح نه دی.

وما رواه إلخ: او امام شافعي رَحِمَهُ الله چې کوم حديث پېش کړی دی (يعني: المسلم يذبح إلخ). هغه د هيري پر حالت محمول دی؛ ځکه د يو بل صحابي حضرت راشد بن سعيد ﷺ په روايت کې د "إذا لم يتعمّد" الفاظ هم نقل سوي دي، لهذا کله چې دا حديث پر حالتِ نسيان محمول دی. نو په دې سره د مطلقاً ذبيحې پر حلت دليل نيول صحيح نه دي.

### د ذبح کولو پر مهال د بسم الله ويلو تفصيل

ثُمَّ التَّسْمِيَةُ فِي ذَكَاةِ الِاخْتِيَارِ تُشْتَرَطُ عِنْدَ الذَّبْحِ بيا بسم الله ويل په ذبح اختياري کې د ذبح کولو پر مهال شرط دي وَهِيَ عَلَى الْمَذْبُوحِ او دا پر ذبح کېدونکي څاروي بسم الله ويل دي وَفِي الصَّيْدِ تُشْتَرَطُ عِنْدَ الْإِرْسَالِ وَالرَّمْيِ او په ښکار کې [د ښکار کونکي حيوان او مرغه] د ايله کولو او د غشي غورځولو پر

مهال بسم الله ويل شرط دي وَهِيَ عَلَى الْآلَةِ او دا پر آله بسم الله ويل دي لِأَنَّ الْمَقْدُوْرَ لَهُ فِي الْأَوَّلِ الذَّبْحُ ځکه چي په اول صورت کي پر ذبح کولو قدرت سته وَفِي الثَّانِي الرَّمْيُ وَالْإِرْسَالُ دُوْنَ الْإِصَابَةِ او په دويم صورت کي پر غشي غورځولو او ايله کولو قدرت سته، نه د ښکار پر نيولو فَتُشْتَرَطُ عِنْدَ فِعْلٍ يَقْدِرُ عَلَيْهِ نو ځکه بسم الله ويل به د هغه فعل کولو په وخت کي شرط وي چي ذبح کونکی پر هغه قادر وي [قدرت پر لري] حَتّٰى إِذَا أَضْجَعَ شَاةً وَسَمّٰى فَذَبَحَ غَيْرَهَا بِتِلْكَ التَّسْمِيَةِ تر دې چي که يو پسه پرې باسي او بسم الله ووايي بيا په داغه بسم الله سره بل پسه ذبح کړي لَا يَجُوْزُ نو دا جائز نه دي وَلَوْ رَمٰى إِلٰى صَيْدٍ وَسَمّٰى وَأَصَابَ غَيْرَهُ او که د يو ښکار و طرف ته غشی وغورځوي او بسم الله ووايي خو غشی پر بل ښکار ولګيږي حَلَّ نو هغه حلال دی وَكَذَا فِي الْإِرْسَالِ او همدا حکم [د ښکار کونکي حيوان او مرغه] د ايله کولو په باره کي هم دی وَلَوْ أَضْجَعَ شَاةً وَسَمّٰى او که يو پسه پرې باسي او بسم الله ووايي ثُمَّ رَمٰى بِالشَّفْرَةِ وَذَبَحَ بِالْأُخْرٰى بيا چاړه وغورځوي او په بله چاړه سره [هغه پسه] ذبح کړي أُكِلَ نو هغه به خوړل کيږي وَلَوْ سَمّٰى عَلٰى سَهْمٍ ثُمَّ رَمٰى بِغَيْرِهِ صَيْدًا او که پر يوه غشي بسم الله ووايي بيا په بل غشي سره ښکار وويلي لَا يُؤْكَلُ نو هغه به نه خوړل کيږي.

**اللغات:** ﴿إرسال﴾ د افعال د باب مصدر دی، د دغه باب څو معناوي دي: ايله کول (پر ښکار ور پرېښوول)، لېږل او استول. ﴿رمى﴾ د ضرب مصدر دی: (غشی) غورځول، ويشتل. ﴿إصابة﴾ د افعال د باب مصدر دی، د دې باب هم څو معناوي دي چي له هغوی څخه ځيني دا دي: رسول، رسېدل، واردېدل. ﴿أضجع﴾ د افعال د باب ماضي ده: پرې باسل (پرې ايستل، څملاستول). ﴿شاة﴾ عام اسم دی، کوم چي پسه، وزګري، بزې، ميږي ټولو لره شامل دی، او جمع يې من غير لفظه غَنَم راځي. ﴿شفرة﴾ د دغه لفظ څو معناوي دي، چي له هغوی څخه يې يوه معنیٰ ده: غټه پراخه چاړه (مصباح اللغات).

**تشريح: صورت د مسئلې:** دا دی چي په ذبح اختياري کي د ذبح کولو پر مهال پر مذبوحه څاروي بسم الله ويل ضروري دي، او په ذبح اضطراري کي يعني د ښکار نيولو او د ښکار ويشتلو په وخت کي د سپي، باز وغيره د ايله کولو او د غشي غورځولو پر مهال بسم الله ويل ضروري دي، يعني په ذبح اضطراري کي پر آله (باز، سپي وغيره) بسم الله ويل معتبر دي؛ او د دې وجه دا ده چي انسان د خپل وس په اندازه په احکامو مکلف دی، لهذا په کوم صورت کي چي هم هغه قادر (قدرت لرونکی) وي، هماغه

په محل د بسم الله ګرځول کیږي، او موږ وینو چې په ذبح اختیاري کې انسان پر مذبوحه ځاروي قادر وي، نو ځکه په دې صورت کې پر مذبوحه ځاروي بسم الله ویل شرط دي، او څرنګه چې د ښکار وغیره (ذبح اضطراري) په صورت کې هغه پر مذبوحه ځاروي قادر نه وي، نو ځکه په هغه صورت کې د ښکار کونکي شي د ایله کولو پر مهال بسم الله ویل شرط دي. دغه اُصول تاسي په یاد لرئ!

حتی إذا أضجع إلخ: نو که څوک پسه پر ځمکه پرې باسي چې ذبح یې کړي او بسم الله پر وواېي، بیا په دغه بسم الله ویلو سره بل پسه ذبح کړي (مثلاً هغه اول پسه پر پرېږدي او دویم بسه بغیر له بسم الله ذبح کړي)، نو دا جائز نه دي او دا بل پسه نه حلالیږي؛ ځکه چې ده پر اول پُسه بسم الله ویلې وه، نه پر دې بل، لهذا د دې بل پسه ذبح بغیر له بسم الله وسوه، نو ځکه د هغه خوړل حلال نه دي.

ولو رمی إلخ: او که څوک مثلاً پر کوتره غشی وغورځوي او د غورځولو (ویشتلو) پر مهال بسم الله وواېي، خو د کوترې پر ځای هغه غشی پر هوسۍ ولګیږي، نو د دغه هوسۍ خوړل حلال دي؛ ځکه چې دا ذبح اضطراري ده چې په دې کې فقط پر آله بسم الله ویل ضروري دي، او دلته ده پر غشي (یعني د غشي غورځولو پر مهال) بسم الله ویلې ده، نو ځکه په دې صورت کې ښکار حلال دی.

همدا حکم د ښکاري سپي، باز وغیره د ایله کولو هم دی چې که د ایله کولو پر مهال یې بسم الله وویل سي، نو برابره ده دغې باز یا سپی هر ځاروی ښکار کړي (په دې شرط چې مأکول اللحم وي) نو هغه حلال دی.

ولو أضجع إلخ: بل صورت دا دی چې که څوک پسه پرې باسي، چاړه را واخلي او بسم الله وواېي، بیا دا چاړه وغورځوي بله چاړه را واخلي او دا پسه ذبح کړه، نو په دې صورت کې هم ذبیحه حلاله ده؛ ځکه چې دلته محل د بسم الله مذبوحه ځاروی دی چې په هغه کې هیڅ تبدیلي نه ده سوې، تبدیلي فقط په چاړه کې سوې ده او پسه خو هاغه پسه دی چې بسم الله پر ویل سوې ده، نو ځکه دا ذبیحه حلاله ده.

د دې په خلاف که څوک پر یوه غشي بسم الله وواېي خو بیا د هغه پر ځای بل غشی وغورځوي، یا مثلاً پر یوه باز بسم الله وواېي خو بیا د هغه پر ځای بل باز پر ښکار ور ایله کړي، نو دا سي ښکار حلال نه دی؛ ځکه چې دا ذبح اضطراري ده چې په هغه کې پر آله بسم الله ویل ضروري دي، حال دا چې په مذکوره صورت کې له ښکار کونکي آلې څخه بغیر پر بله آله بسم الله ویل سوې ده، نو ځکه دا ښکار حلال نه دی.

## د ذبح پر مهال د الله ﷻ له نوم سره د غیر الله یادونه کول

قَالَ [امام محمد رَحِمَهُ الله په جامع صغیر کې] فرمایلي دي وَيُكْرَهُ أَنْ يَذْكُرَ مَعَ اسْمِ اللهِ تَعَالَى شَيْئًا غَيْرَهُ او مکروه دي دا چې [د ذبح کولو پر مهال] د الله ﷻ د نوم سره بل شی [مثلاً د بل چا نوم] ذکر کړي وَأَنْ يَقُولَ عِنْدَ الذَّبْحِ: اللّٰهُمَّ تَقَبَّلْ مِنْ فُلَانٍ او [مکروه دي] دا چې د ذبح کولو پر مهال وواېي: اې الله ﷻ! له

فلانکي څخه يې قبول کړه وَهٰذِهِ ثَلَاثُ مَسَائِلَ او دا درې مسئلې دي إِحْدَاهَا: أَنْ يَذْكُرَ مَوْصُولًا لَا مَعْطُوفًا [۱] له هغوی څخه يوه دا ده: چې دا بل شی [غير الله] متصلاً ذکر کړي، نه په عطف سره فَيُكْرَهُ نو دا مکروه دي وَلَا تَحْرُمُ الذَّبِيْحَةُ لېکن ذبيحه نه حرامېږي وَهُوَ الْمُرَادُ بِمَا قَالَ او همداغه مراد دي په هغه سره کوم چې امام محمد رَحِمَهُ الله [په متن کي] ويلي دي وَنَظِيْرُهُ أَنْ يَقُوْلَ: بِاسْمِ اللهِ مُحَمَّدٌ رَسُوْلُ اللهِ او د دې مثال دا دی چې داسي ووايي: بسم الله محمدٌ رسول الله لِأَنَّ الشِّرْكَةَ لَمْ تُوْجَدْ ځکه چې شرکت موجود نه سو فَلَمْ يَكُنِ الذَّبْحُ وَاقِعًا لَهُ نو ذبح د نبي ﷺ [غير الله] لپاره واقع نه سوه إِلَّا أَنَّهُ يُكْرَهُ خو دا صورت مکروه دی لِوُجُوْدِ الْقِرَانِ صُوْرَةً ځکه چې [دلته] د صورت په اعتبار سره متصل کېدل موجود سوه فَيَتَصَوَّرُ بِصُوْرَةِ الْمُحَرَّمِ نو ځکه دا صورت به د حرام [مکروه تحريمي] صورت لرونکی وي [يعني د قِران موجودېدلو په وجه دغه صورت د مکروهِ تحريمي صورت اختيار کړی].

**اللغات:** ﴿قِران﴾ اسمِ مصدر دی، له نصر او ضرب دواړو څخه راځي: متصل کېدل، يو ځای کېدل.

**تشريح: مسئله:** دا ده چې د ذبح کولو پر مهال له الله ﷻ څخه بغير د بل چا نوم (متصلاً) اخيستل، همدارنګه د ذبح پر مهال "اللهم تقبّل من فلان" ويل مکروه دي، او دلته درې مسئلې جوړېږي ① چې له هغوی څخه يوه مسئله دا ده چې د بل چا نوم متصلاً واخيستل سي، نه معطوفاً، مثلاً داسي ووايي "بسم الله محمدٌ رسول الله"، څرنګه چې په دې جمله کي محمد رسول الله پر الله نه دی عطف سوی، نو ځکه د محمد ﷺ پر نامه د ذبح کولو شرکت موجود نه سو، خو څرنګه چې محمد رسول الله د الله سره متصل دی، چې له هغه څخه د شرکت وهم کېدای سي، نو ځکه داسي جمله استعمالول مکروه تحريمي ګرځول سوي دي.

## د پورتنی عنوان سره اړوند نوري مسئلې

وَالثَّانِيَةُ: أَنْ يَذْكُرَ مَوْصُوْلًا عَلٰى وَجْهِ الْعَطْفِ وَالشِّرْكَةِ [۲] او دويمه مسئله دا ده چې دا بل څه [غير الله] متصلاً ذکر کړي د عطف او شرکت په طريقه سره بِأَنْ يَقُوْلَ: بِاسْمِ اللهِ وَاسْمِ فُلَانٍ په دې توګه چې ووايي: بسم الله واسم فلان أَوْ يَقُوْلَ: بِاسْمِ اللهِ وَفُلَانٍ يا ووايي: بسم الله وفلان أَوْ بِاسْمِ اللهِ وَمُحَمَّدٍ رَسُوْلِ اللهِ بِكَسْرِ الدَّالِ يا [ووايي] باسم الله ومحمدٍ رسولِ الله [د محمد "د" دال] په کسره سره

فَتَحْرُمُ الذَّبِيحَةُ نو [په دې صورتونو کې] ذبيحه حراميږي لِأَنَّهُ أَهَلَّ بِهِ لِغَيْرِ اللهِ ځکه چې هغه پر دې د غير الله نوم واخيستی وَالثَّالِثَةُ: أَنْ يَقُولَ مَفْصُولًا عَنْهُ صُورَةً وَمَعْنًى [۳] او درېيمه مسئله دا ده: چې دا [غير الله] له بسم الله ځنځه بېل [جلا] ووايي د صورت او معنیٰ دواړو په اعتبار سره [يعني چې د غير الله ويناهم صورتاً جلا وي او هم معنا] بِأَنْ يَقُولَ قَبْلَ التَّسْمِيَةِ وَقَبْلَ أَنْ يُضْجِعَ الذَّبِيحَةَ أَوْ بَعْدَهُ په دې توګه چې له بسم الله ويلو او د څاروي له پرېباسلو ځنځه مخکې يا تر هغه وروسته [د غير الله] وينا وکړي وَهٰذَا لَا بَأْسَ بِهِ او دا څه پروا نه لري لِمَا رُوِيَ عَنِ النَّبِيِّ ﷺ ❶ أَنَّهُ قَالَ بَعْدَ الذَّبْحِ ځکه چې له نبي کريم ﷺ ځنځه روايت سوی دی چې هغه تر ذبح وروسته [دا جمله] وفرمايل اَللّٰهُمَّ تَقَبَّلْ هٰذِهِ عَنْ أُمَّةِ مُحَمَّدٍ مِمَّنْ شَهِدَ لَكَ بِالْوَحْدَانِيَّةِ وَلِيْ بِالْبَلَاغِ اې الله! دا قرباني د محمد ﷺ د اُمت له طرفه قبوله کړه [يعني] د هغو له طرفه کوم چې ستا د يو والي او زما د تبليغ رسالت ګواهي ورکوي.

**اللغات:** ﴿أَهَلَّ﴾ د افعال د باب ماضي ده، د دې باب ډيري معناوي نقل سوي دي چې د صلې په بدلون سره يې معنیٰ بدليږي، کله چې يې په صله کې تسمية او داسې نور راسي، نو معنیٰ يې ده: نوم اخيستل، په ذکر سره يې آواز پورته کول. مثلاً: أَهَلَّ بِالتَّسْمِيَةِ عَلَى الذَّبِيحَةِ: فلانکي پر ذبيحه د الله نوم واخيستی، ﴿وحدانية﴾ يو والی (يو او يوازې کېدل)، ﴿بلاغ﴾ رسول، تبليغ کول.

**تشريح:** په دې عبارت کې صاحب د هدايې رَحِمَهُ الله د مخکيني عنوان (يعني چې د ذبح پر مهال د الله ﷻ د نوم سره د غير الله يادونه هم وسي) دويمه او درېيمه مسئله ذکر کوي: ② دويمه مسئله دا ده چې د الله ﷻ د نوم سره د بل چا نوم متصلاً ذکر کړي او په حرف عطف سره شرکت وکړي (يعني د الله ﷻ تر نوم وروسته متصلاً د عطف او شرکت په توګه د غير الله نوم واخلي)؛ مثلاً بسم الله وإسم فلان، يا بسم الله وفلان، يا بسم الله ومحمدٍ رسول الله (د محمد د دال په کسره سره)، نو څرنګه چې په دغه صورتونو کې د غير الله پر نوم د څاروي ذبح کول لازميږي، نو ځکه دلته ذبيحه مرداره او حرامه ګرځي.

③ درېيم صورت دا دی چې د غير الله ذکر د صورت او معنیٰ دواړو په اعتبار سره د الله له ذکر ځنځه جلا وي، مثلاً له بسم الله ويلو او د څاروي له پرېباسلو ځنځه مخکې يا وروسته د غير الله نوم

واخلي مثلاً داسي ووايي: اللهم تقبّل من فلان، نو په دې کې هيڅ حرج نسته؛ ځکه چې خپله نبي کريم ﷺ له ذبح څخه وروسته داسي دعائيه جمله ويلې ده.

خلاصه دا چې په اول صورت کې ذبيحه مکروه تحريمي ده، په دويم صورت کې حرامه ده او په دريم صورت کې حلاله ده.

## د يوازې بسم الله ويلو شرط

وَالشَّرْطُ هُوَ الذِّكْرُ الْخَالِصُ الْمُجَرَّدُ او شرط دا دی چې [دالله] ذکر به خالص او خالي [عن الغرض] وي عَلَى مَا قَالَ ابْنُ مَسْعُودٍ رضي الله عنه * : جَرِّدُوا التَّسْمِيَةَ لکه څرنګه چې ابن مسعود رضي الله عنه ويلي دي: چې تاسې د بسم الله ويلو [له څه غرض وغيره څخه] خالي کړئ! حَتَّى لَوْ قَالَ عِنْدَ الذَّبْحِ: اللّٰهُمَّ اغْفِرْ لِيْ همدا وجه ده که د ذبح کولو پر مهال ووايي: اللّٰهم اغفر لی لَايَحِلُّ نو مذبوحه څاروی نه حلالیږي لِأَنَّهُ دُعَاءٌ وَسُؤَالٌ ځکه چې دا دعاء او غوښتنه ده. وَلَوْ قَالَ اَلْحَمْدُ لِلّٰهِ أَوْ سُبْحَانَ اللّٰهِ يُرِيْدُ التَّسْمِيَةَ او که الحمد لله يا سبحان الله ووايي چې په دې سره يې د بسم الله ويلو اراده وي حَلَّ نو مذبوحه څاروی حلاليږي وَلَوْ عَطَسَ عِنْدَ الذَّبْحِ فَقَالَ: اَلْحَمْدُ لِلّٰهِ او که چيرې د ذبح کولو پر مهال نوږی [انتروسی] وکړي او الحمد لله ووايي لَايَحِلُّ فِي أَصَحِّ الرِّوَايَتَيْنِ نو نه حلاليږي په دوو روايتونو کې د زيات صحيح روايت مطابق لِأَنَّهُ يُرِيْدُ بِهِ الْحَمْدَ عَلَى نِعْمَةٍ دُوْنَ التَّسْمِيَةِ ځکه چې هغه په دې سره [د نوږې] پر نعمت د حمد ويلو اراده لري، نه د بسم الله ويلو وَمَا تَدَاوَلَتْهُ الْأَلْسِنُ عِنْدَ الذَّبْحِ او کوم چې [له نبوي زمانې څخه تر دې دمه] ژبه په ژبه را نقل سوي دي د ذبح کولو پر مهال [يا په بله وينا دا چې: کوم کلمات چې د ذبح کولو پر مهال د خلکو پر ژبه را منقول دي] وَهُوَ قَوْلُهُ: بِاسْمِ اللّٰهِ وَاللّٰهُ أَكْبَرُ چې هغه د دې [کلماتو] ويل دي: بسمِ الله والله أكبر مَنْقُوْلٌ عَنِ ابْنِ عَبَّاسٍ رَضِيَ اللّٰهُ عَنْهُمَا فِيْ قَوْلِهِ تَعَالَى:

---

* تخريج: أخرجه مصنف عبد الرزاق، باب ما يكره أن يصنع في المصاحف ج:۴، ص: ۲۵۰، رقم: ۷۹۷۴. صاحب دا ثمار الهدايه حفظه الله وايي: صاحب د هدايې چې د عبد الله ابن مسعود رضي الله عنه کوم قول ذکر کړی دی، هغه د مطلق قرآن په باره کې نقل سوی دی (برابره ده بسم الله وي او که نور قرآن وي) چې د هغه الفاظ داسې نقل سوي دي: جردوا القرآن، يقول: لا تلبسوا به ما ليس منه. (مصنف عبد الرزاق مذكوره حواله)

﴿فَاذْكُرُوا اسْمَ اللهِ عَلَيْهَا صَوَافَّ﴾ [الحج: ۳٦] دا له حضرت عبد الله ابن عباس (رض) څخه د الله تعالیٰ د دې فرمان ﴿فاذکروا اسم الله علیها صواف﴾ په تفسیر کي نقل سوي دي.

**اللغات:** ﴿مجرّد﴾ د تفعیل د باب اسمِ مفعول دی: خالي، محض، یوازي، ﴿جرّدوا﴾ د تفعیل له بابه د جمع مذکر امر حاضر صیغه ده: خالي کول، خالي او فارغ ساتل، ﴿تداولته﴾ د تفاعل له بابه د واحد مؤنث غائب ماضي صیغه ده: لاس په لاس اخیستل، نوبت په نوبت اخیستل، پرلپسې له یوه څخه بل ته نقل کیدل (نو د وَمَاتَدَاوَلَتْهُ الأَلْسِنُ لفظي معنیٰ سوه: او هغه کلمات کوم چي [تر دې دمه] ژبه په ژبه رانقل سوي دي).

**تشریح:** فرمایي د تسمیه (بسم الله ویلو) ویلو شرط دا دی چي د هغه سره به د بنده بل هیڅ غرض او غوښتنه یوځای نه وي (په وبله وینا دا چي د ذبح کولو پر مهال به بنده خالص ذکر الله کوي او له هغه سره به خپل هیڅ سوال او غوښتنه نه کوي)، په همدې وجه حضرت ابن مسعود ﷺ په تأکید سره ویلي دي چي بسم الله (او قرآن) له څه بل غرض څخه خالي ساتئ او نور څه مه ور سره ګډوئ!.

پر همدغه اصل صاحب د هدایې رَحِمَهُ الله مسئله متفرع کوي چي که څوک د ذبح پر مهال "اللهم اغفر لي" ووایي، نو ذبیحه نه حلالیږي؛ ځکه چي دا بسم الله نه ده، بلکي سوال او دعاء ده کوم چي له غرض څخه عبارت ده، حالانکي د بسم الله خالي عن الغرض کېدل شرط دي.

ولوقال الحمد لله إلخ: او که د بسم الله ویلو په نیت او اراده سره سبحان الله یا الحمد لله ووایي، نو په دې صورت کي ذبیحه حلالیږي؛ ځکه چي په دې کلیمو کي د بنده هیڅ غرض مخفي نه دی، بلکي دا خالص ذکر الله دي.

او که چا ته د ذبح کولو پر مهال نوږی (انتروسی) راسي او الحمد لله ووایي، نو د یوه روایت مطابق دا هم کفایت کوي او ذبیحه حلالیږي، خو د صحیح روایت مطابق په دې سره ذبیحه نه حلالیږي؛ ځکه چي په دې سره هغه د نوږي پر نعمت شکر اداء کوي، د بسم الله په نیت او اراده سره یې نه وایي، لهذا د خالص ذکر الله د نشتوالي په وجه ذبیحه حرامیږي.

وروسته فرمایي چي د ذبح کولو پر مهال چي په عامه توګه کومې کلیمې ویل کیږي یعني "بسم الله والله أکبر"، دا د ﴿وَالْبُدْنَ جَعَلْنَاهَا لَكُمْ مِنْ شَعَائِرِ اللهِ لَكُمْ فِيهَا خَيْرٌ، فَاذْكُرُوا اِسْمَ اللهِ﴾ په تفسیر کي له حضرت ابن عباس (رض) څخه نقل سوي دي، او همداغه کلیمې اُمت خپل معمول ګرځولي دي.

## د ذبح کولو مقام

قَالَ: وَالذَّبْحُ بَيْنَ الْحَلْقِ وَاللَّبَّةِ [امام قدوري رَحِمَهُ الله] فرمايي: چې ذبح د سينې او حلق تر مينځ کيږي وَفِي الْجَامِعِ الصَّغِيرِ: لَا بَأْسَ بِالذَّبْحِ فِي الْحَلْقِ كُلِّهِ وَسَطِهِ وَأَعْلَاهُ وَأَسْفَلِهِ او په جامع صغير کې دي چې: پر ټوله حلق په ذبح کولو کې څه پروا نشته برابره ده د مينځ حصه يې وي، پورتنۍ حصه يې وي او که لاندينۍ حصه يې وي وَالْأَصْلُ فِيهِ قَوْلُهُ عليه السلام [1] : «الذَّكَاةُ مَا بَيْنَ اللَّبَّةِ وَاللَّحْيَيْنِ» او اصل په دې باره کې د نبي ﷺ دا فرمان دی چې: ذبح به د سينې او زامو تر مينځ وي وَلِأَنَّهُ مَجْمَعُ الْمَجْرَى وَالْعُرُوقِ او ځکه چې دغه ځای [د خوراک، څښاک] د ناليو او د رګونو د جمع کېدو ځای دی فَيَحْصُلُ بِالْفِعْلِ فِيهِ إِنْهَارُ الدَّمِ عَلَى أَبْلَغِ الْوُجُوهِ نو په دې ځای کې په ذبح کولو سره په بشپړه توګه د وينې ايستل [د وينې بهول] حاصليږي فَكَانَ حُكْمُ الْكُلِّ سَوَاءً نو ځکه [د دې ځای] د هرې حصې حکم به برابر وي.

**اللغات**: ﴿لَبَّة﴾ د دې تفصيلي تعريف مخکې تېر سو، ﴿عروق﴾ جمع د عِرْقٌ ده: رګ، ﴿إنهار﴾ دافعال د باب مصدر دی: د دې باب څو معناوی دي، کله چې يې په صله کې الدّم راسي، نو معنی يې ده: وينه ايستل (باسل)، وينه بهول.

**تشريح**: د بسم الله او د هغه له شرائطو څخه تر فارغه کېدو وروسته اوس د مقامِ ذبح تعيين کوي فرمايي چې د حلق او سينې تر مينځ والا حصه د ذبح لپاره متعيّنه ده، په جامع صغير کې هم داغه ويل سوي دي چې پر ټوله حلق (برابره ده مينځ يې وي، يا پورتنۍ يا لاندينۍ حصه يې وي، يعني د حلق) د هرې حصې په ذبح کولو سره ذبح ثابتيږي، او خپله نبي کريم ﷺ هم په حديث کې د ذبح د مقام تعيين کړی دی چې د سينې او زامو تر مينځ به ذبح کيږي. ښکاره ده چې د سينې او زامو تر مينځ والا حصه حلق دی.

په حلق کې د ذبح کولو يوه بله وجه دا هم ده چې د حلق پر مقام ټوله رګونه او د خوراک، څښاک نالۍ سره يو ځای دي، نو دلته په ذبح کولو او پرې کولو سره په کامله توګه وينه بهيږي، ټوله وينه وځي او د ځاروي له غوښو څخه وينه جلا کيږي، او په ذبح کې همدا وينه بهول او ايستل مقصود دي: نو ځکه له حلق څخه بغير د بل ځای ذبح معتبره نه ده او د حلق د هرې حصې حکم برابر دی چې که په هره حصه کې ذبح کړی سي، نو مقصد حاصليږي.

## په ذبح کې به کوم رګونه پرېکول کیږي؟

قَالَ: وَالْعُرُوقُ الَّتِيْ تُقْطَعُ فِي الذَّكَاةِ أَرْبَعَةٌ فرمايي: او هغه رګونه چې په ذبح [حلالولو] کې به پرېکول کيږي څلور دي اَلْحُلْقُوْمُ وَالْمَرِئُ وَالْوَدَجَانِ ① حلقوم [وچه غاړه]، ② مرى ③، ④ او دوه ښارګونه لِقَوْلِهِ الطَّيْلِا ❶: «أَفْرِ الْأَوْدَاجَ بِمَا شِئْتَ» د نبي کريم ﷺ د دغه فرمان په وجه چې: رګونه پرېکړه! په کوم شي سره چې ستا خوښه وي وَهِيَ اسْمُ جَمْعٍ وَأَقَلُّهُ الثَّلَاثُ او دا [أوداج] لفظ د جمع دی چې د هغه کمترين مقدار درې دی فَيَتَنَاوَلُ الْمَرِيْءَ وَالْوَدَجَيْنِ نو دا مرى او دوو ښارګونو له شامليږي وَهُوَ حُجَّةٌ عَلَى الشَّافِعِيِّ فِي الْاِكْتِفَاءِ بِالْحُلْقُوْمِ وَالْمَرِيْءِ او دغه حديث د امام شافعي رَحِمَهُ الله په خلاف حجت دی په دې کې چې هغه صرف په حلقوم او مرى اکتفا کړې ده إِلَّا أَنَّهُ لَا يُمْكِنُ قَطْعُ هٰذِهِ الثَّلَاثَةِ إِلَّا بِقَطْعِ الْحُلْقُوْمِ خو [څرنګه چې] د حلقوم له پرېکولو څخه بغير د دغه رګونو پرېکول ممکن نه دي فَيَثْبُتُ قَطْعُ الْحُلْقُوْمِ بِاقْتِضَائِهِ نو ځکه د حديث په تقاضا (غوښتنې) سره د حلقوم پرېکول هم ثابتيږي وَبِظَاهِرِ مَا ذَكَرْنَا يَحْتَجُّ مَالِكٌ او زموږ د ذکر کړې سوي دليل په ظاهري مفهوم سره امام مالک رَحِمَهُ الله دليل نيسي وَلَا يُجَوِّزُ الْأَكْثَرَ مِنْهَا بَلْ يَشْتَرِطُ قَطْعَ جَمِيْعِهَا او د اکثره رګونو پرېکول جائز نه ګڼي بلکې [د هغه په نيز] د ټولو رګونو پرېکول شرط دي وَعِنْدَنَا إِنْ قَطَعَهَا او زموږ په نيز که ټول رګونه پرېکړي حَلَّ الْأَكْلُ نو [د ذبيحې] خوړل حلال دي وَإِنْ قَطَعَ أَكْثَرَهَا او که اکثره [درې] رګونه پرېکړي فَكَذٰلِكَ عِنْدَ أَبِيْ حَنِيْفَةَ نو هم د امام صاحب رَحِمَهُ الله په نيز دغه حکم دی [چې خوړل د دغه ذبيحې حلال دي] وَقَالَا ۞: لَا بُدَّ مِنْ قَطْعِ الْحُلْقُوْمِ وَالْمَرِيْءِ وَأَحَدِ الْوَدَجَيْنِ او صاحبين رَحِمَهُمَا الله فرمايي: چې د حلقوم او مرى او د يوه ښارګ پرېکول ضروري دي.

**اللغات:** ﴿حلقوم﴾ حلقوم، وچه غاړه، د خوراک او چښاک رګ او نالى. ﴿مريء﴾ مرى، ګوړګوړو، د ساه نالى (چې د هغه د لارې ساه اخيستل کيږي او کښل کيږي). ﴿وَدَجَان﴾ تثنيه د وَدَجٌ ده:

---

❶ تخريج: غريب، أخرجه ابو داؤد بمعناه فى كتاب الضحايا فى باب الذبيحة بالمروة، حديث رقم: ۲۸۲۴.

۞ القول الراجح: قول أبي حنيفة رَحِمَهُ الله، قال العلامة ابن عابدين رَحِمَهُ الله عبارته أصح فى الأكثر عنه إذا قطع الحلقوم والمري والأكثر من كل الودجين، يؤكل وما لا فلا (رد المحتار ج:۵، ص:۲۰۷)، والبحر الرائق (ج:۸، ص:۱۰). [القول الراجح ج:۲، ص:۲۸۹]

ښارګ، (ښه رګی)، مراد: په غاړه کي دواړو طرفونو ته دوه رګونه دي چي له هغه ځخه دماغ ته وینې ځي راځي، دهمدې په پرېکولو سره ټوله وینه وځي، ﴿أفر﴾ دافعال له بابه دواحد مذکر امر حاضر صیغه ده: پرېکول، غوځول. ﴿اقتضاء﴾ دافتعال مصدر دی: غوښتل، دلالت کول، فرضول، انګېرل (تصور کول).

**تشریح**: د حلقوم، مرۍ او وَدَجَانِ تعریف مو په لغاتو کي بیان کړی، فرمایي چي په ذبح کښي د دغه ځلور سره رګونو پرېکول ضروري دي، دلیل هغه حدیث دی چي نبي ﷺ پکښي د أوْدَاج د پرېکولو حکم کړی دی، أَوْدَاج دا جمع د وَدَجٌ ده، او د جمع أقل مقدار درې دی، لهذا په دغه حدیث سره د دریو رګونو (یعني د مرۍ او دوو ښارګونو) پرېکول ثابت سوه، خو ځرنګه چي له حلقوم ځخه بغیر کماحقهٔ دوی نه سي پرېکول کېدای، نو ځکه د حدیث په تقاضا سره د حلقوم پرېکول هم ضروري سوه.

فرمایي چي کله په دغه حدیث سره په مجموعي توګه د دې ځلور سره رګونو پرېکول ثابتیږي، نو امام شافعي رَحِمَهُ الله چي فقط د حلقوم او مرۍ په پرېکولو اکتفاء کوي (او وایي چي که د ذبح پر مهال فقط دغه دوه رګونه پرېکړل سي نو د ځاروي خوړل حلال دي)، د هغه په خلاف دغه حدیث دلیل جوړیږي؛ ځکه چي له غه حدیث ځخه د ځلور سره رګونو د پرېکولو حکم ځرګند دی.

وبظاهر ما ذکرنا إلخ: او امام مالک رَحِمَهُ الله بیا زموږ د ذکر کړه حدیث په ظاهر سره دلیل نیسي او فرمایي چي د ځلور سره رګونو پرېکول شرط او ضروري دي، یو هم پرېښوول جائز نه دي، لهذا که چیري درې رګونه پرېکول سي، نو ذبیحه نه حلالیږي.

احناف فرمایي چي کهٔ ځلور سره رګونه پرېکول سيَ نو ډیر ښه، کنې که درې رګونه پرېکول سي، نو هم دامام صاحب رَحِمَهُ الله په نیز ذبیحه حلالیږي، هغه که هر درې رګونه وي، خو د صاحبینو رَحِمَهُمَا الله په نیز د حلقوم او مرۍ پرېکول ضروري دي او په وَدَجینو (دوو ښارګونو) کي که هریو پرېکړي نو کافي دي.

## د پورتنی مسئلې نور وضاحت

قَالَ رَضِيَ اللهُ عَنْهُ: هٰكَذَا ذَكَرَ الْقُدُورِيُّ الِاخْتِلَافَ فِي مُخْتَصَرِهِ صاحب د هدایې رَحِمَهُ الله فرمایي: چي امام قدوري رَحِمَهُ الله په خپل مختصر [قدوري] کي همدغسي اختلاف ذکر کړی دی وَالْمَشْهُورُ فِي كُتُبِ مَشَايِخِنَا أَنَّ هٰذَا قَوْلُ أَبِي يُوسُفَ وَحْدَهُ خو زموږ د مشایخو په کتابو کي مشهوره دا ده چي دا یوازي دامام ابو یوسف رَحِمَهُ الله قول دی وَقَالَ فِي الْجَامِعِ الصَّغِيرِ: إِنْ قَطَعَ نِصْفَ الْحُلْقُومِ وَنِصْفَ الْأَوْدَاجِ او

امام محمد رَحِمَهُ الله په جامع صغیر کې داسې فرمایلي دي چې ؛ که د حلقوم او ښار ګونو نیمه حصه پرېکړي لَمْ يُؤْكَلْ نو ذبیحه به نه خوړول کیږي وَإِنْ قَطَعَ أَكْثَرَ الْأَوْدَاجِ وَالْحُلْقُومِ قَبْلَ أَنْ يَمُوتَ او که د څاروي له مړه کېدو څخه مخکې د ښارګونو او حلقوم اکثره حصه پرېکړي أُكِلَ نو هغه به خوړول کیږي وَلَمْ يَحْكِ خِلَافًا او امام محمد رَحِمَهُ الله هیڅ اختلاف نه دی نقل کړی فَاخْتَلَفَتِ الرِّوَايَةُ فِيهِ نو په دې باره کې روایتونه مختلف سوه.

**تشریح:** صاحب د هدایې رَحِمَهُ الله فرمایي چې په قدوري کې همداسې اختلاف ذکر سوی دی. یعني د دریو رګونو د پرېکولو په صورت کې چې د امام صاحب او صاحبینو تر مینځ کوم اختلاف موږ ذکر کړی، په قدوري کې هم دغه ډول ذکر سوی دی، لېکن زموږ د مشایخو په کتابو کې دي چې دا قول یوازې د امام ابو یوسف رَحِمَهُ الله دی، نه د دواړو؛ ځکه چې خپله امام محمد رَحِمَهُ الله په جامع صغیر کې دا صراحت کړی دی چې که حلقوم او دوه ښارګونه نیمایي پرېکړي، نو ذبیحه به نه خوړول کیږي، لېکن که د څاروي له مړ کېدو څخه مخکې د حلقوم او ښارګونو اکثره حصه پرېکړي، نو ذبیحه حلاله ده، خوړل کیږي به. لنډه دا چې امام محمد رَحِمَهُ الله په جامع صغیر کې هیڅ ډول اختلاف نه دی ذکر کړی، معلومه سوه چې هغه د امام ابو یوسف رَحِمَهُ الله سره نه دی، بلکې ځانته مسلک یې دی، نو په دې هکله د دوی ټولو روایات مختلف سوه.

## د پورتنۍ مسئلې نور وضاحت

فَالْحَاصِلُ أَنَّ عِنْدَ أَبِي حَنِيفَةَ إِذَا قَطَعَ الثَّلَاثَ أَيَّ ثَلَاثٍ كَانَ نو خلاصه دا چې د امام صاحب رَحِمَهُ الله په نېز چې کله درې رګونه پرېکړي، هغه که هر درې رګونه وي يَحِلُّ نو ذبیحه حلالیږي وَبِهِ كَانَ يَقُولُ أَبُو يُوسُفَ أَوَّلًا او امام ابو یوسف رَحِمَهُ الله هم مخکې د دې قائل وو ثُمَّ رَجَعَ إِلَى مَا ذَكَرْنَا بیا هغه زموږ ذکر کړه قول ته رجوع وکړه وَعَنْ مُحَمَّدٍ أَنَّهُ يَعْتَبِرُ أَكْثَرَ كُلِّ فَرْدٍ او له امام محمد رَحِمَهُ الله څخه روایت دی چې هغه د هر فرد [هر رګ] د اکثر اعتبار کوي [یعني چې د هر رګ اکثره حصه پرېکول سي، نو بیا څاروی حلالیږي] وَهُوَ رِوَايَةٌ عَنْ أَبِي حَنِيفَةَ او همدا له امام صاحب رَحِمَهُ الله څخه یو روایت دی لِأَنَّ كُلَّ فَرْدٍ مِنْهَا أَصْلٌ بِنَفْسِهِ ځکه چې له رګونو څخه هر فرد [رګ] بذات خود اصل دی لِانْفِصَالِهِ عَنْ غَيْرِهِ ځکه چې یو له بل څخه جلا دی وَلِوُرُودِ الْأَمْرِ بِفَرْيِهِ او ځکه چې د هر یوه د

پرېکولو په هکله حکم [حديث] وارد سوی دی فَيُعْتَبَرُ أَكْثَرُ كُلِّ فَرْدٍ مِنْهَا نو ځکه له دې رګونو څخه به د هر رګ د اکثره حصې [د پرېکولو] اعتبار کیږي وَلِأَبِي يُوسُفَ: أَنَّ الْمَقْصُودَ مِنْ قَطْعِ الْوَدَجَيْنِ إِنْهَارُ الدَّمِ او د امام ابو يوسف رَحِمَهُ الله دليل دا دی: چې د دوو ښارګونو د پرېکولو مقصد [د څاروي] وینه بهول دي فَيَنُوبُ أَحَدُهُمَا عَنِ الْآخَرِ نو ځکه يو به د بل قائم مقام کیږي إِذْ كُلُّ وَاحِدٍ مِنْهُمَا مَجْرَى الدَّمِ ځکه چې له دې دواړو څخه هريو د وينې نالۍ ده [یعني له هريوه ښارګ څخه وینه راوځي] أَمَّا الْحُلْقُومُ فَيُخَالِفُ الْمَرِيْءَ او پاته سوه حلقوم نو هغه له مرۍ څخه بالکل جلا دی فَإِنَّهُ مَجْرَى الْعَلَفِ وَالْمَاءِ ځکه چې حلقوم د څاروي د خوراکي او څښاک نالۍ ده وَالْمَرِيْءُ مَجْرَى النَّفَسِ او مرۍ د ساه کښلو نالۍ ده [نو ځکه د دواړو پرېکول ضروري دي].

**اللغات:** ﴿انفصال﴾ د انفعال د باب مصدر دی: جلا کېدل، بېلېدل. ﴿إنهار﴾ د افعال د باب مصدر دی: وینه ایستل، وینه بیول. ﴿مجرى﴾ د جاري کېدو ځای. ﴿علف﴾ د څارویانو خوراکه یعني واښه، پروړ او داسي نور. ﴿نَفَس﴾ ساه.

**تشريح:** صاحب د هدايې رَحِمَهُ الله د مخکنۍ اختلافي مسئلې خلاصه بيانوي چې د امام صاحب رَحِمَهُ الله په نيز په څلورو رګونو کي که هر درې رګونه پرېکول سي، نو ذبيحه حلالیږي (یعني خاص د حلقوم او مرۍ پرېکول ضروري نه دي)، د امام ابو يوسف رَحِمَهُ الله هم مخکي دغه نظريه وه، خو وروسته هغه خپله رايه بدله کړه او د حلقوم او مرۍ پرېکول يې ضروري وګرځول. او د امام محمد رَحِمَهُ الله مسلک دا دی چې په څلور سره رګونو کي د هر رګ اکثره حصه پرېکول ضروري دي، د يوه روايت مطابق د امام صاحب رَحِمَهُ الله هم دغه نظريه ده.

**د امام محمد دليل:** دا دی چې هر رګ له بل رګ څخه جلا دی او مستقل بذاته دی او په حديث کي د هر رګ د پرېکولو حکم سوی دی، نو ځکه د هر رګ اکثر پرېکول ضروري دي او په دې سره ذبيحه حلالیږي (لأن للأكثر حكم الكل).

**د امام ابو يوسف دليل:** دا دی چې د دواړو ښارګونو د پرېکولو مقصد وینه بهول او ایستل دي؛ ځکه چې دا هريو د وينې نالۍ ده، نو په دوی کي د هريوه په پرېکولو سره دا مقصد حاصليږي، لهذا د يوه پرېکول د بل د پرېکولو قائم مقام کیږي، نو ځکه د يوه متعينول ضروري نه دي، خو څرنګه حلقوم او

مرۍ بالکل يو له بل څخه جلا دي چې حلقوم د خوراک او څښاک نالۍ ده او مرۍ د ساه کښلو نالۍ ده، نو کله چې دواړه يو له بل څخه جلا دي، نو بيا د يوه پرېکول د بل د پرېکولو نه قائم مقام کيږي، نو ځکه دلته د دواړو تعيين او پرېکول ضروري او لازمي دي.

## په پورتنۍ مسئله کې د امام صاحب رَحِمَهُ الله دليل

وَلِأَبِي حَنِيفَةَ: أَنَّ الْأَكْثَرَ يَقُومُ مَقَامَ الْكُلِّ فِي كَثِيرٍ مِنَ الْأَحْكَامِ او د امام صاحب رَحِمَهُ الله دليل دا دی: چې په ډېرو احکامو کې اکثر د کُل قائم مقام کيږي وَأَيَّ ثَلَاثٍ قَطَعَهَا [نو] هر درې رګونه چې ذبح کونکی پرېکړي فَقَدْ قَطَعَ الْأَكْثَرَ مِنْهَا نو هغه له دوی [څلورو رګونو] څخه اکثره پرېکړه وَمَا هُوَ الْمَقْصُودُ يَحْصُلُ بِهَا او کوم څه چې [په ذبح سره] مقصود دي هغه په دې [يعني د دريو رګونو په پرېکولو] سره حاصليږي وَهُوَ إِنْهَارُ الدَّمِ الْمَسْفُوحِ وَالتَّوْحِيَةُ فِي إِخْرَاجِ الرُّوحِ او [په ذبح سره] مقصود بهېدونکي وينه ايستل او د روح په باسلو کې تېزي [چسپاندي] کول دي [چې د ځاروي ساه ژر ترژره ووځي] لِأَنَّهُ لَا يَحْيَى بَعْدَ قَطْعِ مَجْرَى النَّفَسِ أَوِ الطَّعَامِ ځکه چې د ساه يا د خوراک د نالۍ [يعنې د مرۍ يا حلقوم] تر پرېکولو وروسته ځاروی ژوندی نه پاتيږي وَيَخْرُجُ الدَّمُ بِقَطْعِ أَحَدِ الْوَدَجَيْنِ او له دوو ښارګونو څخه د يوه په پرېکولو سره هم وينه وځي فَيُكْتَفَى بِهِ تَحَرُّزًا عَنْ زِيَادَةِ التَّعْذِيبِ نو ځکه له زائد عذاب ورکولو څخه د بچ کېدو په خاطر به پر همدې اکتفاء کيږي بِخِلَافِ مَا إِذَا قَطَعَ النِّصْفَ په خلاف د هغه صورت کله چې نيمايي رګونه پرېکړي [نو ذبيحه نه حلاليږي] لِأَنَّ الْأَكْثَرَ بَاقٍ ځکه [جانب حرمت د ترجيح ورکولو په وجه دلته] اکثره پاته دي فَكَأَنَّهُ لَمْ يَقْطَعْ شَيْئًا نو ګواکې هغه هيڅ هم پرېکړي نه دي احْتِيَاطًا لِجَانِبِ الْحُرْمَةِ د حرمت د جانب د احتياط [او ترجيح] په وجه.

**اللغات**: ﴿مسفوح﴾ د فتح د باب مفعول دی: بهول سوی، بهېدونکی، ﴿تَوْحِيَة﴾ (په حاء سره) وَحّٰى يُوَحِّيْ تَوْحِيَةً: کار په چسپاندي سره کول، تلوار او تېزي کول، وحّى الذبيحة: ژر ذبح کول (په چټکتيا سره حلالول) (مصباح اللغات)، ﴿تحرز﴾ د تفعّل د باب مصدر دیٌ: ځان ساتل، بچ کېدل.

**تشريح**: له دې ځايه صاحب د هدايې د امام صاحب رَحِمَهُ الله دليل بيان کړی دی، حاصل يې دا دی چې په ډېرو احکامو (مثلاً د سر په مسح کولو، او د إحرام پر مهال د سر په پټولو) کې اکثر د کُل قائم مقام ګرځول کيږي، همداسې دلته هم چې کله ذبح کونکي له څلورو رګونو څخه درې رګونه پرېکړه، نو

ښکاره ده چې هغه اکثره رګونه پرېکړه، نو ځکه په دې صورت کې به د ذبيحې د حلت فيصله کول کيږي؛ ځکه چې د ذبح مقصد وينه بهول او ژر ساه ور ايستل دي، او دا مقصد د دريو رګونو په پرېکولو سره حاصليږي؛ ځکه چې د مرۍ يا حلقوم په پرېکولو سره روح او ساه وځي، او د يوه ودَج (ښارګ) په پرېکولو سره وينه هم بهيږي، نو بلا وجه د رګونو د متعيّنولو فايده څه ده!، حال دا چې له تعيين څخه بغير هم مقصد حاصليږي، لهذا له تکليف او عذاب څخه د ځاروي د خوندي کېدو په خاطر به پر همدغه مقدار اکتفاء کيږي.

خو څرنګه چې د نصف رګونو په پرېکولو سره (مثلاً چې دوه رګونه پرېکړي او نور پرېږدي، په دې سره) داکثر پرېکول نه ثابتيږي، نو دا داسې ده لکه ذبح کونکي چې هيڅ رګ هم پرېکړی نه وي، ځکه کله چې په يوه مسئله کې د حلت او حرمت دواړه اړخونه سره جمع سي، نو د حرمت جانب ته به ترجيح ورکول کيږي، په قواعد الفقه کې دي: "إذا اجتمع الحلال والحرام أو المُحرِّم والمُبِيح، غُلِّب الحرام والمحرم"، نو دغه قاعدې ته په کتو سره د حرمت جانب لره به ترجيح وي او داسې به ګڼل کيږي چې تر اوسه هغه هيڅ نه دي پرېکړي. (احسن الهدايه)

## په کومو شيانو سره ذبح کول جائز دي؟

قَالَ: وَيَجُوزُ الذَّبْحُ بِالظُّفْرِ وَالسِّنِّ وَالْقَرْنِ [امام محمد رَحِمَهُ الله] فرمايي: او جائز دي ذبح کول په نوک، غاښ او ښکر سره إِذَا كَانَ مَنْزُوعًا کله چې هغه کښل سوي وي حَتَّى لَا يَكُونَ بِأَكْلِهِ بَأْسٌ تر دې چې دهغه په خوړلو کې څه حرج نسته إِلَّا أَنَّهُ يُكْرَهُ هٰذَا الذَّبْحُ خو دغه ذبح مکروه ده وَقَالَ الشَّافِعِيُّ: الْمَذْبُوحُ مَيْتَةٌ او امام شافعي رَحِمَهُ الله فرمايي چې: [په دې شيانو سره] ذبح کړی ځاروی مردار دی لِقَوْلِهِ عَلَيْهِ السَّلَامُ [1]: «كُلْ مَا أَنْهَرَ الدَّمَ وَأَفْرَى الْأَوْدَاجَ مَا خَلَا الظُّفْرَ وَالسِّنَّ د نبي کريم ﷺ د دې فرمان په وجه چې: خوره! هغه ځاروي چې د هغوی وينه ايستل سوې وي او رګونه يې پرېکړل سوي وي ماسواله نوک او غاښ څخه فَإِنَّهُمَا مُدَى الْحَبَشَةِ» ځکه چې دا دواړه د حبشو چاړه ده وَلِأَنَّهُ فِعْلٌ غَيْرُ مَشْرُوعٍ او ځکه چې دا [يعني په نوک وغيره سره ذبح کول] يو نا مشروع کار دی فَلَا يَكُونُ ذَكَاةً نو ځکه دا به ذبح کول [حلالول] نه وي كَمَا إِذَا ذُبِحَ بِغَيْرِ الْمَنْزُوعِ لکه کله چې په نا کښل سوي نوک وغيره سره ذبح کړی سوي وي.

[1] تخريج: اخرجه ابو داؤد فى كتاب الضحايا، باب الذبيحة بالمروة، حديث رقم: ۲۸۲۱. (احسن الهدايه)

**اللغات:** ﴿الظُفر﴾ او الظِفر او الظُفُر: نوک، جمع: أَظْفَار. ﴿منزوع﴾ د فتح د باب مفعول دی: کښل سوی، کاږل سوی. ﴿مُدی﴾ چاړه (په لغت د اهلِ حبشو). ﴿ذکاة﴾ حلالول (ذبح کول او حلال گرځول).

**تشریح:** د عبارت حاصل دا دی چي څرنگه په چاړه او تېره څنډه لرونکي او سپني سره ذبح کول جائز دي، همداسي د احنافو په نېز که نوک، غاښ او داسي نور کښل سوي وي او ښه تېره هم وي، نو په هغوی سره هم ذبح کول جائز دي او ذبیحه يې حلاله ده، خو داسي ذبح کول غوره نه دي.

د امام شافعي رَحِمَهُ الله مسلک دا دی چي په نوک وغيره سره ذبح کړی سوی څاروی مردار او حرام دی؛ ځکه په حديث کي صراحتاً د نوک او غاښ د ذبيحې له خوړلو څخه منع سوې ده او دا د اهلِ حبشه وو چاړه او د دوی علامت ښوول سوی دی، او بل دا چي په نوک او غاښ سره ذبح کول يونا مشروع کار دی، لهذا څرنگه چي په نا کښل سوي (غير منزوع) نوک او غاښ سره ذبح کول نه صحيح کيږي او ذبح نه شميرل کيږي، نو همداسي به په مذکوره صورت کي هم ذبح نه صحيح کيږي، او د ذبح د نه صحيح کېدو په صورت کي ذبيحه مرداره پاتيږي، نو همداسي به په مذکوره صورت کي هم ذبيحه مرداره وي.

## په پورتنی مسئله کي زموږ دليل

وَلَنَا قَوْلُهُ عليه السلام [1]: «أَنْهِرِ الدَّمَ بِمَا شِئْتَ» او زموږ دليل د نبي ﷺ دا فرمان دی چي: "وينه وباسه! په کوم شي سره چي ستا خوښه وي" وَيُرْوٰى «أَفْرِ الْأَوْدَاجَ بِمَا شِئْتَ» او روايت سوی دی چي: "رگونه پرېکړه په کوم شي سره چي ستا خوښه وي" وَمَا رَوَاهُ مَحْمُولٌ عَلٰى غَيْرِ الْمَنْزُوْعِ او کوم حديث چي امام شافعي رَحِمَهُ الله روايت کړی دی هغه پر ناکښل سوي نوک وغيره باندي حمل سوی دی فَإِنَّ الْحَبَشَةَ كَانُوا يَفْعَلُوْنَ ذٰلِكَ ځکه چي حبشو به داسي کوله وَلِأَنَّهُ آلَةٌ جَارِحَةٌ او ځکه چي دا [نوک وغيره] هم زخمي کونکي آله ده فَيَحْصُلُ بِهِ مَا هُوَ الْمَقْصُوْدُ وَهُوَ إِخْرَاجُ الدَّمِ نو کوم څه چي مقصود دي يعني دويني ايستل هغه په دې سره حاصليږي وَصَارَ كَالْحَجَرِ وَالْحَدِيْدِ او دا د ډبري او اوسپني په څېر سو بِخِلَافِ غَيْرِ الْمَنْزُوْعِ په خلاف د ناکښل سوي نوک وغيره لِأَنَّهُ يَقْتُلُ بِالثِّقْلِ ځکه چي [په دې صورت کي] ذبح کونکی کس په خپل بوج [او زور] سره [څاروی] قتل کوي فَيَكُوْنُ فِي

---

[1] تخريج: أخرجه البخاري بمعناه، باب ما أنهر الدم من القصب والمروة والحديد، ص: ۹۸۰، حديث رقم: ۵۵۰۳، و ابو داؤد بمعناه في كتاب الضحايا، باب الذبيحة بالمروة، حديث رقم: ۲۸۲۴. (احسن الهدايه)

مَعۡنَى الۡمُنۡخَنِقَةِ نو دا به د خپه کړل سوي څاروي په معنیٰ سره وي وَإِنَّمَا يُكۡرَهُ لِأَنَّ فِيهِ اسۡتِعۡمَالَ جُزۡءِ الۡآدَمِيِّ او دا ځکه مکروه دي چي په دې کي د انسان د جزء استعمال سته وَلِأَنَّ فِيهِ إِعۡسَارًا عَلَى الۡحَيَوَانِ او ځکه چي په دې کي د څاروي سره سختي ده وَقَدۡ أُمِرۡنَا فِيهِ بِالۡإِحۡسَانِ حال دا چي موږ د څاروي د ذبح په هکله په احسان کولو سره امر سوي يو.

**اللغات:** ﴿أَنۡهِرۡ﴾ د افعال له بابه د واحد مذکر امرِ حاضر صيغه ده: وينه ايستل (باسل)، وينه بهول. ﴿أفر﴾ مخکني صيغه ده: پرېکول، غوڅول. ﴿جارحة﴾ د نصر له بابه د واحد مؤنث اسمِ فاعل صيغه ده: زخمي کونکی، زخم جوړونکی. ﴿ثقل﴾ بوج، دروندوالی. ﴿مخنقة﴾ په خپه سره وژل سوی څاروی (ترستوني نيول سوی څاروی چي له همدې کبله مړ سي). ﴿إعسار﴾ د افعال د باب مصدر دی: تنګ کول، تنګي او سختي، بدحالي.

**تشريح:** په دې عبارت کي صاحب د هدايي رَحِمَهُ الله په نوک او غاښ وغيره سره د ذبح پر جواز د احنافو دوه دليلونه ذکر کړي دي: (۱) د اول دليل حاصل دا دی چي په حديث کي دا مطلق ويل سوي دي "چي په کوم شي سره ستاسي خوښه وي په هغه سره وينه باسئ"؛ ځکه چي د ذبح مقصدِ اصلي وينه ايستل دي. او امام شافعي رَحِمَهُ الله چي په کوم حديث سره دليل نيولی دی، هغه د ناکښل سوي نوک وغيره سره متعلق دی، ځکه چي اهل حبشه وو به په داسي ناکښل نوک وغيره سره ذبح کوله، او په داسي صورت کي خو موږ هم د نه جائز کېدلو قائل يو.

**ولأنه آلة إلخ:** (۲) دويم دليل دا دی چي تېره نوک وغيره هم زخم جوړونکې او وينه ايستونکې آله ده، نو په دې سره هم د ذبح مقصدِ اصلي (وينه ايستل) حاصلېږي، لهذا څرنګه چي په چاړه وغيره سره ذبح جائز ده، نو همداسي به په دې شيانو سره هم جائز وي.

خو که چيري نوک وغيره کښل سوي نه وي، نو ښکاره ده چي په دې صورت کي د نوک په تېره والي سره نه، بلکي د ذبح کونکي په بوج او زور سره څاروی ذبح کيږي او مري، نو دا د مُنۡخَنِقَة په څېر ګرځي، او منخنقة حرامه ده، نو ځکه دا به هم حرام وي.

او په کښل سوي نوک وغيره سره ذبح جائز ده، خو دا صورت مکروه دي؛ ځکه يو خو د انسان جزء پکښي استعماليږي چي په دې کي د انسان توهين او سپکاوی دی، او بل دا چي د ذبح په هکله موږ ته د نرمي او آساني کولو حکم سوی دی، او په مذکوره صورت کي تکليف او عذاب ورکول کيږي، نو ځکه د ذبح په هکله دا صورت که څه هم جائز دی، خو مکروه دی. (احسن الهدايه)

## د پورتنی مسئلې نور وضاحت

قَالَ: وَيَجُوزُ الذَّبْحُ بِاللِّيطَةِ وَالْمَرْوَةِ فرمايي: او ذبح كول جائز دي د بانس په كلک تېره پوسكتي سره او په تېره ډبره سره وَكُلِّ شَيْءٍ أَنْهَرَ الدَّمَ او په هر هغه شي سره كوم چي [له ځاروي څخه] وينه باسي إِلَّا السِّنَّ الْقَائِمَ وَالظُّفُرَ الْقَائِمَ مگر په ولاړ [ناكېنبل سوي] غاښ او نوک سره فَإِنَّ الْمَذْبُوحَ بِهِمَا مَيْتَةٌ ځكه چي په دې دوو سره ذبح كړى سوى ځاروى مردار دى لِمَا بَيَّنَّا د هغه دليل په وجه كوم چي موږ بيان كړى وَنَصَّ مُحَمَّدٌ فِي الْجَامِعِ الصَّغِيرِ عَلَى أَنَّهَا مَيْتَةٌ او امام محمد رَحِمَهُ الله په جامع صغير كي دا صراحت كړى دى چي هغه مردار دى لِأَنَّهُ وَجَدَ فِيهِ نَصًّا ځكه امام محمد رَحِمَهُ الله په دې هكله نص [حديث] موندلى دى وَمَا لَمْ يَجِدْ فِيهِ نَصًّا او د كوم څه په هكله چي دئ نص نه موندي يَحْتَاطُ فِي ذَلِكَ نو په هغه كي احتياط كوي فَيَقُولُ فِي الْحِلِّ "لَا بَأْسَ بِهِ" وَفِي الْحُرْمَةِ يَقُولُ "يُكْرَهُ" أَوْ "لَمْ يُؤْكَلْ" نو د حلت په صورت كي "لابأس به" وايي او د حرمت په صورت كي "يكره" يا "لم يؤكل" وايي [چي مكروه دي يا نه به خوړل كيږي].

**اللغات**: ﴿ليطة﴾ د بانس پوستكى، او هر هغه شى كوم چي كلكوالى او مضبوطتيا لري (معجم الوسيط)، ﴿مروة﴾ ① يو ډول سپينه تېره ډبره ده. صاحب د معجم يې داسي تعريف كړى دى: الحجارة البيض البراقة. تقدح منها النار. ② په مكه مكرمه كي ديوه مشهوره غره نوم دى چي دا بل طرف ته يې بل غر هم سته كوم چي "صفا" نوميږي. ﴿أنهر﴾ د افعال د باب ماضي ده: وينه ايستل، وينه بيول (بهول).

**تشريح**: د عبارت حاصل دا دى چي د ذبح مقصد د ځاروي وينه بهول او وينه يې ايستل دي. لهذا په كوم شي سره چي هم دويني ايستل (باسل) پوره ممكن وي، په هغه سره ذبح كول جائز دي. لهذا څرنگه چي د بانس په هغه تېره كلک پوستكي او په ډېره تېره ډبره سره ذبح كول بالكل ممكن دي، نو ځكه په هغوى سره په ذبح كولو كي هيڅ حرج نسته.

خو د ناكېنبل سوي غاښ او نوک ذبيحه مرداره ده؛ ځكه مخكي موږ ذكر كړه چي د دوى ذبيحه د مُنْخَنِقَة په درجه كي ده كوم چي د ذبح كونكي په بوج او زور سره ذبح كيږي. لهذا كله چي مُنْخَنِقَة حرامه ده. نو د هغه د درجې والا ذبيحه به هم حرامه وي.

او بل دا چې امام محمد رَحِمَهُ الله په جامع صغیر کې د نا کښل سوي نوک او غاښ ذبیحې ته مردار ویلي دي او په یو نص یعني حدیث سره یې دلیل نیولی دی (کوم چې مخکې بیان سو). او د امام محمد رَحِمَهُ الله عادت دا دی چې د کومې مسئلې په باره کې ده ته یو نص حاصل سي. نو د هغه مسئلې په هکله امام محمد رَحِمَهُ الله په قطعیت سره یو حکم لګوي. او په کومه مسئله کې چې ده ته نص حاصل نه سي. نو د هغې د حلت په هکله د "لا بأس به" او د حرمت په هکله یې د "یکره" یا "لم یؤکل" الفاظ استعمالوي.

نو دلته په قطعیت سره د امام محمد رَحِمَهُ الله داسې ښاروي ته مردار ویل د دې خبرې ښکاره دلیل دی چې د نا کښل سوي نوک وغیره ذبیحه حرامه او مرداره ده، (احسن الهدایه)

## د ذبح مستحبات

قَالَ: وَيُسْتَحَبُّ أَنْ يُحِدَّ الذَّابِحُ شَفْرَتَهُ فرمایي: او مستحب دي دا چې ذبح کونکی خپل چاړه تېره کړي لِقَوْلِهِ الطَّيْلاَ [1]: «إِنَّ اللهَ تَعَالَى كَتَبَ الْإِحْسَانَ عَلَى كُلِّ شَيْءٍ ځکه نبي ﷺ فرمایلي دي: چې الله تعالیٰ پر هر شي احسان کول فرض کړي دي فَإِذَا قَتَلْتُمْ فَأَحْسِنُوا الْقِتْلَةَ وَإِذَا ذَبَحْتُمْ فَأَحْسِنُوا الذِّبْحَةَ نو کله چې تاسې قتل کوی نو په ښه توګه [په احسان او نرمي سره] قتل کوی او کله چې تاسې ذبح کوی نو هم په ښه توګه ذبح کوی وَلْيُحِدَّ أَحَدُكُمْ شَفْرَتَهُ وَلْيُرِحْ ذَبِيحَتَهُ» او په تاسې کې ذبح کونکی کس ته پکار دي چې خپل چاړه تېره کړي او خپل ذبیحه ته دې آرام ورسوي وَيُكْرَهُ أَنْ يُضْجِعَهَا ثُمَّ يُحِدَّ الشَّفْرَةَ او مکروه دي دا چې اول ذبیحه پرې باسي بیا چاړه تېره کړي لِمَا رُوِيَ عَنِ النَّبِيِّ ﷺ [2] «أَنَّهُ رَأَى رَجُلًا أَضْجَعَ شَاةً وَهُوَ يُحِدُّ شَفْرَتَهُ ځکه روایت سوی دی چې نبي ﷺ یو کس ولیدی چې هغه پسه پرې ایستلی وو او خپل چاړه یې تېره کوله فَقَالَ: لَقَدْ أَرَدْتَ أَنْ تُمِيتَهَا مَوْتَاتٍ نو نبي کریم ﷺ وفرمایل: آیا ته دا پسه په څو وارو سره مړ کول غواړې [آیا ته دېر مرګونه ورکوې!] هَلَّا حَدَدْتَهَا قَبْلَ أَنْ تُضْجِعَهَا» ولې دې د هغه تر پرې ایستلو مخکې چاړه نه تېروله.

---

[1] تخریج: اخرجه الهیثمي في مجمع الزوائد (۴/ ۳۳)، وابن ماجه في کتاب الذبائح، باب إذا ذبحتم فأحسنوا الذبح، حدیث رقم: ۳۱۷۰.

[2] تخریج: اخرجه حاکم في المستدرک في کتاب الضحایا، حدیث رقم: ۷۵۶۲ / ۴۶.

**اللغات**: ﴿يحدّ﴾ د مضارع صيغه ده، د افعال او نصر (مزيد او مجرد) دواړو څخه ويل کېداى سي، د دې باب څو معناوي دي چي له هغوى څخه يې يوه معنىٰ ده: تېره کول (تېزول)، تېزول. ﴿شفرة﴾ غټه چاړه، ﴿القِتلة﴾ د قتل د باب اسم نوع دی: قتل، ﴿يضجع﴾ د افعال د باب مضارع ده: پرې ايستل (پرې باسل)، ﴿شاة﴾ عام اسم دی، کوم چي پُسه، وزګري، بزې، ميږي ټولو لره شامل دی، او جمع يې من غير لفظه غَنَم راځي.

**تشريح**: په دې عبارت کي د ذبح په هکله دوې لارښووني سوي دي:

(۱)... له ذبح کولو څخه مخکي چاړه تېره کول (تېزول) مستحب دي؛ ځکه په حديث کي انسان په هر شي کي په احسان کولو سره مکلف سوی دی، او په ذبح کي د انسان احسان دا دی چي د څاروي سره سختي نه وکړي او له تکليف او عذاب ورکولو څخه بغير هغه ډېر په تېزي او په ښه توګه ذبح کړي.

(۲)... د ذبح کولو لپاره بايد د څاروي له پرې باسلو څخه مخکي چاړه تېره کړل سي؛ ځکه په دې هکله هم په متن کي د مذکوره حديث پر بناء منع سوې ده. او د دغه سلسلې ذبح ته په څو مرګونو سره مړ کول ځکه ويل سوي دي چي څارويو ته دا معلومه وي چي د دوی سره اوس څه کيږي، اوس که څوک د څاروي له پرې باسلو څخه وروسته چاړه تېره کوي، نو ښکاره ده چي څاروی به هغه وويني يا په همدې سخت حالت کي به پر څاروي ډېر وخت تيرېږي، نو تر ذبح کېدو مخکي به د مرګ په احساس ورکولو سره بار، بار وځورول سي، په همدې وجه د يوه پُسه مخ ته د بل پُسه له ذبح کولو څخه منع سوې ده چي په دې سره دوی ته سخت تکليف رسيږي. (او په دې هکله ما حقير بنده څو قصې هم اورېدلي دي چي کومو خلکو داسي کړي دي او دا مستحب عمل يې معمولي خبره ګڼلې ده او په دې هکله يې لا پروايي کړې ده، نو هغوی هم په مستقبل کي د سخت تکليف سره مخامخ سوي دي).

### د ذبح مکروهات

قَالَ: وَمَنْ بَلَغَ بِالسِّكِّيْنِ النُّخَاعَ فرمايي: او که څوک تر نخاع [حرام مغزه] پوري چاړه ورسوي أَوْ قَطَعَ الرَّأْسَ يا سر پرېکړي كُرِهَ لَهُ ذٰلِكَ نو د هغه لپاره دا مکروه دي وَتُؤْكَلُ ذَبِيحَتُهُ او د هغه ذبيحه خوړل کېداى سي [حلاله ده] وَفِي بَعْضِ النُّسَخِ قَطَعَ مَكَانَ بَلَغَ او په ځيني نسخو کي د "بلغ" پر ځاى "قطع" دی [يعني چي نخاع پرېکړي] وَالنُّخَاعُ عِرْقٌ أَبْيَضُ فِي عَظْمِ الرَّقَبَةِ او نخاع د غاړې په

حلوکي کي يو سپين رګ دی أَمَّا الْكَرَاهَةُ فَلِمَا رُوِيَ عَنِ النَّبِيِّ ﷺ [1] «أَنَّهُ نَهَى أَنْ تُنْخَعَ الشَّاةُ إِذَا ذُبِحَتْ» کوم چي د دې کار مکروه کېدل دي نو هغه ځکه چي نبي کريم ﷺ د پسه کولو په وخت کي د هغه تر نخاع [حرام مغزه] له پرېکېدو څخه منع وکړه وَتَفْسِيرُهُ مَا ذَكَرْنَاهُ او د دې تفسير همغه دی کوم چي موږ ذکر کړی وَقِيلَ: مَعْنَاهُ أَنْ يَمُدَّ رَأْسَهُ حَتَّى يَظْهَرَ مَذْبَحُهُ او ويل سوي دي: د نخاع معنیٰ دا ده چي د مذبوحه څاروي سر کش کړي تر دې چي د هغه د ذبح کېدلو ځای ښکاره سي وَقِيلَ: أَنْ يَكْسِرَ عُنُقَهُ قَبْلَ أَنْ يَسْكُنَ مِنَ الِاضْطِرَابِ او ويل سوي دي: چي [د نخاع تفسير دا دی چي] د څاروي غاړه ماته [جلا] کړي مخکي تر دې چي هغه له حرکت څخه په سکون کي سي [يعني تر ذبح وروسته چي څاروی تر اوسه لا ښووري [حرکت کوي] او يخ سوی او آرام سوي نه وي، تر هغه مخکي يې د غاړي ماتولو او جلا کولو ته نخاع وايي] وَكُلُّ ذَلِكَ مَكْرُوهٌ او دا ټوله مکروه دي وَهَذَا لِأَنَّ فِي جَمِيعِ ذَلِكَ وَفِي قَطْعِ الرَّأْسِ زِيَادَةَ تَعْذِيبِ الْحَيَوَانِ بِلَا فَائِدَةٍ او دا ځکه چي په دې ټولو صورتونو کي او د سر په پرېکولو کي حيوان ته بلا فايدې زائد تکليف ورکول سته وَهُوَ مَنْهِيٌّ عَنْهُ او له دې څخه [په حديث کي] منع سوې ده وَالْحَاصِلُ أَنَّ مَا فِيهِ زِيَادَةُ إِيلَامٍ لَا يَحْتَاجُ إِلَيْهِ فِي الذَّكَاةِ مَكْرُوهٌ خلاصه [او أصول کلي] دا دی چي هر هغه کار چي په هغه کي [څاروي ته] زائد تکليف [او درد] ورکول وي چي په ذبح کولو کي د هغه هېڅ حاجت [ضرورت] نه وي نو هغه مکروه دی وَيُكْرَهُ أَنْ يَجُرَّ مَا يُرِيدُ ذَبْحَهُ بِرِجْلِهِ إِلَى الْمَذْبَحِ او مکروه دي دا چي کش کړي هغه پسه چي د ذبح کولو اراده يې لري تر پښو د ذبح کولو ځای ته [يعني چي څاروی تر پښو ونيسي او مذبح ته يې کش کړي] وَأَنْ تُنْخَعَ الشَّاةُ قَبْلَ أَنْ تَبْرُدَ او [مکروه دي] دا چي د پسه سر جلا کړي [يا معنیٰ دا چي تر نخاع پوره يې پرېکړي] مخکي تر دې چي هغه يخ سي يَعْنِي تَسْكُنَ مِنَ الِاضْطِرَابِ يعني له حرکت څخه په سکون کي راسي [ښور ېدل پرېږدي] وَبَعْدَهُ لَا أَلَمَ او تر دې وروسته [يعني چي کله ښور ېدل ختم سي] درد نسته فَلَا يُكْرَهُ النَّخْعُ وَالسَّلْخُ نو

---

[1] تخريج: قلت غريب بهذا اللفظ، ومعناه رواه الطبراني في معجم حدثنا ابو حنيفة الفضل إلخ، همدارنګه د دغه حديث په معنی سره يو اثر په بخاري شريف کي هم مذکور دی؛ أخبرني نافع أن ابن عمر نهى عن النخع يقول يقطع ما دون العظم ثم يدع حتى يموت (بخاري شريف، باب النحر والذبح، ص: ۹۸۱، حديث رقم: ۵۵۱۰).

بیا سر جلا کول او څرمن کښل [پوستول] مکروه نه دي إِلَّا أَنَّ الْكَرَاهَةَ لِمَعْنًى زَائِدٍ خو کراهت د يو زائد [اضافي] معنیٰ په وجه دی وَهُوَزِيَادَةُ الْأَلَمِ قَبْلَ الذَّبْحِ أَوْ بَعْدَهُ او هغه تر ذبح مخکې یا تر ذبح وروسته زائد درد [او تکلیف] ورکول دي فَلَا يُوجِبُ التَّحْرِيمَ نو ځکه دا حرامول نه واجبوي فَلِهٰذَا قَالَ: تُؤْكَلُ ذَبِيحَتُهُ په همدې وجه امام قدوري رَحِمَهُ الله فرمايلي دي: چې د هغه ذبیحه خوړل کېدای سي [ذبیحه يې حلاله ده].

**اللغات:** ﴿سكّين﴾ چاړه. ﴿نُخاع﴾ (د نون په ضمه، فتحه او کسره تولو سره ویل کېدای سي): مؤلف رَحِمَهُ الله يې په خپله معنیٰ بیان کړې ده چې يو سپین رګ دی چې د څټ په هډوکي (عمود فقري) کې تللی دی کوم ته چې په اُردو ژبه کې حرام مغز ویل کیږي.... ﴿مذبح﴾ د ذبح کولو ځای. ﴿يكسر﴾ د ضرب د باب مضارع ده: ماتول. را جلا کول.

**تشریح:** هر هغه کار چې په ذبح کې ورته هیڅ ضرورت نه وي او په هغه سره مذبوحه څاروي ته درد او تکلیف رسیږي، نو هغه مکروه دی لیکن ذبیحه حلاله پاتیږي. او څرنګه چې دلته خرابي په نفس ذبح کې نه ده، بلکې د يو زائد (اضافي) معنیٰ په وجه خرابي راغلې ده چې هغه بلا وجه إيلام (درد او تکلیف ورکول) دي، نو ځکه دا د ذبیحې حرمت خو نه ثابتوي. بلکې ذبیحه حلاله ده. خو دا فعل مکروه دی.

بیا هغه افعال کوم چې مکروه دي، په لاندې ډول دي:

① ... د ذبح پر مهال تر نخاع (حرام مغز) پورې غاړه پرې کول.

② ... د ذبح د ځای ښکاره کولو لپاره د څاروي سر کشول او پېچل.

③ ... تر ذبح وروسته د څاروي له آرامېدلو (حرکت پرېښودلو) څخه مخکې سر ځنې جلا کول.

④ ... تر پښو نیول او د ذبح کېدو ځای (مذبح) ته بېول.

⑤ ... له آرامېدلو څخه مخکې پوست (څرمن) ځنې کښل.

په عبارت کې له دغو څخه اول درې مکروهات د نخاع په تفسیر کې بیان سوي دي.

## د څټ له طرفه د ذبح کولو حکم

قَالَ: وَإِنْ ذَبَحَ الشَّاةَ مِنْ قَفَاهَا فرمايي: او که څوک د څټ له طرفه پسه ذبح کړي فَبَقِيَتْ حَيَّةً حَتّٰى قَطَعَ الْعُرُوْقَ نو [که] هغه ژوندی پاته وي تر دې چې رګونه پرې کړي [يعني که تر مرګېدو مخکې يې د ذبح رګونه هم پرې کړي] حَلَّ نو حلال دی لِتَحَقُّقِ الْمَوْتِ بِمَا هُوَ ذَكَاةٌ د مرګ د ثابتېدلو په وجه په هغه شي سره کوم چې ذبح [حلالول] دي [يعني دلته په ذبح کولو سره د دې پسه مرګ واقع سو، یا په بله وینا دا چې

پسه ذبح او حلال کړی سو] وَيُكْرَهُ خو داسې کول مکروه دي لِأَنَّ فِيهِ زِيَادَةَ الْأَلَمِ مِنْ غَيْرِ حَاجَةٍ ځکه چې په دې کې بغیر له ضرور ته زائد درد [او تکلیف] ورکول سته فَصَارَ كَمَا إِذَا جَرَحَهَا ثُمَّ قَطَعَ الْأَوْدَاجَ نو دا داسې سو لکه پسه چې زخمي کړي بيا د هغه رګونه پرېکړي وَإِنْ مَاتَتْ قَبْلَ قَطْعِ الْعُرُوْقِ او که دا [د څټ له طرفه ذبح کړی سوی پسه] د رګونو تر پرېکول کېدلو مخکې مړ سي لَمْ تُؤْكَلْ نو نه به خوړل کيږي لِوُجُودِ الْمَوْتِ بِمَا لَيْسَ بِذَكَاةٍ فِيهَا د مرګ د راتللو په وجه په داسې شي سره کوم چې په پسه کې ذبح [حلالول] نه دي [يعني د دغه پسه مرګ په ذبح کولو سره واقع نه سو، ځکه چې ذبح او حلالول دې ته وايي چې تر مړ کېدلو مخکې (د ژوند په حالت کې) د ذبح رګونه ور پرېکړل سي].

**اللغات:** ﴿قفا﴾ څټ، ورمیږ، د غاړې د شا طرف. ﴿ألم﴾ درد، خوږ.

**تشریح:** مسئله دا ده چې پسه د غاړې له طرفه ذبح کول پکار دي، خو که څوک د څټ له طرفه پسه ذبح کړی سي (چې په هغه کې د غاړې هډوکی، پرې سي او نخاع [حرام مغز] پرې سي او څلور د ذبح رګو ته را ورسيږي)، نو اوس به دې ته کتل کيږي چې د پسه تر مړ کېدلو مخکې د ذبح رګونه (حلقوم، مرۍ او ودجان) هم پرې سول او که د هغوی تر پرېکېدلو مخکې پسه مړ سو. په اول صورت کې پسه حلال دی او په دویم صورت کې (چې د حلقوم، مرۍ او ودجان تر پرېکېدلو مخکې پسه مړ سي) هغه حلال نه دی، خو په هر صورت دا فعل مکروه دی؛ ځکه چې دا بلا ضرورته تکلیف ورکول دي.

## د ذبح مختلف اقسام (د کومو څارويو لپاره به ذبح اختياري يا ذبح اضطراري اختيارول کيږي؟)

قَالَ: وَمَا اسْتَأْنَسَ مِنَ الصَّيْدِ فرمايي: او کوم ښکار چې اموخته سوی وي فَذَكَاتُهُ الذَّبْحُ نو د هغه ذکاة [حلالول] ذبح ده وَمَا تَوَحَّشَ مِنَ النَّعَمِ او کوم چې له څارويو څخه وحشي سي فَذَكَاتُهُ الْعَقْرُ وَالْجُرْحُ نو د هغه زکاة عقر او زخمي کول [ذبح اضطراري] ده لِأَنَّ ذَكَاةَ الِاضْطِرَارِ إِنَّمَا يُصَارُ إِلَيْهِ عِنْدَ الْعَجْزِ عَنْ ذَكَاةِ الِاخْتِيَارِ ځکه چې له ذبح اختیاري څخه د عاجزۍ په وخت کې د ذبح اضطراري وطرف ته رجوع کيږي عَلَى مَا مَرَّ لکه څرنګه چې تېر سوه وَالْعَجْزُ مُتَحَقِّقٌ فِي الْوَجْهِ الثَّانِي دُونَ الْأَوَّلِ او عاجزي په دويم صورت کې ثابته ده، نه په اول صورت کې وَكَذَا مَا تَرَدَّى مِنَ النَّعَمِ فِي بِئْرٍ وَوَقَعَ الْعَجْزُ عَنْ ذَكَاةِ الِاخْتِيَارِ او همدارنګه کوم چې له څارويو څخه څاه ته شوه سي او له ذبح

اختياري څخه عاجزي واقع سي [نو ذبح اضطراري جائز ده] لِمَا بَيَّنَّا د هغه دليل په وجه كوم چي موږ بيان كړی وَقَالَ مَالِكٌ: لَايَحِلُّ بِذَكَاةِ الاِضْطِرَارِ فِي الْوَجْهَيْنِ او امام مالک رَحِمَهُ الله فرمايي: چي په دواړو صورر تونو کي په ذبح اضطراري سره نه حلاليږي لِأَنَّ ذٰلِكَ نَادِرٌ ځکه چي داسي کېدل نادر دي وَنَحْنُ نَقُولُ: الْمُعْتَبَرُ حَقِيقَةُ الْعَجْزِ او موږ [جواباً] وايو: چي معتبر هغه حقيقت عجز دی [يعني اصل اعتبار حقيقي عاجزۍ لره دی] وَقَدْ تَحَقَّقَ او هغه [دلته] متحقق دی فَيُصَارُ إِلَى الْبَدَلِ نو ځکه د بدل وطرف ته به رجوع کيږي كَيْفَ وَإِنَّا لَا نُسَلِّمُ النُّدْرَةَ بَلْ هُوَ غَالِبٌ [او دا نادر] څنګه کېدای سی حال دا چي موږ [د دې] نادر والی نه تسليموو بلکي دا خو غالب دي [يعني ډېر واقع کيږي].

**اللغات:** ﴿استأنس﴾ د استفعال ماضي ده: : اُنس حاصلول، روږدېدل، اموخته کېدل، ﴿توحّش﴾ د تفعّل ماضي ده: وحشي کېدل، بېرېدل او ترهېدل، ﴿عَـقر﴾ دعقر ضرب د باب مصدر دی: زخمي کول، داوبښ يوه پښه پرېکول او بيا نحر کول (د نحر معنیٰ به څه وروسته ذکر سي کوم چي مخکي هم ذکر سوې ده)، ﴿النعم﴾ څاروي، چارپايان.

**تشريح:** مخکي ذکر سوه چي ذبح پر دوه قسمه ده: ① ذبح اضطراري، ② ذبح اختياري.

او مخکي دا هم معلومه سوه چي دغه دواړه چيري مشروع دي (چي ذبح اضطراري به د اضطرار په وخت کي کيږي يعني چي کله څاروی وترهيږي. همدارنګه د ښکار په وخت کي، او ذبح اختياري به د کورني څاروو د ذبح په وخت کي کيږي. کوم چي ذبح ته غاړه ږدي).

دلته فرمايي چي که چيري کورنی څاروی مثلاً غويی وحشي سي او وتريږي، نو په دې صورت کي د هغه ذبح اضطراري جائز ده. او که چيري وحشي څاروی مثلاً هوسۍ د ډېر پاللو کبله اموخته سي او کورنۍ وګرځي، نو اوس به اختياري ذبح کول کيږي.

وكذا ما تردى إلخ: مثلاً پسه يا بل څاروی په څاه کي ولويږي، څرنګه چي په دې وخت کي له ذبح اختياري څخه عاجزي واقع سوه، نو ځکه اوس ذبح اضطراري جائز ده.

خو امام مالک رَحِمَهُ الله فرمايي چي که دغه صورت وي او که مخکينی صورت وي يعني چي کورنی څاروی وحشي سي، په دواړو صورتونو کي ذبح اضطراري جائز نه ده؛ ځکه داسي کېدل شاذ ونادر دي او ډېر کم واقع کيږي، او پر شاذ او نادر د احکامو بنياد نه ايښوول کيږي.

او موږ په جواب کي ورته وايو چي دلته ذبح اضطراري جائز ده او دليل دا دی چي ذبح اضطراري د ذبح اختياري بدل او قائم مقام ده چي کله ذبح کونکی له ذبح اختياري څخه عاجزه سي

نو له دويم (ذبح اضطراري) څخه به کار اخلي، او دلته عجز متحقق دی، نو ځکه د بدل وطرف ته به رجوع کيږي، او د امام مالک رَحِمَهُ الله دا فرمان چې داسې پېښېدل نادر دي مونږ نه تسليموو، ځکه دا خو کم نه بلکې ډېر پېښيږي.

## د پورتنۍ مسئلې نور وضاحت

وَفِي الْكِتَابِ أَطْلَقَ فِيمَا تَوَحَّشَ مِنَ النَّعَمِ او په کتاب [قدوري] کې يې د هغه څارويو په باره کې کوم چې وحشي سي مطلق حکم بيان کړی دی وَعَنْ مُحَمَّدٍ أَنَّ الشَّاةَ إِذَا نَدَّتْ فِي الصَّحْرَاءِ [لېکن] له امام محمد رَحِمَهُ الله څخه روايت سوی دی چې پسه چې کله په صحرا [بيابان] کې وترهيږي فَذَكَاتُهَا الْعَقْرُ نو د هغه ذکاة عقر [ذبح اضطراري] ده وَإِنْ نَدَّتْ فِي الْمِصْرِ لَا تَحِلُّ بِالْعَقْرِ او که په ښار کې وترهيږي نو هغه په عقر [ذبح اضطراري] سره نه حلاليږي لِأَنَّهَا لَا تَدْفَعُ عَنْ نَفْسِهَا ځکه چې هغه له خپل ځان څخه دفاع نه سي کولای فَيُمْكِنُ أَخْذُهَا فِي الْمِصْرِ نو په ښار کې د هغه نيول ممکن دي فَلَا عَجْزَ نو [دلته له ذبح اختياري څخه] عجز نسته وَالْمِصْرُ وَغَيْرُهُ سَوَاءٌ فِي الْبَقَرِ وَالْبَعِيرِ او ښار او نا ښار په غويي او اوښ کې سره برابر دي لِأَنَّهُمَا يَدْفَعَانِ عَنْ أَنْفُسِهِمَا ځکه چې دا دواړه له خپل نفس څخه دفاع کولای سي فَلَا يَقْدِرُ عَلَى أَخْذِهِمَا نو څوک به د دوی پر نيولو قدرت نه لري وَإِنْ نَدَّا فِي الْمِصْرِ که څه هم په ښار کې وترهيږي فَيَتَحَقَّقُ الْعَجْزُ نو عجز به ثابت سي وَالصِّيَالُ كَالنَّدِّ او حمله کول د ترهېدلو په څېر دي إِذَا كَانَ لَا يَقْدِرُ عَلَى أَخْذِهِ کله چې د هغه پر نيولو قدرت نه لري حَتَّى لَوْ قَتَلَهُ الْمَصُولُ عَلَيْهِ وَهُوَ يُرِيدُ الذَّكَاةَ تر دې که مصول عليه [پر چا چې يې حمله کړې ده هغه] دا غويی يا اوښ قتل کړي او اراده يې د ذبح کولو وي حَلَّ أَكْلُهُ نو د هغه خوړل حلال دي.

**اللغات:** ﴿ندت﴾ د ضرب له بابه د ماضي صيغه ده: د اوښ تړېدل، ترهېدل، بېرېدل او تښتېدل. ﴿الشاة﴾ عام لفظ دی، پسه، وزګړي، بزه، مېږه پر ټولو يې اطلاق کيږي. ﴿صِيال﴾ د نصر د باب مصدر دی. صَالَ يَصُولُ صَوْلًا و صِيَالًا وصَيَلَانًا: حمله کول. پر راغورځېدل او زور کول. ﴿مصول عليه﴾ له مخکيني بابه د مفعول صيغه ده: پر چا چې حمله سوې وي. ﴿ذكاة﴾ (په ذال سره) حلالول (ذبح کول او حلال ګرځول).

**تشريح:** څه مخکې تاسي ولیدل چې په متن کې امام قدوري رَحِمَهُ الله مطلقاً (بلا تفصیله) داسي فرمايلي دي چې کله کورنی څاروی وحشي سي، نو ذبح اضطراري جائز ده. خو دلته امام محمد رَحِمَهُ الله څه تفصیل بیان کړی دی چې په اوښ او غویي کې خو دا حکم مطلق دی یعني په دوی کې د ښار او صحرا حکم یو دی (چې که هر ځای وترهیږي، نو اضطراري ذبح يې جائز ده)، لیکن د پسه (او داسي نورو یعني دوزګري، بزې، میږي) حکم په صحرا کې خو همدغه دی، لیکن په ښار کې د دنه حکم يې دا دی چې هلته د پسه ذبح اضطراري جائز نه ده، ځکه په ښار کې د پسه او داسي نورو نیول ممکن او آسانه دي، او بل دا چې هغه د خپل ضعف په وجه د ځان دفاع هم نه سي کولای، نو ځکه دلته عجز متحقق نه سو. خو په دښت او صحرا کې دا کېدای سي چې هغه ورک سي او له سترګو نیام سي چې بیا يې ترلاسه کول مشکله وي، لهذا په دې صورت کې عجز متحقق کېدای سي، نو ځکه په دې صورت کې ذبح اضطراري جائز ده. او پاته سو اوښ او غویی د خپل ځان دفاع کولای سي، نو ځکه د دوی حکم په ښار او صحرا دواړو کې برابر دی.

والصيال كالند إلخ: که چیري اوښ او غویی پر یو کس حمله وکړي، نو د دې هم هغه حکم دی کوم چې د ترېدلو او وحشي کېدلو دی، لهذا پر چا چې حمله وکړي که هغه دغه اوښ یا غویی پر یو ځای زخمي کړي او مړ يې کړي، نو حلال دی، ځکه چې په دې صورت کې هم عجز متحقق دی.

خو که دا اوښ یا غویی د بل چا وي، نو پر مړ کونکي کس د هغه د قیمت تاوان واجبیږي، نو هغه حلال دی چې خوړل يې جائز دي.

## د ذبح مستحب اقسام (نحر او ذبح)

قَالَ: وَالْمُسْتَحَبُّ فِي الْإِبِلِ النَّحْرُ فرمايي: او په اوښ کې مستحب نحر کول دي فَإِنْ ذَبَحَهَا خو که اوښ ذبح کړي جَازَ نو جائز دي وَيُكْرَهُ [خو داسي کول] مکروه دي وَالْمُسْتَحَبُّ فِي الْبَقَرِ وَالْغَنَمِ الذَّبْحُ او مستحب په غویي او پسونو کې ذبح کول دي فَإِنْ نَحَرَهُمَا خو که دوی نحر کړي جَازَ نو جائز دي وَيُكْرَهُ [خو دا] مکروه دي أَمَّا الِاسْتِحْبَابُ فِيهِ کوم چې په دې کې مستحب کېدل دي فَلِمُوَافَقَةِ السُّنَّةِ الْمُتَوَارَثَةِ نو هغه د سنت متوارثه د موافقت [او د احادیث متواتره] په وجه دي وَلِاجْتِمَاعِ الْعُرُوقِ فِيهَا فِي الْمَنْحَرِ او ځکه چې په اوښ کې رګونه د نحر په ځای کې سره جمع دي وَفِيهِمَا فِي الْمَذْبَحِ او

په غوېي او پسه کې د ذبح په ځای کې سره جمع دي وَالْكَرَاهَةُ لِمُخَالَفَةِ السُّنَّةِ او کراهت [مکروه کېدل یې] د سنت د مخالف کېدلو په وجه دي وَهِيَ لِمَعْنًى فِي غَيْرِهِ او دا کراهت د داسې معنیٰ په وجه دي کوم چې له ذبح څخه بغیر په بل شي کې دی فَلَا تَمْنَعُ الْجَوَازَ وَالْحِلَّ نو ځکه دا کراهت جواز او حلت نه منع کوي خِلَافًا لِمَا يَقُولُهُ مَالِكٌ إِنَّهُ لَا يَحِلُّ په خلاف د هغه کوم چې امام مالک رَحِمَهُ الله فرمایلي دي چې دا حلال نه دي [یعني امام مالک رَحِمَهُ الله چې کوم دا خبره کوي چې د اوښ د ذبح کولو او د غوېي او پسه د نحر کولو په صورت کې دوی نه حلالیږي. دا زموږ بیان د هغه په خلاف دی].

**اللغات:** ﴿نحر﴾ د نحر صورت دا دی چې د اوښ د سینې له هډوکي څخه د پاسه پر دغه حصه نېزه یا بل تېره شی ووهل سي او غاړه یې څیره کړل سي، نو دې ته نحر وایي، په نحر کې نېزه له پورته څخه لاندې طرف ته بېول کیږي، په اوښ کې چې د نحر کوم ځای دی، هلته ټوله رګونه سره جمع وي، او په ذبح کې د غوېي او پسه تر زامې لاندې غاړه پرېکول کیږي، په دوی کې چې کوم د ذبح ځای دی، هلته ټوله رګونه سره جمع وي، ﴿غنم﴾ واحد له خپل لفظ څخه نه لري، ځکه چې واحد یې "شاة" دی، اسم جنس دی: پسه، بزه، سېرلی او مېږه پر ټولو یې اطلاق کیږي. (مصباح المنیر)

**تشریح:** د عبارت حاصل دا دی چې که اوښ وي، یا پسه او غوېی وي، په هر یوه کې ذبح او نحر دواړه جائز دي او ذبیحه حلاله ده، خو په اوښ کې نحر مستحب دی او ذبح مکروه ده، او په پسه او غوېي کې ذبح مستحب او نحر مکروه دی، د استحباب دلیل یې دا دی چې همداغه سنتِ متوارثه دی او متواتر احادیث پکښې وارد دي.

په اوښ کې د ټمام رګونو اجتماع د نحر ځای دی او په غوېي او پسه کې د ذبح ځای دی، او د مغکې په څېر دغه کراهت حلت او جواز نه منع کوي.

## د مذبوحه خاروي له نس څخه د راوتونکي بچي حکم

قَالَ: وَمَنْ نَحَرَ نَاقَةً أَوْ ذَبَحَ بَقَرَةً فَوَجَدَ فِي بَطْنِهَا جَنِينًا مَيِّتًا فرمایي: او څوک چې اوښه نحر کړي یا غوا ذبح کړي نو د هغه په نس کې مړ سوی بچی ومومي لَمْ يُؤْكَلْ نو هغه بچی به نه خوړل کیږي أَشْعَرَ أَوْ لَمْ يُشْعِرْ [برابره ده] وېښتان پر راغلي [راشنه سوي] وي او که نه وي وَهٰذَا عِنْدَ أَبِي حَنِيفَةَ او دا د امام صاحب رَحِمَهُ الله په نېز دي وَهُوَ قَوْلُ زُفَرَ وَالْحَسَنِ بْنِ زِيَادٍ او همدا د امام زفر او حسن بن زیاد

رَحِمَهُمَا الله قول دی وَقَالَ أَبُويُوسُفَ وَمُحَمَّدٌ ۞: إِذَا تَمَّ خَلْقُهُ او صاحبين رَحِمَهُمَا الله فرمايي: چي كه دبچي خلقت بشپړ سوی وي أُكِلَ نو خوړل كيږي به وَهُوَقَوْلُ الشَّافِعِيّ او همدا دامام شافعي رَحِمَهُ الله قول دی لِقَوْلِهِ الطَّيْلا ●: «ذَكَاةُ الْجَنِينِ ذَكَاةُ أُمِّهِ» دنبي ﷺ د دې فرمان په وجه: چي د مور ذبح كول [حلالول] دهغې د جنين ذبح كول دي وَلِأَنَّهُ جُزْءٌ مِنَ الْأُمِّ حَقِيقَةً او ځكه چي جنين بچى په حقيقت كي د مور جزء دی لِأَنَّهُ مُتَّصِلٌ بِهَا ځكه چي هغه د مور سره متصل دی حَتَّى يُفْصَلَ بِالْمِقْرَاضِ وَيَتَغَذَّى بِغِذَائِهَا وَيَتَنَفَّسُ بِتَنَفُّسِهَا همدا وجه ده چي هغه په غچي سره را جلا كول كيږي او د مور په غذا سره پايي او د مور په ساه سره ساه اخلي وَكَذَا حُكْمًا او همداسي حكماً [هم جنين بچى د مور جزء دی] حَتَّى يَدْخُلَ فِي الْبَيْعِ الْوَارِدِ عَلَى الْأُمِّ وَيُعْتَقَ بِإِعْتَاقِهَا همدا وجه ده چي جنين په هغه بيع كي داخليږي كوم چي پر مور وارديدونكې وي او د مور په آزادولو سره هغه آزاديږي وَإِذَا كَانَ جُزْءًا مِنْهَا او كله چي جنين د مور جزء دی فَالْجُرْحُ فِي الْأُمِّ ذَكَاةٌ لَهُ عِنْدَ الْعَجْزِ عَنْ ذَكَاتِهِ نو د جنين له ذبح څخه د عاجزی په وخت كي به د مور زخمي كول د جنين لپاره ذبح وي كَمَا فِي الصَّيْدِ لكه څرنګه چي په ښكار كي دي.

**اللغات:** ﴿أشعر﴾ د افعال د باب ماضي ده، د دې باب يوه معنىٰ ده: وېښتانو والا كېدل. وېښته را شين كېدل، وېښته را تلل، ﴿مقراض﴾ غچي، ﴿يتغذّى﴾ د تفعّل مضارع ده: غذا حاصلول (خوراک ترلاسه كول)، ﴿جنين﴾ په نس كي دننه موجود بچى.

**تشريح:** صورت د مسئلې آسانه دی، د امام صاحب، امام زفر او امام حسن ابن زياد رَحِمَهُمُ الله مذهب دا دی چي د اوښي، غوا او داسي نور دا دول جنين (بچى) به نه خوړل كيږي، برابره ده وېښتان يې راغلي وي او تام الخلقته وي، كه نه وي، په هر صورت كي دغه حكم دی.

او د امام شافعي او صاحبينو رَحِمَهُمُ الله قول دا دی چي كه هغه تام الخلقته وي، نو خوړل كيږي به. څه حرج پكښي نسته، او كه داسي نه وي، نو خوړل يې جائز نه دي.

**د صاحبينو او د امام شافعي دليل:** دغه حضراتو دوه دليلونه پېش كړي دي چي يو نقلي او بل عقلي دليل دی: (۱) نقلي دليل د نبي كريم ﷺ دا فرمان دی چي "ذكاة الجنين ذكاة أمه"، دا حديث په ښكاره الفاظو سره

---

۞ القول الراجح: قول أبي حنيفة رَحِمَهُ الله، قال العلامة الحصكفي رَحِمَهُ الله: ومتى اجتمع موجب الحل والحرمة غلب المحرم، وتزكية نفس لا تزكّي نفسين... والصحيح قوله كما في المضمرات (الدر المنتقى ج:۴، ص:۱۶۰)، والبحر الرائق (ج:۸، ص:۳۱۲). [القول الراجح ج:۲، ص:۲۸۹]

● تخريج: أخرجه ابو داود في كتاب الضحايا، باب ما جاء في ذكاة الجنين، حديث رقم:۲۸۲۷، ۲۸۲۸.

دا ښيي چي د مور ذبح د جنين (بچي) لپاره هم ذبح ده او کافي ده. جلا د هغه ذبح کولو ته ضرورت نسته. لهذا خوړل يې جائز دي.

(۲) عقلي دليل دا دی چي جنين حقيقتاً هم د مور جزء دی او حکماً هم. کله چي هغه په هر اعتبار سره د مور جزء دی، نو د مور ذبح د جنين لپاره هم ذبح کېدل پکار دي.

د حقيقتاً جزء کېدلو دليل دا دی چي جنين د مور سره متصل دی. همدا وجه ده که چيري هغه له مور څخه را جلا کول کيږي، نو د مور نوم (ناف) وغيره به پرېکول کيږي کوم چي د ده سره موښتي دي. او بل دا چي هغه د مور په غذا سره پايږي. د مور له ساه څخه ساه اخلي. له دغو ټولو خبرو څخه ښکاره سوه چي جنين د حقيقت په اعتبار سره د مور جزء دی.

حکماً د مور د جزء کېدلو دليل دا دی چي کله مور خرڅه کړل سي، نو په بيع کي جنين هم داخليږي. او کله چي مور آزاده کړل سي، نو جنين هم آزاديږي. لنډه دا چي کله جنين په هره توګه د مور جزء سو. نو د مور ذبح به د جنين لپاره هم کافي وي او خوړل به يې جائز وي.

او د دې مثال داسي دی لکه په ښکار کي چي له ذبح اختياري څخه د عاجزه کېدو په وجه ذبح اضطراري اختيارول کيږي. همداسي دلته د جنين له ذبح څخه عجز متحقق دی. نو ځکه دلته به د هغه د مور پر ذبح اکتفاء کيږي.

## د امام صاحب رَحِمَهُ الله دليل او د امام شافعي رَحِمَهُ الله او نورو د قياس جواب

وَلَهُ: أَنَّهُ أَصْلٌ فِي الْحَيَاةِ او د امام صاحب رَحِمَهُ الله دليل: دا دی چي جنين بچی په ژوند والي کي [له مور څخه] اصل [او جلا] دی حَتَّى يُتَصَوَّرَ حَيَاتُهُ بَعْدَ مَوْتِهَا همدا وجه ده چي د مور تر مرګ وروسته د هغه ژوند متصور [ممکن] دی وَعِنْدَ ذٰلِكَ يُفْرَدُ بِالذَّكَاةِ او په داسي وخت کي هغه په ذبح سره جلا کول کيږي [په بله وينا دا چي کله جنين په ژوند والي کي اصل او مستقل دی، نو ځکه هغه به جلا ذبح کول کيږي، د مور ذبح د هغه لپاره کافي نه ده] وَلِهٰذَا يُفْرَدُ بِإِيجَابِ الْغُرَّةِ همدا وجه ده چي جنين د غرّة [مينځي] په واجبولو کي متفرد دي وَيُعْتَقُ بِإِعْتَاقٍ مُضَافٍ إِلَيْهِ [همدارنګه] جنين آزاديږي په هغه إعتاق [آزدولو] سره کوم چي [يوازي] د جنين وطرف ته منسوب وي [يعني که يوازي جنين بچی آزاد کړی سي، نو هم هغه آزاديږي] وَتَصِحُّ الْوَصِيَّةُ لَهُ او د جنين لپاره وصيت کول صحيح کيږي وَبِهِ او [همدارنګه] په ده سره وصيت کول صحيح کيږي وَهُوَ حَيَوَانٌ دَمَوِيٌّ او [همدارنګه] جنين بچی ويني والا حيوان دی وَمَا هُوَ الْمَقْصُودُ مِنَ الذَّكَاةِ وَهُوَ التَّمْيِيزُ بَيْنَ الدَّمِ وَاللَّحْمِ لَا يَتَحَصَّلُ بِجَرْحِ الْأُمِّ او د ذبح مقصود يعني د ويني او غوښي تر مينځ جدايي راتلل د مور په زخمي کولو سره نه حاصليږي إِذْ هُوَ لَيْسَ بِسَبَبٍ لِخُرُوجِ الدَّمِ عَنْهُ ځکه چي د مور زخمي کول له جنين

ځخه د ويني وتلو سبب نه دي [يعني د مور په ذبح کولو سره له جنين ځخه وينه نه وځي] فَلَا يُجْعَلُ تَبَعًا فِي حَقِّهِ نو ځکه جنين به [د مور] تابع نه گرځول کيږي د ويني وتلو په حق کي بِخِلَافِ الْجُرْحِ فِي الصَّيْدِ په خلاف د ښکار والا حيوان د زخمي کولو [چي هغه په دې سره حلاليږي] لِأَنَّهُ سَبَبٌ لِخُرُوجِهِ نَاقِصًا ځکه چي زخمي کول د ناقص [لږ] ويني سبب خو دي [يعني په زخمي کولو سره څه ناڅه وينه خامخا له ښکار ځخه وځي] فَيُقَامُ مَقَامَ الْكَامِلِ فِيهِ عِنْدَ التَّعَذُّرِ نو په ښکار کي به ناقص د کامل [پوره ويني وتلو] قائم مقام گرځول کيږي د متعذر کېدلو په وخت کي وَإِنَّمَا يَدْخُلُ فِي الْبَيْعِ تَحَرِّيًا لِجَوَازِهِ كَيْ لَا يَفْسُدَ بِاسْتِثْنَائِهِ او جنين په بيع کي د جواز طلبولو لپاره داخلول کيږي چي د جنين په استثناء کولو سره بيع فاسده نه سي [يعني جنين ځکه په بيع کي داخلول کيږي چي بيع جائز وگرځي، ځکه که په بيع کي د هغه استثناء وسي نو بيع فاسديږي] وَيُعْتَقُ بِإِعْتَاقِهَا كَيْ لَا يَنْفَصِلَ مِنَ الْحُرَّةِ وَلَدٌ رَقِيقٌ او د مور په آزادولو سره جنين [ځکه] آزاديږي چي له آزادي ښځي ځخه غلام بچی جلا نه سي.

**اللغات**: ﴿يفرد﴾ د افعال د باب د مضارع مجهوله ده: جلا کول، جلا کېدل. يوازي کېدل (تنها کېدل).
﴿الغرة﴾ د دې لفظ څو معناوي دي، دلته يې معنیٰ ده: مينځه، د عبارت مطلب دا دی چي که د مور په نس کي بچی (جنين) ووژل سي، نو يوازي د هغه په بدله کي پوره مينځه واجبيږي، نو معلومه سوه چي بچی له مور ځخه جلا او مستقل دی، ﴿رقيق﴾ تر غلامی لاندي، غلام.

**تشريح**: د امام صاحب رَحِمَهُ الله د دليل حاصل دا دی چي جنين (بچی) په ډېرو احکامو کي له مور ځخه جلا او مستقل دی، په دې هکله يې پنځه دليلونه پېش کړي دي: ① حتی يتصور حياته، د مور په نس کي د جنين (بچي) ژوند بالکل مستقل دی، لکه څرنگه چي که مور مړه سي، نو جنين په نس کي ژوندی پاتېدای سي، ② ولهذا يُفرد، که حامله ښځه پر نس په لغته ووهل سي او جنين يې مړ سي، نو يوازي د دې جنين په عوض کي به يوه مينځه ورکول کيږي، ③ ويُعتق، که يوازي د مينځي جنين آزاد کړی سي، نو هغه آزاديږي، او مينځه نه آزاديږي (نو دا هم د استقلال دليل دی)، ④ الوصية له، که څوک صرف د جنين لپاره وصيت وکړي مثلاً ووايي چي د دغه ښځي په نس کي چي کوم بچی دی، زما له مال ځخه هغه ته دومره مال ورکړئ، نو دا وصيت صحيح دی، ⑤ الوصية به، همدارنگه که څوک وصيت وکړي چي مثلاً زما د غوا په نس کي چي کوم بچی دی، دا فلانکي ته ورکړئ، لېکن غوا به نه ورکوئ، نو دا وصيت هم صحيح دی.

نو دغه پنځه مسئلې د دې خبرې ښکاره دليل دی چې بچی مستقل دی، او د موز تابع نه دی، نو ځکه په ذبح کولو کې به هم د مور تابع نه وي او د مور ذبح به د هغه لپاره کافي نه وي.

وهوحيوان دموى إلخ: دا شپږم دليل دی، حاصل يې دا دی چې د ذبح کولو مقصد دا دی چې وينه له غوښو څخه جلا سي، او جنين داسي حيوان دی چې په هغه کې هم وينه سته (لکه څرنګه چې يې په مور کې سته)، او دا ښکاره ده چې د مور په زخمي کولو او ذبح کولو سره د بچي خپل وينه نه راوځي، نو بيا د ويني راوتلو په حق کې بچی څنګه د مور تابع کول کېداى سي.

له دغو ټولو دلائلو څخه معلومه سوه چې د مور ذبح د جنين بچي ذبح نه سي کېدلاى، لهذا د مور په ذبح سره بچی نه حلاليږي.

بخلاف الجرح في الصيد إلخ: صاحبينو او امام شافعي رَحِمَهُمُ الله چې جنين پر ښکار (صيد) قياس کړى دی. دا قياس صحيح نه دی؛ ځکه په ښکار کې خو د ذبح اضطراري (زخمي کولو) په وجه څه وينه وځي، که څه هم ټوله وينه نه وځي ځکه چې دا متعذره ده، نو هلته د تعذر په وجه ناقص د کامل قائم مقام ګرځول کيږي. او پاته سو د جنين په صورت کې وينه بالکل نه وځي؛ ځکه ښکاره خبره ده چې د مور د ويني په وتلو سره د هغه وينه نه وځي، نه ناقصاً او نه کاملاً. نو ځکه هغه پر ښکار قياسول صحيح نه دي.

وانما يدخل إلخ: او دوى حضرات چې کوم دا خبره کوي چې جنين د مور په بيع کې داخليږي او دا د جزئيت (جزء کېدو) دليل دی، نو د جواب حاصل دا دی چې د جنين د مستقل والي او ناجزئيت دلائل مخکې موږ پېش کړل او پاته سو په بيع کې د جنين داخلېدل دا د جزئيت پر بناء نه دي، بلکې د دې لپاره پکښې داخلول کيږي چې بيع فاسده نه سي، ځکه که په بيع کې د جنين استثناء وسي، نو بيع فاسديږي.

ويعتق إلخ: او د دوى دا خبره چې د مور په آزادېدلو سره جنين هم آزاديږي، د هغه په جواب کې فرمايي چې د مور د آزادېدلو په وجه چې جنين آزاديږي، هغه د جزئيت پر بناء نه دي، بلکې قاعده دا ده چې د آزاد بچی هم آزاد وي، او که داسي نه وسي نو له آزادي ښځي څخه د غلام بچي جلا کېدل لازميږي، کوم چې صحيح نه دي.

لنډه دا چې د مذکوره دلائلو په وجه، همدارنګه د احتياط اړخ ته د ترجيح ورکولو په وجه موږ وايو چې د مور په ذبح سره جنين نه حلاليږي، نو ځکه نه به خوړل کيږي.

يادونه: په عبارت کې د صاحبينو او امام شافعي رَحِمَهُمُ الله د ذکر کړه حديث جواب نه دی ورکول سوى، د هغه جواب دا دی چې دغه حديث د تشبيه لپاره دی او مفهوم يې دا دی چې "ذَكَاةُ الجنين كذكاة أمه" يعني څرنګه چې مور ذبح کول کيږي، همداسي که جنين بچی د مور له نسه ژوندی را ووتل سي، نو خاص د مور په څېر به ذبح کول کيږي او خوړل کيږي.

او بل دا چې د لته د حلت او حرمت اجتماع ده چې په داسي صورت کې حرمت ته ترجيح ورکول کيږي. همدارنګه ديوه نفس ذبح څنګه د دوو نفسونو ذبح کېدلاى سي!. نو ځکه أصح قول د امام صاحب رَحِمَهُ الله دی چې د مور ذبح د جنين لپاره نه کافي کيږي او هغه نه حلاليږي. (احسن الهدايه، اشرف الهدايه)

# فَصْلٌ فِيْمَا يَحِلُّ أَكْلُهُ وَمَا لَا يَحِلُّ

## (دا) فصل په بیان د هغه حیواناتو کي دی چي خوړل يې حلال دي او هغه چي خوړل يې حلال نه دي

**تشریح:** د ذبح د مشروعیت اصل مقصد د ښاروېو او حیوانانو غوښه وغیره حلالول دي (چي د انسان لپاره يې خوړل او استعمالول حلال او روا سي)، نو ځکه صاحب د کتاب د ذبح له تفصیلاتو څخه تر فارغ کېدو وروسته د حیوانانو او ښاروېو تفصیلات بیانوي.

### د حرامو حیوانانو او مرغانو بیان (چي خوړل يې حرام دي)

قَالَ: وَلَا يَجُوزُ أَكْلُ ذِيْ نَابٍ مِنَ السِّبَاعِ وَلَا ذِيْ مِخْلَبٍ مِنَ الطُّيُوْرِ [امام قدوري رَحِمَهُ الله] فرمایي: او جائز نه دي له درنده ګانو څخه د داړي لرونکي [او څیرونکي] حیوان خوړل او نه [جائز دي] له مرغانو څخه د منګول لرونکي مرغه خوړل [په بله وینا داچي: او روا نه دي خوړل د داړه داره [څیرونکو] درندګانو او نه د منګول دارو مرغانو] لِأَنَّ «النَّبِيَّ عَلَيْهِ السَّلَامُ نَهَى [1] عَنْ أَكْلِ كُلِّ ذِي مِخْلَبٍ مِنَ الطُّيُورِ وَكُلِّ ذِي نَابٍ مِنَ السِّبَاعِ» ځکه نبي ﷺ له مرغانو څخه د هر منګول داره او له درندګانو څخه د هر داړه داره له خوړلو څخه منع کړې ده وَقَوْلُهُ مِنَ السِّبَاعِ ذُكِرَ عَقِيْبَ النَّوْعَيْنِ او د نبي کریم ﷺ دا فرمان "مِنَ السِّبَاعِ" تر دواړو قسمونو وروسته ذکر سوی دی فَيَنْصَرِفُ إِلَيْهِمَا نو ځکه د دواړو وطرف ته به راجع وي فَيَتَنَاوَلُ سِبَاعَ الطُّيُورِ وَالْبَهَائِمِ نو درنده مرغانو او چارپایانو دواړو لره به شامل وي [یعني مرغان او حیوانان دواړه قسمه درندګانو لره به شامل وي] لَا كُلَّ مَا لَهُ مِخْلَبٌ أَوْ نَابٌ نه هر منګول دار او داړه دار لره [بلکي صرف هغه درنده (څیرونکي) لره] وَالسَّبُعُ كُلُّ مُخْتَطِفٍ مُنْتَهِبٍ جَارِحٍ قَاتِلٍ عَادٍ عَادَةً او سَبُع هر هغه حیوان دی کوم چي غوټه وهونکی، لوټونکی، زخمي کونکی، وژونکی او حمله کونکي وي د عادت په اعتبار سره [یعني کوم چي عادتاً او فطرتاً د غه اوصاف لري].

**اللغات:** ﴿ذو ناب﴾ د څیرونکي حیوان په خوله کي دوه تېره اوږده غاښونه وي چي په هغه سره دئ ښکار کول، دې ته ذو ناب حیوان ویل کیږي، او کوم حیوان (ساکښ) چي تېره منګولي او تېره

---

[1] تخريج: أخرجه مسلم في كتاب الذبائح، باب تحريم أكل ذي ناب من السباع، حديث رقم:١٦.

مشو که لري چې په هغه سره نیول کوي او مرغان څیري، هغه ته ذو مخلب مرغه وایي. ﴿سِبَاع﴾ جمع د سَبُع ده: درنده، څیرونکی. ﴿مخلب﴾ منګول (منګولي)، پنجه. ﴿مختطف﴾ د اِفتعال د باب فاعل دی: په ډېر تېزي سره راتلونکی او شی اخیستونکی، ناڅاپه غوټه وهونکی. ﴿منتهب﴾ د انفعال د باب فاعل دی: لوټونکی (لوټمار کونکی)، په زوره د شي اخیستونکی. ﴿جارح﴾ د نصر د باب فاعل دی: زخمي کونکی. ﴿عاد﴾ په اُردو شروحو کې د دې لفظ معنیٰ په سرکښ او حمله کونکي سره سوې ده.

**تشریح**: د عبارت حاصل دا دی چې درنده (څېرونکی) برابره ده ذوناب (داړه مار حیوانان) وي او که ذو مخلب (منګولو والا مرغان) وي، د هغه خوړل حلال او روا نه دي؛ ځکه نبي کریم ﷺ په حدیث شریف کې د منګول لرونکو څیرونکو مرغانو او د څیرونکو حیوانانو او درندګانو له خوړلو څخه منع کړې ده.

او په حدیث شریف کې د "من السباع" لفظ له ذو مخلب او ذو ناب دواړو قسمونو څخه وروسته ذکر سوی دی، نو ځکه دا دواړه د هغه مصداق جوړېږي یعني له مرغانو او حیوانانو څخه هر درنده یعني څیرونکي او په منګولو او داړو سره ښکارونکي حرامُ الأکل دي. کنې کوم حیوان چې ښکار کونکی او په داړو سره څیرونکی نه وي مثلاً اوښ، غوا، پسه او داسي نور. یا کوم مرغه چې ښکار کونکی او په منګلو سره څیرونکی نه وي مثلاً کوتره، مېتو او داسي نور، نو هغه په دې لفظ کې نه داخلېږي.

والسبع إلخ: سبع کوم حیوان ته وایي؟. صاحب د هدایي رَحِمَهُ الله دلته د هغه څو اوصاف بیان کړي دي چې هر هغه حیوان کوم چې په فطري او عادتي توګه ناڅاپه حمله کونکی (راغوړځېدونکی) او چاپه وهونکی وي، او د نورو شیانو وژونکی او ختمونکی وي مثلاً زمری، لېوه، چې فطرتاً په درندګانو کې شامل او د مذکوره اوصافو حامل دی، نو په داسي اوصافو سره متصف حیوانات په سبع او درنده توب کې داخل دي، برابره ده له هغوی څخه د دغه ډول کارونو صدور کیږي، که نه. لهذا که یو اموخته زمری، یا اموخته لېوه وي کوم چې حمله نه کوي، نو بیا هم هغه درنده دی؛ ځکه چې مذکوره اوصاف او کارونه د هغه له فطرت او عادت څخه دي.

## د درنده د حرامېدلو وجه (د انسان شرافت او کرامت)

| |
|---|
| وَمَعْنَى التَّحْرِيمِ (وَاللهُ أَعْلَمُ) كَرَامَةُ بَنِي آدَمَ او [د درندګانو] د حرامولو وجه (والله اعلم) د انسان احترام دی كَيْ لَا يَعْدُوَ شَيْءٌ مِنْ هٰذِهِ الْأَوْصَافِ الذَّمِيْمَةِ إِلَيْهِمْ بِالْأَكْلِ چې [د هغوی] د خوړلو په وجه له دغو بدو صفتونو څخه د انسانانو وطرف ته څه سرایت نه وکړي وَيَدْخُلُ فِيْهِ الضَّبُعُ وَالثَّعْلَبُ او په حرمت کې کوړ او ګیدړ هم داخل دي فَيَكُوْنُ الْحَدِيْثُ حُجَّةً عَلَى الشَّافِعِيِّ فِيْ إِبَاحَتِهِمَا نو [مذکوره] |

حديث به د امام شافعي رَحِمَهُ الله په خلاف حجت وي د دې دواړو په روا ګرځولو کي وَالْفِيلُ ذُوْ نَابٍ او فيل [هم] داړي لرونکی حيوان دی [يعني فيل که څه هم ځیرونکی حیوان نه دی. لېکن د هغه مخ ته د ښکرو په شان دوې اوږدې داړي دي چي "ناب" ورته وايي. نو فيل که څه هم حرام نه دی خو حلال هم نه دی بلکي مکروه دی] فَيُكْرَهُ نو ځکه مکروه دی وَالْيَرْبُوعُ وَابْنُ عِرْسٍ مِنَ السِّبَاعِ الْهَوَامِّ او ځنګلي موږک او موش خورما له درنده حشراتو څخه دي [ځکه چي دوی هم پر نورو کوچني حشراتو حمله کونکي او ځیرونکي يې دي او په همدې ګذاره کوي] وَكَرِهُوا أَكْلَ الرَّخَمِ وَالْبُغَاثِ او فقهاؤ د مړزګه خور [کرګس] او بغاث خوړل مکروه ګرځولي دي لِأَنَّهُمَا يَأْكُلَانِ الْجِيَفَ ځکه چي دا دواړه مړزګي خوري.

**اللغات**: ﴿لا يعدو﴾ د نصر له بابه د نفي صيغه ده: تجاوز کول او منتقل کېدل (احسن، اثمار). ﴿الضبع﴾ کوږ، کفتار. ﴿ثعلب﴾ ګيدړه، ابن انباري رَحِمَهُ الله وايي چي "يقع على الذكر والأنثى". ﴿اليربوع﴾ ساراني موږک، ځنګلي موږک. ﴿ابن عرس﴾ موش خرما (ميشخورما). له مږي څخه غټ حيوان دی چي اوږده بيره لکۍ لري. ﴿الهوام﴾ جمع د هَامَّةٌ ده (په تشديد د ميم سره): ① صاحب د معجم د دې لفظ دا معناوي ذکر کړي دي: حشرات (خزندې) او زهر لرونکي حيوانات. هر زهر لرونکی پر ځمکه تلونکی کوچنی ساکښ (معجم لغة الفقهاء). ② صاحب د حاشيې د دې لفظ معنیٰ په دَابَّةٌ سره کړې ده. يعني پر ځمکه تلونکي څه. ③ او اُردو شارحينو يې معنیٰ کړې ده: پر ځمکه ښکېدونکی. ﴿الرخم﴾ او الرخمة: کرګس، مړزګه خور. لاش خور چي "کجير" هم ورته وايي. يوغټ الوتونکی مرغه دی کوم چي زياتره وخت مړزګه (مرداره) خوري. ﴿البغاث﴾ دا هم کرګس ته مشابه مرغه دی خو تر هغه کوچنی دی. او چي چيري کرګس مرداره خوري. نو زياتره وخت بغاث هم هلته ور سره وي. ﴿الجِيَف﴾ جمع د جِيْفَةٌ ده: مړزکه، مرداره. هر هغه مړ سوی حيوان وغيره چي بدبويه سي. صاحب د مصباح يې داسي تعريف کړی دی: الْجِيْفَةُ مَيْتَةٌ مِنَ الدَّوَابِّ وَالْمَوَاشِيْ إِذَا أَنْتَنَتْ. وَالْجَمْعُ جِيَفٌ مِثْلُ: سِدْرَةٍ وَسِدَرٍ. سُمِّيَتْ بِذٰلِكَ لِتَغَيُّرِ مَا فِيْ جَوْفِهَا.

**تشريح**: **صورت د مسئلې**: دا دی چي د درنده حيوانانو او مرغانو (کوم چي ځیرونکي وي) د حرامولو وجه غالبا دا ده چي د دوی په فطرت کي خباثت او شرارت اخښلی دی. لهذا که دوی حِلال وګرځول سي. نو انسان کوم چي اشرف المخلوقات دی هغوی به خوري او په ده کي به هم د هغوی خبيثه خصلتونه پيدا سي. نو ځکه دوی حرام ګرځول سوي دي چي انساني شرافت او کرامت په رذالت او خباثت بدل نه سي.

فرمايي چي کوړ او چغال هم په درَندګانو کي داخل دي او د مخکيني حديث پر بناء هم دا حرام دي (چي په هغه کي له درنده څخه منع سوې ده)، حال دا چي امام شافعي رَحِمَهُ الله دوی حلال ګرځولي دي، نو هغه مخکيني حديث د امام شافعي رَحِمَهُ الله په خلاف حجت او دليل دی.

همدارنګه فيل نو کداره غابنونه او داړي لري، خو څرنګه چي په هغه کي د درنده توب ټوله اوصاف نسته، نو ځکه هغه مکروه تحريمي ګرځول سوی دی، همدارنګه ځنګلي موږک او موش خورما هم له درنده وو څخه دي او د درنده توب ځيني اوصاف پکښي سته، نو ځکه دوی هم مکروه تحريمي ګرځول سوي دي.

او فقهاؤ کرګس (مړګه خور) مرغه او د هغه همشکل مرغه يعني بغاث هم مکروه ګرځولي دي: ځکه دوی چي هر ځای مړګه (مردار سوی حيوان) او لاش ويني نو هغه ته ورځي او خوري يې.

## د کارګه قسمونه او د هغوی حکم

قَالَ: وَلَا بَأْسَ بِغُرَابِ الزَّرْعِ فرمايي: او څه پروا نسته د کښت والا کارګه په خوړلو کي لِأَنَّهُ يَأْكُلُ الْحَبَّ وَلَا يَأْكُلُ الْجِيَفَ ځکه چي هغه دانې خوري او مړزکي نه خوري وَلَيْسَ مِنْ سِبَاعِ الطَّيْرِ او هغه له درنده [څيرونکو] مرغانو څخه نه دی قَالَ: وَلَا يُؤْكَلُ الْأَبْقَعُ الَّذِي يَأْكُلُ الْجِيَفَ فرمايي: او نه به خوړل کيږي أبقع کارګه کوم چي مړزکي خوري وَكَذَا الْغُدَافُ او همدا ډول غداف کارګه وَقَالَ أَبُوحَنِيفَةَ: لَا بَأْسَ بِأَكْلِ الْعَقْعَقِ او امام صاحب رَحِمَهُ الله فرمايي: چي د کيږکي په خوړلو کي څه پروا نسته لِأَنَّهُ يُخَلِّطُ ځکه چي هغه [د پاک او مردار ترمينځ] اختلاط کوي [يعني کله ګندګي خوري او کله بيا دانې خوري] فَأَشْبَهَ الدَّجَاجَةَ نو د چرګي مشابه سوه وَعَنْ أَبِي يُوسُفَ أَنَّهُ يُكْرَهُ او له امام ابو يوسف رَحِمَهُ الله څخه نقل سوي دي چي کيږکه مکروه ده لِأَنَّ غَالِبَ أَكْلِهِ الْجِيَفُ ځکه چي د هغه عام خوراک مړزکي دي.

**اللغات**: ﴿غراب الزرع﴾، ﴿الأبقع﴾، ﴿الغُدَاف﴾ د کارګه څو قسمونه دي چي له هغوی څخه يې مشهوره درې قسمونه دي: او غالباً زموږ په علاقو کي دا ټوله وجود نه لري نو ځکه په پښتو کي د دې هر قسم لپاره يې ځانګړی نوم نسته: ① اول قسم کارګه د عامو مرغيو په څير ګرځي او په کښتونو او کېتيانو کي دانې او چينجي مينجي خوري. همدې ته "غراب الزرع" وايي. ② دويم قسم کارګه چي د هغه منکوکه تېره او را پېچلې وي او په تور والي کي يې څه سپينوالي غوندي وي او د غاړې

سره یې څه سپینوالی ښکاري، دا ډېر هوښیار قسم کارګه دي د خلکو کورو ته ورځي او د چرګو چیچیان وړي او خوري یې همداسي که یو ځای مړکه او مرداره ووینی نو په هغه ګذاره کوي، همدې کارګه ته "أبقع" وايي، ③ درېیم قسم کارګه بالکل تک تور وي او له مخکیني کارګه څخه څه غوندي غټ وي، دا د مخکیني کارګه په څېر ښکار نه سي کولای، بلکي دی خوشایي، خرشینه او له داسي نورو څخه دانې راباسي او خوري یې او د مړزګي وغیره غوښې هم خوري، همدې ته "غُدَان" کارګه وايي، ﴿العقعق﴾ کیږکه، ګیڅکه، کشکره.

**تشریح:** څرنګه چي د کښت کارګه فقط غله او دانې خوري، مردار سوي حیوان او ګندګي ته ورنږدې کیږي هم نه، نو ځکه د هغه په خوړلو کي څه حرج نسته. او په دې وجه هم چي د حرمت او کراهیت تعلق د درنده توب او خباثت سره دی، او د کښت په کارګه کي دا دواړه شیان نسته.

ولايؤكل الأبقع إلخ: د دې حاصل دا دی چي هغه کارغان کوم چي ګندګي او پلیتي خوري د هغوی خوړل روا نه دي؛ ځکه ښکاره ده چي د دوی وده او نما په غلاظت او ګندګي سره کیږي.

او پاته سوه کیږکه (ګیڅکه) نو د امام د امام صاحب رَحِمَهُ الله په نېز د هغه خوړل روا دي، ځکه هغه فقط ګندګي نه خوري بلکي نور پاک شیانه هم خوري، نو د چرګي سره مشابه سوه، او چرګه حلاله ده، نو ګیڅکه به هم حلاله وي.

خو د امام ابو یوسف رَحِمَهُ الله په نېز کیږکه هم مکروه ده؛ ځکه هغه غالباً ګندګي مړزګي او مرداري خوري، نو په دې وجه یې نه خوړل ډېر غوره دي..

**یادونه:** د خوراک په اعتبار سره د کارګه درې قسمونه دي: ① کوم چي فقط دانې خوري، دا مکروه نه دي، ② کوم چي فقط ناپاکي او ګندګي خوري، دا مکروه دي، ③ کوم چي کله دانې او کله ګندګي خوري، دا د امام صاحب رَحِمَهُ الله په نېز مکروه نه دي او د امام ابو یوسف رَحِمَهُ الله په نېز مکروه دي، کذا في مجمع الأنهر. (ج: ۲، ص: ۴۹۵)

## د کومو ځارویو خوړل مکروه دي

قَالَ: وَيُكْرَهُ أَكْلُ الضَّبُعِ وَالضَّبِّ وَالسُّلَحْفَاةِ وَالزُّنْبُورِ وَالْحَشَرَاتِ كُلِّهَا فرمايي: او مکروه دي خوړل د کوږ، دښتي سمسارې، کیشپ، غالبوزي او د ټولو خزندو أَمَّا الضَّبُعُ فَلِمَا ذَكَرْنَا هر چي کوږ دی نو د هغه دلیل په وجه [مکروه دی] کوم چي موږ ذکر کړی [چي کوږ هم ذی ناب درنده دی] وَأَمَّا الضَّبُّ

فَلِأَنَّ النَّبِيَّ عَلَيْهِ السَّلَامُ [1] نَهٰى عَائِشَةَ رَضِيَ اللهُ عَنهَا حِينَ سَأَلَتْهُ عَنْ أَكْلِهِ او کوم چې دښتي سمساره ده نو هغه ځکه [مکروه ده] چې نبي کريم ﷺ حضرت عائشه رَضِيَ اللهُ عَنهَا له هغې څخه منع کړه کله چې دې مبارکي له نبي ﷺ څخه د هغه د خوړلو په هکله پوښتنه وکړه وَهِيَ حُجَّةٌ عَلَى الشَّافِعِيِّ فِي إِبَاحَتِهِ او دا حديث د امام شافعي رَحِمَهُ الله په خلاف حجت دی [چې هغه ضَبّ حلال ګرځولی دی] وَالزُّنبُورُ مِنَ الْمُؤْذِيَاتِ او غالبوزه له ضرر رسونکو خزندو څخه ده وَالسُّلَحْفَاةُ مِنْ خَبَائِثِ الْحَشَرَاتِ او کيشپ له بدترينه حشراتو څخه دی وَلِهٰذَا لَا يَجِبُ عَلَى الْمُحْرِمِ بِقَتْلِهِ شَيْءٌ په همدې وجه د هغه په وژلو سره پر محرم کس هيڅ شی نه واجبيږي وَإِنَّمَا تُكْرَهُ الْحَشَرَاتُ كُلُّهَا اِسْتِدْلَالًا بِالضَّبِّ او حشرات ټوله پر ضَبّ په استدلال کولو [او پر هغه په قياس کولو] سره مکروه دي [يعني حشراتُ الأرض او خزندې ځکه مکروه دي چې پر دښتي سمساري قياس کړل شوي دي] لِأَنَّهُ مِنْهَا ځکه چې ضبّ هم له حشراتو څخه دی.

**اللغات:** ﴿الضبّ﴾ د ښتي سمساره. ﴿سلحفاة﴾ کيشپ (کيشو)، چې په سرحدي پښتو کي کاسه ګړپ او شمشتی هم ورته وايي. ﴿زُنبُور﴾ غالبوزه. ﴿حشرات﴾ خزندې.

**تشريح:** فرمايي چې د کوړ (کفتار) خوړل مکروه دي؛ ځکه چې له درندګانو څخه دی او په حديث کي صراحتاً له درنده څخه منع سوې ده.

همداسي د ضبّ (دښتي سمسارې) خوړل هم مکروه دي؛ ځکه په حديث د عائشې رضی الله عنها کي له دې څخه منع سوې ده، او امام شافعي رَحِمَهُ الله چې د ضبّ خوړل مباح او روا ګرځولي دي، دا حديث د هغه په خلاف حجت او دليل دی، چې په دې کي صراحتاً نبي ﷺ حضرت عائشه د هغه له خوړلو څخه منع کړې ده.

او څرنګه چې غالبوزي زهرجنې او موذي حشرات دي، نو ځکه د هغوی خوړل هم مکروه دي. او کيشپ هم له ځمکني حشراتو څخه شمېرل سوی دی بلکي د هغوی له خبائثو څخه دی. نو ځکه د هغه خوړل هم مکروه دي؛ د کيشپ د خبيث کېدلو يو دليل دا هم دی چې که محرم کس هغه قتل کړي، نو پر هغه هيڅ تاوان نه لازميږي.

[1] تخريج: أخرجه أبوداؤد في كتاب الأطعمة، باب في أكل الضبّ، حديث رقم: ۳۷۹۶.

وإنما تكره الحشرات إلخ: د حشراتو د مكروه كېدلو دليل دا دی چي ضبّ (دښتني سمساره) د حديث پر بناء مكروه گرځول سوې ده، نو پر هغه په قياس كولو سره دا نور حشرات هم مكروه دي؛ ځكه چي ضبّ له حشراتُ الأرض څخه ده او مكروه ده، نو ځكه د تمام حشراتُ الأرض به همدغه حكم وي.

## د كورني خره، غاتزي او آس حكم

قَالَ: وَلَا يَجُوْزُ أَكْلُ الْحُمُرِ الْأَهْلِيَّةِ وَالْبِغَالِ فرمايي: او د كورني خرونو او غاترو خوړل جائز نه دي لِمَا رَوٰى خَالِدُ بْنُ الْوَلِيْدِ رَضِيَ اللهُ عَنْهُ «أَنَّ النَّبِيَّ صَلَّى اللهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ نَهٰى عَنْ لُحُوْمِ الْخَيْلِ وَالْبِغَالِ وَالْحَمِيْرِ» [1] ځكه حضرت خالد بن وليد رضي الله عنه روايت كړی دی چي نبي كريم صلى الله عليه وسلم د آسونو، غاترو او خرونو له غوښو څخه منع كړې ده وَعَنْ عَلِيٍّ رَضِيَ اللهُ عَنْهُ «أَنَّ النَّبِيَّ عَلَيْهِ الصَّلَاةُ وَالسَّلَامُ أَهْدَرَ الْمُتْعَةَ وَحَرَّمَ لُحُوْمَ الْحُمُرِ الْأَهْلِيَّةِ يَوْمَ خَيْبَرَ» [2] او له حضرت علي رضي الله عنه څخه روايت سوی دی چي نبي عليه السلام د خيبر په ورځ متعه باطله كړه او د كورني خرونو غوښي يې حرامي كړې قَالَ: وَيُكْرَهُ لَحْمُ الْفَرَسِ عِنْدَ أَبِيْ حَنِيْفَةَ فرمايي: او د امام صاحب رَحِمَهُ الله په نيز د آس غوښي مكروه دي وَهُوَ قَوْلُ مَالِكٍ او همدا د امام مالك رَحِمَهُ الله قول دی وَقَالَ أَبُوْ يُوْسُفَ وَمُحَمَّدٌ وَالشَّافِعِيُّ [*]: لَا بَأْسَ بِأَكْلِهِ صاحبين او امام شافعي رَحِمَهُمُ الله فرمايي: چي د آس غوښي خوړل پروا نه لري [څه حرج پكښي نسته] لِحَدِيْثِ جَابِرٍ رَضِيَ اللهُ عَنْهُ أَنَّهُ قَالَ: «نَهٰى رَسُوْلُ اللهِ صَلَّى اللهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ عَنْ لُحُوْمِ الْحُمُرِ الْأَهْلِيَّةِ وَأَذِنَ فِيْ لُحُوْمِ الْخَيْلِ يَوْمَ خَيْبَرَ» [3] د حضرت جابر رضي الله عنه د حديث په وجه چي نبي صلى الله عليه وسلم د خيبر په ورځ د كورني خرونو له غوښو څخه منع وكړه او د آس د غوښو اجازه يې وكړه.

---

[1] تخريج: أخرجه النسائي، باب تحريم أكل لحوم الخيل، ص:٦٠٢، حديث رقم:٤٣٣٧، وابن ماجه، باب لحوم البغال، ص:٤٦٤، حديث رقم:٣١٩٨.

[2] تخريج: أخرجه البخاري بمعناه، باب لحوم الحمر الانسية، ص:٨٢٩، حديث رقم:٥٥٢٣.

[*] القول الراجح: قول الصاحبين رَحِمَهُمَا الله مع الكراهة التنزيهيّة، قال العلامة الحصكفي رَحِمَهُ الله: الخيل عندهما والشافعي تحل، وقيل: إن أبا حنيفة رجع عن حرمته قبل موته بثلاثة أيام وعليه الفتوى... وقال ابن عابدين: قوله وعليه الفتوى فهو مكروه كراهة تنزيه وهو ظاهر الرواية (رد المحتار ج:٥، ص:٢١٤)، ومجمع الأنهر (ج:٤، ص:١٦٢). [القول الراجح ج:٢، ص: ٢٩٠]

[3] تخريج: أخرجه البخاري بمعناه، باب لحوم الخيل، ص:٩٨٣، حديث رقم: ٥٥٢٠، ومسلم، باب إباحة أكل لحوم الخيل، ص:٨٢٨، حديث رقم: ١٩٤١/ ٥٠٢٢.

**اللغات:** ﴿أهدر﴾ د افعال د باب ماضي ده: لغو کول، باطلول.

**تشريح:** په دې عبارت کي صاحب د هدايې رَحِمَهُ الله دوې آسانه مسئلې بيان کړي دي:

(۱)...دائمه وو په اتفاق د کورني خرونو او غاترو غوښې خوړل جائز نه دي؛ ځکه نبي کريم ﷺ د خيبر پر موقع صراحتاً دوی حرام وګرځول.

(۲)... دويمه مسئله دائمه وو تر مينځ مختلف فيه ده، هغه دا چي د امام صاحب او امام مالک رَحِمَهُ الله په نيز دآس غوښې مکروه دي، او د صاحبينو او امام شافعي رَحِمَهُ الله په نيز دآس غوښي خوړل جائز دي، څه حرج نه لري؛ د دوی دليل د حضرت جابر رضي الله عنه هغه حديث دی چي په هغه کي د کورني خره له غوښو څخه ممانعت سوی دي او دآس د غوښو اجازت ورکول سوی دی. (د امام صاحب رَحِمَهُ الله دليل را روان دی)

## د امام صاحب رَحِمَهُ الله دليل

وَلِأَبِي حَنِيفَةَ قَوْلُهُ تَعَالَى: ﴿وَالْخَيْلَ وَالْبِغَالَ وَالْحَمِيرَ لِتَرْكَبُوهَا وَزِينَةً﴾ [النحل: ۸] او د امام صاحب رَحِمَهُ الله دليل د الله جل جلاله دا فرمان دی: او [باري تعالیٰ پيدا کړي دي] آسونه، غاتري او خرونه د دې لپاره چي تاسي پر هغه سپارلي وکړئ او [دوی] ښکلا ده [يعني باري تعالیٰ دوی زينت ګرځولي دي چي دوی سبب د زينت او ښکلا دي] خَرَجَ مَخْرَجَ الِامْتِنَانِ د الله تعالیٰ دا فرمان د احسان يادوني پر موقع وارد سوی دی [ځکه د سورة النحل له پنځم آيت څخه د احساناتو سلسله پيلېږي] وَالْأَكْلُ مِنْ أَعْلَى مَنَافِعِهَا او خوړل د دوی ډېر لوړ [ستر] منفعت دی وَالْحَكِيمُ لَا يَتْرُكُ الِامْتِنَانَ بِأَعْلَى النِّعَمِ وَيَمْتَنُّ بِأَدْنَاهَا او حکيم داسي نه کوي چي د لوړ [ستر] نعمت احسان يادونه [احسان اچونه] پرېږدي او د ادنیٰ منفعت احسان يادونه وکړي [دا د حکيم له شان څخه نه دي] وَلِأَنَّهُ آلَةُ إِرْهَابِ الْعَدُوِّ او ځکه چي آس د دښمن د مرعوبه کولو [او ډارولو] آله ده فَيُكْرَهُ أَكْلُهُ احْتِرَامًا لَهُ نو دآس د احترام په وجه د هغه خوړل مکروه دي وَلِهَذَا يُضْرَبُ لَهُ بِسَهْمٍ فِي الْغَنِيمَةِ په همدې وجه دآس لپاره په غنيمت کي حصه ټاکل کيږي وَلِأَنَّ فِي إِبَاحَتِهِ تَقْلِيلَ آلَةِ الْجِهَادِ او ځکه چي د دې په روا ګرځولو کي د جهادي آلې کمول سته [چي د ذبح کولو او خوړلو په وجه به آسونه کم سي] وَحَدِيثُ جَابِرٍ رضي الله عنه مُعَارِضٌ بِحَدِيثِ خَالِدٍ رضي الله عنه او د حضرت جابر رضي الله عنه حديث د حضرت خالد رضي الله عنه د حديث سره معارض دی وَالتَّرْجِيحُ لِلْمُحَرِّمِ او ترجيح

حرامونكي دليل لره وي ثُمَّ قِيْلَ: الْكَرَاهَةُ عِنْدَهُ كَرَاهَةُ تَحْرِيْمٍ بيا ويل سوي دي: چې كراهت [مكروه ولى] د امام صاحب رَحِمَهُ الله په نيز كراهت تحريمي دی وَقِيْلَ: كَرَاهَةُ تَنْزِيْهٍ او ويل سوي دي: چي كراهت تنزيهي دی وَالْأَوَّلُ أَصَحُّ لېكن اول قول زيات صحيح دی [چي كراهت تحريمي دی] وَأَمَّا لَبَنُهُ فَقَدْ قِيْلَ: لَا بَأْسَ بِهِ او پاته سو د آس [اسپي] شيدې نو ويل سوي دي: چي په [چيښلو او كارولو د] هغه كي هيڅ حرج نسته لِأَنَّهُ لَيْسَ فِي شُرْبِهِ تَقْلِيْلُ آلَةِ الْجِهَادِ ځكه چي د هغوی په چيښلو كي د جهادي آلې كمول نسته.

**اللغات**: ﴿امتنان﴾ د افتعال د باب مصدر دی: احسان اچول، احسان وربادول، منت باري. ﴿إرهاب﴾ د افعال د باب مصدر دی: ډارول، ترهول، بېرول. ﴿إباحة﴾ مباح او روا ګرځول، حلال كول.

**تشريح**: د امام صاحب رَحِمَهُ الله اول دليل دا دی چي په قرآن كي د څارويو د بيان پر مهال الله تعالیٰ فرمايلي دي ﴿وَالْخَيْلَ وَالْبِغَالَ وَالْحَمِيْرَ لِتَرْكَبُوْهَا وَ زِيْنَةً﴾ په دې ځای كي باري تعالیٰ پر بندګانو د خپلو احساناتو يادونه كوي او دلته د آسونو وغيره د خلقت مقصد سپارلي او زينت ښوول سوی دی او په دې كي د خوراک هيڅ تذكره نسته، نو كه چيري د دوی خوړل جائز وای كوم چي تر ټولو اعلیٰ منفعت او نعمت دی، نو د دغه احسان پر موقع به الله تعالیٰ حتماً د دې يادونه هم كولای چي "لِتَأْكُلُوْهَا" وغيره. او الله جَلَّ جَلَالُهُ حكيم ذات دی او حكيم چي كله د خپلو احساناتو يادونه كوي نو د ډېر غټ نعمت يادونه نه پرېږدي، لنډه دا چي د باري تعالیٰ سكوت عن بيان الأكل د دې خبري دليل دی چي د آس وغيره غوښي به نه خوړل كيږي (ځكه سكوت عن بيان الأكل دا څرګندوي چي د آس وغيره غوښي خوړل د دوی له اعلیٰ منافعو څخه نه دي، نو ځكه يې خوړل مكروه دي).

ولأنه آلة إرهاب إلخ: دويم دليل كوم چي عقلي دی دا دی چي آس د جهاد كولو او له دښمنانو سره د جنګ پر مهال د هغوی د مرعوبه كولو او ډارلو غوره ذريعه ده، په همدې وجه د آس لپاره په مال غنيمت كي خپل حصه ټاكل سوې ده (چي د هغه تفصيل مخكي تېر سو)، نو احتراماً به د هغه خوړل مكروه وي، او بل دا چي كه د هغه د خوړلو اجازت وركول سي، نو د جهاد په مقصد كي به كمي او نقص لازم سي كوم چي صحيح نه دي، نو په دې وجه هم د هغه خوړل مباح نه دي ګرځول سي.

وحدیث جابر إلخ: له دې ځایه د صاحبینو رَحِمَهُمَا الله د دلیل جواب ورکوي چې سمه ده! د جابر رضي الله عنه له حدیث څخه د آس د غوښو حلت څرګندیږي، لېکن د خالد بن ولید رضي الله عنه له حدیث څخه د هغه حرمت څرګندیږي، او د فقهي قاعده دا ده: "إذا اجتمع الحلال والحرام أو المُحَرِّمُ وَالْمُبِيْحُ، غلب الحرام و المُحَرِّم" چې کله حلال او حرام یا حراموونکی دلیل او مباح ګرځوونکی دلیل سره جمع سي، نو په دې وخت کي د حرمت جانب لره ترجیح ده، او د خالد بن وَلید رضي الله عنه په حدیث سره دلته حرمت ثابتیږي، نو ځکه دلته به هم دغه جهت اوّ جانب لره ترجیح حاصله وي او د آس د غوښو خوړل به صحیح نه وي.

ثم قیل الکراهة إلخ: فرمایي چې د صحیح قول مطابق د امام صاحب رَحِمَهُ الله په نیز دا کراهت تحریمي دی (یعني د آس غوښي مکروه تحریمي دي)، او بعضي حضراتو دا تنزیهي ګرځولی دی، خو دا صحیح نه ده.

او څرنګه چې د اسپي (آسي) د شیدې په استعمالولو کي نه د آلۀ جهاد کمي راځي او نه دا د آس د احترام منافي دي، نو ځکه د هغې د شیدو په استعمال کي څه حرج او پروا نسته.

## د سُوی (سوی ګی) حکم

قَالَ: وَلَا بَأْسَ بِأَكْلِ الْأَرْنَبِ فرمایي: او د سُوی په خوړلو کي څه پروا نسته لِأَنَّ النَّبِيَّ عَلَيْهِ الصَّلَاةُ وَالسَّلَامُ [1] أَكَلَ مِنْهُ حِينَ أُهْدِيَ إِلَيْهِ مَشْوِيًّا ځکه چې نبي ﷺ له هغه څخه خوراک کړی دی کله چي هغه نبي ﷺ ته سور کړی [کباب کړی سوی] هدیه کړی سو [یعني کله چي نبي ﷺ ته د سُوی کباب کړل سوي غوښي په هدیه کي پېش کړل سوې نو نبي ﷺ له هغه څخه څه وخوړل] وَأَمَرَ أَصْحَابَهُ رَضِيَ اللهُ عَنْهُمْ بِالْأَكْلِ مِنْهُ او نبي ﷺ خپل صحابه وو ته د هغه د خوړلو حکم وکړی وَلِأَنَّهُ لَيْسَ مِنَ السِّبَاعِ وَلَا مِنْ أَكَلَةِ الْجِيَفِ او ځکه چي سُوی له درندګانو څخه نه دی او نه د مړزګو له خوړونکو څخه دی فَأَشْبَهَ الظَّبْيَ نو د هوسۍ مشابه سو.

**اللغات**: ﴿الأرنب﴾ سُوی، سویه، ﴿مشويّ﴾ پر اُور سور کړل سوی، کباب کړی سوی. ﴿ظبي﴾ هوسی. ﴿جِيَف﴾ جمع د جِيفَةٌ ده: مړزګه. تفصیلي تعریف یې مخکي تېر سو.

---

[1] تخریج: أخرجه مسلم في كتاب الصيد، باب إباحة الأرنب، حديث رقم: ۱۹۵۳/ ۵۰۴۸.

**تشريح**: د عبارت حاصل دا دی چې يو ځل رسول الله ته سوی (أرنب) په هديه کې پيش کړل سو، نو هغوی ﷺ خپله هم له هغه څخه خوراک وکړی او نورو صحابه وو ته يې هم د هغه د خوړلو حکم وکړی، نو دا نبوي عمل د دې خبرې دليل دی چې د سوي په خوړلو کې څه حرج او پروا نسته. او بل دا چې د حرمت او کراهت تعلق د درنده توب او مردار خوری سره دی (چې ځيرونکي وي. مردار او ګنده شيان خوري)، او سوی له دې دواړو شيانو څخه منزه او پاک دی، نو د هوسۍ مشابه سو، او د هوسۍ خوړل جائز دي، نو د هغه خوړل به هم جائز او حلال وي.

## په ذبح سره د حرام حيوان د پاکېدلو بيان

قَالَ: وَإِذَا ذُبِحَ مَا لَا يُؤْكَلُ لَحْمُهُ [امام قدوري رَحِمَهُ الله] فرمايي: او کله چې ذبح کړی سي هغه حيوان چې غوښې يې نه خوړل کيږي [مثلاً ګيدړ] طَهُرَ جِلْدُهُ وَلَحْمُهُ نو د هغه څرمن او غوښې پاکيږي [لهذا که اوس د هغه پر څرمن لمونځ وسي نو جائز دي. همداسي که د لمانځه پر مهال د هغه د غوښو ټوټه وغيره په جيب کي وساتل سي نو جائز دي] إِلَّا الْآدَمِيَّ وَالْخِنْزِيرَ خو نه انسان او خنزير فَإِنَّ الذَّكَاةَ لَا تَعْمَلُ فِيهِمَا ځکه چې ذبح [حلالول] په دې دواړو کې اثر نه کوي أَمَّا الْآدَمِيُّ فَلِحُرْمَتِهِ وَكَرَامَتِهِ کوم چې انسان دی نو د هغه د احترام او عظمت په وجه وَالْخِنْزِيرُ لِنَجَاسَتِهِ او د خنزير د نجس والي په وجه كَمَا فِي الدِّبَاغِ لکه څرنګه چې په دباغت کې دي [چې دباغت هم په دوی کې اثر نه کوي] وَقَالَ الشَّافِعِيُّ: الذَّكَاةُ لَا تُؤَثِّرُ فِي جَمِيعِ ذَلِكَ او امام شافعي رَحِمَهُ الله فرمايي: چې ذبح په دې ټولو کې اثر نه کوي لِأَنَّهُ يُؤَثِّرُ فِي إِبَاحَةِ اللَّحْمِ أَصْلًا ځکه چې ذبح د اصل په توګه د غوښو په مباح [روا] کولو کې اثر کوي وَفِي طَهَارَتِهِ وَطَهَارَةِ الْجِلْدِ تَبَعًا او د تابع په توګه د غوښو په پاکولو او د څرمن په پاکولو کې اثر کوي [يعني په ذبح سره اولاً غوښې حلاليږي او بيا د حلال والي په ضمن او متابعت کې هغه او څرمن پاکيږي هم] وَلَا تَبَعَ بِدُونِ الْأَصْلِ او له اصل څخه بغير تابع والی نسته [مطلب دا چې په کوم حيوان کې په ذبح سره اصل (اباحتِ لحم) نه ثابتيږي نو په هغه کې تابع (طهارتِ جلد ولحم) هم نه ثابتيږي] وَصَارَ كَذَبْحِ الْمَجُوسِيِّ او دا د مجوسي د ذبح په څېر سو.

**اللغات**: ﴿جلد﴾ څرمن، پوست. ﴿دباغ﴾ دباغت، پوست ته رنګ ورکول، څرمن وچول او پخول (يعني د مسالې، مالګې يا د لمر او داسي نورو شيانو په ذريعه د پوست لوندوالی او بدبويي ورختمول چې هغه ته زموږ په

اصطلاح غالباً څرمن رنګول [رنګ ورکول] وايي). الدِّبَاغ: (بالکسر): هغه څه په کوم سره چي پوست رنګ او وچ کړی سي (ما يُدبَغ به).

**تشريح: صورت د مسئلي**: داسي دی چي کله څوک غيرِ مأکول اللحم حيوان په شرعي طريقه سره ذبح (حلال) کړي، نو په دې ذبح سره که څه هم د هغه حيوان غوښي نه حلاليږي، لېکن د هغه څرمن او پوست پاکيږي، ځکه چي په ذبح سره وينه او نجس رطوبات ټوله وځي.

خو د انسان او خنزير څرمن وغيره نه په ذبح سره پاکيږي، او نه په دباغت سره؛ ځکه چي انسان مکرم، اشرف المخلوقات او لائقِ احترام دی، او خنزير نجس العين دی، له امام شافعي رَحِمَهُ الله څخه نقل سوي دي چي په غيرِ مأکول اللحيم حيوان کي ذبح هيڅ اثر نه کوي؛ ځکه چي ذبح په اصل کي غوښي مباح او حلال ګرځوي (چي تر ذبح وروسته يې غوښي خوړل کېدای سي)، بيا د غوښو په تابع کېدلو سره د هغه څرمن (پوست) هم پاکيږي او غوښي يې هم پاکيږي (چي تر ذبح وروسته يې غوښي وغيره په لمانځه وغيره کي د ځان سره اخيستل کېدای سي)، خو څرنګه چي په غير مأکول اللحم کي اصل يعني "اباحت لحم" معدوم دی (يعني په ذبح سره هغه مباح او حلال نه ګرځي)، نو ځکه تبع يعني "طهارت جلد ولحم" به هم معدوم وي؛ ځکه چي تابع (طهارت جلد ولحم) له متبوع (اباحتِ لحم) څخه بغير نه ثابتيږي. او د دې مثال داسي دی لکه د مجوسي ذبح چي په هغه سره نه د غوښي حلت ثابتيږي او نه يې طهارت، فکذا هٰهنا.

## د احنافو دليل

وَلَنَا: أَنَّ الذَّكَاةَ مُؤَثِّرَةٌ فِي إِزَالَةِ الرُّطُوبَاتِ وَالدِّمَاءِ السَّيَّالَةِ او زموږ دليل دا دی: چي ذبح [حلالول] د رطوباتو [لندو مادو] او بهېدونکي وينو په ايستلو کي اثر کونکی دی وَهِيَ النَّجِسَةُ دُونَ ذَاتِ الْجِلْدِ وَاللَّحْمِ او همدا شيان ناپاک دي، نه د څرمن او غوښي ذات فَإِذَا زَالَتْ نو کله چي دا شيان [رطوبات وغيره] زائل سوه طَهُرَ نو غوښه او څرمن پاک سوه كَمَا فِي الدِّبَاغِ لکه څرنګه چي په دباغت کي دي وَهٰذَا الْحُكْمُ مَقْصُودٌ فِي الْجِلْدِ كَالتَّنَاوُلِ فِي اللَّحْمِ او دا [د پاکولو] حکم په څرمن کي مقصود دی لکه څرنګه چي خوړل په غوښه کي مقصود دي وَفِعْلُ الْمَجُوسِيِّ إِمَاتَةٌ فِي الشَّرْعِ او د مجوسي فعل [ذبح] په شريعت کي مردارول [شمېرل سوي] دي فَلَا بُدَّ مِنَ الدِّبَاغِ نو ځکه [د مجوسي د ذبيحې د څرمن پاکېدلو لپاره] دباغت ضروري دی وَكَمَا يَطْهُرُ لَحْمُهُ يَطْهُرُ شَحْمُهُ او [په ذبح کولو سره] څرنګه چي د هغه

غوښه پاکیږي همداسې د هغه وازګه هم پاکیږي حَتّٰی لَوْ وَقَعَ فِی الْمَاءِ الْقَلِیْلِ تر دې که دغه وازګه په لږ اوبو کې ولویږي لَا یُفْسِدُهٗ نو اوبه نه خرابوي خِلَافًا لَهٗ په خلاف د امام شافعي رَحِمَهُ الله وَهَلْ یَجُوْزُ الْاِنْتِفَاعُ بِهٖ فِیْ غَیْرِ الْاَکْلِ؟ او آیا له خوراک څخه بغیر په بل څه کې له وازګې څخه نفع اخیستل جائز دي قِیْلَ: لَا یَجُوْزُ اعْتِبَارًا بِالْاَکْلِ ویل سوي دي: چې جائز نه دي پر خوراک په قیاس کولو سره وَقِیْلَ: یَجُوْزُ او ویل سوي دي: چې جائز دي کَالزَّیْتِ اِذَا خَالَطَهٗ وَدَکُ الْمَیْتَةِ وَالزَّیْتُ غَالِبٌ لکه د زیتون تېل چې کله د هغه سره د مړزګي [مردار سوي څاروي] وازګه ګډه سي لَا یُؤْکَلُ وَیُنْتَفَعُ بِهٖ فِیْ غَیْرِ الْاَکْلِ نو هغه نه خوړل کیږي خو بغیر له خوړلو له هغه څخه نوره نفع اخیستل کیږي.

**اللغات:** ﴿الذکاة﴾ (په ذال سره): ذبح کول، حلالول. ﴿رطوبات﴾ جمع د رُطوبة ده: لنده بل، نمجنوالی، لنده ماده. ﴿زیت﴾ د زیتون تېل (روغن)، مطلق تېلو ته هم وايي.

**تشریح:** زموږ د دلیل حاصل دا دی چې په حیوان کې چې کوم ناپاکه رطوبات او بهېدونکې وینه وي، ذبح (ذکاة) هغه ټوله باسي، او په عین غوښو او څرمن کې خو هیڅ نجاست نه وي، نو په ذبح سره په هر حال غوښه او څرمن پاکیږي؛ ځکه چې په ذبح سره د حیوان باطني نجسه ماده خارج سوه، لکه څرنګه چې په دباغت سره د رطوبات نجسه وو په وچېدلو او وتلو سره څرمن پاکیږي، نو همداسې به د نجسې مادې په وتلو سره غوښه او څرمن پاکیږي.

**وهذا حکم مقصود إلخ:** دا د امام شافعي رَحِمَهُ الله د دلیل جواب دی چې هغه طهارت جلد (د څرمن پاکي) د اباحت لحم تابع ګرځولې ده، نو د جواب حاصل دا دی چې موږ دا نه تسلیموو؛ ځکه څرنګه چې د غوښې اصل مقصد خوړل دي، همداسې د څرمن اصلي مقصد طهارت او پاکي ده او دوی یو د بل تابع نه دي، نو ځکه په مأکول اللحم څاروي کې به په ذبح سره خو اباحت او طهارت دواړه حاصلیږي او په غیر مأکول اللحم کې به صرف طهارت حاصلیږي.

**وفعل المجوسي إلخ:** او امام شافعي رَحِمَهُ الله چې داسې ذبیحه د مجوسي پر فعل قیاس کړې ده، د هغه په جواب کې فرمايي چې دا قیاس هم صحیح نه دی؛ ځکه د مجوسي په فعل سره ځکه طهارت نه ثابتیږي: چې په شریعت کې د هغه ذبح مړه کول او مردارول شمېرل سوي دي (یعني مجوسي که څه هم څاروی ذبح کړي، خو دا داسې ده لکه هغه چې څاروی مردار کړي یا لکه څاروی چې خپله مردار سي)، لهذا کله چې

د هغه ذبیحه د مردار کړی سوي حیوان په څېر ده، نو ځکه د هغه د څرمن پاکولو لپاره دباغت ضروري دی (ځکه د مردار شده حیوان [میتة] د څرمن همدغه حکم دی)، او څرنګه چي دلته (په مأکول اللحم کي) ذبح صحیح شمېرل سوې ده، نو ځکه په دې سره طهارت او پاکي حاصلیږي، د دباغت ضرورت یې نشته.

وکما یطهر الخ: فرمایي چي کله زمونږ په نېز د غیر مأکول اللحم حیوان غوښه په ذبح سره پاکیږي، نو همداسي د هغه وازګه (وازده) هم پاکیږي (خو حلالیږي نه یعني خوړل کېدای نه سي)، همدا وجه ده که دا وازګه لږ په اوبو کي ولوېږي، نو هغه اوبه نه په مرداریږي، د امام شافعي رَحِمَهُ الله دلته هم اختلاف دی فرمایي چي څرنګه د هغه غوښه نه پاکیږي، همداسي د هغه وازګه هم نه پاکیږي او ماء قلیل مرداروي.

وهل یجوز الخ: فرمایي چي کله زمونږ په نېز وازګه پاکیږي خو حلالیږي نه، نو آیا له خوړلو څخه بغیر بله نفع ځني اخیستلای سي یعني د نورو مقاصدو مثلاً د څراغ وغیره د لګولو لپاره هغه استعمالولای سي، نو په دې باره کي دوه قولونه دي: ① څرنګه چي یې خوړل منع دي، همداسي په بل ځای کي نفع ځني اخیستل یې هم ممنوع دي، ② او دویم قول دا دی چي نفع ځني اخیستلای سي؛ د دې مثال یې دا پېش کړی دی چي که د زیتون په تېلو کي د مردار سوي حیوان وازګه ګډه سي، نو که څه هم د هغه خوړل جائز نه دي، خو له هغه څخه بله نفع اخیستل جائز دي (برابره ده وازګه پر غالبه وي او که مغلوبه)، نو همداسي دلته هم د دغه وازګي خوړل خو جائز نه دي، لېکن نفع ځني اخیستل او په نورو مقاصدو کي یې استعمالول جائز دي.

## د اُوبو د حیوانانو بیان

قَالَ: وَلَا يُؤْكَلُ مِنْ حَيَوَانِ الْمَاءِ إِلَّا السَّمَكَ فرمایي: او نه به خوړول کیږي د اوبو له حیوانانو څخه مګر ماهی [یعني له سمندري حیوانانو څخه به فقط ماهی خوړل کیږي] وَقَالَ مَالِكٌ وَجَمَاعَةٌ مِنْ أَهْلِ الْعِلْمِ بِإِطْلَاقِ جَمِيعِ مَا فِي الْبَحْرِ امام مالک رَحِمَهُ الله او د علماؤ یو جماعت د دې ټولو حیوانانو د اباحت وینا کړې ده [چي دا ټول مباح الأکل او روا دي] وَاسْتَثْنَى بَعْضُهُمُ الْخِنْزِيرَ وَالْكَلْبَ وَالْإِنْسَانَ او بعضو خنزیر، سپی او انسان مستثنیٰ کړي دي وَعَنِ الشَّافِعِيِّ أَنَّهُ أَطْلَقَ ذٰلِكَ كُلَّهُ او له امام شافعي رَحِمَهُ الله څخه نقل سوي دي چي هغه دا ټوله جائز ګرځولي دي وَالْخِلَافُ فِي الْأَكْلِ وَالْبَيْعِ وَاحِدٌ او اختلاف په

خوړلو او نه خوړلو کي يو دی لَهُمْ قَوْلُهُ تَعَالَىٰ ﴿أُحِلَّ لَكُمْ صَيْدُ الْبَحْرِ﴾ [المائدة: ۹۶] مِنْ غَيْرِ فَصْلٍ د دوی ټولو دليل د الله تعالیٰ دا فرمان دي: "ستاسي لپاره حلال دی ښکار د سمندر" بغير له څه تفصيله [يعني په دې الهي فرمان کي د ماهي او غيرِ ماهي تر مينځ هيڅ فصل نه دی سوی بلکي مطلقاً صيد حلال ګرځول سوی دی] وَقَوْلُهُ عَلَيْهِ الصَّلَاةُ وَالسَّلَامُ [1] فِي الْبَحْرِ «هُوَ الطَّهُورُ مَاؤُهُ وَالْحِلُّ مَيْتَتُهُ» او د سمندر په هکله د نبي ﷺ دا فرمان دي چي "دا او به د سمندر پاکونکي دي او مُرده يې حلال دي" وَلِأَنَّهُ لَا دَمَ فِي هٰذِهِ الْأَشْيَاءِ او ځکه چي په دغو شيانو کي وينه نه وي إِذِ الدَّمَوِيُّ لَا يَسْكُنُ الْمَاءَ ځکه ويني والا حيوان په اوبو کي نه اوسيږي وَالْمُحَرَّمُ هُوَ الدَّمُ او حرامونکی شی خو وينه ده فَأَشْبَهَ السَّمَكَ نو دوی ټوله د ماهي په څېر سول.

**اللغات:** ﴿ميتة﴾ مړ سوی (مردار سوی) حيوان، مرده حيوان.

**تشريح: صورت د مسئلې:** دا دی چي د احنافو په نيز د اُوبو له حيوانانو (ساکنبو) څخه صرف ماهی حلال دی. او د امام مالک او ابن ابي ليلیٰ رَحِمَهُمَا الله او د اسي نورو په نيز ټوله د اوبو حيوانان حلال دي، خو د بعضو په نيز د اوبو خنزير، سپی او انسان له دې څخه مستثنیٰ دي، له امام شافعي رَحِمَهُ الله څخه دا روايت نقل سوی دی چي هغه له څه استثناء څخه بغير د اوبو ټوله حيوانان مباح او حلال ګرځولي دي.

او د احنافو او د دوی تر مينځ مذکوره اختلاف د دغه حيوانانو د بيع او شراء په هکله هم دی، دوی د قرآن په دې آيت ﴿أُحِلَّ لَكُمْ إلخ﴾ په عموم سره دليل نيسي، چي په دې آيت کي د ماهي او غيرِ ماهي هيڅ تفصيل نه دی ذکر سوی، نو ځکه د آيت اطلاق به تمام سمندري حيوانانو لره شامل وي چي هغوی ټوله به حلال او مباح وي.

دويم دليل هغه حديث شريف دی کوم چي د سمندر په هکله نقل سوی دی چي سمندري اوبه پاکي دي او د سمندر مړ سوی حيوان (ميتة) حلال دی، لهذا کله چي د اوبو مړ سوی حيوان هم حلال دی، نو د هغه نور ژوندي حيوانان خو به په درجه اولیٰ حلال وي.

[1] تخريج: أخرجه ابو داؤد، باب الوضوء بماء البحر، ص:۲۳، حديث رقم:۸۳، والترمذي، باب ما جاء في البحر أنه طهور، ص:۱۹، حديث رقم:۶۹.

د دوی عقلي دليل دا دی چي د حرمت دار ومدار پر بهېدونکې وینه دی او د اوبو په حیوانانو کي بهېدونکې وینه نسته؛ ځکه که په دوی کي وینه وای، نو په اوبو کي به یې ژوند نه سوای کولای (او د بهېدونکي ويني علامت دا دی چي که هغه لمر ته څو وخت کښېښول سي نو توربږي، لېکن د سمندري حیوانانو وینه په لمر سره سپینېږي، نو د دوی وینه بهېدونکې [دم مسفوح] نه ده)، لهذا کله چي د اوبو په حیوانانو کي وینه نسته، نو ټوله د ماهي سره مشابه سوه، او ماهي بالاتفاق حلال دی، لهذا نور د اوبو سمندري حیوانان به هم حلال وي.

## د احنافو دليل او امام شافعي رَحِمَهُ الله او نورو ته جواب

وَلَنَا قَوْلُهُ تَعَالَى: وَيُحَرِّمُ عَلَيْهِمُ الْخَبَائِثَ [الأعراف: ١٥٧] او زموږ دليل د الله تعالیٰ دا فرمان دی: او حراموي پر دوی باندي خبيث شيان وَمَا سِوَى السَّمَكِ خَبِيثٌ او له ماهي څخه بغير نور ټوله سمندري حیوانان خبيث دي «وَنَهَى رَسُولُ اللهِ ﷺ عَنْ دَوَاءٍ يُتَّخَذُ فِيهِ الضِّفْدَعُ»[1] او نبي کريم ﷺ له داسي څخه دوا څخه منع کړې ده چي په هغه کي چونګښه [چندخه] استعمال سوې وي وَنَهَى عَنْ بَيْعِ السَّرَطَانِ[2] او د چنګاښ له بيع څخه يې منع کړې ده. وَالصَّيْدُ الْمَذْكُورُ فِيمَا تَلَا مَحْمُولٌ عَلَى الِاصْطِيَادِ او د فريقِ مخالف په تلاوت کرده آيت کي چي کوم [لفظ د] صَيد ذکر سوی دی هغه پر اصطياد [ښکار کولو] حمل سوی دی وَهُوَ مُبَاحٌ فِيمَا لَا يَحِلُّ او ښکار کول د هغه حیوان هم جائز دي کوم چي حلال نه وي وَالْمَيْتَةُ الْمَذْكُورَةُ فِيمَا رَوَى مَحْمُولَةٌ عَلَى السَّمَكِ او د فريقِ مخالف په روايت کرده حديث کي چي مَيْتَةٌ [مُرده] ذکر دی هغه پر ماهي حمل سوی دی وَهُوَ حَلَالٌ مُسْتَثْنًى مِنْ ذَلِكَ او ماهي حلال دی کوم چي له دې تمام ميتة [د سمندر له ټولو مُرده وو] څخه مستثنیٰ دی لِقَوْلِهِ عَلَيْهِ الصَّلَاةُ وَالسَّلَامُ[3] «أُحِلَّتْ لَنَا مَيْتَتَانِ وَدَمَانِ د نبي کريم ﷺ د دې فرمان په وجه چي: زموږ لپاره دوه مُرده حیوانان او دوې ويني حلال کړل سوي دي أَمَّا الْمَيْتَتَانِ فَالسَّمَكُ وَالْجَرَادُ کوم چي دوه مرده دي نو هغه ماهي او ملخ دي وَأَمَّا الدَّمَانِ فَالْكَبِدُ وَالطِّحَالُ» او کوم چي دوې ويني دي نو هغه اينه او توری دی.

---

[1] تخريج: أخرجه ابو داؤد في كتاب الطب، باب في الأدوية المكروهة، ص: ٥٥٠، حديث رقم: ٣٨٧١.

[2] تخريج: غريب جدًا، ما وجدته. (اثمار الهدايه)

[3] تخريج: أخرجه ابن ماجة في كتاب الذبائح، باب الكبد والطحال، ص: ٤٨٠، حديث رقم: ٣٣١٤.

**اللغات:** ﴿خبائث﴾ جمع د خَبِيْثٌ ده: ناخوښه شيان، ګنده او بد، هغه شيان کوم چې عربو به ناخوښه ګڼل او نه به يې خوړل لکه ځزندې او داسې نور (معجم لغة الفقهاء)، ﴿ميتة﴾ مړ سوی (مردار سوی) حيوان، ميتة البحر: د سمندر (درياب) مړ سوی حيوان، ﴿کبد﴾ اينه، ينه، ځيګر، ﴿طحال﴾ توری، دا هم د انسان په بدن کې يو غړی دی.

**تشريح:** زموږ په دليل کې يو آيت او دوه احاديث پېش کړل سوي دي، حاصل يې دا دی چې په قرآن پاک کې الله تعالیٰ خبائث صراحتاً حرام ګرځولي دي، او له ماهي څخه بغير نور سمندري حيوانان ټوله خبيث دي، د ټولو په طبيعت کې خبث دی او فطرت سليمه هغوی ته په کتلو سره انکار کوي او ناخوښه يې ګڼي. همدارنګه په حديث کې ذکر سوي دي چې نبي کريم ﷺ له داسې دواء څخه منع کړې ده چې په هغه کې چونګښه اچول سوې وي، که چېري چونګښه جائز وای، نو نبي ﷺ به ولي له دواء څخه منع کولای!.

او په دويم حديث کې د چنګاښ له بيع څخه منع سوې ده، چنګاښ د اوبو حيوان دی، او مخکې معلومه سوه چې د بيع او أکل دواړو حکم سره برابر دی، نو که چېري دغه د اوبو حيوان حلال وای، نو د هغه له بيع څخه به نبي ﷺ منع نه کولای، معلومه سوه چې له ماهي څخه بغير نور د اوبو سمندري حيوانان حرام دي.

والصيد إلخ: فريق مخالف (يعني امام شافعي رَحِمَهُ الله او نورو) چې په دې آيت سره دليل نيولی دی چې - ﴿أُحِلَّ لَكُمْ صَيْدُ الْبَحْرِ﴾، له دې څخه د سمندر ښکار والا حيوان مراد نه دی (چې ستاسې لپاره هر هغه حيوان حلال دی کوم چې تاسو په سمندر کې ښکار کړی وي)، بلکې دلته صَيْد په خپل مصدري معنیٰ سره دی (يعني ښکار کول) او مطلب يې دا دی چې ستاسې لپاره په سمندر کې ښکار کول حلال او روا دي، او ښکار خو د هغه حيوانانو هم جائز دی کوم چې حلال نه وي، لهذا په دې آيت سره دليل نيول مناسب نه دي.

والميتة إلخ: فريق مخالف چې په کوم حديث سره دليل نيولی دی يعني "هو الطهور والحل ميتته" په دې سره هم د دوی استدلال صحيح نه دی؛ ځکه په دې حديث کې له "ميتة" څخه مراد همدا ماهي دی کوم ته چې موږ حلال وايو، مطلق د سمندر مړ سوی حيوان ځني مراد نه دی، مطلب يې دا دی چې له سمندري حيوانانو څخه فقط ماهي حلال دی. او که څوک وايي چې د دې خبرې څه دليل دی چې منبی "ميتة" دی؟، نو د هغه جواب دا دی چې په بل حديث کې په ښکاره الفاظو سره د ماهي

د "ميتة" کېدلو او د هغه د حلال کېدلو وينا سوې ده "أُحلت لنا ميتتان... إلخ" چې مطلب يې دا دی چې کوم ماهي په سمندر کې مړ (مردار) سي، نو بيا هم حلال دی، لهذا مذکوره حديث ته په کتلو سره د "والحل ميتته" هم دغه مطلب دی.

## د "سمک طافي" حکم (او د فقهاؤ قولونه)

قَالَ: وَيُكْرَهُ أَكْلُ الطَّافِيْ مِنْهُ فرمايي: او له ماهيو څخه طافي ماهی مکروه دی [يعني هغه ماهی کوم چې په اوبو کې مړ سي او د اوبو پر مخ راپورته سي او چپه واوړي] وَقَالَ مَالِكٌ وَالشَّافِعِيُّ: لَا بَأْسَ بِهِ امام مالک او امام شافعي رَحِمَهُمَا الله فرمايي: چې په طافي ماهي کې هيڅ حرج نسته [خوړل يې مکروه نه دي] لِإِطْلَاقِ مَا رَوَيْنَا ځکه زموږ روايت کړده حديث [الحل ميتة] مطلق دی وَلِأَنَّ مَيْتَةَ الْبَحْرِ مَوْصُوفَةٌ بِالْحِلِّ بِالْحَدِيثِ او ځکه چې د سمندر مرده [مړ سوی حيوان] د حديث په وجه په حلال کېدو سره موصوف دی وَلَنَا مَا رَوَى جَابِرٌ رَضِيَ اللهُ عَنْهُ عَنِ النَّبِيِّ ﷺ [1] أَنَّهُ قَالَ او زموږ دليل هغه حديث دی کوم چې حضرت جابر رضي الله عنه روايت کړی دی چې نبي ﷺ وفرمايل «مَا نَضَبَ عَنْهُ الْمَاءُ فَكُلُوا له کوم ماهي څخه چې اوبه ولاړي سي [وچې سي] نو تاسي هغه خورئ! وَمَا لَفَظَهُ الْمَاءُ فَكُلُوا او کوم ماهی چې اوبه بهر را وغورځوي نو هغه هم خورئ! وَمَا طَفَا فَلَا تَأْكُلُوا» او کوم ماهی چې مړ سي او چپه واوړي نو هغه مه خورئ! وَعَنْ جَمَاعَةٍ مِنَ الصَّحَابَةِ مِثْلُ مَذْهَبِنَا او د صحابه وو رضی الله عنهم له يو جماعت څخه زموږ د مذهب په څېر نقل سوي دي وَمَيْتَةُ الْبَحْرِ مَا لَفَظَهُ الْبَحْرُ لِيَكُونَ مَوْتُهُ مُضَافًا إِلَى الْبَحْرِ او د سمندر مرده [مړ سوی حيوان] هغه دی کوم چې سمندر بهر راغورځولی وي، چې د هغه مړ کېدل د سمند وطرف ته منسوب کړی سي لَا مَا مَاتَ فِيهِ مِنْ غَيْرِ آفَةٍ [او] هغه د سمندر مرده نه دی کوم چې بغير له آفته په سمند کې مړ سوي وي [يعني طافي ماهی].

**اللغات**: ﴿طافی﴾ د نصر د باب اسم فاعل دی، طَفَى يَطْفُوْا طَفْوًا: راپورته کېدل او بيا لاندې نه تلل، نو طافي هغه ماهي ته وايي چې په اوبو کې مړ سي او بيا (د پاړسوب او ورستېدلو له کبله) د اوبو پر مخ را

---

[1] تخريج: أخرجه دار قطني وسنن البيهقي بمعناه (دار قطني، كتاب الأشربة ج:۴، ص:۱۸۰، حديث رقم:۴۶۶۸. سنن البيهقي، باب من كره أكل الطافي، ج:۹، ص:۴۲۸، حديث رقم:۱۸۹۹۰)

پورته سي. ﴿لفظه﴾ د ضرب د باب ماضي ده، د دې باب له معناو ځخه يوه معنیٰ ده: راغورځول، را اچول. ﴿نضب﴾ د نصر د باب ماضي ده: اوبه په ځمکه ننوتل، اوبه وچېدل او نيستي کېدل.

**تشريح**: دا مسئله خو تاسي ته معلومه سوه چي احناف هر ډول ماهي جائز ګرځولې دي، خو دلته د يوه ماهي استثناء کوي، هغه دا چي کوم ماهي په سمندر کي له يو آفت او سبب ځخه بغير خپله مړ سي او چپه واوړي (يعني د اوبو پر مخ را پورته او ښکاره سي سي چي شا يې لاندي وي او نس يې را پورته وي) کوم ته چي طافي ماهي وايي، دا مکروه تحريمي دی (ځکه عموماً هغه ماهي را پورته کيږي او چپه اوړي کوم چي پړسېدلی او روست سوی وي، نو ځکه داسي ماهي مکروه ګرځولی سوی دی).

خو امام مالک او امام شافعي رَحِمَهُ الله داسي ماهي هم حلال ګرځوي او په دليل کي همغه مخکينی حديث پېشوي "والحِلُّ مَيْتَتُهُ"، دوی فرمايي چي کله په سمندر کي مړ سوی حيوان حلال دی، نو طافي خو هم د سمندر مړ سوی حيوان (ميتة) دی.

**ولنا إلخ**: زموږ دليل په عبارت کي مذکوره د حضرت جابر رضي الله عنه حديث دی چي ① که د سمندر اوبه وچي سي او د اوبو وچېدلو په وجه ماهي مړ سي، نو د هغه خوړل حلال دي، ځکه چي دا مرګ د آفت په وجه دی، ② همدا ډول که د سمندر په اوبو کي زور داره حرکت او څپه راسي چي د هغه په وجه ماهي مړ سي او دباندي يې را وغورځوي، نو دا حلال دی؛ ځکه چي مرګ يې د آفت په وجه دی، ليکن کوم چي طافي ماهي دی (چي بغير له آفته په سمندر کي مړ سوی او چپه اوښتی وي) هغه حلال نه دی. د صحابه وو د يو پوره جماعت مذهب هم زموږ د مذهب په څېر دی.

**وميتة البحر إلخ**: د دې حاصل دا دی چي په "والحِلُّ مَيْتَتُهُ" سره د امام مالک او امام شافعي رَحِمَهُمَا الله دليل نيول صحيح او مناسب نه دي، ځکه ميتة البحر هغه ماهي ته وايي چي د هغه مرګ د اوبو او سمندر وطرف ته منسوب وي يعني کوم چي سمندر دباندي راغورځولی وي وغيره، او دې ته خو موږ هم حلال وايو، لهذا په مذکوره حديث سره د مطلق ميتة پر حلت دليل نيول صحيح نه دي.

**د ماهي بعضي نور قسمونه (او د ملخ په هکله د امام مالک رَحِمَهُ الله رايه)**

قَالَ: وَلَا بَأْسَ بِأَكْلِ الْجِرِّيْثِ وَالْمَارْمَاهِيِّ وَأَنْوَاعِ السَّمَكِ وَالْجَرَادِ بِلَا ذَكَاةٍ فرمايي: او جريث ماهي او مار ماهي او د ماهي ټوله قسمونه او ملخ بغير له ذبح کولو خوړل جائز دي وَقَالَ مَالِكٌ: لَا يَحِلُّ الْجَرَادُ إِلَّا أَنْ يَقْطَعَ الْآخِذُ رَأْسَهُ أَوْ يَشْوِيَهُ او امام مالک رَحِمَهُ الله فرمايي: چي ملخ حلال نه دی مګر دا چي نيونکی کس د هغه سر پرېکړي يا يې سور کړي لِأَنَّهُ صَيْدُ الْبَرِّ ځکه چي ملخ د وچي ښکار دی

وَلِهٰذَا يَجِبُ عَلَى الْمُحْرِمِ بِقَتْلِهِ جَزَاءٌ يَلِيقُ بِهِ او په همدې وجه پر محرم د ملخ د وژلو په وجه د هغه لائقه [مناسبه] جزاء لازميږي فَلَا يَحِلُّ إِلَّا بِالْقَتْلِ نو ځکه له وژلو [سر پرېکولو] څخه بغير به ملخ نه حلاليږي كَمَا فِي سَائِرِهِ لکه د وچي په ټولو حيواناتو کي چي [همداسي حکم دی] وَالْحُجَّةُ عَلَيْهِ مَا رَوَيْنَا او د امام مالک رَحِمَهُ الله په خلاف هغه حديث حجت دی کوم چي موږ روايت کړی [يعني: اُحلت لنا ميتتان] وَسُئِلَ عَلِيٌّ رَضِيَ اللهُ عَنْهُ عَنِ الْجَرَادِ يَأْخُذُهُ الرَّجُلُ مِنَ الْأَرْضِ وَفِيهَا الْمَيِّتُ وَغَيْرُهُ او له حضرت علي رضي الله عنه څخه د ملخانو په باره کي پوښتنه وسوه چي يو سړی هغه پر ځمکه ونيسي او په هغوی کي بعضي مړه وي او بعضي غير مړه وي [يعني ځيني مړه او ځيني ژوندي وي] فَقَالَ: كُلْهُ كُلَّهُ نو حضرت علي رضي الله عنه وفرمايل: چي هغوی ټول خوره! وَهٰذَا عُدَّ مِنْ فَصَاحَتِهِ او دا [وړنا] د حضرت علي رضي الله عنه له فصاحت څخه شمېرل سوې ده [ځکه چي په دې جمله کي يې دوه داسي الفاظ جمع کړي دي چي په شکل کي خو سره مشابه دي لېکن معناوې يې سره جلا دي] وَدَلَّ عَلَى إِبَاحَتِهِ وَإِنْ مَاتَ حَتْفَ أَنْفِهِ او دا [وړنا] د ملخانو پر روايېښت دلالت کوي چي که څه هم هغوی په خپل [طبعي] مرګ مړه سوي وي بِخِلَافِ السَّمَكِ إِذَا مَاتَ مِنْ غَيْرِ آفَةٍ په خلاف د ماهي کله چي هغه بغير له آفته مړ سي [چي هغه حلال نه دی] لِأَنَّا خَصَّصْنَاهُ بِالنَّصِّ الْوَارِدِ فِي الطَّافِي ځکه د طافي په هکله د وارد سوي نص [حديث] په وجه موږ د ماهي تخصيص کړی دی [يا په بله وړنا: ځکه داسي طافي ماهی موږ په هغه حديث سره خاص کړی او مستثنی کړی دی کوم چي د طافي په هکله وارد دی].

**اللغات:** ﴿جِريث﴾ دا يو قسم بد شکله ماهی دی چي له عامو ماهيانو څخه جلا دی او د مار په څېر اوږد دی (او زياتره وخت سره ټول پروت وي او ګول مول معلوميږي)، ﴿مار ماهي﴾ فارسي لفظ دی، دا هم يو قسم ماهی دی چي په شکل کي مار ته سوی دی، د دواړو خوړل ځکه جائز دي چي دوی ماهيان دي، محض څه اوږده او مار غوندي دي (الثمار الهدايه)، ﴿جراد﴾ جمع د جَرَادة ده: ملخ، ﴿يشوي﴾ د ضرب مضارع ده: په اور سور کول، کبابول، ﴿البَرّ﴾ د بحر ضد، وچه (له سمندرونو څخه بغير د دنيا وچه ځمکه)، ﴿صيد﴾ د دې لفظ دوې معناوې دي: ① ښکار کړی سوی حيوان، ② ښکار کول، ﴿حتف انفه﴾ په خپل طبعي مرګ (په خدايي مرګ).

**تشريح**: د عبارت حاصل دا دی چې جريث او مار ماهی او د ماهي هر قسم او ملخ بغير له ذبح خوړل جائز دي، څه حرج او کراهت پکښې نسته. خو امام مالک رَحِمَهُ الله فرمايي چې ملخ به ذبح کيږي يعني د هغه سر به څنې جلا کيږي؛ ځکه ملخ د وچې حيوان دی (همدا وجه ده چې د ملخ په وژلو سره پر محرم جزاء واجبيږي، لکه څرنګه چې په سپږه کې واجبيږي چې څه غوندي وريجې يا داسې نور به صدقه کوي) او د وچې په ټولو حيوانانو کې ذبح ضروري ده، نو په ملخ کې به هم ذبح ضروري وي او بغير له ذبح به يې خوړل جائز نه وي.

لېکن موږ په جواب کې ورته وايو چې په مخکيني حديث "أُحِلَّتْ لَنَا مَيْتَتَانِ... السَّمك والجَراد" کې ماهی او ملخ دواړه داخل دي (لکه مخکې چې ذکر سوه). لهذا څرنګه چې ماهی بغير له ذبح خوړل جائز دی، نو همداسې به ملخ هم بغير له ذبح خوړل جائز وي.

وسئل علي إلخ: همدارنګه د ژوندي او مرده ملخانو په هکله له حضرت علي رضي الله عنه څخه پوښتنه وسوه چې د دوی څه حکم دی؟، نو حضرت علي رضي الله عنه په ډېر فصيح انداز سره وفرمايل: "كُلُه كُلَّه" چې ټوله خوړلای سې، که په ملخ کې ذبح ضروري وای، نو يقيناً به حضرت رضي الله عنه د دې صراحت کولای، خو د هغه سکوت پر دې خبره دلالت کوي چې ملخ برابره ده ښکار کړی سي يا خپله مړ سي، بغير له ذبح د هغه خوړل روا دي. او د ماهي هم دغه حکم دی، خو څرنګه چې د طافي ماهي په هکله صراحتاً په نص (حديث) کې منع سوې ده، نو ځکه موږ احنافو د طافي په مستثنی کولو سره د نورو ماهيانو د خوړلو حکم کړی دی؛ ځکه چې نص فقط د همدې طافي په هکله وارد سوی دی.

## د ماهي د حلت او حرمت په هکله قاعده کليه

ثُمَّ الأَصْلُ فِي السَّمَكِ عِنْدَنَا أَنَّهُ إِذَا مَاتَ بِآفَةٍ بيا زموږ په نيز د ماهي په باره کې اُصول دا دی چې کله ماهی په آفت سره مړ سي يَحِلُّ نو هغه حلال دی كَالْمَأْخُوذِ لکه نيول سوی ماهی [چې مړ سي نو حلال دي] وَإِذَا مَاتَ حَتْفَ أَنْفِهِ مِنْ غَيْرِ آفَةٍ خو کله چې ماهی بغير له آفته په خپل [طبعي] مرګ مړ سي لَا يَحِلُّ نو حلال نه دی كَالطَّافِي لکه طافي ماهی وَتَنْسَحِبُ عَلَيْهِ فُرُوعٌ كَثِيرَةٌ بَيَّنَّاهَا فِي كِفَايَةِ الْمُنْتَهِيِ او پر دغه اصل ډېر فروع متفرع کيږي کوم چې موږ په كفاية المنتهي کې بيان کړي دي وَعِنْدَ التَّأَمُّلِ يَقِفُ الْمُبَرِّزُ عَلَيْهَا چې ذهين کس د تفکر [غور] کولو په وخت کې په هغوی [فروعو] اګاه کېدای سي مِنْهَا إِذَا قَطَعَ بَعْضَهَا فَمَاتَ له هغوی څخه يو فرع دا ده چې کله څوک د ماهي بعضې حصه

پرېکړې او هغه مړ سي يَحِلُّ أَكْلُ مَا أُبِينَ وَمَا بَقِيَ نو د هغه حصې [ټوټې] خوړل حلال دي کوم چې جلا کړل سي او کوم چې [نور ماهی] پاته دی [يعني ماهی هم حلال دی او جلا کړل سوې ټوټه يې هم حلاله ده] لِأَنَّ مَوْتَهُ بِآفَةٍ ځکه چې د هغه مرګ د آفت په وجه دی [يعني دبعضي ټوټې د پرېکولو په وجه مړ سوی دی] وَمَا أُبِينَ مِنَ الْحَيِّ وَإِنْ كَانَ مَيِّتًا او کومه ټوټه چې له ژوندي حيوان څخه جلا کړل سي هغه که څه هم مرداره ده فَمَيْتَتُهُ حَلَالٌ خو د سمندر مرده حلال دي وَفِي الْمَوْتِ بِالْحَرِّ وَالْبَرْدِ رِوَايَتَانِ او په ګرمۍ او يخ سره د [ماهي] مړ کېدلو په هکله دوه روايتونه دي [يو روايت دا دی چې داسي ماهی حلال دی، او دويم دا چې حلال نه دی].

**اللغات**: ﴿تنسحب﴾ د انفعال د باب مضارع ده: (د ځمکي پر مخ) را کشېدل، را واتـل، دلته څني مراد متفرع کېدل دي، ﴿يقف﴾ واقف کېدل، اګاه کېدل. ﴿مبرز﴾ فائق، ډېر ذهين او ځيرک، ﴿تأمّل﴾ غور او فکر کول، ﴿أُبِيْن﴾ د افعال د باب ماضي مجهوله ده: جلا کول کېدل، بېلول.

**تشريح**: صاحب د هدايې رَحِمَهُ الله د ماهي په باره کي يوه قاعدهٔ کليه بيانوي فرمايي چي که ماهی د يو آفت او سبب (مثلاً د ذبح کولو، د سمندر وچېدلو، په جال کي د بندېدلو وغيره) په وجه مړ سي، نو هغه حلال دی، لکه ژوندی ماهی چي شوک ونيسي او مړ يې کړي نو حلال دی، او که بغير له آفت څخه مړ سي، نو هغه حلال نه دی، لکه طافي ماهی چي حلال نه دی. بيا فرمايي چي پر دغه اصول ډېري فروع او مسئلې متفرّع کيږي، چي عاقل او ځيرک په غور او تأمّل سره خپله هغه را ايستلی سي.

مثلاً (له هغه فروعو څخه يوه دا ده چي) که دژوندي ماهي هسي يو حصه پرېکړل سي او هغه مړ سي، نو دا مرګ د آفت په وجه دی، نو ځکه داسي ماهی هم حلال دی او هغه پرېکړل سوې ټوټه يې هم حلاله ده؛ د ماهي حلّت خو ښکاره دی، او ټوټه که څه هم دژوندي حيوان ټوټه ده کوم چي نه سي حلاله کېدلای، بلکي مرداره وي، خو څرنګه چي دا د ماهي ټوټه ده کوم چي سمندري حيوان دی، نو د "الحِلُّ مَيْتَتُه" پر بناء يې ټوټه هم حلاله ده.

په آخر کي فرمايي چي کوم ماهی د ډېري ګرمۍ يا ډېر يخ په وجه مړ سي، نو په دې باره کي دوه قولونه دي: يو دا چي هغه هم حلال دی، او بل دا چي حلال نه دی، خو مختاره قول أول دئ چي حلال دی؛ ځکه دلته هم د آفت په وجه مرګ واقع سوی دی، نو ځکه داسي ماهي به هم حلال وي (او په مجمع الأنهر ج: ۲، ص: ۴۶۹ کي پر همدې فتویٰ ورکول سوې ده). والله أعلم وعلمهُ أتم

❀❀❀

# كِتَابُ الأُضْحِيَةِ

(دا) كتاب د قرباني د احكامو (په بيان كې) دى

**تشريح**: د كتابُ الذبائح او كتابُ الأضحية تر مينځ مناسبت په دې توګه دى چې دواړه د ذبح پر بيان مشتمل دي، خو ذبح عام ده او اُضحيه خاص ده، نو صاحب د هدايې رَحِمَهُ الله د عام تر بيانولو وروسته اوس د خاص احكام او تفصيلات بيانوي.

**د "اضحية" لغوي او اصطلاحي معنىٰ**: د قربانۍ په ورځو (ايامُ النحر) كې ذبح كړى سوي ښاروي ته په لغت كې اضحيه وايي.

او اصطلاحي معنىٰ يې ده: "ذَبْحُ حَيَوَانٍ مَخْصُوصٍ بِنِيَّةِ الْقُرْبَةِ فِي وَقْتٍ مَخْصُوصٍ" (يعني د عبادت [قربانۍ] په نيت سره په مخصوص وقت "أيام النحر" [يعني د ذى الحجې په لسمه، يوولسمه او دوولسمه] كې د مخصوص ښاروي ذبح كول.

نور د اُضحيه (قربانۍ) شرائط او تفصيل به خپله مصنف رَحِمَهُ الله په را روانو صفحو كې ذكر كړي.

## د قربانۍ شرعي حيثيت او د قربانۍ حكم (پر كوم چا او څه وخت واجب ده؟)

قَالَ: اَلْأُضْحِيَةُ وَاجِبَةٌ عَلَى كُلِّ حُرٍّ مُسْلِمٍ مُقِيمٍ مُوسِرٍ فِي يَوْمِ الْأَضْحٰى فرمايي: چې قرباني واجب ده پر هر داسې آزاد كس كوم چې مسلمان، مقيم او مالدار وي، د قربانۍ په ورځ كې عَنْ نَفْسِهِ وَعَنْ وَلَدِهِ الصِّغَارِ د خپل ځان له طرفه او د خپلو كوچني بچيانو له طرفه أَمَّا الْوُجُوبُ فَقَوْلُ أَبِي حَنِيفَةَ وَمُحَمَّدٍ وَزُفَرَ وَالْحَسَنِ كوم چې [د قربانۍ] واجبدل دي نو هغه د امام صاحب، امام محمد، امام زفر او حسن بن زياد رَحِمَهُمُ الله قول دى وَإِحْدَى الرِّوَايَتَيْنِ عَنْ أَبِي يُوسُفَ ❁ او د امام ابو يوسف رَحِمَهُ الله له دوو روايتونو څخه يو روايت [هم دا] دى وَعَنْهُ أَنَّهَا سُنَّةٌ او له امام ابو يوسف رَحِمَهُ الله څخه بل روايت دا

---

❁ القول الراجح: قول أبي حنيفة رَحِمَهُ الله...، قال العلامة قاضيخان: فهي واجبة في ظاهر الرواية على الرجل والمرأة الموسر المقيم في الأمصار دون المسافر (الخانية ج:۲، ص:۳۲۸)، وفي رد المختار (ج:۵، ص:۲۲۰). [القول الراجح ج:۲، ص:۲۹۱]

دی چې قرباني سنت ده ذَكَرَهُ فِي الْجَوَامِعِ دا روایت يې په [خپل کتاب] جوامع کې ذکر کړی دی وَهُوَ قَوْلُ الشَّافِعِيِّ او همدا د امام شافعي رَحِمَهُ الله قول دی وَذَكَرَ الطَّحَاوِيُّ أَنَّ عَلَى قَوْلِ أَبِي حَنِيفَةَ وَاجِبَةٌ او طحاوي رَحِمَهُ الله ذکر کړي دي چې د امام صاحب رَحِمَهُ الله پر قول واجب ده وَعَلَى قَوْلِ أَبِي يُوسُفَ وَمُحَمَّدٍ سُنَّةٌ مُؤَكَّدَةٌ او د صاحبینو رَحِمَهُمَا الله پر قول سنت مؤکده ده وَهَكَذَا ذَكَرَ بَعْضُ الْمَشَايِخِ الِاخْتِلَافَ او همدغسي بعضي مشايخو هم اختلاف ذکر کړی دی.

**اللغات:** ﴿اضحية﴾ قرباني، اخترى (هغه څاروی چې قرباني کيږي)، ﴿مؤسِر﴾ پراخ لاسی، مراد مالدار.

**تشريح:** امام قدوري رَحِمَهُ الله په متن کې څلور خبري کړي دي چې قرباني واجب ده، بیا: پر چا واجب ده، کله واجب ده، او د چا له طرفه واجب ده، او په دغه عبارت کې د اولې خبرې تفصيل بيان سوی دی.

حاصل يې دا دی چې قرباني د طرفينو، امام زفر او حسن بن زياد رَحِمَهُمُ الله په نېز واجب ده، د امام ابو يوسف رَحِمَهُ الله هم يو روايت دغسي دی، خو د امام شافعي رَحِمَهُ الله په نېز او د امام ابو يوسف رَحِمَهُ الله د دوئم روايت مطابق کوم چې يې په جوامع کې ذکر کړی دی قرباني سنت ده.

امام طحاوي او ځيني نورو مشايخو رَحِمَهُمُ الله بيا داسي اختلاف ذکر کړی دی چې د امام صاحب رَحِمَهُ الله په نېز قرباني واجب ده او د صاحبينو په نېز سنت مؤکده ده. خو فتوىٰ د قرباني پر وجوب ده، نو دلته دوه قوله سوه: ① سنت، ② واجب.

اوس صاحب د هدايې رَحِمَهُ الله د هر فريق دلائل پېشوي، اول د هغو حضراتو دليلونه پېشوي کوم چې قرباني ته سنت وايي، او بيا د قائلينِ وجوب دلائل پېشوي.

## قرباني ته د سنت ويونکو حضراتو دلائل

وَجْهُ السُّنَّةِ قَوْلُهُ عَلَيْهِ الصَّلَاةُ وَالسَّلَامُ [1] «مَنْ أَرَادَ أَنْ يُضَحِّيَ مِنْكُمْ د سنت [يعني د قرباني د سنت والي] دليل د نبي ﷺ دا فرمان دی چې: په تاسي کې چې کوم څوک د قرباني کولو اراده وکړي فَلَا يَأْخُذْ مِنْ شَعْرِهِ وَأَظْفَارِهِ شَيْئًا» نو هغه دي له خپلو وږېښتو او نوکانو څخه هيڅ نه پرېکوي وَالتَّعْلِيقُ بِالْإِرَادَةِ يُنَافِي الْوُجُوبَ او پر اراده مُعلّق کول د وجوب منافي دي وَلِأَنَّهَا لَوْ كَانَتْ وَاجِبَةً عَلَى الْمُقِيمِ او

---

[1] تخريج: أخرجه مسلم بمعناه، باب نهي من دخل عليه عشر ذى الحجة إلخ، ص:٨٨٢، حديث رقم:١٩٧٧/ ٥١١٧، وأيضا أخرجه ابن ماجة فى كتاب الأضاحى، باب من اراد أن يضحى، حديث رقم:٣١٤٩، ٣١٥٠.

ځکه که قرباني پر مقیم واجب وای لَوَجَبَتْ عَلَى الْمُسَافِرِ نو پر مسافر به هم واجب وای لِأَنَّهُمَا لَا يَخْتَلِفَانِ فِي الْوَظَائِفِ الْمَالِيَّةِ ځکه چې مقیم او مسافر په مالي عبادتونو کې یو له بل څخه مختلف نه دي كَالزَّكَاةِ لکه زکاة [چې پر مقیم او مسافر دواړو واجب دی] وَصَارَ كَالْعَتِيرَةِ او دا دعتیره په څېر سو.

**اللغات**: ﴿عتيرة﴾ د رجب د میاشتې قرباني، یعني هغه پسه وغیره چې د جاهلیت په زمانه کې به خلګو د رجب د میاشتې په اوله عشره کې ذبح کول، او اسلام هغه منسوخه کړل.

**تشریح**: صاحب د هدايې رَحِمَهُ الله د قائلینِ سنت دوه دلیلونه ذکر کړي دي: یو نقلي او بل عقلي دلیل.

نقلي دلیل په عبارت کې ذکر سوی حدیث دی چې د هغه مفهوم دی: که د چا د قربانۍ اراده وي، نو خپل وربښتان وغیره دې نه پرېکوي. او ګورئ! دلته قرباني پر اراده مُعلّق کړل سوې ده (چې که د چا د قربانۍ اراده وي او قرباني کول غواړي)، ښکاره خبره ده چې دا د وجوب الفاظ نه دي.

عقلي دلیل دا دی چې که پر مقیم قرباني واجب وي (لکه څرنګه چې د وجوب قائلین وايي)، نو باید پر مسافر هم واجب سي، ځکه چې په عبادت مالیه کې هر ځای مقیم او مسافر سره برابر وي، مثلاً زکاة مالي عبادت دی، نو هغه چې څرنګه په مالدار مقیم باندې واجب دی، همداسې په مالدار مسافر باندې هم واجب دی، او مثلاً عتیره پر مسافر واجب نه وه، همداسې پر مقیم هم واجب نه وه.

حال دا چې قرباني پر مسافر واجب نه ده (لکه څرنګه چې د وجوب والا حضرات هم په دې قائل دي)؛ نو ځکه پر مقیم به هم واجب نه وي، کنې د دواړو د حکم مختلف کېدل به لازم سي، لنډه دا چې په زکاة کې مسافر او مقیم دواړه په وجوب کې سره برابر دي او په عتیره کې په عدمِ وجوب کې سره برابر دي، نو په قرباني کې هم برابري او مساوات کېدل پکار دي، او هغه داسې کېږي چې په دواړو کې قرباني ته سنت وويل سي، نه داسې چې پر مقیم واجب ده او پر مسافر واجب نه ده.

د عتیره تعریف په لغاتو کې ذکر سو او دا تعریف (د را روان عبارت په آخر کې) مصنف رَحِمَهُ الله هم بیان کړی دی.

## قرباني ته د واجب ويونکو حضراتو دلائل

وَجْهُ الْوُجُوبِ قَوْلُهُ عَلَيْهِ الصَّلَاةُ وَالسَّلَامُ [1] «مَنْ وَجَدَ سَعَةً وَلَمْ يُضَحِّ فَلَا يَقْرَبَنَّ مُصَلَّانَا» او د [قربانۍ د واجب کېدلو دلیل د نبي ﷺ دا فرمان دی: څوک چې وس ومومي او قرباني نه وکړي نو هغه دې زموږ عیدګاه ته نه نږدې کېږي] وَمِثْلُ هٰذَا الْوَعِيدِ لَا يَلْحَقُ بِتَرْكِ غَيْرِ الْوَاجِبِ او دغه قسم وعید د نا

[1] تخريج: أخرجه ابن ماجة في كتاب الأضاحي، باب الأضاحي واجبة هي أم لا، حديث رقم: ۳۱۲۳.

واجب شي په پرېښوولو پسې نه لاحقیږي [بلکې داسې وعید د واجب شي د پرېښوولو په باره کې واردیږي] وَلِأَنَّهَا قُرْبَةٌ يُضَافُ إِلَيْهَا وَقْتُهَا او ځکه چې قرباني يو داسې قربت [عبادت] دی چې د هغه وطرف ته د خپل وخت اضافت [نسبت] کیږي يُقَالُ: يَوْمُ الْأَضْحَى ويل کیږي: یوم الأضحی وَذٰلِكَ يُؤْذِنُ بِالْوُجُوبِ او دا د وجوب خبر ورکوي [چې قرباني واجب ده] لِأَنَّ الْإِضَافَةَ لِلِاخْتِصَاصِ ځکه چې اضافت د اختصاص لپاره وي وَهُوَ بِالْوُجُودِ او اختصاص په وجود سره کیږي [چې قرباني موجوده سي یعني وکړی سي] وَالْوُجُوبُ هُوَ الْمُفْضِي إِلَى الْوُجُودِ او وجود ته همدا وجوب رسول کوي [یعني د قربانۍ وجود (موجودېدل) او کېدل هغه وخت په یقیني توګه کېدای سي کله چې هغه واجب وي، ځکه د سنت والي په صورت کې يې پرېښوول (نا موجودېدل) هم امکان لري چې مکلفین به يې نه وکړي] ظَاهِرًا بِالنَّظَرِ إِلَى الْجِنْسِ [او وجود ته همدا وجوب رسول کوي] په ظاهري توګه د جنسِ مکلفینو وطرف ته په نظر کولو سره غَيْرَ أَنَّ الْأَدَاءَ يَخْتَصُّ بِأَسْبَابٍ يَشُقُّ عَلَى الْمُسَافِرِ اسْتِحْضَارُهَا وَيَفُوتُ بِمُضِيِّ الْوَقْتِ خو [خرنګه چې] د قربانۍ اداء کول د څو داسې اسبابو سره خاص دي چې پر مسافر د هغوی حاضرول [او ترلاسه کول] مشکل دي او [خرنګه] قرباني د وخت په تېرېدلو سره فوتیږي هم فَلَا تَجِبُ عَلَيْهِ بِمَنْزِلَةِ الْجُمُعَةِ نو ځکه پر مسافر واجب نه ده د جمعې [د لمانځه] په څېر [چې هم پر مسافر واجب نه دی] وَالْمُرَادُ بِالْإِرَادَةِ فِيمَا رُوِيَ وَاللهُ أَعْلَمُ مَا هُوَ ضِدُّ السَّهْوِ لَا التَّخْيِيرُ او په روایت کړی سوي حدیث کې له ارادې څخه مراد (والله اعلم) د سهو ضد دی، نه اختیار ورکول [یعني د هغه مراد اختیار ورکول نه دي چې که قرباني کوې که يې نه کوې] وَالْعَتِيرَةُ مَنْسُوخَةٌ او عتیره منسوخه ده وَهِيَ شَاةٌ تُقَامُ فِي رَجَبٍ او عتیره هغه پسه [وغیره] دي کوم چې د رجب په میاشت کې به ذبح کېدل عَلَى مَا قِيلَ لکه څرنګه چې ویل سوي دي.

**اللغات**: ﴿سعة﴾ وس، طاقت، ګنجایش، ﴿سهو﴾ هېره، ﴿ما هو ضد السهو﴾ یعني د ارادې "إرادة" دوې معناوې کېدای سي؛ یو دا چې اختیار ورکول چې که دې خوښه وي دا وکړه، کنې مه يې کوه، او دویم: اراده د سهو او هیرې د ضد په معنیٰ سره راځي، یعني دا يې هېر نه سي بلکې اراده يې وکړي، نو فرمایي چې دلته اراده د تخییر په معنیٰ سره نه ده، بلکې د هیرې په مقابل کې ده، ﴿عتیرة﴾ تعریف يې ذکر سو، خو د دې په تعریف کې نور اقوال هم نقل سوي دي، یو دا چې کله به د اوښې د لنګوالي

اول ځل وو، نو دهغې دا اول بچی به یې ذبح کوی وغیره. ﴿شاة﴾ عام اسم دی، پر پسه، وزګړي، بزه تولو يې اطلاق کيږي.

**تشريح**: له دې ځايه صاحب د هدايې رَحِمَهُ الله د قائلين وجوب دلائل ذکر کړي دي چې يو نقلي او بل عقلي دليل دی، نقلي دليل دا دی چې نبي ﷺ فرمايلي دي: که څوک د قربانۍ وس او طاقت لري، خو بيا هم قرباني نه کوي، نو هغه دي زموږ عيدګاه ته نژدې هم نه ورځي. دا يو ډېر سخت وعيد دی کوم چې فقط د يو واجب کار د پرېښوولو په هکله وارېدلای سيَ. لهذا په دې سره د قربانۍ وجوب ثابت سو.

**ولأنها قربة يضاف إلخ**: د عقلي دليل حاصل دا دی چې قرباني يو داسي عبادت دی کوم چې د خپل وخت وطرف ته منسوبول کيږي او يـوم الأضحیٰ ويـل کيږي (يعني د قربانۍ وطرف ته د قربانۍ د وخت نسبت کيږي او خلک داسي وايي: يوم الأضحیٰ)، او دغه د وخت په نسبت او اضافت سره د وجوب وطرف ته اشاره ترلاسه کيږي؛ ځکه چې اضافت د مضاف إليه (يعني د قربانۍ) د اختصاص لپاره وي، او اختصاص هغه وخت ثابتيږي چې د قربانۍ وجود وسي (قرباني وکړی سي)، او د سنت په صورت کي کېدای سي چې ټوله مکلفين پر قرباني نه کولو اتفاق وکړي او ټوله قرباني پرېږدي (کوم ته چې مصنف رَحِمَهُ الله جنسِ مکلفين ويلي دي)، لهذا د وجودِ قربانۍ (قرباني کولو) لپاره وجوب ضروري سو. د دې لپاره چې اختصاص ثابت سي، لکه څرنګه چې په يوم الجمعه، يا وقت الظهر، يا شهر رمضان کي همدغه خبره ده (په بله او لنډه وينا داسي هم ويل کېدای سي چې د قربانۍ عبادت د خپل وخت وطرف ته منسوب دی يعني يوم الأضحی، او کوم عبادت چې د وخت وطرف ته منسوب وي، هغه واجب وي، نو ځکه قرباني به هم واجب وي. لکه په يوم الجمعة کي چې لمونځ د جمعې وطرف ته منسوب دی، نو جمعه واجب او لازم ده).

**غير أن الأداء إلخ**: په دې سره قائلينِ سنت ته جواب ورکوي چې دوی مسافر پر مقيم قياس کړی دی، حاصل يې دا دی چې د مسافر په حق کي د قربانۍ پر نه واجبېدلو قياس کول او په دې قياس سره د مقيم په حق کي هم د قربانۍ نه وجوب ثابتول صحيح نه دي؛ ځکه چې د قربانۍ لپاره څه اسباب او شرائط ضروري وي، او د سفر په وجه مسافر لره د هغه اسبابو ترلاسه کېدل مشکل وي، همدارنګه د قربانۍ لپاره يو څو مخصوصه ورځي شرط دي (يعني اوله، دويمه او درېيمه د ذی الحجې)، نو د هغوی په تېرېدلو سره قرباني ختميږي. لنډه دا چې مسافر لره د دې شرطونو رعايت کول او د قربانۍ اسباب حاصلول او بيا خاص په خپل وخت کي قرباني کول مشکل او ستونزمن دي، نو له حرج او ستونزي څخه د مسافر بچ کېدلو لپاره موږ د هغه له غاړي څخه د قربانۍ وجوب ساقط کړی دی، لکه څرنګه

چې د مسافر لپاره د جمعې د شرطونو د مشکل کېدو په وجه له هغه څخه جمعه ساقطه کړل سوې ده او پر مسافر واجب نه ده ګرځول سوې، نو همداسې قرباني هم پر هغه واجب کړل سوې نه ده.

(**يادونه**: کوم حاجيان چې په منیٰ کې مسافر وي، پر هغوی قرباني واجب نه ده، خو پر تمتّع او قِران کونکو حاجيانو دمِ تمتع او دمِ قران واجب دي).

**والمراد إلخ**: دا د فريقِ مخالف د پېش کړه حديث "من أَرادَ منكَ إلخ" جواب دی، حاصل يې دا دی چې په دې حديث کې د ارادې هغه مراد او مطلب نه دی کوم چې تاسې ګومان کوي چې د دې مطلب اختيار ورکول دي چې که قرباني کوي که يې پرېږدي، بلکې اراده په معنیٰ سره د قصد ده، يعنې کوم څوک چې د دغه واجب اداء کولو قصد او اراده وکړي، نو هغه ته پکار دي چې ورېښتان وغيره پرې نه کړي، لکه په "من أَرادَ الصلاة فليتوضأ" او "من أَرادَ الجمعة فليغتسل" کې چې هم دغه خبره ده، لهٰذا د "أَرادَ" په لفظ سره پر سنت والي دليل نيول بالکل صحيح نه دي.

**والعتيرة إلخ**: او پر عتيره قياس کول هم صحيح نه دي؛ ځکه چې عتيره منسوخه کړل سوې ده، او پر منسوخ شي يو ثابت شده حکم قياسول د عقل او اُصول خلاف دي، نو قائلين سنت چې د قرباني نه وجوب د عتيره پر نه وجوب قياس کړی دی، دا هم صحيح نه سو.

## د قرباني شرائط او د هغوی وجوهات

وَإِنَّمَا اخْتَصَّ الْوُجُوبُ بِالْحُرِّيَّةِ او [د قرباني] واجبېدل د آزاد والي سره [په دې وجه] خاص دی لِأَنَّهَا وَظِيفَةٌ مَالِيَّةٌ لَا تَتَأَدَّى إِلَّا بِالْمِلْكِ ځکه چې قرباني يو مالي وظيفه [او مالي عبادت] دی کوم چې له ملکيت [مالک کېدو] څخه بغير نه اداء کېږي وَالْمَالِكُ هُوَ الْحُرُّ او مالک [ملکيت لرونکی کس] هغه آزاد وي وَبِالْإِسْلَامِ لِكَوْنِهَا قُرْبَةً او د مسلمان والي سره [د قرباني وجوب په دې وجه] خاص دی چې قرباني يو عبادت دی [او له اسلام څخه بغير عبادت نه سي اداء کېدلای] وَبِالْإِقَامَةِ لِمَا بَيَّنَّا او د مقيم والي سره د هغه دليل په وجه خاص دی کوم چې موږ بيان کړی وَالْيَسَارِ لِمَا رَوَيْنَا مِنِ اشْتِرَاطِ السَّعَةِ او د مالداري سره د هغه حديث په وجه خاص دی کوم چې موږ روايت کړی چې [د قرباني] وس لرل شرط دي وَمِقْدَارُهُ مَا يَجِبُ بِهِ صَدَقَةُ الْفِطْرِ او د مالداري مقدار هغه دی د کوم په وجه چې صدقة الفطر واجبېږي وَقَدْ مَرَّ فِي الصَّوْمِ او هغه په کتاب الصوم [په باب صدقة الفطر کې] تېر سو وَبِالْوَقْتِ وَهُوَ

يَوْمُ الْأَضْحَى لِأَنَّهَا مُخْتَصَّةٌ بِهِ او دوخت سره [د قرباني وجوب په دې وجه] خاص دی ځکه چي قرباني د همدغه وخت سره خاص ده وَسَنُبَيِّنُ مِقْدَارَهُ إِنْ شَاءَ اللهُ تَعَالَى او د وخت مقدار به يې موږ انشاء الله ژر بيان کړو.

**اللغات:** ﴿قُربة﴾ نېکي، طاعت او عبادت (هر د نېکۍ کار چي په هغه سره د الله نژدېکت حاصلول کېږي)، ﴿إقامة﴾ د افعال د باب مصدر دی: مقيم کېدل، ځايي کېدل. ﴿يسار﴾ پراخ لاسي، مراد: مالداري.

**شريح:** په شروع (متن) کي چي کوم څلور خبري سوي دي، له هغوی څخه د اولي خبري (يعني د قرباني د وجوب) بحث خو يې په تفصيلي توګه بيان کړی، په دې عبارت کي د اولي او دويمي خبري (قرباني پر آزاد، مسلمان، مقيم او مالدار باندي د اختر په ورځو کي واجب ده) بحث او تفصيل بيانوي.

نو قرباني پر کوم چا واجب ده، د دې لپاره يې څلور شرطونه بيان کړي دي.

(۱)... اول شرط آزاد والی دی (چي قرباني کونکي به آزاد وي، غلام به نه وي)؛ ځکه چي قرباني يو مالي وظيفه ده کوم چي له ملکيت څخه بغير نه سي اداء کېدلای (بلکي ملکيت ضروري دی چي قرباني کونکي به د مال وغيره مالک وي)، او په غلام کي د مالک کېدلو صلاحيت نسته، بلکي هغه خپله د بل چا تر ملکيت لاندي دي او د هغه د ملل په درجه کي دی.

(۲)... دويم شرط مسلمان والی دي؛ ځکه چي قرباني يو عبادت دی، او کافر د عبادت اداء کولو اهل نه دی.

(۳)... درېيم شرط مقيم والی دی، ځکه چي د قرباني لپاره څو اسباب او شرائط ضروري دي، او له مقيم کېدلو څخه بغير د هغوی حصول او په هغوی عمل کول مشکل دي (لکه مخکي چي هم دا دليل ذکر سو)، لهذا د قرباني واجبېدلو لپاره اقامت هم ضروري دی.

(۴)... څلورم شرط مالدار والی دی (چي قرباني کونکي کس به مالدار وي او د هغه سره به وس او ګنجايش وي)، ځکه د مخکيني حديث "مَنْ وَجَدَ سَعَةً إِلخ" پر بناء د قرباني وس لرل هم مشروط دي.

**يادونه:** دومره وس (مالداري) شرط ده کوم چي په صدقة فطر کي شرط ده يعني مالک د نصاب به وي، خو د دې نصاب نامي کېدل او کال پر تېرېدل ضروري نه دي، بلکي که د قرباني يوه ورځ مخکي هم څوک د نصاب مالک سي، نو پر هغه قرباني واجبيږي (د مالک نصاب مطلب دا چي دومره مال لري کوم چي د اووه نيمو تولو سره زرو يا دو پنځوس نيمو تولو سپينو زرو په برابر وي)، همدارنګه که څوک دوه کورونه لري چي په يوه کي اوسيږي او بل خالي ولاړ وي چي د هغه قيمت د نصاب په اندازه وي، نو زکاة که څه هم نه پر واجبيږي ځکه چي دا مال نامي نه دی، خو قرباني او صدقة فطر پر واجبيږي.

(۵)... پنځم شرط د قربانۍ د وخت موجود والی دی، یعني د قربانۍ وخت به پاته وي چې هغه ته د قربانۍ ورځې (ایام نحر) وایي، ځکه چې قرباني د همدې ورځو سره خاص ده.

صاحب د هدایې رَحِمَهُ الله فرمایي چې د وخت مقدار به انشاء الله موږ په را روانو صفحو کې بیان کړو (چې هغه درې ورځې دي، یعني ۱۰، ۱۱، ۱۳ د ذی الحجې).

## قرباني د چا له طرفه واجب ده؟

وَتَجِبُ عَنْ نَفْسِهِ او قرباني پر انسان د خپل ځان له طرفه واجب ده لِأَنَّهُ أَصْلٌ فِي الْوُجُوبِ عَلَيْهِ ځکه چې پر خپل ځان د [قربانۍ] واجبېدلو په اعتبار سره انسان اصل دی عَلَى مَا بَيَّنَّاهُ لکه څرنګه چې موږ [مخکې] بیان کړه [په باب صدقة الفطر کې] وَعَنْ وَلَدِهِ الصَّغِيرِ او د خپل کوچني بچي له طرفه [هم قرباني] واجب ده لِأَنَّهُ فِي مَعْنَى نَفْسِهِ ځکه کوچنی بچی د انسان د خپل ځان په درجه کې دی فَيُلْحَقُ بِهِ نو ځکه بچی به د هغه سره لاحق وي كَمَا فِي صَدَقَةِ الْفِطْرِ لکه څرنګه چې په صدقة الفطر کې کېږي وَهٰذِهِ رِوَايَةُ الْحَسَنِ عَنْ أَبِي حَنِيفَةَ او دا له امام صاحب رَحِمَهُ الله څخه د حسن رَحِمَهُ الله روایت دی وَرُوِيَ عَنْهُ أَنَّهُ لَا تَجِبُ عَنْ وَلَدِهِ او له امام صاحب رَحِمَهُ الله څخه بل روایت دا سوی دی چې د خپل بچي له طرفه قرباني واجب نه ده وَهُوَ ظَاهِرُ الرِّوَايَةِ ❁ او همدا ظاهر روایت دی بِخِلَافِ صَدَقَةِ الْفِطْرِ په خلاف د صدقهٔ فطر لِأَنَّ السَّبَبَ هُنَاكَ رَأْسٌ يَمُونُهُ وَيَلِي عَلَيْهِ ځکه چې سبب هلته [یعني پر انسان د صدقهٔ فطر واجبېدلو سبب] داسې ذات دی چې انسان یې نفقه [خرچه] زغمي او چې پر هغه ولایت لري وَهُمَا مَوْجُودَانِ فِي الصَّغِيرِ او دا دواړه [مؤنت او ولایت] په کوچني بچي کې موجود دي [ځکه ښکاره ده چې انسان پر خپل بچي ولایت هم لري او د هغه نفقه او قضاء حوائج هم پر انسان دي] وَهٰذِهِ قُرْبَةٌ مَحْضَةٌ او اُضحیه [قرباني] خالص قربت دی وَالْأَصْلُ فِي الْقُرَبِ أَنْ لَا تَجِبَ عَلَى الْغَيْرِ بِسَبَبِ الْغَيْرِ او په قرباتو کې اصول دا دی چې د یوه په سبب سره پر بل چانه لازمیږي وَلِهٰذَا لَا تَجِبُ عَنْ عَبْدِهِ همدا وجه ده چې د خپل غلام له طرفه [پر مالک] قرباني نه واجبیږي وَإِنْ كَانَ يَجِبُ عَنْهُ صَدَقَةُ الْإِفْطَارِ که څه هم د غلام له طرفه [پر مالک] صدقهٔ فطر واجبیږي.

---

❁ القول الراجح: ظاهر الرواية، قال العلامة قاضيخان رَحِمَهُ الله: وفى الولد الصغير عن أبي حنيفة رَحِمَهُ الله روايتان، فى الظاهر الرواية يستحب ولا يجب (فتاوى قاضيخان ج:۲، ص:۳۲۹)، وكذا فى رد المحتار (ج:۵، ص:۲۲۲). [القول الراجح ج:۲، ص:۲۹۲]

**اللغات**: ﴿رأس﴾ سر، مراد: ذات، فرد. ﴿يمونه﴾ د نصر د باب مضارع ده: خرچه او نفقه زغمل (په غاړه اخيستل)، مراد: نفقه ور کول.

**تشريح**: په دې عبارت کې د څلورمې خبرې (قرباني د چا له طرفه واجب ده) تفصيل بيان سوی دی، نو فرمايي چې د خپل ځان له طرفه او د خپل کوچني اولاد له طرفه واجب ده. لکه څرنګه چې صدقۀ فطر د خپل ځان له طرفه او د خپل کوچني اولاد له طرفه واجب ده.

په دې باره کې له امام صاحب رَحِمَهُ الله څخه دوه روايتونه نقل سوي دي، يو د حسن بن زياد رَحِمَهُ الله روايت دی کوم چې ذکر سو. او دويم روايت ظاهر الرواية دی او هغه دا چې د کوچني له طرفه قرباني واجب نه ده

او د دې روايت (ظاهر الروايه) مطابق په صدقۀ فطر او قرباني کې فرق دا دی چې د صدقۀ فطر د واجبېدلو سبب مؤنت او ولايت دی، يعني پر سړي د هر هغه فرد له طرفه صدقۀ فطر واجب ده چې سړی د هغه د نفقې ذمه وار وي او پر هغه ولايت لري، او په کوچني (صغير) کې دا دواړې خبرې سته، او د غلام حال هم داسې دی، نو ځکه د دوی له طرفه صدقۀ فطر واجب ده.

او پاته سوه قرباني خو يو خالص قربت او عبادت دی، او په قرباتو کې قاعده دا ده چې هغه پر سړي د بل چا په وجه نه واجبيږي.

دا ټوله تفصيل هغه وخت دی کله چې د کوچني سره مال نه وي، او که چيرې د هغه سره مال وي، نو د هغه تفصيل په لاندېني عبارت کې را روان دی.

## د مال لرونکي کوچني د قرباني بيان

وَإِنْ كَانَ لِلصَّغِيرِ مَالٌ او که د کوچني لپاره خپل مال وي يُضَحِّيْ عَنْهُ أَبُوْهُ أَوْ وَصِيُّهُ مِنْ مَالِهِ عِنْدَ أَبِيْ حَنِيْفَةَ وَأَبِيْ يُوْسُفَ نو د شيخينو رَحِمَهُمَا الله په نيز د هغه له طرفه دې خپل پلار يا وصي د هغه له مال څخه قرباني وکړي. وَقَالَ مُحَمَّدٌ وَزُفَرُ وَالشَّافِعِيُّ ۞: يُضَحِّيْ مِنْ مَالِ نَفْسِهِ لَا مِنْ مَالِ الصَّغِيْرِ امام محمد، امام زفر او امام شافعي رَحِمَهُمُ الله فرمايي: چې له خپل مال څخه دې قرباني وکړي، نه د کوچني له مال څخه فَالْخِلَافُ فِيْ هٰذَا كَالْخِلَافِ فِيْ صَدَقَةِ الْفِطْرِ نو په دې کې د صدقۀ فطر د اختلاف په څېر اختلاف دی وَقِيْلَ: لَا تَجُوْزُ التَّضْحِيَةُ مِنْ مَالِ الصَّغِيْرِ فِيْ قَوْلِهِمْ جَمِيْعًا او ويل سوي دي: چې

---

۞ القول الراجح: قول محمد وزفر رَحِمَهُمَا الله، وفيه تفصيل في رد المحتار (ج:۵، ص:۲۳۲). [القول الراجح ج:۲، ص:۲۹۴]

د دوی ټولو د قول مطابق د کوچني له مال څخه قرباني کول جائز نه دي لِأَنَّ الْقُرْبَةَ تَتَأَدَّى بِالْإِرَاقَةِ ځکه چي [دغه] قربت په وينه بيولو سره اداء کيږي وَالصَّدَقَةُ بَعْدَهَا تَطَوُّعٌ او تر هغه وروسته [د غوښو] صدقه کول نفلي عبادت دی فَلَا يَجُوزُ ذٰلِكَ مِنْ مَالِ الصَّغِيْرِ نو ځکه دا د کوچني له مال څخه جائز نه دي وَلَا يُمْكِنُهُ أَنْ يَأْكُلَ كُلَّهُ او دا [هم] ممکن نه دي چي کوچنی ټوله غوښي وخوري وَالْأَصَحُّ أَنْ يُضَحِّيَ مِنْ مَالِهِ وَيَأْكُلَ مِنْهُ مَا أَمْكَنَهُ او صحيح دا ده چي د کوچني له مال څخه قرباني وکړي او له هغه څخه کوچنی دومره غوښي وخوري چي خوړل يې ممکن وي [يعني بقدر أكل غوښي را وګرځوي] وَيَبْتَاعَ بِمَا بَقِيَ مَا يَنْتَفِعُ بِعَيْنِهِ او په باقي مانده غوښو سره داسي څه رانيسي چي له هغه څخه کوچنی نفع اخيستلای سي.

**اللغات:** ﴿تطوع﴾ نفلي عبادت. ﴿يبتاع﴾ د افتعال د باب مضارع ده: رانيول.

**تشريح:** د عبارت حاصل دا دی چي که د کوچني هلک سره خپل مال وي، نو د شيخينو رَحِمَهُمَا الله په نېز حکم دا دی چي په دې صورت کي به د هغه له مال څخه قرباني کيږي، امام محمد، امام زفر او امام شافعي رَحِمَهُمُ الله فرمايي چي له خپل مال څخه به قرباني کوي، نه د کوچني له مال څخه.

يعني لکه څرنګه چي په صدقهٔ فطر (سرسايه) کي اختلاف دی چي که يو کوچنی خپل مال لري، نو د شيخينو رَحِمَهُمَا الله په نېز د کوچني له مال څخه صدقهٔ فطر اداء کول جائز دي، او د امام محمد رَحِمَهُ الله په نېز جائز نه دي، هغسي اختلاف په قرباني کي هم دی.

وقيل لايجوز الخ: يو قول دا نقل سوی دی چي د کوچني له مال څخه قرباني کول د هيچا په نېز هم جائز نه دي: ځکه چي د قرباني دوه مقصده دي: ① وينه بيول، چي دا د مال تلفول دي، او په همدې سره قرباني اداء کيږي. ② غوښي صدقه کول، حال دا چي پلار نه د کوچني د مال تلفولو مالک دی او نه د کوچني مال په نفلي توګه صدقه کول جائز دي، او نه دا کېدلای سي چي ټوله غوښي کوچنی خپله وخوري، نو ځکه د کوچني له طرفه قرباني کول جائز نه دي.

صاحب د هدايې رَحِمَهُ الله فرمايي چي زياته صحيح دا ده چي د کوچني له طرفه قرباني وکړی سي او کوچنی چي څومره غوښي خوړلی سي هغه دي را وګرځول سي، او پاته غوښي دي خرڅي کړل سي او په هغه سره دي کوچني ته داسي شی رانيول سي چي د هغه عين باقي پاتېږي چي کوچنی له هغه څخه نفع اخلي، لکه څپلی، کالي، پټو (څادر)، سندوخ، الماري او داسي نور.

**يادونه:** فتوىٰ پر ظاهر روايت ده چي پر سړي نه د بچي له طرفه قرباني واجب ده او نه د بچي له مال څخه قرباني جائز ده.

## د قرباني کوم څاروي او د څومره کسانو له طرفه کافي دي (تفصيلي بيان)

قَالَ: وَيَذْبَحُ عَنْ كُلِّ وَاحِدٍ مِنْهُمْ شَاةً فرمايي: او هغه دې په دوی کې [يعني له خپل ځان او اولاد څخه] د هر يوه له طرفه يو پسه ذبح کړي أَوْ يَذْبَحُ بَقَرَةً أَوْ بَدَنَةً عَنْ سَبْعَةٍ يا دې يوه غوا يا يو اوښ داوو کسانو له طرفه ذبح کړي وَالْقِيَاسُ أَنْ لَا تَجُوزَ إِلَّا عَنْ وَاحِدٍ او قياس دا دی چې دا [غوا او اوښ] جائز نه سي مګر صرف د يوه کس له طرفه لِأَنَّ الْإِرَاقَةَ وَاحِدَةٌ وَهِيَ الْقُرْبَةُ ځکه چې وينه بيول يعني قربت صرف يو دی إِلَّا أَنَّا تَرَكْنَاهُ بِالْأَثَرِ خو موږ دا ثر په وجه قياس پرې ايښی دی وَهُوَ مَا رُوِيَ عَنْ جَابِرٍ رَضِيَ اللهُ عَنْهُ[1] أَنَّهُ قَالَ او دا هغه اثر دی کوم چې له حضرت جابر رضي الله عنه څخه نقل سوی دی چې هغه وفرمايل «نَحَرْنَا مَعَ رَسُولِ اللهِ صلى الله عليه وسلم الْبَقَرَةَ عَنْ سَبْعَةٍ وَالْبَدَنَةَ عَنْ سَبْعَةٍ» موږ د رسول الله سره غوا او اوښ د اوو، اوو کسانو له طرفه قرباني کړی وَلَا نَصَّ فِي الشَّاةِ او د پسه په باره کې هيڅ نسته فَبَقِيَ عَلَى أَصْلِ الْقِيَاسِ نو هغه پر اصل قياس باقي پاته سو وَتَجُوزُ عَنْ سِتَّةٍ أَوْ خَمْسَةٍ أَوْ ثَلَاثَةٍ او غوا، اوښ د شپږو يا پنځو يا دريو کسانو له طرفه هم جائز دي ذَكَرَهُ مُحَمَّدٌ رَحِمَهُ اللهُ فِي الْأَصْلِ دا امام محمد رَحِمَهُ الله په مبسوط کې ذکر کړي دي لِأَنَّهُ لَمَّا جَازَ عَنِ السَّبْعَةِ ځکه چې کله دا داوو کسانو له طرفه جائز دي فَعَمَّنْ دُونَهُمْ أَوْلَى نو تر اوو د کمو کسانو له طرفه به په درجه اولیٰ جائز وي وَلَا تَجُوزُ عَنْ ثَمَانِيَةٍ او داتو کسانو له طرفه جائز نه دي أَخْذًا بِالْقِيَاسِ فِيمَا لَا نَصَّ فِيهِ پر قياس په عمل کولو سره په هغه شي کې چې د هغه په باره کې هيڅ نص نسته [ځکه د کوم څه په باره کې چې نص نه وي، هلته له قياس څخه کار اخيستل کيږي] وَكَذَا إِذَا كَانَ نَصِيبُ أَحَدِهِمْ أَقَلَّ مِنَ السُّبُعِ او همدارنګه که له دوی څخه د يوه حصه تر اوومي حصې کمه وي لَا يَجُوزُ عَنِ الْكُلِّ نو د ټولو له طرفه نه جائز کيږي لِانْعِدَامِ وَصْفِ الْقُرْبَةِ فِي الْبَعْضِ ځکه [دلته] په بعضي حصه کې د قربت وصف معلوم سو. وَسَنُبَيِّنُهُ إِنْ شَاءَ اللهُ تَعَالَى او موږ به ان شاء الله تعالیٰ [وروسته] ژر د دې بيان وکړو.

---

[1] تخريج: أخرجه ابو داؤد بمعناه، باب البقرة والجزور عن كم يجزي؟، ص:۴۰۹، حديث رقم:۲۸۰۸، والترمذي. وأخرجه ابن ماجة في كتاب الأضاحي، حديث رقم:۳۱۳۲.

**اللغات**: ﴿شاة﴾ مخکې ذکر سوه چې دا عام اسم دی، پر پسه، بزه او داسې نور ټولو یې اطلاق کیږي، ﴿البَدَنة﴾ هغه اوښ، اوښه یا غوا کوم چې قربانول کیږي (او کوم چې د الله د قُرب او ثواب حاصلولو په اراده سره ذبح کول کیږي)، او د ځینو په نیز فقط اوښ څنې مراد دی. جمع یې: بُدْن او بُدُن راځي لکه په قرآن کریم کې چې ذکر سوي دي "وَالْبُدْنَ جَعَلْنَاهَا لَكُمْ مِنْ شَعَائِرِ اللهِ" [سورة الحج: ۳۶].

**تشریح**: د عبارت حاصل دا دی چې د پسه قرباني فقط د یوه کس له طرفه جائز او کافي ده، خو د غټو څارویو قرباني مثلاً د اوښ، غوبي، غوا وغیره په قرباني کې اووه کسان شریک کېدلای سي.

که څه هم د قیاس تقاضا په غټ څاروي کې هم دا ده چې د هغه قرباني فقط د یوه کس له طرفه کافي سي؛ ځکه څرنګه چې پسه نفسِ واحد دی، همداسي غوبی وغیره هم نفسِ واحد دی، او څرنګه چې په پسه کې یو ځل وینه بیول کیږي، همداسي په غوبي وغیره کې هم یو ځل وینه بیول کیږي، او همدا إراقت دم (وینه بیول) عبادت دي، لهذا کله چې دوی په إراقتِ دم کې دواړه یو ډول دي نو په کفایت کې هم یو ډول کېدل پکار دي (چې فقط د یوه کس له طرفه کافي کېدل پکار دي).

خو مونږ د حضرت جابر رضي الله عنه د حدیث په وجه (کوم چې په عبارت کې ذکر سو) قیاس پرې اینبی دی، چې هغه صرف د غټ څاروي په هکله دي، لهذا اوس فقط کوچنی څاروی یعني پسه وغیره د قیاس مطابق پاته سو، ځکه چې د هغه باره کې هیڅ نص نسته.

وتجوز عن خمسة إلخ: څرنګه چې په غټ څاروي کې د اُوو خلکو شرکت جائز دی، لهذا که تر اُوو کم وي، نو په درجه اولیٰ جائز دی، ځکه چې اقل د اکثر تابع او د هغه جزء وي، نو کوم حکم چې د اکثر دی، هغه به د اقل هم وي، خو څرنګه چې تر اوو د زیاتو کسانو په هکله هیڅ نص نسته، نو ځکه د اتو یا تر دې د زیاتو کسانو له طرفه د غټ څاروي قرباني نه صحیح کیږي؛ ځکه د غیرِ منصوص شي په هکله پر قیاس عمل کیږي.

وكذا إذا كان إلخ: د غټ څاروي د قربانۍ په صُورت کې شرط دا دی چې د ټولو شریکانو حصې به سره برابري وي، نو که د یوه شریک حصه له اوومي حصې څخه کمه وي (مثلاً اووه کسان سره شریکان دي چې له هغوی څخه د یوه کس لپاره یوه حصه ده او د بل لپاره تر هغه کمه ده، پوره اوومه نه ورکول سوه)، نو په دې صورت کې د هیچا له طرفه هم قرباني نه کیږي، د ټولو له طرفه فوتیږي؛ ځکه کوم یوه ته چې کمه (لږ) حصه ورکول سوه، د هغه له طرفه قربت ثابت نه سو، او د دغه یوه قربت د نشتوالي په وجه د یوه له طرفه هم قربت نه ثابتیږي او د یوه قرباني هم نه کیږي (ځکه أصول دا دی چې په هره، هره حصه کې قربت موجودېدل پکار دي، نو بیا د ټولو قرباني صحیح کیږي، او د یوه د قربت نشتوالي په وجه د هیچا قرباني نه کیږي [الثمار الهدایه]

یادونه: که د یوه کس له طرفه په نفلي توګه پسه قرباني کړي او د هغه ثواب ډېرو کسانو ته وبخښي (ور ورسوي)، نو دا جائز دي).

## د پورتنۍ مسئلې په هکله د امام مالک رَحِمَهُ الله مذهب

وَقَالَ مَالِكٌ: تَجُوزُ عَنْ أَهْلِ بَيْتٍ وَاحِدٍ وَإِنْ كَانُوا أَكْثَرَ مِنْ سَبْعَةٍ او امام مالک رَحِمَهُ الله فرمايي: چې يو پسه ديوې کورنۍ له طرفه جائز دی که څه هم هغوی تر اُوو زيات وي وَلَا تَجُوزُ عَنْ أَهْلِ بَيْتَيْنِ وَإِنْ كَانُوا أَقَلَّ مِنْهَا او د دوو کورنيو له طرفه جائز نه دی که څه هم هغوی تر اوو کم وي لِقَوْلِهِ عَلَيْهِ الصَّلَاةُ وَالسَّلَامُ [1] «عَلَى كُلِّ أَهْلِ بَيْتٍ فِي كُلِّ عَامٍ أَضْحَاةٌ وَعَتِيرَةٌ» ځکه نبي ﷺ فرمايلي دي: چې پر هر کور والا هر کال قرباني او عتيره لازم ده قُلْنَا: الْمُرَادُ مِنْهُ وَاللهُ أَعْلَمُ قَيِّمُ أَهْلِ الْبَيْتِ موږ وايو: چې له دې څخه (والله اعلم) د کورنۍ سرپرست [مشر] مراد دی لِأَنَّ الْيَسَارَ لَهُ ځکه چې مالداري د هغه لپاره ده يُؤَيِّدُهُ مَا يُرْوَى «عَلَى كُلِّ مُسْلِمٍ فِي كُلِّ عَامٍ أَضْحَاةٌ وَعَتِيرَةٌ» او د دې [تأويل] تأييد کوي دا روايت سوی حديث چې "پر هر مسلمان په هر کال کې يوه قرباني او عتيره لازم ده" وَلَوْ كَانَتِ الْبَدَنَةُ بَيْنَ اثْنَيْنِ نِصْفَيْنِ او که يو اوښ د دوو کسانو تر مينځ نيم په نيمه وي تَجُوزُ فِي الْأَصَحِّ نو د صحيح قول مطابق جائز دي لِأَنَّهُ لَمَّا جَازَ ثَلَاثَةُ الْأَسْبَاعِ ځکه کله چې له اوو څخه درې حصې جائز دي جَازَ نِصْفُ السُّبُعِ تَبَعًا نو د هغوی په تبعيت کې د اُوومې حصې نصف هم جائز کيږي وَإِذَا جَازَ عَلَى الشَّرِكَةِ او کله چې د شرکت په توګه قرباني جائز ده فَقِسْمَةُ اللَّحْمِ بِالْوَزْنِ نو د غوښو تقسيم به په وزن [تول] سره کيږي لِأَنَّهُ مَوْزُونٌ ځکه چې غوښې موزوني [تلل کېدونکي] شی دي وَلَوِ اقْتَسَمُوا جُزَافًا او که يې په اټکل [او اندازه] سره تقسيم کړي لَا يَجُوزُ نو جائز نه دي إِلَّا إِذَا كَانَ مَعَهُ شَيْءٌ مِنَ الْأَكَارِعِ وَالْجِلْدِ مګر کله چې د غوښو سره پښې او څرمن هم موجود وي اِعْتِبَارًا بِالْبَيْعِ پر بيع په قياس کولو سره.

**اللغات**: ﴿أهل البيت﴾ کور والا، په يوه کور کې استوګن کسان، کورنۍ (فاميل). ﴿أضحاة﴾ يوه قرباني. ﴿قيّم﴾ کارساز، سرپرست. ﴿يسار﴾ پراخ لاسي، سهولت، مراد: مالداري. ﴿جزاف﴾ اټکل، اندازه. ﴿أكارع﴾ جمع د "كُرَاعٌ" ده: د حيوان پښې. ﴿جلد﴾ څرمن، پوست.

---

[1] تخريج: أخرجه ابو داؤد، باب ... في إيجاب الأضاحي ص:۴۰۶، حديث رقم:۲۷۸۸. والترمذی، باب ما جاء أن الشاة الواحدة يجزی عن أهل البيت ص:۳۰۵، حديث رقم:۱۵۰۵. وابن ماجة، باب الأضاحي واجبة هی أم لا، حديث رقم:۳۱۲۵.

**تشريح**: فرمايي دامام مالک رَحِمَهُ الله مذهب دا دی چي ديوه کور د خلکو له طرفه يو پسه هم جائز او کافي دی، که څه هم هغوی له اوو څخه زيات وي، خود دوو کورنو د خلکو له طرفه يوه پسه نه کافي کيږي، که څه هم هغوی تر اوو کم وي؛ امام مالک رَحِمَهُ الله په هغه حديث سره دليل نيسي کوم چي په عبارت کي مذکوره دی، چي رسول الله ﷺ د ټوله اهل بيت له طرفه يوه قرباني لازم ګرځولې ده، نو ځکه ديوه اهل بيت له طرفه به يو پسه کافي وي، برابره ده هغوی تر اوو کم وي او که زيات وي.

د احنافو له طرفه جواب دا دی چي اولاً خو په دې حديث سره دليل نيول صحيح نه دي؛ ځکه چي غريب دی، امام ترمذي رَحِمَهُ الله د دغه حديث په هکله فرمايلي دي: "غريب لا نعرفه مرفوعاً إلا من هٰذا الوجه إلخ"، همدارنګه علامه عبد الحق رَحِمَهُ الله د دې اسناد ضعيف ګرځولی دی.

او که بيا هم موږ دا روايت ثابت او صحيح ومنو، نو جواب يې دا دی چي د دې حديث مطلب دا نه دی چي پر هر کور والا يوه قرباني ده، بلکي مطلب يې دا دی چي د هر کور پر مشر قرباني ده؛ ځکه چي پر هغه واجب ده، چي هغه مالدار دی او د ټوله کور مشر توب پر هغه دی (او قرباني نقط د هغه له طرفه کافي کيږي)، نو دلته د دغه يوه کس قرباني د اهلِ بيت له طرفه کافي ګرځول سوې ده، نه دا چي يو پسه د کور د ټوله خلکو له طرفه کافي ګرځول سوی دی. او بل دا چي له نبوي دور څخه تر ننورځي پوري د امت پر دې اجماع ده چي يو پسه ديوه فرد له طرفه کافي کيږي، لهذا ستاسو دا فرمان د عقل او نقل دواړو خلاف دی. (احسن الهدايه)

ولوكانت البدنة إلخ: فرمايي چي که دوه کسان په ګډه يو اوښ قرباني کړي، نو دا صحيح دی، که نه؟، په دې باره کي دو قولونه دي: ①... قاضي احمد بن محمد رَحِمَهُ الله فرمايي چي دا صحيح نه دي؛ ځکه چي په دې صورت کي د هر شريک له طرفه درې نيمي حصې قرباني کيږي، او د نصف حصې قرباني غير متصور ده، نو دا نصف حصه په قرباني کي نه راځي، لهذا کله چي په نصف حصه کي قرباني جائز نه سوه، نو په پاته دريو حصو کي به هم جائز نه وي.

②... صحيح قول دا دی چي په دې صورت کي قرباني جائز ده، فقيه ابو الليث او صدر شهيد رَحِمَهُمَا الله همدا قول اختيار کړی دی؛ وجه يې دا ده چي په نصف حصه سره هغه وخت قرباني نه اداء کيږي کله چي يوازي همدا نصف حصه وي، او دلته درې نيمي حصې دي، او درې حصې د قرباني لپاره کافي دي او پاته سوه نصف حصه د دوی په ضمن او متابعت کي جائز کيږي (يعني نيمه حصه د هغه دريو حصو تابع کيږي او هغه جائز کيږي)؛ ځکه داسي ډېر حکمونه سته کوم چي قصداً نه ثابتيږي، خو ضمناً او تبعاً ثابتيږي.

## ﴿د شريکانو په مينځ کې د غوښو د تقسيمولو طريقه﴾

وإذا جاز إلخ: يعني کله چې په شرکت سره قرباني جائز ده، نو کله چې په يوه څاروي کې څو خلک شريکان سي، نو د قربانۍ غوښې به د شريکانو تر مينځ په وزن او تول سره تقسيمول کيږي؛ ځکه چې غوښې موزوني شی دي، نو وزن او تول پکښې اصل دی، لهذا حتى الامکان به پر اصل عمل کيږي. او که چيرې شريکان يې په اټکل او اندازې سره تقسيم کړي، نو دا تقسيم نه صحيح کيږي. ها! که چيرې د غوښو سره څرمن، سر او پښې، اينه وغيره يوځای کړي او بيا يې په اټکل او اندازه سره تقسيم کړي، نو په دې صورت کې تقسيم صحيح کيږي؛ ځکه چې اوس کمي بيشي (تفاضل) د خلاف جنس وطرف ته ګرځي او جائز کيږي، او د دې مثال دا دی چې د غوښو بيع د غوښو په بدله کې په کمي بيشي سره جائز نه ده، خو که چيرې له يوه طرفه د غوښو سره پښې وغيره هم وي، نو بيا په کمي بيشي سره بيع جائز ده.

## قرباني د خپل ځان لپاره رانيول خو بيا شپږ نور کسان پکښې شريکول (حکم او تفصيل)

قَالَ: وَلَوِ اشْتَرَى بَقَرَةً يُرِيدُ أَنْ يُضَحِّيَ بِهَا عَنْ نَفْسِهِ فرمايي: او که څوک غوا رانيسي چې په هغه سره يې اراده دا وي چې د خپل ځان له طرفه يې قرباني کړي ثُمَّ أَشْرَكَ فِيهَا سِتَّةً مَعَهُ بيا د خپل ځان سره په هغه کې شپږ کسان شريکان کړي جَازَ اسْتِحْسَانًا نو دا استحسانا جائز دي وَفِي الْقِيَاسِ لَا يَجُوزُ او په قياس کې جائز نه دي وَهُوَ قَوْلُ زُفَرَ او همدا د امام زفر رَحِمَهُ الله قول دی لِأَنَّهُ أَعَدَّهَا لِلْقُرْبَةِ ځکه چې هغه دغه څاروی د قربت لپاره تيار کړی دی [يعني د عبادت په نيت يې رانيولی او درولی دی چې زه به يې دلوی اختر په ورځ قربانوم] فَيُمْنَعُ عَنْ بَيْعِهَا تَمَوُّلًا نو د مال ترلاسه کولو د غرض په وجه به هغه له بيع [خرڅولو] څخه منع کول کيږي [ځکه ښکاره ده چې دئ د پيسو په عوض کې هريوه ته يوه (اوومه) حصه ورکوي او له هر شريک څخه پيسې اخلي] وَالْإِشْرَاكُ هٰذِهِ صِفَتُهُ او د شريک نيولو [يعني په غټ څاروي کې د نورو کسانو د شريکولو] همدغه صورت دی وَجْهُ الِاسْتِحْسَانِ: أَنَّهُ قَدْ يَجِدُ بَقَرَةً سَمِينَةً يَشْتَرِيهَا د استحسان دليل دا دی: چې انسان ځيني وخت چاغه غوا پيدا کړي نو هغه رانيسي وَلَا يَظْفَرُ بِالشُّرَكَاءِ وَقْتَ الْبَيْعِ وَإِنَّمَا يَطْلُبُهُمْ بَعْدَهُ او د بيع [رانيولو] په وخت کې هغه په [موندلو کې د] شريکانو کامياب نه سي نو تر بيع وروسته په هغوی پسې طلب [او لټون] کوي

فَكَانَتِ الْحَاجَةُ إِلَيْهِ مَاسَّةً نو دې ته ضرورت پېښ سو [چي دا صورت جائز وګرځول سي يعني تر بيع وروسته په غټ څاروي کي د ځان سره نور کسان شريکول] فَجَوَّزْنَاهُ دَفْعًا لِلْحَرَجِ نو ځکه د حرج دفع کولو لپاره دا موږ جائز وګرځول وَقَدْ أَمْكَنَ او دا [حرج دفع کول په شريکولو] ممکن دي لِأَنَّ بِالشِّرَاءِ لِلتَّضْحِيَةِ لَا يَمْتَنِعُ الْبَيْعُ ځکه چي د قرباني لپاره رانيولو سره بيع نه ممتنع کيږي وَالْأَحْسَنُ أَنْ يَفْعَلَ ذٰلِكَ قَبْلَ الشِّرَاءِ او غوره دا ده چي هغه دا کار [شريکان نيول] تر رانيولو مخکي وکړي لِيَكُوْنَ أَبْعَدَ عَنِ الْخِلَافِ وَعَنْ صُورَةِ الرُّجُوعِ فِي الْقُرْبَةِ چي له اختلاف څخه او په قربت کي د رجوع له صورت څخه لېري سي [يعني چي وروسته اختلاف پېښ نه سي، او يا د قربت (قرباني) لپاره د څاروي تر متعيّن کېدلو وروسته يو شريک رجوع نه وکړي] وَعَنْ أَبِي حَنِيْفَةَ أَنَّهُ يُكْرَهُ الْاِشْتِرَاكُ بَعْدَ الشِّرَاءِ او له امام صاحب رَحِمَهُ الله څخه روايت دی چي له رانيولو څخه وروسته شريکان نيول [يعني په غټ څاروي کي نور کسان شريکول] مکروه دي لِمَا بَيَّنَّا د هغه دليل په وجه کوم چي موږ بيان کړی.

**اللغات**: ﴿أشرك﴾ د افعال د باب ماضي ده: شريک نيول، يو څوک په يو څه کي شريکول. ﴿أعدّ﴾ د افعال د باب ماضي ده: تيارول، تيار ساتل. ﴿تموّل﴾ د تفعّل د باب مصدر دی: مال حاصلول او ترلاسه کول، مال ذخيره کول، مال والا کېدل. ﴿لا يظفر﴾ د سمع د باب نفي صيغه ده: کامیابېدل، بری ترلاسه کول، غالبېدل، د يو شي حاصلول.

**تشريح**: **صورت د مسئلې**: دا دی چي که څوک د قرباني لپاره غوا يا مثلاً غويی رانيسي او اراده يې داوي چي دا به له خپل طرفه قرباني کړم، خو بيا په دې کي شپږ نور کسان شريکان کړي، نو استحساناً دا صورت جائز دی او قياساً جائز نه دی.

د قياس دليل دا دی چي دا په قربت کي د تموّل صورت دی، او د استحسان دليل ضرورت دی. او د قرباني لپاره په رانيولو سره بيع نه ممتنع کيږي بلکي جائز ده مثلاً که يو مالدار کس د قرباني لپاره غوا رانيسي خو هغه يې خوښه نه سي بيا يې خرڅه کړي او بله رانيسي او قرباني يې کړي، نو دا جائز دي. خو په هر حال غوره دا ده چي له رانيولو څخه مخکي شرکت او حصه داري وکړي چي بيا هيڅ اختلاف پاته نه سي او نه په قربت کي د رجوع صورت را مخته سي.

**يادونه**: د اُصول تقاضا دا ده چي که فقير کس د قرباني په ورځو کي د قرباني په نيت غوا رانيسي او بيا نور کسان پکښي شريکان کړي، نو شرکت نه جائز کيږي، او د مالدار کس د جائز کيږي، لېکن مکروه دي. شامي رَحِمَهُ الله په رد المختار کي همدې ته اشاره کړې ده (ج:۵، ص:۲۰۱)

## پر غریب او مسافر کس د قرباني نه وجوب او د قرباني وخت

قَالَ: وَلَيْسَ عَلَى الْفَقِيْرِ وَالْمُسَافِرِ أُضْحِيَّةٌ فرمايي: او پر فقير [غريب] او مسافر قرباني نسته لِمَا بَيَّنَّا د هغه دليل په وجه کوم چي موږ بيان کړی وَأَبُوبَكْرٍ وَعُمَرُ كَانَا * لَا يُضَحِّيَانِ إِذَا كَانَا مُسَافِرَيْنِ او حضرت ابو بکر او عمر رضی الله عنهما چي کله به په سفر کښ وه نو قرباني به يې نه کوله وَعَنْ عَلِيٍّ ** : وَلَيْسَ عَلَى الْمُسَافِرِ جُمُعَةٌ وَلَا أُضْحِيَّةٌ او له حضرت علي رضي الله عنه څخه روايت دی: چي پر مسافر نه جمعه سته او نه قرباني قَالَ: وَوَقْتُ الْأُضْحِيَّةِ يَدْخُلُ بِطُلُوْعِ الْفَجْرِ مِنْ يَوْمِ النَّحْرِ فرمايي: او د قرباني وخت د يوم نحر [لوی اختر د ورځي] له سهار کېدو [سپېده چاودو] څخه داخليږي إِلَّا أَنَّهُ لَا يَجُوْزُ لِأَهْلِ الْأَمْصَارِ الذَّبْحُ حَتّٰى يُصَلِّيَ الْإِمَامُ الْعِيْدَ خو د ښاريانو لپاره تر هغه وخته ذبح جائز نه ده تر دې چي امام د اختر لمونځ وکړي فَأَمَّا أَهْلُ السَّوَادِ فَيَذْبَحُوْنَ بَعْدَ الْفَجْرِ او کوم چي صحرا والا دي، نو هغوی تر سهار کېدو وروسته ذبح کولای سي وَالْأَصْلُ فِيْهِ قَوْلُهُ عَلَيْهِ الصَّلَاةُ وَالسَّلَامُ [1] «مَنْ ذَبَحَ شَاةً قَبْلَ الصَّلَاةِ فَلْيُعِدْ ذَبِيْحَتَهُ او اصل په دې باره کښ د نبي کريم ﷺ دا فرمان دی: څوک چي [د اختر] تر لمانځه مخکښ ذبح وکړي نو خپل ذبيحه دې راوګرځوي وَمَنْ ذَبَحَ بَعْدَ الصَّلَاةِ فَقَدْ تَمَّ نُسُكُهُ وَأَصَابَ سُنَّةَ الْمُسْلِمِيْنَ» او څوک چي [د اختر] تر لمانځه وروسته ذبح وکړي، نو د هغه عبادت [قرباني] پوره سوه او هغه د مسلمانانو طريقه خپله کړه وَقَالَ عَلَيْهِ الصَّلَاةُ وَالسَّلَامُ [2] : «إِنَّ أَوَّلَ نُسُكِنَا فِيْ هٰذَا الْيَوْمِ الصَّلَاةُ ثُمَّ الْأُضْحِيَّةُ» [همدا راز] نبي ﷺ فرمايلي دي چي: په دې ورځ زموږ اول عبادت لمونځ دی بيا قرباني ده.

---

* تخريج: اخرجه مصنف عبد الرزاق، باب الضحايا ج:۴، ص:۲۹۳، حديث رقم:۸۱۷۰.

** تخريج: صاحب د اثمار الهدايه وايي چي په دې سره صاحب د هدايه رَحِمَهُ الله د حضرت علي رضي الله عنه ودې قول ته اشاره کړې ده: من علي قال: لا جمعة ولا تشريق إلى في مصر جامع (مصنف عبد الرزاق، باب القرى الصغار، ج:۳، ص:۷، حديث ۵۸۹. وايضاً فى مصنف ابن ابي شيبة، حديث رقم:۵۰۵۹).

[1] تخريج: أخرجه البخارى بمعناه، باب سنة الاضحية، ص: ۹۸۶، حديث رقم:۵۵۴۶.

[2] تخريج: أخرجه البخارى بمعناه، باب سنة الأضحية، ص:۹۸۶، حديث رقم:۵۵۴۵.

**اللغات:** ﴿اضحية﴾ قرباني يعني د قربانۍ څاروی، اختری. ﴿السواد﴾ د ښار اطراف. يعني د صحرا کلي او علاقه (د صحرا سيمه، صحرايي مېنه). ﴿أهل السواد﴾ هغه خلک کوم چي د ښار په أطرافو (صحرا) کي استوګن وي، چي هغه ته زموږ په اصطلاح ساراني (صحرا والا) خلک وايي. ﴿نسك﴾ مراد: عبادت.

**تشريح:** پر مسافر او غريب د قربانۍ نه واجبېدلو دليلونه مخکي تېر سوه چي د غريب کس په هکله دا حديث وو "مَنْ وَجَدَ سَعَةً" چي که څوک وس لري يعني صاحب د نصاب وي نو پر هغه قرباني سته، همدارنګه په بل روايت کي ذکر سوي دي چي حضرت ابو بکر او عمر رضی الله عنهما به په سفر کي قرباني نه کوله، او دا هم نقل سوي دي چي دوی به ځيني وخت مطلقاً له دې بيري قرباني پرېښوله چي خلک هغه فرض نه وګڼي. (نور په عبارت کي د رواياتو تخريج وسوه).

**يادونه:** پر مسافر خو قرباني واجب نه ده، لېکن که يې وکړي. نو قرباني يې اداء کيږي.

**ووقت الأضحية:** فرمايي د قربانۍ ورځي (أيام نحر) درې (۳) دي: د ذی الحجې د مياشتي لسمه ورځ (کوم ته چي موږ د لوی اختر ورځ وايو) او بيا تر هغه وروسته يوولسمه او دوولسمه ورځ.

او که د ښار خلک د اختر تر لمانځه مخکي قرباني وکړي، نو دا جائز نه دي، خو په کومه علاقه کي چي جمعه او د اخترونو لمونځ مشروع نه وي، د هغه علاقې خلک د لوی اختر (يوم النحر) په ورځ تر صبح صادق وروسته ذبح کولای سي.

**والأصل فيه قوله ﷺ:** په دې کي له مذکوره دوو حديثونو څخه معلومه سوه چي قرباني به د اختر تر لمانځه وروسته کيږي، لکه څرنګه چي د وترو د لمانځه وخت د ماخوستن وخت دی، لېکن هغه د ماخوستن تر لمانځه وروسته کول واجب دي.

## د پورتنۍ مسئلې نور وضاحت (د صحرا د خلکو لپاره د قربانۍ وخت)

غَيْرَ أَنَّ هٰذَا الشَّرْطَ فِي حَقِّ مَنْ عَلَيْهِ الصَّلَاةُ وَهُوَ الْمِصْرِيُّ خو دغه شرط د هغه کس په حق کي دی چي پر هغه [د اختر] لمونځ واجب وي چي هغه ښاري [د ښار اوسېدونکی] دی دُوْنَ أَهْلِ السَّوَادِ نه د صحرا د اوسېدونکو په حق کي لِأَنَّ التَّأْخِيْرَ لِاحْتِمَالِ التَّشَاغُلِ بِهِ عَنِ الصَّلَاةِ ځکه چي قرباني ځنډول [د اختر تر لمانځه وروسته کول] د دې احتمال په وجه دي چي د قربانۍ په وجه به له لمانځه څخه مشغوله سي وَلَا مَعْنٰى لِلتَّأْخِيْرِ فِيْ حَقِّ الْقَرَوِيِّ او د صحرا والا په حق کي د قربانۍ ځنډولو هيڅ معنیٰ نسته وَلَا صَلَاةَ عَلَيْهِ [ځکه چي] پر هغه [د اختر] لمونځ نسته وَمَا رَوَيْنَاهُ حُجَّةٌ عَلٰى مَالِكٍ وَالشَّافِعِيِّ فِي

نَفْيِهِمَا الْجَوَازَ بَعْدَ الصَّلَاةِ قَبْلَ نَحْرِ الْإِمَامِ او کوم حدیث چې موږ روایت کړی هغه حجت دی د امام مالک او امام شافعي رَحِمَهُمَا الله په خلاف [د قرباني] د جواز نفي کولو په باره کې [داختر] تر لمانځه وروسته او د امام تر قرباني مخکې.

**اللغات**: ﴿قروي﴾ قریه ته منسوب دی، قریه وایي له ښار څخه بهر د أطرافو علاقې ته چې په هغه کې خلک آباد وي، د صحرا کلي او علاقه. ﴿نحر﴾ د دې لفظ یوه معنیٰ ده: ذبح کول او قربانول. ﴿مضحي﴾ د تفعیل د باب فاعل دی: اضحیه (قرباني) کونکی. ﴿انشق﴾ د انفعال د باب ماضي ده: چاودېدل، څېرېدل، انشق الفجر: د سهار سپېدې چاودېدل (چې دې وخت ته صبح صادق وایي).

**تشریح**: د عبارت حاصل دا دی چې قرباني د اختر تر لمانځه وروسته کول فقط پر ښاري کس واجب دي، نه پر صحرا والا، ځکه د قرباني تأخیر (وروسته کول) په دې وجه واجب دي چې په قرباني د مشغولېدو په وجه د اختر په لمانځه کې غفلت نه وسي، او پر چا چې ګردسره د اختر لمونځ نه وي، نو هلته دا وجه هم نسته، نو په دې وجه پر هغه تأخیر واجب نه دی.

د امام مالک او امام شافعي رَحِمَهُمَا الله مسلک دا دی چې ښاري کس ته تر هغه وخته د قرباني کولو اختیار نسته، تر څو چې امام له خپل قرباني څخه فارغ نه سي؛ صاحب د هدایې رَحِمَهُ الله فرمایي مخکې چې موږ کوم حدیث بیان کړی (یعني: مَنْ ذبح قبل الصلاة.. إلخ) په هغه سره د دې حضراتو د مسلک تردید کېږي؛ ځکه په دې حدیث شریف کې صرف د لمانځه ذکر سته، د امام د قرباني هیڅ ذکر پکښې نسته، نو دا حدیث د دوی په خلاف حجت دی.

**یادونه (۱)**: له صحرا څخه مراد هغه صحرایي کلي او علاقه ده چې هلته د جمعې او اخترونو لمونځ جائز نه وي، او په کومو صحرایي علاقو کې چې جائز وي، هغوی د ښار په حکم کې دي.

**یادونه (۲)**: ذبح د امام مالک رَحِمَهُ الله په نېز شرط ده، نه د امام شافعي رَحِمَهُ الله په نېز، خو د امام شافعي رَحِمَهُ الله په نېز له خطبې څخه د امام فارغېدل شرط دي، نو په دغه اعتبار سره مذکوره حدیث د امام شافعي رَحِمَهُ الله په خلاف حجت کېږي، نه په هغه اعتبار سره کوم چې مصنف رَحِمَهُ الله ذکر کړي دي. او امام احمد د امام مالک رَحِمَهُ الله سره دی.

## په قرباني کي به د کوم ځای اعتبار کيږي؟

ثُمَّ الْمُعْتَبَرُ فِي ذٰلِكَ مَكَانُ الْأُضْحِيَّةِ بيا په دې باره کي د قرباني [د قرباني د څاروي] ځای معتبر دی حَتّٰى لَوْكَانَتْ فِي السَّوَادِ وَالْمُضَحِّيْ فِي الْمِصْرِ تر دې چي که قرباني [د قرباني څاروی] په صحرا کي وي او قرباني کونکی په ښار کي وي يَجُوْزُ كَمَا انْشَقَّ الْفَجْرُ نو د سپېدو چاودېدو [صبح صادق] سره سمدستي ذبح کول جائز دي وَلَوْكَانَ عَلَى الْعَكْسِ او که د دې برعکس وي لَا يَجُوْزُ إِلَّا بَعْدَ الصَّلَاةِ نو جائز نه دي مګر تر لمانځه وروسته وَحِيْلَةُ الْمِصْرِيِّ إِذَا أَرَادَ التَّعْجِيْلَ أَنْ يَّبْعَثَ بِهَا إِلٰى خَارِجِ الْمِصْرِ او حيله د ښاري کس لپاره کله چي هغه د ژر قرباني کولو [وختي ذبح کولو] اراده وکړي دا ده چي خپل قرباني له ښار څخه بهر ته واستوي فَيُضَحِّيْ بِهَا كَمَا طَلَعَ الْفَجْرُ نو [په دې صورت کي] د هغه قرباني د سهار کېدلو [صبح صادق] سره سمدستي قربانول کېدای سي وَهٰذَا لِأَنَّهَا تُشْبِهُ الزَّكَاةَ او دا ځکه چي قرباني د زکاة مشابه ده مِنْ حَيْثُ أَنَّهَا تَسْقُطُ بِهَلَاكِ الْمَالِ قَبْلَ مُضِيِّ أَيَّامِ النَّحْرِ په دې حيثيت سره چي قرباني د ايام نحر له تېرېدو څخه مخکي د مال په هلاکېدو سره ساقطيږي كَالزَّكَاةِ بِهَلَاكِ النِّصَابِ لکه څرنګه چي زکاة د نصاب په هلاکېدو سره ساقطيږي فَيُعْتَبَرُ فِي الصَّرْفِ مَكَانُ الْمَحَلِّ لَا مَكَانُ الْفَاعِلِ نو ځکه په قرباني صرفولو [قرباني اداء کولو] کي به د محل [څاروي] ځای معتبر وي، نه د فاعل [قرباني کونکي] ځای اِعْتِبَارًا بِهَا پر زکاة په قياس کولو سره بِخِلَافِ صَدَقَةِ الْفِطْرِ په خلاف د صدقهٔ فطر لِأَنَّهَا لَا تَسْقُطُ بِهَلَاكِ الْمَالِ بَعْدَ مَا طَلَعَ الْفَجْرُ مِنْ يَوْمِ الْفِطْرِ ځکه چي صدقهٔ فطر د کوچني اختر تر سهار کېدلو وروسته د مال په هلاکېدو سره نه ساقطيږي وَلَوْضَحّٰى بَعْدَ مَا صَلّٰى أَهْلُ الْمَسْجِدِ او که چيري د اهلِ مسجد تر لمونځ کولو وروسته يو قرباني وکړي وَلَمْ يُصَلِّ أَهْلُ الْجَبَّانَةِ حال دا چي تر اوسه عيدګاه والا وو لمونځ نه وي کړی أَجْزَأَهُ اِسْتِحْسَانًا نو استحساناً هغه لره دا کفايت کوي [يعني دا قرباني ور لره جائز او کافي ده] لِأَنَّهَا صَلَاةٌ مُعْتَبَرَةٌ ځکه چي هغه [د مسجد لمونځ] معتبر لمونځ دی حَتّٰى لَوِاكْتَفَوْا بِهَا تر دې چي که خلک پر همدې [د مسجد پر لمانځه] اکتفاء وکړي أَجْزَأَتْهُمْ نو دا لمونځ ور لره کافي کيږي وَكَذَا عَلٰى عَكْسِهِ او همداسي د دې برعکس وَقِيْلَ: هُوَجَائِزٌ قِيَاسًا وَاسْتِحْسَانًا او ويل سوي دي: چي دا په قياس او استحسان دواړو کي جائز دي.

**اللغات:** ﴿مضىٰ﴾ د ضرب د باب مصدر دی: تېرېدل، ختمېدل. ﴿صرف﴾ دا هم د ضرب د باب مصدر دی: خرچول، صرفول، لګول (مصرفول)، مراد: څاروی د قربانۍ لپاره صرفول، قرباني اداء کول. ﴿الجبانة﴾ عيدګاه، دا ختر د لمانځه اداء کولو ځای، کوم چې عموماً په غټ میدان کې اداء کیږي. ﴿أجزأه﴾ دافعال د باب ماضي ده: کافي کېدل، کفايت کول. ﴿مكان المحل﴾ د قربانۍ د څاروي ځای، ﴿مكان الفاعل﴾ د قرباني کونکي ځای.

**تشريح:** د عبارت حاصل دا دی چې د قربانۍ په باب کې د قربانۍ څاروي لره اعتبار دی، نه قرباني کونکي لره، په بله وینا دا چې اعتبار محل لره دی، نه فاعل لره، یعني که د قربانۍ څاروی په صحرا کې وي، نو دا ختر تر لمانځه مخکې قرباني جائز ده، که څه هم مالک یې په ښار کې وي.

او که څاروی په ښار کې وي، نو قرباني به دا ختر لمانځه وروسته کیږي، که څه هم مالک یې په صحرا کې وي.

وحيلة المصرى إلخ: فرمايي که يو ښاري کس وغواړي چې ژر تر ژره قرباني وکړم، نو د هغه لپاره حیله همدا ده چې خپل د قربانۍ څاروی له ښار څخه دباندې واستوي (چیرې چې د جمعې او اخترونو لمونځ جواز نه لزي)، نو هلته تر صبح صادق وروسته سمدستي قرباني کېدلای سي.

وهٰذا لأنها تشبه إلخ: د دې حاصل دا دی چې په قرباني او اُضحيه کې ولې محل لره اعتبار دی، نه فاعل او مضحي لره، نو فرمايي چې د محل (مكانِ اضحيه) د اعتبار کولو وجه دا ده چې قرباني د زکاة مشابه ده په دې حیثیت سره چې زکاة د نصاب په هلاکېدو سره ساقطیږي، همدارنګه قرباني د ایام نحر په تېرېدو سره د مال هلاکېدو په صورت کې ساقطیږي، لهٰذا کله چې قرباني د زکاة مشابه ده او په زکاة کې د اداء په هکله محل یعني د مال مقام لره اعتبار وي (چیرې چې مال موجود وي)، نو په قرباني کې به هم محل یعني د څاروي مقام لره اعتباري وي، نه د فاعل او مضحي مقام لره.

ولوضحًى إلخ: د دې حاصل دا دی چې که په یوه علاقه کې دوه ځایه د اختر لمونځ کیږي ① په مسجد کې، ② په عيدګاه کې، نو که په عيدګاه کې تر اوسه د اختر لمونځ نه وي سوی او په مسجد کې وسي او ختم سي، نو قرباني کول جائز دي، دا استحسان دی؛ ځکه چې د مسجد لمونځ معتبر لمونځ دی، او که د دې برعکس وي (چې په عيدګاه کې لمونځ وسي او په مسجد کې تر اوسه نه وي سوی او خلک له لمانځه څخه فارغ سوي نه وي)، نو په درجه اولی قرباني جائز ده، او د ځينو قول دا دی چې په قیاس او استحسان دواړو په اعتبار سره دا صورت جائز او صحیح دی.

## د قرباني ورځې او مودت

قَالَ: وَهِيَ جَائِزَةٌ فِي ثَلَاثَةِ أَيَّامٍ: يَوْمُ النَّحْرِ وَيَوْمَانِ بَعْدَهُ فرمايي: او قرباني په دريو ورځو کې جائز ده: د نحر ورځ [چې دلوی اختر ورځ ده] او تر هغه وروسته دوې ورځې وَقَالَ الشَّافِعِيُّ: ثَلَاثَةُ أَيَّامٍ بَعْدَهُ او امام شافعي رَحِمَهُ الله فرمايي: چې تر يوم نحر درې ورځې وروسته لِقَوْلِهِ عَلَيْهِ الصَّلَاةُ وَالسَّلَامُ «أَيَّامُ التَّشْرِيقِ كُلُّهَا أَيَّامُ ذَبْحٍ» ❶ دنبي کريم ﷺ د دې فرمان په وجه: چې ايام تشريق ټوله د ذبح [قرباني] ورځې دي وَلَنَا مَا رُوِيَ عَنْ عُمَرَ وَعَلِيٍّ وَابْنِ عَبَّاسٍ رَضِيَ اللهُ عَنْهُمْ أَنَّهُمْ قَالُوا: أَيَّامُ النَّحْرِ ثَلَاثَةٌ أَفْضَلُهَا أَوَّلُهَا او زموږ دليل هغه روايت دی کوم چې له حضرت عمر، حضرت علي او ابن عباس رضی الله عنهم څخه نقل سوی دی چې دوی فرمايلي دي: د نحر [قرباني] ورځې درې دي چې له هغوی څخه افضله اوله ورځ ده وَقَدْ قَالُوهُ سَمَاعًا او دوی دا خبره [له نبي ﷺ څخه] داورېدلو پر بناء کړې ده لِأَنَّ الرَّأْيَ لَا يُهْتَدَى إِلَى الْمَقَادِيرِ ځکه چې رايه د مقدارونو وطرف ته لاره نه سي موندلای [يعني څوک په خپل رايه سره يو شرعي مقدار نه سي ټاکلی] وَفِي الْأَخْبَارِ تَعَارُضٌ او په اخبارو [د صحابه وو په اقوالو] کې تعارض دی فَأَخَذْنَا بِالْمُتَيَقَّنِ وَهُوَ الْأَقَلُّ نو موږ هغه يقيني مقدار واخيستی چې هغه کمتر [درې ورځې] دي وَأَفْضَلُهَا أَوَّلُهَا كَمَا قَالُوا او افضله يې اوله ورځ ده لکه څرنګه چې دوی اصحابهٔ ثلاثه ووا ويلي دي وَلِأَنَّ فِيهِ مُسَارَعَةً إِلَى أَدَاءِ الْقُرْبَةِ او ځکه چې په دې [اوله ورځ په قرباني کولو کې] د عبادت اداء کولو ته ورانديتوب کول دي وَهُوَ الْأَصْلُ إِلَّا لِمُعَارِضٍ او همدا اصل د. مګر د يوه معارض په وجه [يعني کله چې يو عارض او يو عذر نه وي].

**اللغات**: ﴿يوم النحر﴾ د ذبح او قرباني ورځ، د ذوی الحجې د مياشتې لسمه چې دلوی اختر ورځ ورته وايي. ﴿أيام التشريق﴾ د ذی الحجې د مياشتې ۱۱، ۱۲، ۱۳. تشريق د تفعيل د باب مصدر دی. دوې معناوي يې نقل سوي دي: لمر روښانه کېدل. غوښې وچول. دغه ورځو ته ايام التشريق ځکه ويل کيږي چې په دې ورځو کې به د قرباني غوښې وچول کېدې (ځکه د قرباني ښاروېان له دې څخه يوه ورځ مخکې په يوم نحر کې ذبح کول کيږي. نو په را روانو ورځو کې به يې غوښې څرول او وچول کېدې)، يا په

❶ تخريج: اخرجه دار قطني في سننه، في كتاب الأشربة وغيرها، باب الصيد والذبائح، ج: ۴، ص: ۱۸۸، حديث رقم: ۴۷۱۱.

دې وجه چې د هَدی څاروي تر هغه وخته نه قربانول کيږي تر دې چې لمر راوخيږي او ښه روښانه سي (معجم لغة الفقهاء)، ﴿مسارعة﴾ د مفاعلې د باب مصدر دی: تېزي کول. ژر والي کول. وړاندېتوب کول.

**تشريح:** ايام نحر يعني د قربانۍ ورځې درې دي: د ذی الحجې ۱۰، ۱۱ او ۱۲ مه. او ايام تشريق درې ورځې دي: ۱۱، ۱۲، ۱۳ مه.

د شوافعو په نېز ايام تشريق پوره ايام نحر (د قربانۍ ورځې) دي، يعني د هغو په نېز د ذی الحجې تر ديارلسمې ۱۳ ورځې پورې قرباني کول جائز دي؛ او دوی په هغه حديث سره دليل نيسي چې په هغه کي تمام ايام تشريق ته ايام ذبح ويل سوي دي.

د احنافو په نېز د قربانۍ درې ورځې دي، او ديارلسمه ورځ که څه هم يوم التشريق ده خو يوم النحر (د قربانۍ) ورځ نه ده.

زموږ دليل د حضرت عمر، علي او ابن عباس رضی الله عنهم حديث دی چې "أيّام النحر ثلاثة أيام، أفضلها أوّلها". همدارنګه په موطأ امام مالک کي له حضرت ابن عمر رضی الله عنهما څخه نقل سوي دي چې "الأضحی يومان بعد يوم الأضحی". له دې څخه هم په دريو ورځو کي د ايام نحر منحصر کېدل ثابتيږي. او مخکينی قول کوم چې د حضرت عمر رضي الله عنه وغيره دی، هغه هم له نبي کريم ﷺ څخه پر سماع محمول دی، ځکه چې د انسان په خپل رايه او خپل قول سره د عباداتو وغيره تخصيص او تقدير نه سي کېدلای، لهذا دې حضراتو چې کوم څه فرمايلي دي، هغه يې هم له نبي کريم ﷺ څخه اورېدلي دي.

او د امام شافعي رَحِمَهُ الله د پېش کړه حديث يو جواب خو دا دی چې په دې کي ډېر زيات اضطراب دی، لهذا دا روايت قابلِ استدلال نه دی، دويم جواب دا دی چې د امام شافعي په بيان کړه روايت سره د ايام نحر زياتوالي ثابتيږي او زموږ په بيان کړه روايت سره د هغوی کموالی ثابتيږي، او قاعده دا ده چې کله روايات سره متعارض سي، نو په دې وخت کي پر أقل والا روايت عمل کول کيږي؛ ځکه چې أقل متيقَّن او متعيَّن وي، نو ځکه موږ پر أقل والا روايت عمل کړی دی او د يوم النحر (عيد الأضحی) تر ورځي وروسته مو نور تر دوو ورځو پورې قرباني کول جائز ګرځولي دي.

خو په دې دريو ورځو کي د قربانۍ لپاره تر ټولو افضل وخت اوله ورځ ده. د دې يو دليل همدا دی چې صحابه کرامو رضی الله عنهم دا وخت افضل ګرځولی دی. او دويم دليل يې دا دی چې کله يو معارض نه وي، نو عبادات په خپل اول وخت کي اداء کول اصل دي، او د قربانۍ (أضحيې) په هکله هيڅ معارض نه ليدل کيږي، نو ځکه په اوله ورځ قرباني کول افضل او عمل علی الأصل دي.

## په شپه کې د قربانۍ ذبح کولو بیان

وَيَجُوزُ الذَّبْحُ فِي لَيَالِيهَا إِلَّا أَنَّهُ يُكْرَهُ او د دې ورځو په شپو کې [هم] ذبح جائز ده، خو دا مکروه دي لِاحْتِمَالِ الْغَلَطِ فِي ظُلْمَةِ اللَّيْلِ د شپې په تیاره کې د غلطۍ واقع کېدلو د احتمال په وجه وَأَيَّامُ النَّحْرِ ثَلَاثَةٌ او ایام نحر [د قربانۍ ورځې] درې دي وَأَيَّامُ التَّشْرِيقِ ثَلَاثَةٌ او یام تشریق [د غوښو وچولو ورځې] هم درې دي وَالْكُلُّ يَمْضِي بِأَرْبَعَةٍ او له دې دواړو [ایام نحر و تشریق] څخه هر یو په څلورو سره تیرېږي [په بله وینا: او هر یو د څلورو ورځو په تېرېدو سره ختمېږي] أَوَّلُهَا نَحْرٌ لَا غَيْرُ چې له هغوی [څلورو ورځو] څخه اوله صرف د نحر [قربانۍ] ورځ ده، نه د تشریق وَآخِرُهَا تَشْرِيقٌ لَا غَيْرُ او آخره یې د تشریق ورځ ده، نه د نحر وَالْمُتَوَسِّطَانِ نَحْرٌ وَتَشْرِيقٌ او د مینځ دوې ورځې د نحر او تشریق دواړو دي وَالتَّضْحِيَةُ فِيهَا أَفْضَلُ مِنَ التَّصَدُّقِ بِثَمَنِ الْأُضْحِيَةِ او د دې قربانۍ په ورځو [ایام نحر] کې قرباني کول افضل دي د قربانۍ [څاروي] د قیمت له صدقه کولو څخه لِأَنَّهَا تَقَعُ وَاجِبَةً أَوْ سُنَّةً ځکه چې قرباني واجب واقع کیږي یا سنت وَالتَّصَدُّقُ تَطَوُّعٌ مَحْضٌ او صدقه کول محض نفلي عبادت دی فَتَفْضُلُ عَلَيْهِ نو ځکه دا [قرباني کول] پر هغه [تطوع] فضیلت لري وَلِأَنَّهَا تَفُوتُ بِفَوَاتِ وَقْتِهَا او ځکه چې قرباني د وخت په فوتېدو [تېرېدو] سره فوتیږي وَالصَّدَقَةُ يُؤْتَى بِهَا فِي الْأَوْقَاتِ كُلِّهَا او صدقه په ټولو وختونو کې کېدلای سي فَنَزَلَتْ مَنْزِلَةَ الطَّوَافِ وَالصَّلَاةِ فِي حَقِّ الْآفَاقِيِّ نو د قربانۍ درجه داسې سوه لکه [درجه د] طواف او لمونځ د آفاقي په حق کې [یعني لکه د اطرافي حاجي په حق کې چې د طواف او نفلي لمانځه درجه ده، همداسې به قرباني هم وي].

**اللغات**: ﴿ظلمة﴾ تیاره، تاریکه. ﴿تصدّق﴾ د تفعّل مصدر دی: صدقه کول، خیراتول. ﴿تطوع﴾ د تفعّل اسم مصدر دی: نفل، نفلي عبادت، غیر واجب کار. ﴿آفاق﴾ کوم سړی چې له میقات څخه بهر په اطرافو کې اوسیږي هغه ته آفاقي ویل کیږي. اطرافي (نو له مکې شریفې او میقات څخه دباندې د هر هیواد اوسېدونکي ته آفاقي ویل کیږي).

**تشریح**: د عبارت حاصل دا دی چې څرنګه په ایام نحر (د قربانۍ په ورځو) کې قرباني کول جائز دي، همداسې د هغوی په شپو کې هم قرباني جائز ده. خو څرنګه چې د شپې د تاریکۍ په وجه د ښه نه ذبح کېدلو او داسې نورو غلطیو احتمال سته. نو په دې وجه فقهاء کرامو د شپې قرباني کول مکروه ګرځولې ده.

وروسته فرمايي چي ايام نحر او ايام تشريق دواړه درې، درې ورځې دي، فرق يې دا دی چي ايام نحر زموږ په نېز دعيد الأضحیٰ (لوی اختر) دورځې سره درې ورځې دي، او ايام تشريق دعيد الاضحیٰ له ورځې څخه بغير درې ورځې دي. او دا قوله يعني أيام نحر او أيام تشريق د څلورو ورځو (يعني دذی الحجې د ۱۰، ۱۱، ۱۲ او ۱۳) په تېرېدو سره تيرېږي او ختميږي؛ ځکه د ذی الحجې ۱۰ ورځ (چي دلوی اختر ورځ ده) صرف يوم نحر ده، نه يوم تشريق، همدارنګه د ذی الحجې ۱۳ ورځ صرف يوم تشريق ده، نه يوم نحر، او د مينځ دوې ورځې يعنې ۱۱ او ۱۲ ورځې ايام نحر هم دي او ايام تشريق هم دي، اوس د څلورو ورځو په تېرېدو سره د ايام نحر او ايام تشريق ختمېدلو مطلب دا دی چي که دذی الحجې د ۱۰ ورځې څخه شمېر وسي، نو څلورمې ورځې يعنې د ذی الحجې ديارلسمې ۱۳ ورځې ته ايام نحر نه پاتيږي او ختميږي چي ۱۳ ورځ يوم نحر نه ده، او که له ديارلسمې ۱۳ ورځې څخه شمېر وسي چپه طرف ته، نو لسمې ۱۰ ورځې ته ايام تشريق ختميږي چي ۱۰ ورځ يوم تشريق نه ده. (په ساده پښتو د دې عبارت لنډ او آسانه مطلب داسې هم ويل کېدای سي: چي کله دلوی اختر اولې څلور ورځې تيرې سي، نو هم ايام نحر ختميږي او هم ايام تشريق).

والتضحية فيها إلخ: په ظاهر روايت کي قرباني واجب ده او د صاحبينو رَحِمَهُمَا الله په قول سنت ده (لکه مخکي چي د دې تفصيل تېر سو)، او پاته سو صدقه او خيرات محض تطوع او نفلي عبادت دی، او دا ښکاره خبره ده چي واجب او سنت له تطوع محض څخه غوره او اعلیٰ دي، نو ځکه په ايام نحر کي قرباني کول افضله دي له دې څخه چي د قرباني قيمت صدقه کړی سي.

او بل دا چي صدقه هر وخت که انسان وغواړي، کولای يې سي، او د قرباني لپاره فقط همدغه ايام مخصوص دي، نو دا مسئله داسې سوه لکه د آفاقي حاجي په حق کي د طواف او نفلي لمانځه مسئله چي د هغه لپاره طواف افضل دی؛ ځکه چي طواف خو صرف همدلته (په مکه شريفه) کي کولای سي، او لمونځ چي افغانستان ته ولاړ سي نو هم يې هر څومره کولای سي.

## د قرباني نه کولو جرمانه

وَلَوْلَمْ يُضَحِّ حَتّٰى مَضَتْ أَيَّامُ النَّحْرِ او که چيرې قرباني نه وکړي تر دې چي ايام نحر [د قرباني ورځې] تېرې سي إِنْ كَانَ أَوْجَبَ عَلٰى نَفْسِهِ نو که چيرې هغه پر خپل ځان قرباني واجب کړې وي أَوْكَانَ فَقِيْرًا وَقَدِ اشْتَرَى الْأُضْحِيَّةَ يا هغه غريب وي او د قرباني څاروی يې رانيولی وي تَصَدَّقَ بِهَا حَيَّةً نو هغه به دا څاروی ژوندی صدقه کوي وَإِنْ كَانَ غَنِيًّا او که چيرې مالدار وي تَصَدَّقَ بِقِيْمَةِ شَاةٍ نود

يوه پسه قيمت به صدقه كوي اِشْتَرٰى أَوْلَمْ يَشْتَرِ برابره ده هغه [مالدار كس د قرباني څاروى] رانيولى وي او كه نه وي لِأَنَّهَا وَاجِبَةٌ عَلَى الْغَنِيِّ ځكه چي قرباني پر مالدار كس واجب ده وَتَجِبُ عَلَى الْفَقِيْرِ بِالشِّرَاءِ بِنِيَّةِ التَّضْحِيَةِ عِنْدَنَا او پر غريب كس په نيت د قربانولو د څاروي په رانيولو سره قرباني واجيبږي زموږ په نيز فَإِذَا فَاتَ الْوَقْتُ نو كله چي وخت فوت سو [تېر سو] وَجَبَ عَلَيْهِ التَّصَدُّقُ إِخْرَاجًا لَهُ عَنِ الْعُهْدَةِ نو اوس [د قرباني] له ذمه وارۍ څخه د خپل ځان ايستلو [غاړي خلاصولو] لپاره پر هغه صدقه كول واجب سوه كَالْجُمُعَةِ تُقْضٰى بَعْدَ فَوَاتِهَا ظُهْرًا لكه د جمعې لمونځ چي د هغه تر فوتېدلو وروسته د ماپښين په لمانځه سره يې قضاء راوړل كيږي وَالصَّوْمِ بَعْدَ الْعَجْزِ فِدْيَةً او لكه روژه چي [له روژې څخه] تر عاجزه كېدلو وروسته په فديه وركول سره يې قضاء راوړل كيږي.

**اللغات:** ﴿شاة﴾ عام اسم دى، پر پسه، بزه، وزګري ټولو يې اطلاق كيږي، ﴿غني﴾ مالدار، شتمن.

**تشريح:** پر مالدار كس د خپل مالدار والي په وجه قرباني واجب ده، او پر غريب كس بيا هغه وخت قرباني واجب ده كله چي هغه په ايام نحر كي د قربانۍ په نيت څاروى رانيسي يا د قربانۍ كولو نذر ومني او څاروى رانيسي (نو لنډه دا چي پر غريب كس هغه وخت قرباني واجيبږي كله چي د قربانۍ په نيت څاروى رانيسي، او پر مالدار كس خودبخوده واجيبږي، د هغه په حق كي د قربانۍ واجبېدلو لپاره د هغه رانيولو [شراء] ته ضرورت نسته).

صورت د مسئلې دا دى چي پر يو كس قرباني واجب وه، خو هغه قرباني نه وكړه تر دې چي د قربانۍ ورځي تيري سوې، نو فرمايي چي كه هغه مالدار وي نو د يوه پسه قيمت به صدقه كوي، او كه فقير (غريب) وي او څاروى يې رانيولى وي، نو د هغه څاروي صدقه كول ضروري دي؛ ځكه چي د دواړو په حق كي اصل خو همدا وه چي د قربانۍ په ورځو (ايام نحر) كي قرباني وكړي، ليكن دوى داسي نه وكړه او وخت تېر سو، نو ځكه د واجب اداء كولو او د غاړي خلاصولو په خاطر به اوس دوى صدقه كوي؛ خو مالدار به ځكه قيمت صدقه كوي چي د هغه په حق كي د قربانۍ څاروى متعيّن نه وو (ځكه پر هغه خودبخوده قرباني واجيبږي)، او فقير به ځكه هغه څاروى صدقه كوي چي په نيت د قربانۍ د څاروي رانيولو په وجه دا څاروى د قربانۍ لپاره متعيّن سو او قرباني پر واجب سوه، نو ځكه د هغه عينِ څاروي په صدقه كولو سره يې غاړي خلاصيږي.

د دې مثال داسي دى چي كه د جمعې لمونځ له يو چا څخه تېر سي، نو پر هغه د ماپښين د لمانځه قضاء ضروري ده چي د جمعې د لمانځه پر ځاى به اوس د ماپښين لمونځ كوي، همدارنګه كه له يو چا څخه روژه تېره سي او بيا يې هغه د عجز او مجبورۍ په وجه نه سي نيولاى، نو فديه وركول

پر واجب دي چي اوس به د روژې پر ځای فدیه ورکوي، نو همدغسي چي کله د قرباني وخت تېر سي، نو د هغه پر ځای به مالدار کس د یوه پسه قیمت صدقه کوي او غریب کس به هاغه څاروی صدقه کوي کوم چي یې رانیولی دی.

## د کومو عیبداره څارویو قرباني جائز نه ده؟

قَالَ [امام قدوري رَحِمَهُ الله] فرمایي وَلَا يُضَحِّىٰ بِالْعَمْيَاءِ وَالْعَوْرَاءِ وَالْعَرْجَاءِ الَّتِىْ لَا تَمْشِىْ إِلَى الْمَنْسَكِ او قرباني به نه کوي په ړانده او کاڼه او ګوډ څاروي سره کوم چي د ذبح کېدو تر ځایه پوره نه سي تللای وَلَا الْعَجْفَاءِ او نه به قرباني کوي په ډېر ډنګر څاروي سره لِقَوْلِهٖ عَلَيْهِ الصَّلَاةُ وَالسَّلَامُ [1]: «لَا تُجْزِئُ فِى الضَّحَايَا أَرْبَعَةٌ ځکه نبي ﷺ فرمایلي دي چي: په قربانیو کي څلور قسمه څارویان کفایت نه کوي اَلْعَوْرَاءُ الْبَيِّنُ عَوَرُهَا [یو] داسي کوڼ څاروی چي کوڼوالي یې ښکاره وي وَالْعَرْجَاءُ الْبَيِّنُ عَرَجُهَا او [دویم] داسي ګوډ څاروی چي ګوډوالي یې ښکاره وي وَالْمَرِيْضَةُ الْبَيِّنُ مَرَضُهَا او [درېیم] هغه مریض څاروی چي مرض یې ښکاره وي وَالْعَجْفَاءُ الَّتِىْ لَا تُنْقِى» او [څلورم] هغه ډنګر څاروی چي مغز داره [یعني چاغ] نه وي قَالَ: وَلَا تُجْزِئُ مَقْطُوْعَةُ الْأُذُنِ وَالذَّنَبِ [امام قدوري رَحِمَهُ الله] فرمایي: غوږ او لکۍ پرېکړل سوی څاروی هم کفایت نه کوي أَمَّا الْأُذُنُ فَلِقَوْلِهٖ عَلَيْهِ السَّلَامُ [2]: «اِسْتَشْرِفُوا الْعَيْنَ وَالْأُذُنَ» کوم چي [پرېوالی د] غوږ دی نو د نبي ﷺ د دې فرمان په وجه چي: تاسو سترګي او غوږ ته پاملرنه کوئ! أَىْ اُطْلُبُوا سَلَامَتَهُمَا یعني د دوی د سالم والي طلب کوئ! [د سترګي او غوږ سلامتیا ته ګورئ] وَأَمَّا الذَّنَبُ فَلِأَنَّهٗ عُضْوٌ كَامِلٌ مَقْصُوْدٌ او کوم چي [پرېکېدنه د] لکۍ ده نو ځکه چي غوږ یو بشپړ او مقصود [مطلوب] اندام دی فَصَارَ كَالْأُذُنِ نو لکۍ [هم] د غوږ په څېر سوه.

**اللغات:** ﴿منسک﴾ د اسم ظرف صیغه ده: د څاروي د قربانولو ځای، مذبح او قربان ګاه. ﴿استشرفوا﴾ د استفعال له به د جمع مذکر امر حاضر صیغه ده: مراد پاملرنه او توجّه کول، په غور

---

[1] تخريج: أخرجه أبوداؤد في كتاب الضحايا، باب ما يكره من الضحايا، ص:۴۰۸، حديث رقم:۲۸۰۲.

[2] تخريج: أخرجه ابو داؤد في كتاب الضحايا، باب ما يكره من الضحايا، ص:۴۰۹، حديث رقم:۲۸۰۲. والترمذي، باب ما يكره من الأضاحي، ص:۳۶۲، حديث رقم:۱۴۹۸.

سره کټل. ﴿لا تُـنقي﴾ د افعال له بابه د نفي صيغه ده. أُنْـقِي يُـنْقِيْ إِنْقَـاء. د دې باب يو معنیٰ ده: مغز داره کېدل. ماغزه داره کېدل (باطني حصه يې ډېرېدل)، چاغېدل.

**تشريح**: د عبارت مطلب واضح او څرګند دی کوم چې له ترجمې څخه معلومېږي، خو د عبارت د وضاحت لپاره دا قاعده په ياد لرئ چې له معمولي عيب څخه خو حيوان نه سي خالي کېدای، نو ځکه له هغه څخه خالي والي شرط نه دی، خو له زيات عيب (فاحش عيب) څخه حيوان خالي وي، نو ځکه له هغه څخه د قربانۍ د حيوان خالي کېدل شرط دي.

## څومره مقدار عيب شمېرل کيږي؟

قَالَ: وَلَا الَّتِيْ ذَهَبَ أَكْثَرُ أُذُنِهَا وَذَنَبِهَا فرمايي: او نه هغه څاروی [کفايت کوي] چې د غوږ او لکۍ اکثره حصه يې ختم سوې [ضايع سوې] وي وَإِنْ بَقِيَ أَكْثَرُ الْأُذُنِ وَالذَّنَبِ او که د غوږ او لکۍ اکثره حصه يې پاته وي جَازَ نو جائز دي لِأَنَّ لِلْأَكْثَرِ حُكْمَ الْكُلِّ بَقَاءً وَذِهَابًا ځکه چې اکثره لره حکم د کل دی د پاتېدو او ختمېدو [ضايع کېدو] په اعتبار سره وَلِأَنَّ الْعَيْبَ الْيَسِيْرَ لَا يُمْكِنُ التَّحَرُّزُ عَنْهُ او ځکه چې له معمولي عيب څخه بچ کېدل ممکن نه دي فَجُعِلَ عَفْوًا نو هغه معاف وګرځول سو وَاخْتَلَفَتِ الرِّوَايَةُ عَنْ أَبِيْ حَنِيْفَةَ فِيْ مِقْدَارِ الْأَكْثَرِ او د اکثر مقدار په هکله له امام صاحب رَحِمَهُ الله څخه روايتونه مختلف [نقل سوي] دي فَفِي الْجَامِعِ الصَّغِيْرِ عَنْهُ: وَإِنْ قُطِعَ مِنَ الذَّنَبِ أَوِ الْأُذُنِ أَوِ الْعَيْنِ أَوِ الْأَلْيَةِ الثُّلُثُ أَوْ أَقَلُّ چې په جامع صغير کي له هغه څخه دا نقل سوي دي چې: که چيري د لکۍ يا د غوږ يا د سترګي يا د لمْ درېيمه حصه يا تر دې کمه پرې سي أَجْزَأَهُ نو دا څاروی کفايت کوي [کافي دی، قرباني يې جائز ده] وَإِنْ كَانَ أَكْثَرَ او که تر دې زياته وي لَمْ يُجْزِهِ نو کفايت نه کوي لِأَنَّ الثُّلُثَ تَنْفُذُ فِيهِ الْوَصِيَّةُ مِنْ غَيْرِ رِضَاءِ الْوَرَثَةِ ځکه چې د وارثانو له رضاء څخه بغير هم په ثلث [درېيمه حصه] کي وصيت نافذيږي فَاعْتُبِرَ قَلِيْلًا نو ثلث کم ومنل سو [ثلث لږ او معمولي وشمېرل سو] وَفِيْمَا زَادَ لَا تَنْفُذُ إِلَّا بِرِضَاهُمْ او له ثلث څخه په زياته حصه کي د وارثانو له رضاء څخه بغير وصيت نه نافذيږي فَاعْتُبِرَ كَثِيْرًا نو له ثلث څخه زيات ډېر ومنل سو وَيُرْوٰى عَنْهُ الرُّبُعُ او له امام صاحب رَحِمَهُ الله څخه يو روايت د څلورمي خصې هم نقل سوی دی [چې څلورمه حصه کثير ده]

لِأَنَّهُ يَحْكِي حِكَايَةَ الْكَمَالِ ځکه چې څلورمه حصه د کامل والي [کل] حکايت بيانوي [يعني څلورمه حصه د کُل په حکم کې ده] عَلَى مَا مَرَّ فِي الصَّلَاةِ لکه څرنګه په [بيان د] لمانځه کې تېر سوه وَيُرْوَى الثُّلُثُ او [له امام صاحب رَحِمَهُ الله څخه] د درېيمي حصې روايت هم نقل سوی دی لِقَوْلِهِ عَلَيْهِ الصَّلَاةُ وَالسَّلَامُ فِي حَدِيثِ الْوَصِيَّةِ [1]: «الثُّلُثُ وَالثُّلُثُ كَثِيرٌ» د وصيت په حديث کې د نبي ﷺ د دې فرمان په وجه: چې [وصيت کوه! د] ثلث او ثلث هم ډېر دی.

**اللغات**: ﴿يسير﴾ لږ، معمولي. ﴿تحرّز﴾ د تفعّل د باب مصدر دی: بچ کېدل، خوندي کېدل. ﴿إلية﴾ لم.

**تشريح**: د عبارت حاصل دا دی چې له معمولي (قليل) عيب څخه د حيوان او څاروي خوندي کېدل خو مشکل دي او له ډېر (کثير) عيب څخه خوندي کېدل يې آسانه او غالب دي، نو که عيب قليل وي، خو معاف دی، او که عيب کثير وي، نو معاف نه دی او د هغه قرباني نه جائز کيږي.

**بقاءً وذهاباً**: په بقاء او ذهاب کې د اکثر حکم د کُل په څېر دی چې که اکثره حصه يې باقي وي، نو ګواکي کُل حصه يې باقي ده او قرباني جائز ده، او که اکثره حصه يې ختم سوې وي، نو ګواکي کُل حصه ختمه سوه، لهذا قرباني يې جائز نه ده.

بيا د قليل او کثير حدّ څومره دی، په دې باره کې روايات مختلف دي، له امام صاحب رَحِمَهُ الله څخه په دې باره کې څلور روايتونه نقل سوي دي:

①... درېيمه حصه (ثلث) او له درېيمي حصې څخه کم قليل دی کوم چې معاف دی. (نو که د څاروي د غوږ يا پزي يا لکۍ وغيره درېيمه حصه پرې سوې وي، نو د هغه قرباني جائز ده؛ ځکه چې درېيمه حصه قليل ده، همدا وجه ده چې د وارثانو له رضاء او خوښي څخه بغير هم د مړي د مال په ثلث [درېيمه حصه] کې وصيت نافذيږي).

②... څلورمه حصه (ربع) کثير ده؛ ځکه چې په ډېرو احکامو کې څلورمي حصې ته د کُل درجه ورکول سوې ده، مثلاً د سر څلورمه حصه مسح کول د ټوله سر د مسح قائم مقام دي.

③... درېيمه حصه يعني ثلث هم کثير دی، لهذا که ثلث يې پرې سوی وي، نو قرباني نه جائز کيږي؛ ځکه چې رسول الله ﷺ و حضرت سعد بن ابي وقاص رَضِيَ اللهُ عَنْهُ ته د مال په ثلث (درېيمه

---

[1] تخريج: أخرجه ابو داؤد فى كتاب الوصايا، باب فيما يجوز للموصى فى ماله، ص:۴۱۶، حديث رقم:۲۸۶۴.

حصه) کي د وصيت کولو حکم وکړی او هغه يې په کثير سره تعبير کړی "والثُّلث کثير". له دغه روايت څخه معلوميږي چې دريمه حصه هم کثير ده.

(۴)... نيمه (نصف) حصه کثير ده، نو که يې تر نيم کمه حصه پرې سوې وي، قرباني يې جائز ده، او که له نيم څخه زيات پرې سوې وي، نو جائز نه ده (همدا د صاحبينو رَحِمَهُمَا الله قول هم دی)

## د صاحبينو رَحِمَهُمَا الله رايه

وَقَالَ أَبُوْيُوْسُفَ وَمُحَمَّدٌ ۞ : إِذَا بَقِيَ الْأَكْثَرُ مِنَ النِّصْفِ او صاحبين رَحِمَهُمَا الله فرمايي: چې که له نيمي څخه زياته حصه پاته وي أَجْزَأَهُ نو دا څاروی ورلره کافي دی [کفايت کوي. قرباني يې جائز ده] اِعْتِبَارًا لِلْحَقِيقَةِ د حقيقت په اعتبار کولو سره عَلَى مَا تَقَدَّمَ فِي الصَّلَاةِ لکه مخکې چې د لمانځه په هکله تېر سوه وَهُوَ اخْتِيَارُ الْفَقِيهِ أَبِي اللَّيْثِ او همدا د فقيه ابو الليث سمرقندي رَحِمَهُ الله اختيار کړده قول دی وَقَالَ أَبُوْيُوْسُفَ: أَخْبَرْتُ بِقَوْلِي أَبَا حَنِيفَةَ او امام ابو يوسف رَحِمَهُ الله فرمايي چې: ما په خپل قول امام صاحب رَحِمَهُ الله خبر کړی فَقَالَ: قَوْلِي هُوَ قَوْلُكَ نو هغه وفرمايل: چې زما قول همدا ستا قول دی قِيْلَ: هُوَ رُجُوعٌ مِنْهُ إِلَى قَوْلِ أَبِي يُوسُفَ ويل سوي دي چې: دا د امام صاحب رَحِمَهُ الله له طرفه د امام ابو يوسف رَحِمَهُ الله د قول وطرف ته رجوع ده وَقِيْلَ: مَعْنَاهُ قَوْلِي قَرِيبٌ مِنْ قَوْلِكَ او ويل سوي دي چې: د دې مطلب دا دی چې زما قول ستا قول ته نژدې دی وَفِي كَوْنِ النِّصْفِ مَانِعًا رِوَايَتَانِ عَنْهُمَا او د نصف [نيمي حصې] په مانع کېدلو کې له امام صاحب رَحِمَهُ الله څخه دوه روايتونه دي كَمَا فِي انْكِشَافِ الْعُضْوِ عَنْ أَبِي يُوسُفَ لکه څرنګه چې د اندام لڅېدلو په هکله له امام ابو يوسف رَحِمَهُ الله څخه دوه روايتونه دي.

**اللغات**: ﴿انکشاف﴾ د انفعال د باب مصدر دی: لڅېدل، لڅوالی.

**تشريح**: د اکثر مقدار په هکله د امام صاحب رَحِمَهُ الله قول خو تاسي ته معلوم سو، له دې ځايه د صاحبينو د قول بيان دی (چې دا د امام صاحب رَحِمَهُ الله څلورم روايت هم دی)، حاصل يې دا دی چې اعتبار حقيقت لره دی، او کله چې له نصف څخه زياته حصه پاته ده، نو اکثر مقدار يې پاته دی، او که

۞ القول الراجح: قول الصاحبين رَحِمَهُمَا الله، وبه ظهر أن ما في المتون كالهداية والكنز والملتقى هو الرواية الرابعة، وعليها الفتوى (رد المحتار ج:۵، ص:۲۲)، وكذا في الهندية (ج:۵، ص:۲۹۸). [القول الراجح ج:۲، ص:۲۹۵]

چيري له نصف څخه زياته حصه ختمه او پرې سي، نو اکثر مقدار يې ختم سو، همدا د فقيه ابو الليث سمرقندي رَحِمَهُ الله مختاره قول دی.

امام ابو يوسف رَحِمَهُ الله فرمايي چي ما امام صاحب رَحِمَهُ الله ته د خپل دغه قول خبر ورکړی، نو هغه وفرمايل: "قَوْلِيْ هُوَ قَوْلُكَ" چي زما قول همدا ستا قول دی، علماؤ د دې دوه مطلبه بيان کړي دي: يو دا چي امام صاحب رَحِمَهُ الله له خپل قول څخه د امام ابو يوسف رَحِمَهُ الله قول ته رجوع وکړه، او دويم مطلب يې دا دی چي زما او ستا په قول کي زيات فرق نسته، بلکي دواړه سره نژدې، نژدې دي.

او که چيري صرف نصف (نيمه حصه) ختم او پرې سي، نو په دې باره کي له صاحبينو رَحِمَهُمَا الله څخه دوه روايتونه دي لکه څرنګه چي له امام ابو يوسف رَحِمَهُ الله څخه د اندام لڅېدلو په باره کي دوه روايتونه نقل سوي دي: ① قرباني جائز نه ده؛ ځکه چي ختمېدونکې (پرېکېدونکې) حصه قليل نه ده، ② قرباني جائز ده؛ ځکه چي ختمېدونکې حصه اکثر نه ده. (په باب شرائط الصلاة کي دا بحث تېر سوی دی)

## په عيبداره عضو کي د عيب معلومولو طريقه

ثُمَّ مَعْرِفَةُ الْمِقْدَارِ فِي غَيْرِ الْعَيْنِ مُتَيَسِّرٌ بيا له سترګي څخه بغير په نورو کي د مقدار پېژندل آسانه دي وَفِي الْعَيْنِ قَالُوْا: تُشَدُّ الْعَيْنُ الْمَعِيْبَةُ بَعْدَ أَنْ لَا تَعْتَلِفَ الشَّاةُ يَوْمًا أَوْ يَوْمَيْنِ او د سترګي په باره کي فقهاؤ ويلي دي چي: [د پسه] عيبداره سترګه دي وتړل سي وروسته تر دې چي پسه يوه يا دوې ورځي وابنه خوړلي نه وي ثُمَّ يُقَرَّبُ الْعَلَفُ إِلَيْهَا قَلِيْلًا قَلِيْلًا بيا دي په کرار، کراره د هغه وطرف ته وابنه نژدې کړل سي فَإِذَا رَآتَهُ مِنْ مَوْضِعٍ نو پسه چي کله دغه وابنه له هر ځايه وويني أُعْلِمَ عَلَى ذٰلِكَ الْمَكَانِ پر هغه ځای دي علامت [نښاني] ولګول سي ثُمَّ تُشَدُّ عَيْنُهَا الصَّحِيْحَةُ بيا دي د هغه سمه سترګه وتړل سي وَقُرِّبَ إِلَيْهَا الْعَلَفُ قَلِيْلًا قَلِيْلًا او په کراره، کراره دي وابنه ور نژدې کړل سي حَتّٰى إِذَا رَآتَهُ مِنْ مَكَانٍ تر دې چي کله پسه دغه وابنه له يو ځايه وويني أُعْلِمَ عَلَيْهِ نو پر هغه ځای دي علامت ولګول سي ثُمَّ يُنْظَرُ إِلَى تَفَاوُتِ مَا بَيْنَهُمَا بيا دي د هغه دواړو ځايو تر مينځ فرق ته وکتل سي فَإِنْ كَانَ ثُلُثًا نو که هغه فرق د ثلث [درېيمي حصې] وي فَالذَّاهِبُ الثُّلُثُ نو ختمېدونکې حصه ثلث ده [يعني: نو د عيبداره سترګي درېيمه حصه ديد ختم سوی دی، په درېمه حصه يې

نه ويني] وَإِنْ كَانَ نِصْفًا او فرق د نصف [نيمايي] وي فَالنِّصْفُ نو ختمېدونکې حصه نصف ده.

**اللغات**: ﴿لا تعتلف﴾ د افتعال له بابه د نفي صيغه ده: خوار که خوړل، وابنه خوړل. ﴿علف﴾ د څارويانو خوراکه يعني وابنه، پروړ او داسې نور. ﴿أُعْلِمَ﴾ د افعال د باب ماضي مجهوله ده. د دې باب يوه معنیٰ ده: علامت او نښان لګول، نښاني کول.

**تشريح**: صاحب د هدايې رَحِمَهُ الله د عيبداره او پرېکړل سوي اندام د مقدار معلومېدو په هکله فرمايي چې له سترګي څخه بغير د نورو اندامونو (مثلاً د غوږ، ښکر وغيره) مقدار معلومول آسانه دي، ځکه چې هغوی ظاهر او څرګند وي، خو څرنګه چې سترګه غير ظاهره او غير محسوسه ده، نو ځکه د سترګني عيب د مقدار معلومولو په هکله فقهاؤ دا طريقه ليکلې ده چې ته دا پسه يوه يا دوې ورځې وږی وساته، بيا د وابنو تر ورکولو مخکې د هغه پر عيبداره سترګه ريښکی يا داسې بل شي ور وتړه چې بنده او پټه سي او سمه سترګه يې خلاصه پرېږده، اوس وابنه په لاس کې را واخله! او له څه ليري څخه يې په کراره، کراره د ده وطرف ته نږدې کوه، نو له کوم ځايه چې هغه دا وابنه (په سمه سترګه) ويني، هغه ځای نښاني کړه. بيا يې دا سمه سترګه ورښنده او پټه کړه او عيبداره سترګه يې ورخلاصه کړه، او د مخکې په څېر د ده وطرف ته په کراره، کراره وابنه ور نږدې کوه، نو په دې وار چې هغه له کوم ځايه دا وابنه (په عيبداره سترګه) ويني، هغه ځای هم نښاني کړه، بيا د دواړو ځايونو تر مينځ موازنه وکړه چې څومره فرق يې په مينځ کې دی.

مثلاً په اول وار کې دا پسه د درش قدمو يا درش ګزو پر فاصله وابنه ليدلي وه او دويم وار يې د لس قدمو يا لس ګزو پر فاصله وليدله، نو معلومه سوه چې د عيبداره سترګې دوې حصې ديد يې ختم سوی دی، يعني عيبداره سترګه يې دوې حصې خرابه ده.

او که په اول وار کې يې د درش قدمو پر فاصله ليدلي وه او دويم وار يې د پنځلس قدمو پر فاصله وليدل، نو ويل کيږي به چې نيم ديد يې ختم سوی دی يعني عيبداره سترګه يې نيمه خرابه ده چې ګواکې په نيمه سترګه ويني او په نيمه نه ويني.

## هغه عيبونه چې د هغوی باوجود قرباني جائز ده

قَالَ: وَيَجُوزُ أَنْ يُضَحِّيَ بِالْجَمَّاءِ فرمايي: او جائز دي دا چې په بې ښکره څاروي سره قرباني وکړي وَهِيَ الَّتِي لَا قَرْنَ لَهَا او جماء هغه څاروی دي چې ښکر يې نه وي لِأَنَّ الْقَرْنَ لَا يَتَعَلَّقُ بِهِ مَقْصُودٌ ځکه چې د ښکر سره هيڅ مقصود متعلق نه دی وَكَذَا مَكْسُورَةُ الْقَرْنِ او همدارنګه د هغه څاروي

[قرباني جائز ده] چې ښکر يې مات سوی وي لِمَا قُلْنَا د هغه دليل په وجه کوم چې موږ وواييو وَالْخَصِيِّ او د خسي ځاروي قرباني جائز ده لِأَنَّ لَحْمَهَا أَطْيَبُ ځکه چې د هغه غوښې ډېر ښه وي وَقَدْ صَحَّ ❶ «أَنَّ النَّبِيَّ صَلَّى اللهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ ضَحَّى بِكَبْشَيْنِ أَمْلَحَيْنِ مَوْجُوئَيْنِ» او په صحيح حديث کي دي: چې نبي کريم ﷺ دوه مړه قرباني کړه کوم چې دواړه برګ [کمر] او خسيان وه وَالثَّوْلَاءِ او د لېوني ځاروي قرباني جائز ده وَهِيَ الْمَجْنُونَةُ او [مراد د] ثولاء هغه لېونی ځاروی دی وَقِيلَ: هٰذَا إِذَا كَانَتْ تَعْتَلِفُ او ويل سوي دي: چې دا هغه وخت کله چې واښه [خوراکه] خوري لِأَنَّهُ لَا يُخِلُّ بِالْمَقْصُودِ ځکه چې دا [ډول لېونتوب] په مقصود کي خلل اچونکي نه دي أَمَّا إِذَا كَانَتْ لَا تَعْتَلِفُ لېکن که هغه واښه نه خوري فَلَا تُجْزِئُهُ نو بيا هغه نه کافي کيږي وَالْجَرْبَاءُ إِنْ كَانَتْ سَمِينَةً او خارښتي [خارښت زده] ځاروی که چيري چاغ وي جَازَ نو قرباني يې جائز ده لِأَنَّ الْجَرَبَ فِي الْجِلْدِ وَلَا نُقْصَانَ فِي اللَّحْمِ ځکه چې [په دې صورت کي] خارښت په څرمن کي دی او په غوښو کي هيڅ نقصان نسته وَإِنْ كَانَتْ مَهْزُولَةً او که دا خارښتی ځاروی ډنګر وي لَا يَجُوزُ نو قرباني يې جائز نه ده لِأَنَّ الْجَرَبَ فِي اللَّحْمِ ځکه چې [دلته] خارښت په غوښو کي دی فَانْتَقَصَ نو [په غوښو کي] نقصان پيدا سو.

**اللغات**: ﴿قـرن﴾ ښکر، ﴿مکسـورة﴾ د ضرب له بابي د واحد مؤنث مفعول صيغه ده: مات کړی سوی، ﴿خصی﴾ خسي، هغه ځاروی چې خوټي يې کښل سوي وي، ﴿کبش﴾ نر پسه، مړ، ﴿أملح﴾ د دې لفظ يوه معنیٰ ده: هغه ځاروی چې تور او سپين وي، يا هغه چې سر يې تور وي نور بدن يې سپين وي، دو رنګه، برګ، کمر، ابلک، ﴿موجوء﴾ هغه مړ او مينده ته ويل کيږي چې خوټي او د خوټي رګونه يې وټکول سي او بې شهوت سي نو دا هم لکه خسي داسي دی، صاحب د معجم د وجاء له تعريفونو څخه يو تعريف دا ليکلی دی: دقّ عروق خصيتيه بَين حجرين وَلم يخرجهما، أو رضّهما حتّى تنفضخا فيكون شَبيها بالخصا، ﴿ثولاء﴾ څه لېونی غوندي، ﴿جرباء﴾ په خارښت مبتلا، خارښتي.

---

❶ تخريج: أخرجه ابوداؤد، باب ما يستحب من الضحايا، ص:۴۰۷، حديث رقم:۲۷۹۵. وابن ماجة، باب أضاحی رسول الله ﷺ ص:۴۵۵، حديث رقم:۳۱۲۲.

**تشريح:** د عبارت حاصل دا دی چې د څاروي هغه اندامونه چې د هغوی سره مقصود متعلق وي، د هغوی عيبداره کېدل خو د قربانۍ د جواز لپاره مضر دي، لېکن هغه اندامونه چې هيڅ مقصد ور سره متعلق نه وي، د هغوی په عيبداره کېدو يا نه کېدو سره پر قربانۍ هيڅ اثر نه لوېږي، نو که د يو څاروي ښکرونه نه وي، يا خو وي، لېکن مات سوي وي، نو دا د قربانۍ جواز نه منع کوي؛ ځکه د ښکر سره هيڅ مقصد متعلق نه وي، لهذا د هغوی د ماتېدلو باوجود قرباني جائز ده (ها! که ښکرېې له بېخه وخيږي چي د ماتېدو اثر يې تر ماغزو پوري ورسيږي، نو د هغه قرباني جائز نه ده [شامي ج: ۵، ص: ۲۰۵])

همدارنګه د خسي څاروي قرباني هم جائز ده؛ ځکه اولاً خو د خوټو (خصيتينو) سره هيڅ مقصد متعلق نه وي، او بل دليل حديث دی چې په عبارت کې ذکر سو.

والثولاء إلخ: حيوانات خو غير ذوي العقول دي، نو په دوی کي د جنون مطلب دا دی چې څاروی هسي دې خوا ها خوا ته ځغلي راځغلي او د لېوني غوندي چمونه کوي، نو که چيري خپل وابنه او خوراکه خوري، نو قرباني يې جائز ده، کنې جائز نه ده.

والجرباء إلخ: او که چيري څاروی خارښتي (په خارښت مبتلا) وي، نو د دې دوه حالتونه دي، د دغه خارښت په وجه به يې بدن ډنګر سوی وي يا به نه وي، که چيري ډنګر سوی وي، نو معلومه سوه چې خارښت يې پر غوښو اثر او سرايت کړی دی، نو قرباني يې جائز نه ده، او که بدن يې ډنګر سوی نه وي بلکي چاغ وي، نو ښکاره خبره ده چې د خارښت اثر پر پوست دی او غوښو ته يې سرايت نه دی کړی، نو ځکه قرباني يې جائز ده.

## هغه عيبونه چې د هغوی باوجود قرباني جائز ده

وَأَمَّا الْهَتْمَاءُ وَهِيَ الَّتِي لَا أَسْنَانَ لَهَا او پاته سو هتماء او دا هغه څاروی دی چې غاښونه يې نه وي فَعَنْ أَبِي يُوسُفَ أَنَّهُ يَعْتَبِرُ فِي الْأَسْنَانِ الْكَثْرَةَ وَالْقِلَّةَ نو روايت سوی دی چې امام ابو يوسف رَحِمَهُ الله د غاښو په هکله د ډېرښت او کمښت اعتبار کوي وَعَنْهُ إِنْ بَقِيَ مَا يُمْكِنُهُ الِاعْتِلَافُ بِهِ او له هغه څخه بل روايت دا نقل سوی دی چې که دومره [غاښونه] پاته وي چې په هغوی سره [څاروي لره] خوراک کول ممکن وي أَجْزَأَهُ نو [د قربانۍ لپاره] کافي کيږي لِحُصُولِ الْمَقْصُودِ د مقصود حاصلېدلو په وجه وَالسَّكَّاءُ وَهِيَ الَّتِي لَا أُذُنَ لَهَا خِلْقَةً او سکا، دا هغه څاروی دی چې له پيدايښته [مور زاده] غوږ نه لري لَا تَجُوزُ جائز نه دی لِأَنَّ مَقْطُوعَ أَكْثَرِ الْأُذُنِ إِذَا كَانَ لَا يَجُوزُ ځکه د کوم څاروي چې د غوږ اکثره حصه پرېکړل سوې وي کله چې هغه [په قرباني کې] جائز نه دی فَعَدِيمُ الْأُذُنِ

أَوْلَىٰ نو د کوم څاروي چې کردسره غوږ نه وي هغه به په درجه اولیٰ جائز نه وي وَهٰذَا الَّذِيْ ذَكَرْنَا إِذَا كَانَتْ هٰذِهِ الْعُيُوبُ قَائِمَةً وَقْتَ الشِّرَاءِ او دغه تفصیل کوم چې موږ ذکر کړی هغه وخت دی کله چې دا عیبونه درانیولو په وخت کي موجود وي وَلَوِ اشْتَرَاهَا سَلِيمَةً ثُمَّ تَعَيَّبَتْ بِعَيْبٍ مَانِعٍ [لیکن] که صحیح سالم څاروی رانیسي بیا هغه په داسي عیب سره عیبجن سي کوم چې له قرباني څخه مانع وي إِنْ كَانَ غَنِيًّا نو که چیري هغه [رانیونکی] مالدار وي عَلَيْهِ غَيْرُهَا نو پر هغه بل څاروی واجب دی وَإِنْ كَانَ فَقِيرًا او که غریب وي تُجْزِئُهُ هٰذِهِ نو هغه لره همدغه څاروی کافي دی لِأَنَّ الْوُجُوبَ عَلَى الْغَنِيِّ بِالشَّرْعِ ابْتِدَاءً لَا بِالشِّرَاءِ ځکه چې پر مالدار کس [د قرباني] واجبېدل له شروع څخه د شریعت په وجه دي، نه د رانیولو په وجه فَلَمْ تَتَعَيَّنْ بِهِ نو ځکه [د هغه په حق کي] دا [رانیول سوی] څاروی متعیّن نه دی وَعَلَى الْفَقِيرِ بِشِرَائِهِ بِنِيَّةِ الْأُضْحِيَّةِ او پر غریب کس [د قرباني واجبېدل] د قرباني په نیت د څاروي رانیولو په وجه دي فَتَعَيَّنَتْ نو [د غریب په حق کي] دا څاروی متعیّن سو وَلَا يَجِبُ عَلَيْهِ ضَمَانُ نُقْصَانِهِ او پر غریب کس د هغه د نقصان ضمان نسته كَمَا فِي نِصَابِ الزَّكَاةِ لکه څرنګه چې د زکاة په نصاب کي دي.

**اللغات:** ﴿اعتلاف﴾ د افتعال د باب مصدر دی: خوراکه (وابنه وغیره) خوړل. ﴿تعیبت﴾ د تفعّل له بابه د واحد مؤنث غائب ماضي صیغه ده: عیبداره (عیبجن) کېدل.

**تشریح:** د عبارت حاصل دا دی چې د کوم څاروي غابښونه نه وي، نو د هغه د قرباني په جواز او نا جواز کي له امام ابو یوسف رَحِمَهُ الله څخه دوه روایته نقل سوي دي: ① قلت او کثرت ته به کتل کیږي، یعني که اکثره غابښونه یې صحیح سالم وي، نو د هغه قرباني جائز ده. او که اکثره یې نه وي، نو قرباني یې جائز نه ده. ② دویم روایت دا دی چې د غابښو مقصود خوراکه (وابنه وغیره) خوړل دي. لهذا که د څاروي دومره غابښونه پاته وي چې خوراک په کولای سي، نو قرباني یې جائز ده، کنې جائز نه ده.

والسكاء إلخ: او کوم څاروی چې مور زاده (له پیدایښت څخه) غوږ نه لري، نو د هغه قرباني جائز نه ده؛ ځکه کله چې د اکثر غوږ پرېکېدو په صورت کي قرباني جائز نه ده. نو د بالکل معدوم کېدو صورت کي به په درجه اولیٰ جائز نه وي؛ ځکه مخکي تاسي وویل چې د څاروي غوږ هم مقصود اندام دی، او

د مقصود اندام معلوم والی د قربانۍ له جواز څخه مانع دی. ها! که چیري غوږونه یې کوچني وي، نو قرباني یې جائز ده.

وهذا الذی ذکرنا إلخ: فرمایي چي دا مخکیني ټوله تفصیلات هغه وخت دي کله چي د څاروي رانیولو په وخت کي دا عیبونه موجود وي، لیکن که څوک صحیح سالم څاروی رانیسي او بیا داسي عیب پکښي پیدا سي چي د هغه په وجه قرباني یې جائز پاته نه سي، نو په دې صورت کي حکم دا دی چي که دغه کس مالدار وي، نو پر هغه د بل څاروي رانیول ضروري دي، او که فقیر او غریب وي، نو همدا څاروی دي قرباني کړي.

او د مذکوره فرق وجه دا ده چي پر مالدار کس د خپل مالدار والي په وجه قرباني واجبیږي، نه د رانیولو په وجه (یعني هغه که څه هم څاروی رانیولی نه وي، خو بیا هم قرباني پر واجب او لازم ده)، نو د مالدار له طرفه رانیول سوی څاروی د مالدار د قربانۍ لپاره متعیّن نه سو. او پر غریب کس هغه وخت قرباني واجبیږي کله چي د قربانۍ په نیت څاروی رانیسي، نو د هغه رانیول سوی څاروی د قربانۍ لپاره متعیّن سو.

ولایجب علیه إلخ: او په دې څاروي کي چي کوم نقصان او کمي راغلې ده، آیا پر غریب د هغه ضمان (تاوان) واجب دی، نو فرمایي چي نه!، لکه څرنګه چي د زکاة په نصاب کي هم دغه حکم دی چي مثلاً که د یو چا سره درې لکه روپۍ وې چي د کال تېرېدو (حولان حول) په وجه زکاة پکښي واجب سو، خو تر اوسه هغه لا زکاة نه وو اداء کړی چي له هغوی څخه یو نیم لک روپۍ ضایع سوې، نو اوس به هغه صرف د ما بقي (یو نیم لک) زکاة ورکوي او د ضایع شده روپو نه ضامن کیږي (زکاة یې نه پر لازمیږي)، همداسي دلته هم دغه حکم دی.

## پر مذکوره قاعده متفرع شده مسئله

وَعَنْ هٰذَا الْأَصْلِ قَالُوْا: إِذَا مَاتَتِ الْمُشْتَرَاةُ لِلتَّضْحِيَةِ او د همدغه قاعدې مطابق فقهاؤ ویلي دي: چي کله د قربانۍ لپاره رانیول سوی څاروی مړ سي عَلَى الْمُوْسِرِ مَكَانَهَا أُخْرٰى نو پر مالدار کس د هغه پر ځای بل څاروی [رانیول] واجب دي وَلَا شَيْءَ عَلَى الْفَقِيْرِ او پر غریب کس هیڅ شی نسته وَلَوْ ضَلَّتْ أَوْ سُرِقَتْ او که چیري دا رانیول سوی څاروی ورک سي یا غلا کړی سي فَاشْتَرٰى أُخْرٰى او هغه [مشتري] بل څاروی رانیسي ثُمَّ ظَهَرَتِ الْأُوْلٰى فِيْ أَيَّامِ النَّحْرِ بیا د قربانۍ په ورځو کي هغه اول څاروی هم ښکاره سي [پیدا سي] عَلَى الْمُوْسِرِ ذَبْحُ إِحْدَاهُمَا نو پر مالدار کس له دوی څخه د یوه ذبح کول

واجب دي وَعَلَى الْفَقِيرِ ذَبْحُهَا او پر غريب کس د دواړو ذبح کول واجب دي.

**اللغات**: ﴿مشتراة﴾ دافتعال له بابه دواحد مؤنث مفعول صيغه ده: رانيول سوی، ﴿تضحية﴾ د تفعيل دباب مصدر دی: قرباني کول، څاروی قربانول. ﴿موسر﴾ دافعال له بابه دواحد مذکر اسم مفعول صيغه ده: پراخ لاسی، مراد: مالدار، شتمن.

**تشريح**: صاحب د هدايې رَحِمَهُ اللهِ فرمايي چي کله اُصول او قاعده دا ده چي پر مالدار کس د شريعت له طرفه د خپل مالدارۍ په وجه قرباني واجبيږي او د هغه رانيول سوي څاروي د قربانۍ لپاره نه متعين کيږي، او پر فقير کس د رانيولو په وجه قرباني واجبيږي او د هغه رانيول سوی څاروی د قربانۍ لپاره متعين کيږي، نو دغه قاعده په ياد لرئ! او دې مسئلې ته گورئ! چي که څوک د قربانۍ لپاره يو څاروی مثلاً پسه رانيسي، بيا هغه مړ سي، نو که چيري مشتري مالدار وي، نو پر هغه د بل څاروي قرباني واجب ده، ځکه د هغه په حق کي دا څاروی متعين نه دی، ها! که چيري مشتري فقير او غريب وي، نو پر هغه د بل څاروي قرباني واجب نه ده؛ ځکه چي د ده په حق کي خاص همدا پسه متعين وو او هغه هلاک سو، نو د ده له غاړي څخه قرباني هم ساقطه سوه.

يو صورت دا دی چي که د قربانۍ لپاره رانيول سوی پسه ورک سي يا يې څوک غلا کړي، بيا مشتري بل پسه رانيسي او د ايامِ نحر له تېرېدو څخه مخکي هغه ورک سوی پسه هم پيدا سي، نو اوس که چيري مشتري مالدار وي، نو هغه ته دا اختيار دی چي له دې دواړو پسونو څخه که هر يو قرباني کوي؛ ځکه چي له دواړو څخه يو هم د هغه په حق کي متعين نه دی، لهذ کوم چي وغواړي هغه دي قرباني کړي، د دواړو قرباني پر هغه واجب نه ده. ليکن که مشتري فقير وي، خو بيا هم بل پسه رانيسي او هغه مخکينی پسه يې هم پيدا سي، نو پر دغه فقير مشتري د دواړو قرباني اجب ده؛ ځکه چي رانيول د هغه په حق کي د قربانۍ واجبېدلو سبب دي او په رانيولو سره د قربانۍ لپاره د هغه څاروی هم متعين کيږي، نو ځکه دا غريب به دواړه څاروي قرباني کوي؛ ځکه چي دواړه يې د قربانۍ په نيت رانيولي.

## د څاروي د ذبح کولو په وخت کي د عيب پيدا کېدلو حکم

وَلَوْ أَضْجَعَهَا فَاضْطَرَبَتْ فَانْكَسَرَتْ رِجْلُهَا او که [د ذبح کولو لپاره] څاروی پرې باسي او هغه سره وغورځيږي نو پښه يې ماته سي فَذَبَحَهَا او [په همدې حال کي] هغه يې ذبح کړي أَجْزَأَهُ اِسْتِحْسَانًا عِنْدَنَا نو دا څاروی استحساناً زموږ په نېز کافي دی [قرباني يې جائز ده] خِلَافًا لِزُفَرَ وَالشَّافِعِيِّ په

خلاف د امام زفر او امام شافعي رَحِمَهُمَا الله لِأَنَّ حَالَةَ الذَّبْحِ وَمُقَدِّمَاتِهِ مُلْحَقَةٌ بِالذَّبْحِ ځکه چې د ذبح حالت او د هغه مقدّمات د ذبح سره ملحق دي فَكَأَنَّهُ حَصَلَ بِهِ نو ګواکې دا عیب د ذبح په وجه حاصل [پیدا] سو اِعْتِبَارًا قیاساً [د قیاس په اعتبار سره] وَحُكْمًا او د حکم په اعتبار سره وَكَذَا لَوْ تَعَيَّبَتْ فِي هٰذِهِ الْحَالَةِ فَانْفَلَتَتْ او همدارنګه که هغه په دې حالت کې عیبداره سي نو خوشي سي [و تښتېږي] ثُمَّ أُخِذَتْ مِنْ فَوْرِهِ بیا په هغه ګړي [سمدستي] ونیول سي [نو کافي دې او قرباني يې جائز ده] وَكَذَا بَعْدَ فَوْرِهِ عِنْدَ مُحَمَّدٍ او همدا رنګه څه ګړی وروسته [که ونیول سي نو هم کافي دی] د امام محمد رَحِمَهُ الله په نېز خِلَافًا لِأَبِي يُوسُفَ ❁ په خلاف د امام ابو یوسف رَحِمَهُ الله لِأَنَّهُ حَصَلَ بِمُقَدِّمَاتِ الذَّبْحِ ځکه چې دا عیب هم د ذبح په مقدماتو سره حاصل سوی دی.

**اللغات:** ﴿اضطربت﴾ د افتعال له بابه د واحد مؤنث غائب ماضي صیغه ده: ښوریدل، سره غورځیدل. ﴿انفلتت﴾ د انفعال له بابه مخکنۍ صیغه ده: په تېزي سره خلاصېدل او خوشي کېدل (خلاصون او نجات موندل).

**تشریح:** د عبارت حاصل دا دی چې د ذبح مقدمات د ذبح سره ملحق دي، نو که د ذبح پر مهال په څاروي کې څه نقص او عیب پیدا سي، نو هغه د قربانۍ جواز نه منع کوي.

**وكذا لو تعيّبت إلخ:** د دې حاصل دا دی چې کله څاروی د ذبح لپاره پرې باسي او ذبح کول يې شروع کړي، نو په دې دوران کې هغه ځان خلاص کړي او وتښتي او يو عیب پکښې پیدا سي، خو بیا سمدستي هغه ونیسي او ذبح يې کړي، نو هم يې قرباني جائز ده؛ ځکه چې دا صورت هم د ذبح له مقدّماتو څخه دی، نو ځکه هغه به د ذبح سره لاحقول کیږي. او امام محمد رَحِمَهُ الله فرمايي چې که تر تښتېدو څه ګړی وروسته هم هغه ونیول سي او ذبح کړل سي، نو هم د هغه قرباني جائز ده. لېکن امام ابو یوسف رَحِمَهُ الله فرمايي چې که هغه ناوخته ونیول سي، نو قرباني يې نه صحیح کیږي؛ ځکه کله چې هغه سمدستي نه ونیول سي او سمدستي ذبح نه کړی سي، نو د هغه عیبداره کېدل د ذبح له مقدماتو څخه ووتل، نو ځکه هغه به د ذبح سره نه لاحقول کیږي.

---

❁ القول الراجح: قول محمد رَحِمَهُ الله، لأنه قوله هو الاستحسان، وكذا في الدر المنتقى (ج:۴، ص:۱۷۳،۱۷۲)، والبحر الرائق (ج:۸، ص:۳۲۴). [القول الراجح ج:۲، ص:۲۹۶]

## د قرباني لپاره کوم څارویان خاص دي؟

قَالَ: وَالْأُضْحِيَةُ مِنَ الْإِبِلِ وَالْبَقَرِ وَالْغَنَمِ فرمايي: او قرباني به له اوښانو، غویانو او پسونو څخه کیږي لِأَنَّهَا عُرِفَتْ شَرْعًا ځکه چې همدا څارویان شرعاً پېژندل سوي دي [یعني په شریعت کي د همدوی قرباني منقوله او معروفه ده] وَلَمْ تُنْقَلِ التَّضْحِيَةُ بِغَيْرِهَا مِنَ النَّبِيِّ ﷺ وَلَا مِنَ الصَّحَابَةِ رَضِيَ اللهُ عَنْهُمْ او له دوی څخه بغیر د نورو څارویو قرباني له نبي کریم ﷺ او صحابه وو رضی الله عنهم څخه نقل سوې نه ده.

**اللغات**: ﴿إبل﴾ اسم جنس، لا واحد له من لفظه، يقع على الواحد والجمع: الجمال، وإذا قيل آبال فالمراد به القطيع، ﴿البقر﴾ اسم جنس، يُطلق على الذكر والانثى، يَشمل الثور والجاموس، والبقرة ايضًا تقع على الذكر والانثى، ﴿الغنم﴾ بفتح الغين والنون، لا واحد له من لفظه، والواحدة منه شاة، ج أغنام: اسم يشمل الشياه والماعز. والشاة: الْوَاحِدَة من الضَّأن والمعز (يُقَال للذّكر وَالْأُنْثَى). (معجم لغة الفقهاء. معجم الوسيط)

**تشريح**: فرمايي د قرباني لپاره فقط دا درې قسمه څارویان خاص دي: ① اوښان (مذکر ومؤنث)، ② غویان او ګامیښي (مذکر ومؤنث)، ③ پسونه او میږي، وزګري او بزې.

ځکه له دې څخه بغیر د بل څاروي قرباني له نبي کریم ﷺ او د هغه له صحابه وو څخه منقوله نه ده. بلکي صرف پر همدغه څارویو له نبوي دور څخه قرباني را روانه ده.

## د قرباني د جواز لپاره د څارویو د کم عمر بیان

قَالَ: وَيُجْزِئُ مِنْ ذٰلِكَ كُلِّهِ الثَّنِيُّ فَصَاعِدًا فرمايي: او له دغه ټولو څارویو څخه ثني یا تر دې زیات عمر والا [د قرباني لپاره] کافي دی إِلَّا الضَّأْنَ فَإِنَّ الْجَذَعَ مِنْهُ يُجْزِئُ ماسوا له پسه [او میږي] څخه چې د هغه جذع [وری] هم کافي دی لِقَوْلِهِ عَلَيْهِ السَّلَامُ: «ضَحُّوا بِالثَّنَايَا [1] د نبي کریم ﷺ د دې فرمان په وجه چې: تاسي ثني څارویان ذبح کوئ! إِلَّا أَنْ يَعْسُرَ عَلَى أَحَدِكُمْ مګر دا چې که [قرباني د] هغه مشکل وي په تاسو کي پر یوه فَلْيَذْبَحِ الْجَذَعَ مِنَ الضَّأْنِ» نو هغه دي د پسه جذع ذبح کړي وَقَالَ عَلَيْهِ السَّلَامُ: «نِعْمَتِ [2] الْأُضْحِيَةُ الْجَذَعُ مِنَ الضَّأْنِ» او نبي ﷺ فرمایلي دي چې: ډېر ښه قرباني ده د پسه

---

[1] تخريج: أخرجه ابوداؤد بمعناه، باب ما يجوز في الضحايا من السن، ص:۴۰۷، حديث رقم:۲۷۲۹. والنسائي في كتاب الضحايا، حديث رقم:۴۳۸۳.

[2] تخريج: أخرجه الترمذي، باب ما جاء في الجذع من الضأن في الأضاحي ص:۳۶۴، حديث رقم:۱۴۹۹.

جذع قَالُوا: وَهٰذَا إِذَا كَانَتْ عَظِيمَةً بِحَيْثُ لَوْ خُلِطَتْ بِالثُّنْيَانِ فقهاؤ فرمايلي دي: او دا هغه وخت [کافي ده] کله چي جذع دومره غټه [چاغه] وي چي که د ثني څاروېو سره يو ځای کړل سي يَشْتَبِهُ عَلَى النَّاظِرِ مِنْ بَعِيدٍ نو دليدي شخصه پر کتونکي کس مشتبه سي [چي دا اوس جذع ده که ثني] وَالْجَذَعُ مِنَ الضَّأْنِ مَا تَمَّتْ لَهُ سِتَّةُ أَشْهُرٍ فِي مَذْهَبِ الْفُقَهَاءِ او د پسه جذع دا ده چي شپږ مياشتي يې پوره سوي وي، په مذهب د فقهاؤ کي [يې دا تعريف سوی دی] وَذَكَرَ الزَّعْفَرَانِيُّ أَنَّهُ ابْنُ سَبْعَةِ أَشْهُرٍ او زعفراني رَحِمَهُ الله ذکر کړي دي چي د پسه جذع د اوو مياشتو بچی دی [يعني چي د اوو مياشتو وي هغه ته جذع وايي] وَالثَّنِيُّ مِنْهَا وَمِنَ الْمَعْزِ سَنَةٌ او له پسو او بزو [وزو] څخه ثني ديوه کال بچی دی وَمِنَ الْبَقَرِ ابْنُ سَنَتَيْنِ او له غواوو [غواګانو] څخه د دوو کالو بچی [ثنی] دی وَمِنَ الْإِبِلِ ابْنُ خَمْسِ سِنِينَ او له اوښانو څخه د پنځو کالو بچی [ثني] دی وَيَدْخُلُ فِي الْبَقَرِ الْجَامُوسُ او په غواوو کي کامیښه هم داخله ده لِأَنَّهُ مِنْ جِنْسِهِ ځکه چي هغه د همدوی له جنس څخه ده وَالْمَوْلُودُ بَيْنَ الْأَهْلِيِّ وَالْوَحْشِيِّ يَتْبَعُ الْأُمَّ او د کورني او وحشي حيوان تر مينځ پيدا سوی بچی د خپل مور تابع کيږي لِأَنَّهَا هِيَ الْأَصْلُ فِي التَّبَعِيَّةِ ځکه په تابع والي کي همدا مور اصل ده حَتَّى إِذَا نَزَا الذِّئْبُ عَلَى الشَّاةِ تر دې چي که لېوه پر بزې [یا میږي] وغورځيږي [جفتي او جماع ورسره وکړي] يُضَحَّى بِالْوَلَدِ نو بچی يې قربانول کېدای سي [ځکه بچی د خپلي مور (شاة) تابع دی].

**اللغات:** ﴿ثني﴾ د څاروېو هغه بچی چي د مخ دوه غاښونه (پورتني، لانديني) يې وخيږي، (كلّ ما سقطت ثنيته)، نور په هر جنس کي يې عمر جلا دی چي هغه مصنف رَحِمَهُ الله ذکر کړی دی، ﴿جَذَع﴾ (بفتحتين): د څاروېو کوچني بچي ته وايي چي په هر جنس کي يې عمر جلا دی: جمع: جِذَاع، او جِذَع ښاخ او تنې ته وايي، جمع: جُذُوع. ﴿الضأن﴾ "ذو الصوف من الغنم": يعني ميږي او پسونه، پر واحد او جمع دواړو يې اطلاق کيږي، همدارنګه يوه پسه او ميږي ته "ضَائِنٌ او ضَائِنَةٌ" وايي. ﴿معز﴾ بزې (وزې) او سېرليان، همدارنګه يوه سېرلي او بزې ته "مَاعِزٌ او مَاعِزَةٌ" وايي، عربي قاموسونو يې داسي تعريف کړی دی: "ذو الشعر من الغنم، خلاف الضأن"، ﴿الزعفراني﴾ له دې

ځخه مراد حسن بن احمد بن مالك ابوعبد الله الفقيه الزعفراني رَحِمَهُ الله دى كوم چې د جامع صغير مرتب دى، د ده يو كتابُ الأضاحي دى، په هغه كې يې دا پورتنۍ خبره كړې ده. ﴿جاموس﴾ ګامېښه، مېښه، ﴿شاة﴾ عام اسم دى، پر پسه، مېږې، وزګړي او بزه ټولو يې اطلاق كېږي (لكه مخكې چې هم څو ځله مورږ دا ذكر كړي دي). (معجم لغة الفقهاء، معجم الوسيط، مصباح المنير)

**تشريح:** په دې عبارت كې د قربانۍ د جواز لپاره داوښ، غويي او پسه عمرونه بيانوي، مختصر حاصل يې دا دى چې له دې ټولو څارويو څخه ثني يا تر دې زيات عمر والا بچي د قربانۍ لپاره جائز دى، او تر ثني كم عمر والا څاروي قربانول پكار نه دي، د پسه جذع هم د قربانۍ لپاره كافي ده؛ ځكه نبي كريم ﷺ د ثني د قربانۍ ترغيب كړى دى او د تنګلاسۍ په وخت كې يې د پسه د جذع د قربانۍ اجازت فرمايلى دى، همدارنګه د پسه جذع هم نبي ﷺ غوره او بهترينه قرباني ګڼلې ده، خو څرنګه چې جذع ډېر كوچنى وي، نو ځكه فقهاؤ د جذع په هكله د چاغښت او صحت قيد لګولى دى، چې هغه به دومره ښكاري چې كه په ثني (يعني ديوه كال په) وريانو كې ايله كړى سي، نو د ليرې څخه يې فرق كول مشكل وي (چې آيا دا اوس جذع ده كه ثني).

والجذع من الضأن إلخ: له دې ځايه د جذع وغيره تفصيلي بيان كوي، فرمايي چې د فقهاؤ په اصطلاح كې د پسه شپږ مياشتني بچي (وري) ته جذع وايي، خو په لغت كې جذع د پسه هغه بچي ته وايي كوم چې د پوره يو كال وي، په همدې وجه صاحب د هدايې دلته د "في مذهب الفقهاء" قيد لګولى دى چې دا تعريف يې د فقهاؤ په نېز دى. خو د امام زعفراني رَحِمَهُ الله په نېز د اوو مياشو بچي ته جذع ويل كېږي. د پسه او بزې ديوه كال بچي ته ثني وايي، د غوا دوه كلن بچي ته ثني وايي او د اوښ پنځه كلن بچي ته ثني وايي. غوا او ګامېښه سره همجنس دي، نو ځكه كوم حكم چې د غوا د بچي دى، هغه د ګامېښې د بچي هم دى.

والمولود إلخ: فرمايي چې بچى د خپل مور تابع كېږي؛ ځكه بچى د مور جزء وي نو همدا مور په تبعيت كې اصل ده. او تاسي ته معلومه ده چې قرباني صرف د اهلي او كورني څارويو صحيح كېږي كوم چې وحشي نه وي، لهذا كه ديو بچي مور اهلي وي مثلاً بزه يا مېږه وي او پلار يې وحشي مثلاً لېوه وي، نو د هغه قرباني جائز ده؛ ځكه چې د قربانۍ د صحت او جواز لپاره اهلي والى شرط دى، او دلته مور اهلي ده، نو بچى به يې هم اهلي شمېرل كېږي، لهذا د هغه قرباني جائز ده. خو كه مور وحشي مثلاً هوسۍ وغيره وي او پلار اهلي مثلاً وزګړى وي، څرنګه چې په دې صورت كې بچى اهلي نه دى، نو ځكه قرباني يې نه صحيح كېږي.

## د قرباني له شريکانو څخه د يوه شريک د مرګ يو خاص صورت

قَالَ: وَإِذَا اشْتَرَى سَبْعَةٌ بَقَرَةً لِيُضَحُّوا بِهَا فرمايي: او کله چي اووه کسان يوه غوا رانيسي د دې لپاره چي قرباني پې کړي فَمَاتَ أَحَدُهُمْ قَبْلَ النَّحْرِ بيا تر ذبح [قرباني] مخکي له دوی څخه يو مړ سي وَقَالَتِ الْوَرَثَةُ: اِذْبَحُوهَا عَنْهُ وَعَنْكُمْ او وارثان [شريکانو ته] ووايي چي: تاسي دا د مړي له طرفه او له خپله طرفه ذبح کړئ أَجْزَأَهُمْ نو دا [قرباني] دوی لره کافي کيږي وَإِنْ كَانَ شَرِيكُ السِّتَّةِ نَصْرَانِيًّا أَوْ رَجُلًا يُرِيدُ اللَّحْمَ او که د شپږو کسانو [اووم] شريک نصراني وي يا داسي کس وي کوم چي د غوښو اراده لري [نه د قرباني] لَمْ يُجْزِ عَنْ وَاحِدٍ مِنْهُمْ نو په دوی کي د يوه له طرفه هم نه کافي کيږي وَوَجْهُهُ أَنَّ الْبَقَرَةَ تَجُوزُ عَنْ سَبْعَةٍ او د دې وجه دا ده چي غوا د اوو کسانو له طرفه کافي کيږي وَلَكِنَّ مِنْ شَرْطِهِ أَنْ يَكُونَ قَصْدُ الْكُلِّ الْقُرْبَةَ خو د هغه شرط دا دی چي د ټولو اراده به قربت وي وَإِنِ اخْتَلَفَتْ جِهَاتُهَا که څه هم د قربت جهات مختلف وي كَالْأُضْحِيَّةِ وَالْقِرَانِ وَالْمُتْعَةِ لکه [جهت د] قرباني او قران او تمتع عِنْدَنَا زموږ په نيز لِاتِّحَادِ الْمَقْصُودِ وَهُوَ الْقُرْبَةُ د مقصود د يووالي په وجه چي هغه قربت دی [يعني د دغه ټولو جهاتو مقصود قربت دی] وَقَدْ وُجِدَ هَذَا الشَّرْطُ فِي الْوَجْهِ الْأَوَّلِ او دغه شرط په اول صورت کي موجود دی لِأَنَّ التَّضْحِيَةَ عَنِ الْغَيْرِ عُرِفَتْ قُرْبَةً ځکه چي د بل چا له طرفه قرباني کول هم قربت پيژندل سوې ده [يعني د بل چا له طرفه قرباني هم قربت او عبادت شمېرل سوې ده] أَلَا تَرَى أَنَّ النَّبِيَّ عَلَيْهِ الصَّلَاةُ وَالسَّلَامُ ❶ ضَحَّى عَنْ أُمَّتِهِ آيا ته نه ګورې چي نبي ﷺ د خپل امت له طرفه قرباني کړې ده عَلَى مَا رَوَيْنَا مِنْ قَبْلُ لکه څرنګه چي مخکي موږ دا حديث روايت کړی وَلَمْ يُوجَدْ فِي الْوَجْهِ الثَّانِي او په دويم صورت کي دا شرط [د قربت] موجود نه دی لِأَنَّ النَّصْرَانِيَّ لَيْسَ مِنْ أَهْلِهَا ځکه چي نصراني د قربت اهل نه دی وَكَذَا قَصْدُ اللَّحْمِ يُنَافِيهَا او همدارنګه د غوښو خوړلو اراده [نيت] د قربت منافي دی وَإِذَا لَمْ يَقَعِ الْبَعْضُ قُرْبَةً او کله چي بعضي حصه [يعني د نصراني او قاصد اللحم حصه] قربت واقع نه سوه وَالْإِرَاقَةُ لَا تَتَجَزَّأُ فِي حَقِّ الْقُرْبَةِ حال دا چي وينه بهول [قرباني کول] د

---

❶ تخريج: أخرجه ابن ماجه، باب أضاحى رسول الله ﷺ، ص:۴۵۵، حديث رقم:۳۱۲۲.

قربت په حق كي نه متجزي كيږي [يعني داسي نه سي كېدلاى چي د قرباني يو جزء او حصه قربت واقع سي او بل جزء يې قربت نه سي، لهذا كله چي داسي ده] لَمْ يَقَعِ الْكُلُّ أَيْضًا نو ټوله [قرباني (اضحيه)] قربت واقع نه سوه فَامْتَنَعَ الْجَوَازُ نو د قرباني جواز ممتنع سو [يعني د قرباني جائز كېدل منع او ناممكن سوه] وَهٰذَا الَّذِيْ ذَكَرَهُ اِسْتِحْسَانٌ او دا كوم څه چي امام محمد رَحِمَهُ الله ذكر كړي دي [چي د وارثانو تر اجازت وروسته د مړي له طرفه قرباني جائز كيږي] دا استحسان دى [كنې د قياس تقاضا دا ده چي جواز نه لري].

**اللغات:** ﴿قربة﴾ د نېكۍ كار، عبادت او طاعت (هر هغه د نېكۍ كار چي په هغه سره ثواب او قرب الهي مطلوب وي)، ﴿إراقة﴾ د افعال د باب مصدر دى: (وينه) بيول، بهول، ﴿لا تتجزأ﴾ د تفعّل له بابه د نفي صيغه ده: جزء، جزء كېدل (حصه، حصه كېدل)، ټوټه، ټوټه ټوټه كېدل، ﴿استحسان﴾ د دې تعريف خو څرګند دى، خو په بله او آسانه وينا يې تعريف داسي هم كېداى سي چي: كه په يو كار كي د قياس تقاضا دا وي چي هغه نه جائز كېدل پكار دي لېكن د هغه جائز كېدلو ته د اُمت ضرورت او مجبوري وي، نو د هغه كار جائز كولو ته "استحسان" وايي. (اثمان الهدايه)

**تشريح:** عبارت څرګند او آسانه دى چي له ترجمې څخه هم معلوميږي، خو په لنډه توګه حاصل يې دا دى چي په قرباني كي دا ضروري ده چي هغه په كامله توګه قربت (عبادت) واقع سي، او كه داسي نه وي، نو قرباني نه جائز كيږي، لهذا كه د يوه شريك مقصد خاص الخاص غوښې وي او نيت د قربت او عبادت يې نه وي، نو د يوه قرباني هم نه جائز كيږي.

همدارنګه كه له شريكانو څخه يو شريك نصراني وي، نو څرنګه چي هغه د قربت اهل نه دى او د عبادت قابل نه دى، نو ځكه په دې صورت كي هم د يوه قرباني نه جائز كيږي.

لنډه دا چي د قربت نيت كول ضروري دي.

او كه چيري د قربت جهات بدل سي، نو هيڅ حرج نسته، مثلاً كه يو شريك د قرباني نيت وكړي او بل د دم قِران نيت وكړي او درېيم شريك د دم تمتع نيت وكړي، نو جائز دي؛ ځكه چي په قربت كي ټوله سره يو او متحد دي.

لأن الأضحية إلخ دا د يو سوال جواب هم دى، هغه دا چي د قربت لپاره خو د مباشر (قربت كونكي) وجود ضروري دى چي هغه به موجود وي، لهذا د مړه شريك له طرفه څنګه قرباني جائز كيږي؟، نو فرمايي چي دا ضروري نه ده، بلكي انسان د بل چا (ناموجوده كس) له طرفه هم قرباني كولاى سي او هغه د بل چا له طرفه هم قربت واقع كيږي؛ لكه څرنګه چي د نبي كريم ﷺ عمل پر همدې دلالت كوي، نو معلومه سوه چي كه د مړي له طرفه د هغه وارثان شريكانو ته اجازت وركړي، نو قرباني جائز ده، خو دا

حکم استحسان دی، او د قیاس تقاضا دا ده چي تر اجازت وروسته هم قرباني جائز نه سي، لکه څرنګه چي په راوان عبارت کي ذکر سوي دي.

## د پورتنی مسئلي نور وضاحت

وَالْقِيَاسُ أَنْ لَا يَجُوْزَ او قیاس دا دی چي جائز نه وي وَهُوَ رِوَايَةٌ عَنْ أَبِيْ يُوْسُفَ او همدا له امام ابو یوسف رَحِمَهُ الله څخه یو روایت هم دی لِأَنَّهُ تَبَرُّعٌ بِالْإِتْلَافِ ځکه چي دا په اتلاف [مال ضایع کولو] سره تبرّع ده [یعني دا د تبرّع په توګه مال ضایع کول دي] فَلَا يَجُوْزُ عَنْ غَيْرِهِ کوم چي د بل چا له طرفه جائز نه دي كَالْإِعْتَاقِ عَنِ الْمَيِّتِ لکه د مړي له طرفه آزادول [چي جائز نه دي] لٰكِنَّا نَقُوْلُ: الْقُرْبَةُ قَدْ تَقَعُ عَنِ الْمَيِّتِ لیکن موږ وایو چي قربت د مړي له طرفه هم واقع کیږي كَالتَّصَدُّقِ لکه صدقه [خیرات] کول بِخِلَافِ الْإِعْتَاقِ په خلاف [د مړي له طرفه] د آزادولو لِأَنَّ فِيْهِ إِلْزَامَ الْوَلَاءِ عَلَى الْمَيِّتِ ځکه چي په دې کي پر مړي د ولاء لازمول سته [او دا جائز نه دي، نو ځکه د هغه له طرفه آزادول هم جائز نه دي] وَلَوْ ذَبَحُوْهَا عَنْ صَغِيْرٍ فِي الْوَرَثَةِ أَوْ أُمِّ وَلَدٍ او که دوی په وارثانو کي د یو موجود کوچني له طرفه یا د اُم ولد له طرفه دا څاروی [غوا] ذبح کړي جَازَ نو هم جائز دي لِمَا بَيَّنَّا أَنَّهُ قُرْبَةٌ د هغه دلیل په وجه کوم چي موږ بیان کړی چي دا قربت دی [او صغیر او اُم ولد هم د قربت اهل دي] وَلَوْ مَاتَ وَاحِدٌ مِنْهُمْ او که له دوی [شریکانو] څخه یو مړ سي فَذَبَحَهَا الْبَاقُوْنَ بِغَيْرِ إِذْنِ الْوَرَثَةِ بیا پاته شریکان [د مړه شریک] د وارثانو له اجازت څخه بغیر څاروی ذبح کړي لَا يُجْزِيْهِمْ نو دا دوی لره نه کافي کیږي [یعني د یوه قرباني هم نه جائز کیږي] لِأَنَّهُ لَمْ يَقَعْ بَعْضُهَا قُرْبَةً ځکه چي بعضي حصه یې [یعني د مړه شریک حصه] قربت واقع نه سوه [نو پاته به هم قربت نه وي] وَفِيْمَا تَقَدَّمَ وُجِدَ الْإِذْنُ مِنَ الْوَرَثَةِ او په مخکیني صورت کي د وارثانو له طرفه اجازت سوی دی فَكَانَ قُرْبَةً نو ځکه هغه قربت [واقع سوی] وو.

**اللغات**: ﴿تبرع﴾ د تفعّل د باب مصدر دی: نېکي او احسان کول، داسي کار کول کوم چي د انسان پر ذمه واجب نه وي لکه وصیت، هبه او داسي نور، نفلي او غیر لازم کار. ﴿إتلاف﴾ د افعال د باب مصدر دی: تلفول، ضایع کول. ﴿قربة﴾ د دې تعریف مخکي تېر سو.

**تشریح**: فرمايي د قياس تقاضا دا ده چي د وارثانو د اجازت باوجود دا قرباني جائز نه ده، او د امام ابو يوسف رَحِمَهُ الله روايت هم دغه دی؛ ځکه د مړه شریک تر مرګ وروسته وارث د هغه د حصې مالک سو، نو اوس چي وارث د قرباني اجازت ورکوي دا تبرّع بالاتلاف ده يعني داسي نفلي کار دی کوم چي د مال ضايع کولو په ذريعه حاصليږي، او د تبرّع په توګه د مړي له طرفه مال ضايع کول جائز نه دي لکه څرنګه چي د مړي له طرفه د هغه غلام آزادول جائز نه دي، او وجه یې همدا ده چي په دې کي تبرع بالاتلاف راځي، لېکن موږ پر استحسان عمل کوو؛ او د استحسان دليل دا دی چي د مړي له طرفه هم قربت واقع کيږي، لکه د مړي له طرفه صدقه او خيرات کول، او د مړي له طرفه حج کول؛ ځکه چي وارثانو لره دا حق سته چي د مړي له طرفه د ثواب کار وکړي، نو دلته د دوی په اجازت سره د مړه شريک حصه هم د نورو شريکانو د حصو په څېر قربت واقع سوه، نو ځکه دا قرباني جائز ده.

بخلاف الإعتاق إلخ: پاته سو إعتاق عن الميت، نو هغه ځکه نه جائز کيږي چي په دې صورت کي د غلام ولاء او ميراث مُعتَق (آزادونکي مالک) لره حاصليږي، او په مړي کي د مالک جوړېدو اهليت نه وي، لهذا کله چي په إعتاق عن الميت کي پر مړي د ولاء لازمول سته (ځکه چي د مړي له طرفه د غلام آزادولو پر بناء به ولاء مړي ته حاصليږي)، نو ځکه دا جائز نه دي، او په قرباني کي پر مړي د هيڅ شي لازمول نسته، نو ځکه د هغه په جائز کېدو کي څه خبره نسته.

ولوذبحوها إلخ: يعني که له دې (اوو) شريکانو څخه يو شريک کوچنی (صغير) وي، يا أُم ولد وي، او د کوچني له طرفه د هغه پلار يا د أُم ولد له طرفه د هغې مالک قرباني وکړي يا يې اجازت ورکړي، نو دا قرباني جائز ده. يعني دا دواړه د قرباني په څاروي کي شريکان وي بيا دوی مړه سي او پلار يا مالک يې د قرباني کولو اجازت ورکړي، نو قرباني جائز ده او د ټولو شريکانو قرباني جائز کيږي؛ ځکه کوچنی يا أُم ولد چي کله مسلمان وي، نو دوی هم د قربت او ثواب اهل دي؛

او که په مخکيني صورت کي شريکان د وارثانو له اجازت څخه بغير قرباني وکړي، نو ديوه قرباني هم نه جائز کيږي؛ ځکه د اجازت د نشتوالي په وجه د مړه شريک په حق کي قربت معدوم سو (يعني په څاروي کي د مړه شريک حصه قربت واقع نه سوه)، نو دیوه د قربت نشتوالي په وجه د ټولو قرباني نه جائز کيږي.

## د قرباني د غوښو مصارف

| قَالَ: وَيَأْكُلُ مِنْ لَحْمِ الْأُضْحِيَةِ فرمايي: او قرباني کونکی کس د قرباني غوښي خوړلای سي وَيُطْعِمُ الْأَغْنِيَاءَ وَالْفُقَرَاءَ او په مالدارانو او فقيرانو يې [هم] خوړلای سي [يعني د قرباني له غوښو څخه غريبانو او مالدارانو ته هم ورکولای سي] وَيَدَّخِرُ او ذخيره جمعي يې هم کولا سي [يعني خوندي کولای يې هم |
|---|

سي] لِقَوْلِهِ عَلَيْهِ الصَّلَاةُ وَالسَّلَامُ [1] : «كُنْتُ نَهَيْتُكُمْ عَنْ أَكْلِ لُحُومِ الْأَضَاحِيِّ دنبي کريم ﷺ د دې فرمان په وجه: ما تاسي د قربانيو له غوښو څخه منع کولاست فَكُلُوا مِنْهَا وَادَّخِرُوا» نو [اوس] تاسي له هغه څخه خوراک او ذخيره جمعي کوئ! وَمَتَى جَازَ أَكْلُهُ وَهُوَ غَنِيٌّ او کله چي د قرباني کونکي لپاره د قربانۍ غوښي خوړل جائز دي په داسي حال کي چي دئ مالدار [هم] دی جَازَ أَنْ يُؤْكِلَهُ غَنِيًّا نو د ده لپاره به دا [هم] جائز وي چي په يو مالدار کس هغه وخوري قَالَ: وَيُسْتَحَبُّ أَنْ لَا يَنْقُصَ الصَّدَقَةَ عَنِ الثُّلُثِ فرمايي: او مستحب دا ده چي صدقه له دريمي حصې څخه کمه نه کړي [يعني چي توله غوښي درې حصې کړل سي، نو له هغوی څخه يوه حصه پوره صدقه کول مستحب دي] لِأَنَّ الْجِهَاتِ ثَلَاثَةٌ: الْأَكْلُ وَالِادِّخَارُ لِمَا رَوَيْنَا وَالْإِطْعَامُ لِقَوْلِهِ تَعَالَى ځکه چي جهتونه درې دي: ① خپله خوړل ② او ذخيره کول [دا دواړه] د هغه حديث په وجه کوم چي موږ روايت کړی ③ او په نورو خوړل [دا] د الله تعالیٰ د دې فرمان په وجه ﴿وَأَطْعِمُوا الْقَانِعَ وَالْمُعْتَرَّ﴾ [الحج: ۳۶] او تاسي يې په صابر او سوالگر وخورئ! فَانْقَسَمَ عَلَيْهِمْ أَثْلَاثًا نو د قربانۍ غوښي پر دوی [جهات ثلاثه وو] په دريو حصو سره تقسيم سوې [چي د هر يوه لپاره يو ثلث يعني دريمه حصه سوه]

**اللغات:** ﴿الأُضحية﴾ قرباني يعني د قربانۍ څاروی، اختری، ﴿يُطعم﴾ د افعال د باب مصدر دی، أَطْعَمَ يُطْعِمُ إِطْعَامًا: په خوړل (په بل چا يو شی خوړل)، د خوراک لپاره يو شی ورکول، ﴿يدّخر﴾ د افتعال د باب مضارع ده: ذخيره کول، خوندي ساتل، ﴿قانع﴾ د سمع د باب اسم فاعل دی: قناعت کونکی (چي څه وي بس په هغه قناعت کوي او له بل چا څخه سوال او خواست نه کوي) صابر کس، ﴿معتر﴾ د افتعال د باب اسم فاعل دی: سوالگر، درويزگر، د سوال او خيرات غوښتني لپاره پېښېدونکی.

**تشريح:** په دې عبارت کي د قربانۍ د غوښو په هکله تفصيل بيانوي، فرمايي چي قرباني کونکی کس برابره ده مالدار وي او که تنګلاسی وي، د هغه لپاره د قربانۍ غوښي خوړل، بل چا ته ورکول يا خوندي کول دا درې سره جائز دي، که څه هم نبي ﷺ يو وخت له دې څخه منع کړې وه چي تر دريو ورځو زيات غوښي ذخيره کړل سي، لېکن وروسته نبي کريم ﷺ دا ممانعت ختم کړی او د مطلق ادّخار اجازت يې ورکړی.

---

[1] تخريج: اخرجه مسلم، باب بيان ما كان من النهى عن اكل لحوم الأضاحى بعد ثلاث إلخ، ص: ۸۸۰، حديث رقم: ۱۹۷۲/ ۵۱۰۴. وابو داؤد، باب حبس لحوم الأضاحي ص: ۴۱۰، حديث رقم: ۲۸۱۳.

وحق جاز إلخ: صاحب د هدايې رَحِمَهُ الله په دلالة النص سره دليل نيسي فرمايي چې کله مالدار قرباني کونکي لره د قربانۍ غوښې خوړل جائز دي، نو مالدار کس په خپلو ملګرو او دوستانو هم هغه غوښې خوړلای سي، په دې کې هيڅ قباحت نسته.

ويستحب إلخ: فرمايي چې په قرآن او حديث کې د قربانۍ د غوښو درې جهتونه ثابت سوي دي: ① خپله خوړل، ② په بل چا خوړل (ورکول)، ③ ذخيره کول (خوندي کول)، نو ځکه مستحب دا ده چې غوښې درې حصې کړل سي، پر دريو جهتونو تقسيم سي، په همدې وجه فرمايي چې له يوې (دريمې) حصې څخه کم صدقه کول غير مستحب او نا مناسب دي. او دليل د دې خبرې چې جهات درې دي يو خو دا حديث دی "فَكُلُوا مِنْهَا وَادَّخِرُوْا" چې په دې سره دوه جهتونه يعني أکل او ادّخار ثابتيږي او بل دليل د قرآن کريم دا آيت دی ﴿وَأَطْعِمُوا الْقَانِعَ وَالْمُعْتَرَّ إلخ﴾ چې په دې سره بل جهت يعني إطعام ثابتيږي.

## د قربانۍ د څرمن مصارف

قَالَ: وَيَتَصَدَّقُ بِجِلْدِهَا فرمايي: او د قربانۍ څرمن دې صدقه کړي لِأَنَّهُ جُزْءٌ مِنْهَا ځکه چې څرمن هم د قربانۍ جزء ده أَوْ يَعْمَلُ مِنْهُ آلَةً تُسْتَعْمَلُ فِي الْبَيْتِ يا دې له څرمن څخه داسې شی جوړ کړي کوم چې په کور کې استعمالول کيږي كَالنِّطْعِ وَالْجِرَابِ وَالْغِرْبَالِ وَنَحْوِهَا لکه سترخان [سرخان]، خلته، غلبيل او داسې نور لِأَنَّ الِانْتِفَاعَ بِهِ غَيْرُ مُحَرَّمٍ ځکه له څرمن څخه نفع اخيستل حرام نه دي وَلَا بَأْسَ بِأَنْ يَشْتَرِيَ بِهِ مَا يَنْتَفِعُ فِي الْبَيْتِ بِعَيْنِهِ مَعَ بَقَائِهِ او هيڅ پروا نسته په دې کې چې د قربانۍ په څرمنې سره داسې شی رانيسي چې په کور کې د هغه په عين [يعني په خودي هغه] سره نفع اخيستل کېدای سي د هغه د پاته والي باوجود [يعني چې په نفع اخيستلو سره نه ختميږي لکه سرخان وغيره] اِسْتِحْسَانًا دا حکم د استحسان په توګه دی وَذٰلِكَ مِثْلُ مَا ذَكَرْنَا او دا لکه هغه شيان کوم چې موږ ذکر کړه [يعني سترخان وغيره] لِأَنَّ لِلْبَدَلِ حُكْمَ الْمُبْدَلِ ځکه چې بدل لره د مبدل حکم دی وَلَا يَشْتَرِي بِهِ مَا لَا يَنْتَفِعُ بِهِ إِلَّا بَعْدَ اسْتِهْلَاكِهِ او د قربانۍ په څرمنې سره به داسې شی نه رانيسي چې په هغه سره د هغه له استهلاک [ختمولو] څخه بغير نفع نه سي اخيستل کېدای [يعني چې په نفع اخيستلو او استعمالولو سره ختميږي] كَالْخَلِّ وَالْأَبَازِيرِ لکه سرکه او داروګان اِعْتِبَارًا

بِالْمَبِيعِ بِالدَّرَاهِمِ د دراهمو والا بيع باندي په قياس کولو سره [يعني لکه د دراهمو او پيسو په عوض کي چي د خپلي قرباني څرمن خرڅول جواز نه لري] وَالْمَعْنَى فِيهِ أَنَّهُ تَصَرُّفٌ عَلَى قَصْدِ التَّمَوُّلِ او د دې وجه دا ده چي داسي کول د مال تر لاسه کولو په غرض سره تصرّف کول دي وَاللَّحْمُ بِمَنْزِلَةِ الْجِلْدِ فِي الصَّحِيحِ او غوښي د صحيح قول مطابق د څرمن په درجه کي دي فَلَوْ بَاعَ الْجِلْدَ أَوِ اللَّحْمَ بِالدَّرَاهِمِ او که څرمن يا غوښي د دراهمو په عوض کي خرڅي کړي أَوْ بِمَا لَا يَنْتَفِعُ بِهِ إِلَّا بَعْدَ اسْتِهْلَاكِهِ يا يې د داسي شي په عوض کي خرڅي کړي چي په هغه سره د هغه له ختمولو څخه بغير نفع نه سي اخيستل کېداى تَصَدَّقَ بِثَمَنِهِ نو [په دې صورت کي] به د څرمن قيمت صدقه کوي لِأَنَّ الْقُرْبَةَ انْتَقَلَتْ إِلَى بَدَلِهِ ځکه چي [اوس] قربت د هغه د بدل [قيمت] وطرف ته منتقل سو.

**اللغات**: ﴿جلد﴾ څرمن (څرمنه)، پوست، ﴿نطع﴾ هغه ستر خان "سرخان" چي له څرمني (چمړې) څخه جوړ وي. ﴿جِرَاب﴾ له څرمني څخه جوړه خلته او بوری چي په هغه کي به د سفر توښه ساتل کېده، توښه دان، ﴿غربال﴾ غلبېل، چڼونى، ﴿انتفاع﴾ د افتعال د باب مصدر دى: نفع اخيستل (نفع حاصلول)، فايده ځني اخيستل، ﴿أبازير﴾ جمع د أبْزَار ده: د کټوي دارو ګان وغيره، مساله جات، ﴿استهلاك﴾ د استفعال د باب مصدر دى: هلاکول، ضايع کول، ختمول.

**تشريح**: له دې ځايه د قرباني د څرمن تفصيل بيانوي، حاصل د عبارت دا دی چي څرمن د قرباني يو جزء دی، نو ځکه د هغه صدقه کول هم مستحب دي، لېکن که څوک د قرباني څرمن خپله استعمال کړي مثلاً ستر خان، خلته او داسي نور ځني جوړ کړي (يا مثلاً د پسه الويل وکړي او څرمن په غوښو کي راسي)، نو په دې کي هيڅ حرج نشته؛ ځکه د قرباني له څرمن څخه نفع اخيستل حرام نه دي؛ ځکه کله چي انسان د قرباني له غوښو څخه هم نفع اخيستلای سي، نو د قرباني څرمن کوم چي تر غوښو کمي درجې والا ده، له هغه څخه به په درجه اولیٰ نفع اخيستل جائز وي.

همدارنګه که څوک د قرباني څرمن خرڅه کړي او يو داسي شي په راني‌سي چي عين يې باقي پاتېږي او نفع ځني اخيستل کېږي، مثلاً د لمانځه مسله، سترخان وغيره، نو دا هم د استحسان په توګه جائز دي؛ ځکه د بدل او مُبدل منهٔ دواړو حکم يو وي، او کله چي له عينِ مبدل يعني له څرمن څخه نفع اخيستل جائز دي، نو د هغه له بدل (رانيول سوي شي) څخه به هم نفع اخيستل جائز وي.

ولایشتری إلخ: فرمايي چي كه د څرمن په عوض كي يو داسي شی چي د بقاء عَين سره نفع څخني اخيستل ناممكن وي، مثلاً سركه يا خرما، چي په استعمال سره دا شيان ختميږي يعني د هغوی په ختمولو (خوړلو) سره نفع څخني اخيستل كېدای سي، نو دا جائز نه دي او نه له دې شيانو څخه نفع اخيستل جائز دي. لكه څرنگه چي يو څوک كه خاص د دراهمو او پيسو په عوض كي څرمن خرڅه كړي نو دا صحيح نه دي، او د دې صورتونو د نه جائز كېدلو وجه دا ده چي په دوی كي د تموّل (مال ترلاسه كولو) په غرض تصرّف كيږي، حال دا چي په اُضحيه كي د تموّل هيڅ گنجايش نسته، چي هغه يو قربت او عبادت دی.

واللحم إلخ: فرمايي د نفع اخيستلو چي كوم حكم د څرمن په هكله دی، بعينهٖ هغه حكم د غوښو هم دی.

ولوباع إلخ: په دې سره هاغه د خرڅولو مسئله بيانوي چي كه څوک د قرباني څرمن يا د قرباني غوښي او داسي نور د دراهمو او پيسو په عوض كي خرڅ كړي، يا د يو داسي شي په عوض كي يې خرڅ كړي چي د هغه له استهلاک څخه بغير نفع څخني اخيستل ممكن نه وي، نو په دې صورتونو كي د ترلاسه كړی سوي ثمن او پيسو صدقه كول ضروري دي؛ ځكه چي دا صورتونه د تموّل په غرض سره اختيارول كيږي او دلته د تموّل لار بنده ده، خو د قربت يوه بله لار خلاصه ده چي هغه د ثمن صدقه كول دي، لهذا د ثمن په صدقه كولو سره دي قربت حاصل كړي؛ ځكه چي اوس قربت د بدل يعني د ثمن وطرف ته منتقل سو.

## د پورتنۍ مسئلې نور وضاحت او د قرباني د شېدو وغيره حكم

وَقَوْلُهُ الطَيْـٰلا [1] : «مَنْ بَاعَ جِلْدَ أُضْحِيَّتِهِ فَلَا أُضْحِيَّةَ لَهُ» او د نبي كريم ﷺ دا فرمان چي: كه څوک د خپل قربانۍ څرمن خرڅه كړي نو د هغه قرباني نسته" يُفِيْدُ كَرَاهَةَ الْبَيْعِ دا د بيع د مكروه والي فايده وركوي الْبَيْعُ جَائِزٌ نور بيع جائز ده لِقِيَامِ الْمِلْكِ وَالْقُدْرَةِ عَلَى التَّسْلِيمِ ځكه چي ملكيت قائم [موجود] دی او پر ورسپارلو قدرت هم سته [يعني قرباني كونكي كس د څرمن وغيره پر ورسپارلو قادر هم دی او ملكيت يې هم قائم دی] قَالَ: وَلَا يُعْطِيْ أُجْرَةَ الْجَزَّارِ مِنَ الْأُضْحِيَّةِ فرمايي: او له قربانۍ څخه دي د قصاب مزدوري نه وركوي «لِقَوْلِهٖ عَلَيْهِ الصَّلَاةُ وَالسَّلَامُ لِعَلِيٍّ ﷺ [2] : تَصَدَّقْ بِجِلَالِهَا

[1] تخريج: أخرجه الحاكم فى المستدرك، باب تفسير سورة الحج، ج:٢، ص:٤٢٢، حديث رقم:٣٤٦٨، وسنن البيهقى، ج:٩، ص:٤٩٦، حديث رقم:١٩٢٣٣.

[2] تخريج: أخرجه البخارى بمعناه، باب يتصدق بجلود الهدى، ص:٢٧٧، حديث رقم:١٧١٧. ومسلم، ص:٥٥٢، حديث رقم:١٣١٧. وسنن البيهقى الكبرى، فى كتاب الأضاحي، باب لا يبيع من أضحيته، حديث رقم:١٩٢٣٢.

وَخِطَامِهَا ځکه نبي کريم ﷺ حضرت علي رضي الله عنه ته وفرمایل چي: د قربانۍ ځل او د هغې قیزه صدقه کړه وَلَا تُعْطِ أَجْرَ الْجَزَّارِ مِنْهَا شَيْئًا» او له هغه څخه هیڅ هم د قصاب اُجرت [مزدوري] مه ورکوه وَالنَّهْيُ عَنْهُ نَهْيٌ عَنِ الْبَيْعِ أَيْضًا او له اُجرت [مزدوري ورکولو] څخه نهي له بيع [خرڅولو] څخه هم نهي ده لِأَنَّهُ فِي مَعْنَى الْبَيْعِ ځکه چي دا [اجرت ورکول] د بيع په معنیٰ سره دي قَالَ: وَيُكْرَهُ أَنْ يَجُزَّ صُوفَ أُضْحِيَّتِهِ وَيَنْتَفِعَ بِهِ قَبْلَ أَنْ يَذْبَحَهَا او مکروه دي دا چي تر ذبح کولو مخکي د خپل قربانۍ وړۍ وسکستي او له هغه څخه نفع واخلي لِأَنَّهُ اِلْتَزَمَ إِقَامَةَ الْقُرْبَةِ بِجَمِيعِ أَجْزَائِهَا ځکه چي هغه [قرباني کونکي کس] د قربانۍ د ټولو اجزاؤ سره د قربت اداء کول پر ځان لازم کړي دي بِخِلَافِ مَا بَعْدَ الذَّبْحِ په خلاف تر ذبح وروسته لِأَنَّهُ أُقِيمَتِ الْقُرْبَةُ بِهَا ځکه چي [اوس] په قربانۍ سره قربت اداء سو كَمَا فِي الْهَدْيِ لکه څرنګه چي د هدي په څاروي کي دي وَيُكْرَهُ أَنْ يَحْلُبَ لَبَنَهَا فَيَنْتَفِعَ بِهِ او مکروه ده دا چي د قربانۍ د څاروي شيدې ولوښي او له هغه څخه نفع واخلي كَمَا فِي الصُّوفِ لکه څرنګه چي په وړيو کي [هم دا مکروه دي].

**اللغات**: ﴿الجزّار﴾ قصاب، د څارويو ذبح کونکی، ﴿جِلال﴾ بكسر الجيم، كساء يوضع على ظهر الدابة، هغه پرده، پوښ چي د څاروي پر شا ايښوول کيږي، ځل، ﴿خطام﴾ پېزوان، اُردو شارحينو يې په قيزه "لګام" سره معنیٰ کړې ده، ﴿يجز﴾ د نصر د باب مضارع ده: پرېکول، غوڅول، جز الصوف: وړۍ سکستل، ﴿صوف﴾ د پسونو او مېږو وړېښته، يعني وړۍ.

**تشريح**: وقوله ﷺ إلخ: په دې سره صاحب د هدايې د يو اعتراض جواب ورکوي، اعتراض دا دی چي په حديث کي د قربانۍ له څرمن خرڅولو څخه سخته منع سوې ده او تاسي وايئ چي خرڅول يې جائز دي لکه څه مخکي چي ذکر سوه، نو په جواب کي فرمايي چي په حديث کي چي کوم د خرڅلاو د نفي حکم سوی دی، هغه د کراهت له قبيل څخه دي يعني د مذکوره شيانو بيع مکروه ده؛ ځکه کله چي پر غوښو وغيره د قرباني کونکي کس ملکيت هم قائم دی او هغه د دې شيانو پر ورسپارلو قادر هم دی. لهذا د بيع (خرڅلاو) په جواز کي هيڅ شبهه نسته، خو بيع يې مکروه ده، په همدې وجه موږ يې د ثمن او قيمت صدقه کول واجب ګرځولي دي.

ولا يعطي إلخ: کله چي بيع مکروه ده، نو قصاب (ذابح) ته په مزدوري کي د قرباني څرمن ورکول هم مکروه دي؛ ځکه چي دا هم د بيع په درجه کي دي.

او له قرباني څخه مخکي د هغه وري سکستل او نفع ځني اخيستل جائز نه دي. ها! تر قرباني وروسته جائز دي؛ ځکه چي تر قرباني وروسته قربت (عبادت) اداء سوی دی. او د شيدو لوشلو هم دغه حکم دی.

تنبيه: که چيري يو څوک د خپل قرباني د څاروي وري وسکستي يا د قرباني څاروی په کرايه ورکري يا يې ولوشي، نو کوم شی چي د صدقي قابل دی، هغه دي صدقه کري او کوم کرايه چي يې اخيستې ده، هغه دي هم صدقه کري. د تفصيل لپاره و ګوری! (شامي ج:۵، ص:۲۰۹)

## قرباني په خپل لاس ذبح کول افضل دي

قَالَ: وَالْأَفْضَلُ أَنْ يَذْبَحَ أُضْحِيَّتَهُ بِيَدِهِ فرمايي: او افضل دا ده چي خپله قرباني په خپل لاس ذبح کري إِنْ كَانَ يُحْسِنُ الذَّبْحَ که چيري هغه ښه ذبح کولای سي وَإِنْ كَانَ لَا يُحْسِنُهُ او که چيري ښه ذبح نه سي کولای فَالْأَفْضَلُ أَنْ يَسْتَعِينَ بِغَيْرِهِ نو افضل دا ده چي له بل چا څخه مرسته وغواړي [په بل چا يې ذبح کري] وَإِذَا اسْتَعَانَ بِغَيْرِهِ او کله چي هغه له بل چا څخه مرسته وغواري يَنْبَغِي أَنْ يَشْهَدَهَا بِنَفْسِهِ نو پکار دا ده چي قرباني ته خپله حاضر پاته سي «لِقَوْلِهِ عَلَيْهِ الصَّلَاةُ وَالسَّلَامُ[1] لِفَاطِمَةَ رَضِيَ اللهُ عَنْهَا ځکه نبي کريم ﷺ وحضرت فاطمي رضی الله عنها ته وفرمايل قُومِي فَاشْهَدِي أُضْحِيَّتَكِ ولاړه سه! [جګه سه!] خپل قرباني ته حاضره سه! فَإِنَّهُ يُغْفَرُ لَكِ بِأَوَّلِ قَطْرَةٍ مِنْ دَمِهَا كُلُّ ذَنْبٍ» ځکه چي د قرباني د وينې په اوله قطره سره به ستا هره ګناه وبخښل سي.

**اللغات**: ﴿يستعين﴾ د استفعال د باب مضارع ده: مرسته او کومک غوښتل (په بل چا خپل کار کول).

﴿فاشهدي﴾ د سمع له بابه د واحد مؤنث امرِ حاضر صيغه ده. د دې باب يوه معنیٰ ده: حاضرېدل، حاضر او سېدل.

**تشريح**: فرمايي که چيري قرباني کونکی (د قرباني مالک) په ښه توګه څاروی ذبح کولای سي او په طريقه يې پوهيږي چي أوداج او د ذبح رګونه کوم دي، نو په دې صورت کي په خپل لاس سره خپل څاروی ذبح کول افضل او غوره دي، لېکن که هغه په ښه توګه پر ذبح کولو قادر نه وي، نو په دې

---

[1] تخريج: أخرجه البيهقي في كتاب الحج، باب ما يستحب للمرء من أن يتولى ذبح إلخ، ج:۹، ص:۴۷۶، حديث رقم:۱۹۱۶۲. ومصنف عبد الرزاق، باب فضل الضحايا والهدى إلخ، ج:۴، ص:۲۹۸، حديث رقم:۸۱۹۹.

صورت کې دي يې په يو ماهر کس ذبح کړي، او بنه خبره دا ده چې د ذبح پر مهال د قربانۍ مالک هلته موجود او حاضر وي؛ رسول الله ﷺ چې وحضرت فاطمې رضی الله عنها ته کوم فرمان کړی دی، د هغه همدغه مطلب دی.

## په کتابي (نصراني او يهودي) سره د قربانۍ څاروي ذبح کول

قَالَ: وَيُكْرَهُ أَنْ يَذْبَحَهَا الْكِتَابِيُّ فرمايي: او مکروه دي دا چې کتابي کس قرباني ذبح کړي لِأَنَّهُ عَمَلٌ هُوَ قُرْبَةٌ ځکه چې د قربانۍ ذبح يو داسې عمل دی کوم چې قربت [عبادت] دی وَهُوَ لَيْسَ مِنْ أَهْلِهَا او کتابي د قربت اهل نه دی فَلَوْ أَمَرَهُ او که چيري مسلمان وکتابي ته حکم وکړي فَذَبَحَ او کتابي يې ذبح کړي جَازَ نو جائز دي لِأَنَّهُ مِنْ أَهْلِ الذَّكَاةِ ځکه چې کتابي د ذبح کولو [حلالولو] اهل دی وَالْقُرْبَةُ أُقِيمَتْ بِإِنَابَتِهِ وَنِيَّتِهِ او قربت اداء سو د مسلمان په نائب جوړولو او د هغه په نيت کولو سره [يعني دغه مسلمان دا کتابي خپل نائب جوړ کړی دی او د قربت نيت يې هم کړی دی او په همدې حالت کې قربت (قرباني) واقع سوې او اداء سوې ده] بِخِلَافِ مَا إِذَا أَمَرَ الْمَجُوسِيَّ په خلاف د هغه صورت کله چې مسلمان و مجوسي ته حکم وکړي [نو قرباني نه کيږي] لِأَنَّهُ لَيْسَ مِنْ أَهْلِ الذَّكَاةِ ځکه چې هغه د ذبح کولو [حلالولو] اهل نه دی [لهذا دا ذبح کول نه سوه، بلکې مردارول سوه] فَكَانَ إِفْسَادًا نو دا فاسدول [مردارول] سوه.

**اللغات:** ﴿إِنَابَة﴾ د افعال د باب مصدر دی: څوک د خپل ځان نائب کول، نائب جوړول.

**تشريح: صورت د مسئلې:** دا دی چې د کتابي د لاس ذبح کړی سوی څاروی که څه هم حلال دي، لېکن د هغه په لاس د قربانۍ څاروی ذبح کول مکروه دي؛ ځکه چې دا يو قربت دی او کتابي د قربت اهل نه دی.

خو بيا هم که يو مسلمان کس کتابي ته د قربانۍ د ذبح کولو حکم وکړي، نو قرباني يې جائز کيږي؛ ځکه چې مسلمان هغه نائب جوړ کړی، او مسلمان د قربت نيت کړی دی؛ لهذا د ده نيت کافي دی.

او که مسلمان کس يو مجوسي ته د ذبح حکم وکړي، نو څرنګه چې مجوسي بالکل د ذبح او ذکاة (حلالولو) اهل نه دی، لهذا د مسلمان قرباني نه جائز کيږي؛ ځکه چې دا ذکاة او حلالول نه سوه، بلکې إفساد (خرابول او مردارول) سوه. او په دې صورت کې پر مجوسي ضمان (تاوان) نه واجبيږي؛ ځکه چې دغه إفساد د مالک (مسلمان) په حکم سره واقع سوی دی.

## که څوک په غلطۍ سره د بل چا څاروی ذبح کړي

قَالَ: وَإِذَا غَلِطَ رَجُلَانِ فَذَبَحَ كُلُّ وَاحِدٍ مِنْهُمَا أُضْحِيَّةَ الْآخَرِ فرمايي: او كله چي دوه كسان خطا سي [غلطي وكړي] او له دوى څخه هريو د بل يوه څاروى ذبح كړي أَجْزَأَ عَنْهُمَا وَلَا ضَمَانَ عَلَيْهِمَا نو دا له دواړو څخه كافي دي او پر دواړو ضمان [تاوان] نسته وَهٰذَا اسْتِحْسَانٌ او دا استحسان دى وَأَصْلُ هٰذَا أَنَّ مَنْ ذَبَحَ أُضْحِيَّةَ غَيْرِهِ بِغَيْرِ إِذْنِهِ او د دې اصل دا دى چي څوک د بل چا قرباني د هغه له اجازت څخه بغير ذبح كړي لَا يَحِلُّ لَهُ ذٰلِكَ نو دا د هغه لپاره حلال نه دي وَهُوَ ضَامِنٌ لِقِيمَتِهَا او دئ [ذبح كونكى] د قربانۍ د قيمت ضامن دى وَلَا يُجْزِئُهُ عَنِ الْأُضْحِيَّةِ فِي الْقِيَاسِ او د قياس مطابق دا د ده لره له قربانۍ څخه كفايت نه كوي وَهُوَ قَوْلُ زُفَرَ او همدا د امام زفر رَحِمَهُ الله قول دى وَفِي الْاِسْتِحْسَانِ يَجُوزُ وَلَا ضَمَانَ عَلَى الذَّابِحِ او په استحسان كي جائز دي او پر ذبح كونكي ضمان نسته وَهُوَ قَوْلُنَا او همدا زموږ قول دى وَجْهُ الْقِيَاسِ أَنَّهُ ذَبَحَ شَاةَ غَيْرِهِ بِغَيْرِ أَمْرِهِ د قياس دليل دا دى چي هغه د بل چا پسه د هغه له حكم څخه بغير ذبح كړى دى فَيَضْمَنُ نو ځكه ذبح كونكى به [د قربانۍ د قيمت] ضامن وي كَمَا إِذَا ذَبَحَ شَاةً اِشْتَرَاهَا الْقَصَّابُ لكه كله چي څوک داسي پسه ذبح كړي كوم چي قصاب رانيولى وي.

**اللغات**: ﴿غَلِطَ﴾ د سمع د باب ماضي ده: غَلِطَ يَغْلَطُ غَلَطًا: غلطي كول، خطاوتل او تېروتل، ﴿شاة﴾ د دې تعريف مخكي شو ځله تېر سوى دى چي پر پسه، وزكړي، بزه وغيره ټوله يې اطلاق كيږي، ﴿قصّاب﴾ د څاروږو ذبح كونكى، او د غوښو خرڅونكى.

**تشريح**: **صورت د مسئلې**: دا دى چي زيد او عمر هر يوه د خپل ځان لپاره د قربانۍ څاروى رانيوى، بيا د قربانۍ په ورځ له دواړو څخه غلطي وسوه چي زيد د عمر پسه ذبح كړى او عمر د زيد پسه ذبح كړى، نو اوس څه حكم دئ؟، فرمايي چي په دې كي د قياس او استحسان تعارض دى، د قياس تقاضا دا ده چي د يوه قرباني هم جائز نه سي او پر هريوه ضمان هم واجب سي او همدا د امام زفر رَحِمَهُ الله مذهب دى.

او د استحسان حكم دا دى چي د هر يوه قرباني جائز ده او پر يوه هم ضمان واجب نه دى او همدا زموږ مذهب دى.

وجه القياس إلخ: د قياس دليل دا دی چي کله يو څوک د بل چا پسه بغير د هغه له اجازې ذبح کړي، نو ذبح کونکی د هغه ضامن کيږي (ضمان پر لازميږي)، لکه يو قصاب چي د خرڅولو لپاره پسه رانيسي چي زه به يې سبا ذبح کړم او غوښې به يې خرڅې کړم، بيا يو څوک هغه ذبح کړي، نو پر هغه ضمان واجبيږي، همداسي دلته هم واجبيدل پکار دي.

## د استحسان دليل

وَجْهُ الِاسْتِحْسَانِ أَنَّهَا تَعَيَّنَتْ لِلذَّبْحِ د استحسان دليل دا دی چي دا قرباني د ذبح لپاره متعينه ده لِتَعَيُّنِهَا لِلْأُضْحِيَّةِ د قرباني لپاره د هغې د متعين کېدلو په وجه حَتَّى وَجَبَ عَلَيْهِ أَنْ يُضَحِّيَ بِهَا بِعَيْنِهَا فِي أَيَّامِ النَّحْرِ تر دې چي پر مالک واجب دي چي هغه د قرباني په ورځو کي بعينه همدا [څاروی] قرباني کړي وَيُكْرَهُ أَنْ يُبَدِّلَ بِهَا غَيْرَهَا او مکروه دي دا چي دا قرباني [څاروي] د بلي قرباني سره بدله کړي [يعني د قرباني لپاره متعين څاروی په بل څاروي سره بدلول مکروه دي] فَصَارَ الْمَالِكُ مُسْتَعِينًا بِكُلِّ مَنْ يَكُونُ أَهْلًا لِلذَّبْحِ نو مالک له هر هغه چا څخه مرسته غوښتونکی سو کوم چي د ذبح اهل وي آذِنًا لَهُ دَلَالَةً او دلالتاً هغه ته اجازت ورکونکی سو لِأَنَّهَا تَفُوتُ بِمُضِيِّ هَٰذِهِ الْأَيَّامِ څکه چي قرباني د دې ورځو [أيام نحر] په تېرېدلو سره فوتيږي وَعَسَاهُ يَعْجِزُ عَنْ إِقَامَتِهَا بِعَوَارِضَ او کېدای سي چي هغه [قرباني کونکی] د څه عوارضو په وجه له قرباني کولو څخه عاجزه سي فَصَارَ كَمَا إِذَا ذَبَحَ شَاةً شَدَّ الْقَصَّابُ رِجْلَهَا نو داسي سو لکه څوک چي هغه پسه ذبح کړي چي قصاب يې پښې ورتړلي وي فَإِنْ قِيلَ: يَفُوتُهُ أَمْرٌ مُسْتَحَبٌّ وَهُوَ أَنْ يَذْبَحَهَا بِنَفْسِهِ أَوْ يَشْهَدَ الذَّبْحَ او که وويل سي [اعتراض وسي]: چي له هغه [قرباني کونکي] څخه يو مستحب کار پاتيږي او هغه دا چي قرباني کونکی کس دا قرباني په خپله ذبح کړي يا خپله د ذبح پر مهال حاضر وي فَلَا يَرْضَى بِهِ نو هغه به [د دې مستحب کار نوتېدلو] په وجه راضي نه وي قُلْنَا: يَحْصُلُ لَهُ مُسْتَحَبَّانِ آخَرَانِ: صَيْرُورَتُهُ مُضَحِّيًا لِمَا عَيَّنَهُ موږ [په جواب کي] وايو: چي [دلته] ده ته دوه نور مستحب عملونه حاصليږي: [يو دا چي] هغه به قرباني کونکی سي د هغه څاروي کوم چي يې [د قرباني لپاره] متعين کړی دی وَكَوْنُهُ مُعَجِّلًا بِهِ او [بل دا چي] د هغه په ذبح [قربانولو] کي به تلوار کونکی سي فَيَرْتَضِيهِ نو ځکه هغه [قرباني کونکي] به په دې سره راضي وي.

**اللغات**: ﴿مستعين﴾ داستفعال د باب فاعل دی؛ د مدد طلبونکی، مرسته او کومک غوښتونکی. ﴿يبدل﴾ د تفعيل د باب ماضي ده: بدلول، اليشول. مخکي ذکر سوه چي پر مالدار کس د خپل مالدار والي په وجه قرباني واجب ده، نه د رانیولو په وجه، لهذا که مالدار کس د قربانۍ لپاره څاروی رانیسي. نو پر هغه که څه هم دا واجب نه دي چي خاص همدغه رانیول سوی څاروی ذبح کړي، خو د هغه لپاره داسي کول مکروه دي چي دغه رانیول سوی څاروي په بل څاروي سره بدل کړي (په يكره أن يبدل سره همدې ته هم اشاره سوې ده).

**تشريح**: مخکي مو وویل چي په دې مسئله کي پر استحسان په عمل کولو سره مورږ قرباني جائز ګرځولې ده او ضمان مو نه دي واجب کړی، په دې عبارت کي د استحسان دلیل بیان سوی دی. د دلیل حاصل دا دی چي دا هر پسه چي د کوم کار لپاره متعين وو، هغه کار خو وسو، یعني دا پسونه خو د قربانۍ لپاره متعيّن وه، او دواړه قرباني سول (په قربانۍ کي ذبح کړل سوه)؛ ځکه کوم پسه وغیره چي د قربانۍ لپاره متعيّن وي، نو ګواکي په هغه پسه کي مالک دلالتاً له هر هغه کس څخه (د ذبح په مکله) د مرستي طلب کوي کوم چي ذبح کولای سي او د ذبح په طریقه پوهیږي، او ګواکي هغه دلالتاً هر دغسي کس ته د ذبح کولو اجازت ورکوي او په دې راضي دی.

ځکه دا ښکاره خبره ده چي د قربانۍ د ورځو (ایامِ نحر) په تېرېدو سره قرباني فوتیږي او ډېر ځله داسي کیږي چي انسان خپله د ذبح په طریقه ښه نه پوهیږي یا په بله وجه له قرباني کولو څخه عاجزه وي، نو په دې صورت کي له بل چا څخه مرسته اخلي. نو د مذکوره مسئلې حکم بالکل داسي سو لکه یو قصاب چي د پسه پښې وتړي او د ذبح لپاره تیاري وکړي چي په همدې حالت کي بل څوک بسم الله ووايي او د پسه پر غاړه چاره تېره کړي، ذبح یې کړي، نو پر دغه ذبح کونکي کس ضمان نه لازمیږي؛ ځکه هغه داسي څاروی ذبح کړی کوم چي مالک د ذبح لپاره متعيّن کړی دی، نو همداسي دلته نه پر زید ضمان لازمیږي او نه پر عمر او د هر یوه قرباني صحيح کیږي، لأنه ذبح ما عيّنه المالك للذبح.

او پاته سو د مطلق قصاب پسه چي څوک ذبح کړي نو پر هغه ولي ضمان واجبیږي (لکه د قیاس په دلیل کي چي تېر سوه)، نو جواب یې دا دی چي هغه ځکه واجبیږي چي کېدای سي قصاب دا پسه ذبح نه کړي، بلکي بیرته یې ژوندی خرڅ کړي. لنډه دا چي کله څاروی د ذبح لپاره متعيّن وي، هلته ضمان نسته، او چیري چي متعيّن نه وي، هلته ضمان واجب دی.

**فإن قيل إلخ**: په دې سره د یو اعتراض جواب ورکوي، اعتراض دا دی چي مخکي ذکر سوه چي د قربانۍ مالک (قرباني کونکي) که د ذبح په طریقه پوهیږي، نو هغه ته په خپل لاس ذبح کول یا که نه پوهیږي نو بیا د ذبح پر مهال خپله حاضر پاتېدل مستحب دي، او په مذکوره پورتني صورت (د

استحسان) کي هغه (زید او عمر) له دې دواړو شخه یو هم نه وکړی سو، لنده دا چې په دې صورت کي له هغه شخه یو مستحب کار فوتیږي، معلومه سوه چې هغه به راضي نه وي، نو ځکه قرباني جائز کېدل پکار نه دي.

د دې په جواب کي فرمايي چې سمه ده! له هغه شخه یو مستحب عمل فوتیږي خو تاسي دې ته نه گورئ چې په دې صورت (داستحسان) کي هغه ته نور دوه مستحبات حاصلیږي: ① یو دا چې د قرباني لپاره کوم پسه متعیّن وو، هغه قرباني سو کوم چې یو مستحب عمل دی، ② او بل دا چې د دې واجب کار (قرباني) په اداء کولو کي تلوار او عجلت وسو چې دا هم یو مستحب عمل دی. لهذا کله چې د یوه مستحب عمل پر ځای هغه ته دوه مستحب عملونه ترلاسه کیږي، نو ښکاره خبره ده چې هغه به په دې ډېر راضي وي.

**د پورتنۍ مسئلې په څېر نور څلور استحساني مسائل (چې په هغوی کي په استحسان عمل کیږي)**

وَلِعُلَمَائِنَا رَحِمَهُمُ اللهُ مِنْ هٰذَا الْجِنْسِ مَسَائِلُ اِسْتِحْسَانِيَّةٌ او زموږ علماؤ لره د دغه جنس څو استحساني مسائل دي وَهِيَ أَنَّ مَنْ طَبَخَ لَحْمَ غَيْرِهِ [۱] او هغه دا چې که څوک د بل چا غوښي پخې کړي أَوْ طَحَنَ حِنْطَتَهُ [۲] یا د بل چا غنم میده کړي [اوړه کړي] أَوْ رَفَعَ جَرَّتَهُ فَانْكَسَرَتْ [۳] یا د بل چا منګی پورته کړي او هغه مات سي أَوْ حَمَلَ عَلٰى دَابَّتِهِ فَعَطِبَتْ [۴] یا د بل چا پر څاروي [سپارلي] ، سامان بار کړي او هغه څاروی هلاک سي كُلُّ ذٰلِكَ بِغَيْرِ أَمْرِ الْمَالِكِ او دا ټوله د مالک له اجازت څخه بغیر وي يَكُوْنُ ضَامِنًا نو هغه ضامن کیږي وَلَوْ وَضَعَ الْمَالِكُ اللَّحْمَ فِي الْقِدْرِ [۱] او که مالک غوښي په دېګ کي کښېښودې وَالْقِدْرَ عَلَى الْكَانُوْنِ وَالْحَطَبَ تَحْتَهُ او دېګ پر انغري کښېښود او تر هغه لاندي بوټي کښېښودي أَوْ جَعَلَ الْحِنْطَةَ فِي الدَّوْرَقِ وَرَبَطَ الدَّابَّةَ عَلَيْهِ [۲] یا مالک غنم په دَورق [دژرندي] کي واچوي او د دَورق سره څاروی وتړي أَوْ رَفَعَ الْجَرَّةَ وَأَمَالَهَا إِلٰى نَفْسِهِ [۳] یا مالک منګی را پورته کړي او د ځان طرف ته یې راکوږ کړي أَوْ حَمَلَ عَلٰى دَابَّتِهِ فَسَقَطَ فِي الطَّرِيْقِ [۴] یا مالک پر خپل څاروي سامان بار کړي او هغه په لار کي ایله سي فَأَوْقَدَ هُوَ النَّارَ فِيْهِ وَطَبَخَهُ نو [په اولني صورت کي] یو څوک په هغه انغري کي اُور بل کړي او غوښي پخې کړي أَوْ سَاقَ الدَّابَّةَ فَطَحَنَهَا یا [په دویم صورت کي دژرندي سره تړل سوی] څاروی روان کړي او غنم په میده کړي أَوْ أَعَانَهُ

عَلٰى رَفْعِ الْجَرَّةِ فَانْكَسَرَتْ فِيمَا بَيْنَهُمَا يا [په دريم صورت کې] هغه د مالک سره د منګې په پورته کولو کې مدد وکړي خو منګۍ د دوی په مينځ کې مات سي أَوْ حَمَلَ عَلٰى دَابَّتِهِ مَا سَقَطَ فَعَطِبَتْ يا [په څلورم صورت کې] هغه ايله سوی سامان د مالک پر څاروي بار کړي نو هغه څاروی هلاک سي لَا يَكُونُ ضَامِنًا فِي هٰذِهِ الصُّوَرِ كُلِّهَا اسْتِحْسَانًا نو په دې ټولو [څلورو] صورتونو کي استحساناً هغه نه ضامن کيږي لِوُجُودِ الْإِذْنِ دَلَالَةً ځکه چي [د مالک له طرفه] دلالتاً اجازت موجود سو.

**اللغات:** ﴿دَوْرَق﴾ د دې لفظ خپله معنیٰ ده: د شربتو پيمانه، دا يو د ښيښې پيمانه (لوښی) وو چي خوله يې تنګه او غاړه به يې ور اوږده کړې وه، او په دې سره به شربت، شراب وغيره پيمانه کېدل چي مقدار به يې درې يا څلور رطلِ بغدادي وو، خو دلته ځني مراد هغه ګول صندوخ غوندی شی دی چي د پخوانۍ ژرندو پر سر به وو چي په هغه کي به يې غلّه (غنم وغيره) اچول او له هغه ځخه به بيا د ژرندې پل (چکی) ته کښته کېدل. او پخوا به ژرنده په غوايي يا اوبو سره چلول کېدل. اوس خو په برق او بجلۍ سره دا کارونه کيږي، خو د دواړو حکم يو دی. ﴿جرّة﴾ منګی، ﴿حمل﴾ د ضرب د باب ماضي ده: پورته کول، باروړل (پر څاروي وغيره سامان اېښوول)، بار وړل. ﴿عطبت﴾ د سمع د باب ماضي ده: هلاکېدل، د څاروي هلاکېدلو (مړه کېدلو) ته وايي، ﴿قِدْر﴾ دېګ، ﴿كانون﴾ د اور بلولو ځای، انغری، اورغالی، ﴿أوقد﴾ د افعال د باب ماضي ده: اور بلول، ﴿ساق﴾ د نصر ماضي ده: د څاروي هشه کول، شړل، د څاروي روانول.

**تشريح:** دلته صاحب د هدايې رَحِمَهُ اللهُ څلور داسي مسئلې ذکر کړي دي چي په هغوی کي زموږ علماؤ په استحسان عمل کړی دی او قياس يې پرې اېښی دی، هغه څلور مسئلې دا دي:

① ... خالد د حامد غوښې د هغه له اجازت څخه بغير پخې کړې.

② ... خالد د حامد غنم ميچن او ميده کړل (اوړه يې کړل).

③ ... خالد د حامد منګی يا خم را پورته کوی او هغه مات سو، ④ خالد د حامد پر خره يو بار کښېښودی چي د هغه په وجه خر مړ سو.

ځرنګه چي په دې ټولو صورتونو کې د مالک (حامد) له طرفه نه صراحتاً اجازت سته او نه دلالتاً، نو ځکه پر خالد د دغه شيانو ضمان او تاوان واجبيږي؛ ځکه چي دا کارونه خالد پر خپل سر کړي دي چي د هغوی په وجه حامد ته تاوان رسېدلی دی، نو ځکه ضمان به يې ورکوي.

ولو وضع المالك إلخ: په دې سره د پورتنۍ څلورو مسئلو نور صورتونه بيانوي چي په هغوی کي د مالک له طرفه دلالتاً اجازت موجود دی، په همدې وجه په دغه صورتونو کي هيڅ ضمان نه واجبيږي.

① ... مالک په دېګ کي غوښې پر انغري کښېښودې او تر هغه لاندي يې بوټي وغيره هم کښېښوول، اوس که يو څوک راسي اور بل کړي او دا غوښې پخې کړي، نو پر هغه ضمان (تاوان) نه

واجبيږي؛ ځکه چې د مالک په دغه فعل سره دلالتاً اجازت حاصل سو چې د هغه اراده او مقصد د همدې غوښو پخول وه.

(۲)... مالک د ژرندې په دَورق کې غنم واچول او د مخکښنۍ زمانې مطابق يې د هغه سره غوږى وتړى (يامثلاً د اوسنۍ زمانې مطابق يو چا خپل ژرندې ته غنم واچول او دئ په يو بل کار اخته سو)، اوس يو بل کس راغلی او غوږى يې د ژرندې په چلولو لګيا کړى (يا يې اوسنۍ ژرنده ولګوله) او غنم ميده سوه، نو پر دغه بل کس ضمان نه واجبيږي؛ ځکه چې دلالتاً د مالک له طرفه اجازت موجود دی چې د هغه مقصد د غنمو ميده کول وه او هغه حاصل سو.

(۳)... مالک خپل منګی او خم راپورته کوی او خپل ځان ته يې را کوږ کړی، په دې دوران کې بل چا لاس ورکړى چې منګی ور سره پورته کړى، خو له بده مرغه منګی مات سو، نو پر دغه بل کس ضمان نه سته؛ ځکه چې دلالتاً اجازت موجود دی.

(۴)... مالک پر خپل خره يو سامان بار کړى خو په لاره کې هغه سامان ايله سو، په دې دوران کې يو بل سړي مثلاً خالد راغلی او سامان يې راپورته کړى پر خره يې کښېښوى، خو له بده مرغه په همدې حالت کې خر مړ سو، نو پر دغه ايښوونکي کس ضمان نه واجبيږي؛ ځکه چې دلته هم د مالک له طرفه دلالتاً اجازت سته چې د هغه مقصد سامان راپورته کول او بارول وه، او خالد هم دغسې وکړه، نو ځکه دلته هم ضمان نه واجبيږي.

## د مذکوره پورتنۍ مسئلې خلاصه

إِذَاثَبَتَ هٰذَا کله چې دا خبره ثابته سوه فَنَقُوْلُ فِيْ مَسْأَلَةِ الْكِتَابِ نو موږ د کتاب [متن] د مسئلې په هکله وايو ذَبَحَ كُلٌّ وَاحِدٍ مِنْهُمَا أُضْحِيَّةَ غَيْرِهِ بِغَيْرِ إِذْنِهِ صَرِيْحًا چې له دوى څخه هر يوه د بل له صريح اجازت څخه بغير د هغه قرباني ذبح کړې ده فَهِيَ خِلَافِيَّةُ زُفَرَ بِعَيْنِهَا نو دا بعينه د امام زفر رَحِمَهُ الله اختلافي مسئله ده وَيَتَأَتّٰى فِيهَا الْقِيَاسُ وَالِاسْتِحْسَانُ او په دې کې قياس او استحسان دواړه جاري کيږي كَمَا ذَكَرْنَا لکه څرنګه چې موږ ذکر کړه فَيَأْخُذُ كُلٌّ وَاحِدٍ مِنْهُمَا مَسْلُوْخَةً مِنْ صَاحِبِهِ نو له دوى څخه هر يو به له خپل ملګري څخه خپل څاروى څرمن سوى اخلي وَلَا يُضَمِّنُهُ او ضامن به يې نه ګرځوي [يعني څه ضمان (تاوان) به نه ځني اخلي] لِأَنَّهُ وَكِيْلُهُ فِيْمَا فَعَلَ دَلَالَةً ځکه چې دئ په خپل کړي کار کې دلالتاً د هغه وکيل دی [يعني دلالتاً له دوى څخه هر يو په خپل دې کړنه کې د بل يوه وکيل دی] فَإِذَا كَانَا قَدْ أَكَلَا ثُمَّ عَلِمَا او که دوى [هر يوه له قرباني څخه] خوراک کړى وي بيا خبر سي فَلْيُحَالِلْ

كُلُّ وَاحِدٍ مِنۡهُمَا صَاحِبَهُ نو حلال [او روا] دي کړي له دوی څخه هر يو خپل ملګري لره وَيُجۡزِيۡهِمَا [نو] بيا دا دواړو لره کافي کيږي لِأَنَّهُ لَوۡ أَطۡعَمَهُ فِي الۡاِبۡتِدَاءِ ځکه دئ که په شروع کي دا [قرباني] په خپل ملګري [يا په بل چا] وخوري يَجُوۡزُ نو جائز دي وَإِنۡ كَانَ غَنِيًّا که څه هم مالدار وي فَكَذَا لَهُ أَنۡ يُحَلِّلَهُ فِي الۡاِنۡتِهَاءِ نو ځکه ده لره به دا اختيار هم وي چي په آخر کي [بعد الأكل] دا ورته حلال کړي.

**اللغات**: ﴿مسلوخة﴾ د فتح او ضرب له بابه د مفعول صيغه ده: له پوسته کښل سوی، څرمن سوی.

**تشريح**: فرمايي چي کله زموږ بيان کرده استحساني مسائل تاسي ته معلوم سول، نو اوس هغه مخکنۍ مسئله بالکل ښکاره او آسانه سوه (کوم چي تقريباً درې عبارته مخکي په دې الفاظو سره ذکر سوه: وإذا غلط رجلان...إلخ)؛ ځکه چي په هغه کي هم دوو کسانو (زيد او عمر) يو د بل له طرفه د صراحتاً اجازت څخه بغير قرباني کړې ده، خو دلالتاً اجازت موجود دی، لهذا په هغه مسئله کي به هم همدا حکم وي کوم چي ذکر سو، يعني استحسانا دِ دواړو قرباني جائز ده او پر يوه هم ضمان واجب دی کوم چي زموږ مذهب دی، او قياساً جائز نه ده کوم چي د امام زفر رَحِمَهُ الله قول دی.

فيأخذ كل واحد إلخ: کله چي زموږ په نيز قرباني جائز ده، نو اوس که چيري دوی (زيد او عمر) د پسه غوښي استعمال کړي نه وي بلکي محض څرمن يې کښلې وي (لکه عموماً چي همداسي کيږي چي تر ذبح وروسته سمدستي له څاروي څخه پوست او څرمن کښل کيږي)، نو هر يو به له بل څخه خپل دا څرمن سوی پسه اخلي او يو به بل ته هيڅ شی د ضمان په توګه نه ورکوي؛ ځکه چي هر يو په خپل کړنه کي دلالتاً د بل يوه وکيل دی (يعني دوی دلالتاً يو د بل وکيلان دي)، او پر وکيل ضمان نه لازميږي.

فإن كانا إلخ: ها! که چيري دواړو غوښي خوړلي وي، بيا خبر شي چي زموږ پسونه سره بدل سوي دي. نو اوس حکم دا دی چي هر يو دي د بل يوه لپاره خپل قرباني او د هغه غوښي وغيره حلال کړي (چي زما له طرفه تا ته معاف او حلال دي)، او په داسي کړنه سره د دواړو له طرفه قرباني اداء کيږي؛ ځکه که قرباني کونکی کس په شروع کي د قربانۍ غوښي په مالدار کس وخوري نو جائز دي، لهذا که په آخر کي د يو مالدار لپاره هغه حلال وګرځوي، نو هم به جائز وي.

## د قربانۍ له څاروي څخه د حاصل شده ضمان حکم

وَإِنۡ تَشَاحَّا او که دوی دواړه تنازع [او دعوه] وکړي فَلِكُلٍّ وَاحِدٍ مِنۡهُمَا أَنۡ يُضَمِّنَ صَاحِبَهُ قِيۡمَةَ لَحۡمِهِ نو هر يوه لره دا حق سته چي خپل مګری د خپل غوښو د قيمت ضامن وګرځوي [يعني په ضمان او تاوان کي د غوښو قيمت ځني واخلي] ثُمَّ يَتَصَدَّقُ بِتِلۡكَ الۡقِيۡمَةِ بيا هغه قيمت صدقه کړي لِأَنَّهَا بَدَلٌ

عَنِ اللَّحْمِ ځکه چي دا قيمت د غوښو بدل دی فَصَارَ كَمَا لَوْ بَاعَ أُضْحِيَّتَهُ نو داسې سو لکه خپل قرباني چي يې خرڅه کړې وي [چي د هغې قيمت صدقه کول هم ضروري دي] وَهٰذَا لِأَنَّ التَّضْحِيَةَ لَمَّا وَقَعَتْ عَنْ صَاحِبِهِ او دا ځکه چي کله قرباني د ده د ملګري له طرفه واقع سوه كَانَ اللَّحْمُ لَهُ نو غوښې د ملګري سوې وَمَنْ أَتْلَفَ لَحْمَ أُضْحِيَّةِ غَيْرِهِ او څوک چي د بل چا د قربانۍ غوښې ضايع کړې كَانَ الْحُكْمُ مَا ذَكَرْنَاهُ نو [د دې] حکم هاغه دی کوم چي موږ ذکر کړی وَمَنْ غَصَبَ شَاةً فَضَحّٰى بِهَا او څوک چي پسه غصب کړي بيا هغه قرباني کړي ضَمِنَ قِيْمَتَهَا نو دا غاصب [غصبونکی] د هغه پسه د قيمت ضامن کيږي وَجَازَ عَنْ أُضْحِيَّتِهِ او د ده [غاصب] د قربانۍ له طرفه هغه جائز کيږي لِأَنَّهُ مَلَكَهَا بِسَابِقِ الْغَصْبِ ځکه چي دئ [غاصب] د مخکيني غصب په وجه د هغه پسه مالک سوی دی بِخِلَافِ مَا لَوْ أُودِعَ شَاةً فَضَحّٰى بِهَا په خلاف د دې صورت چي که ده ته يو پسه وديعتاً [امانتاً] ورکول سي او دئ هغه قرباني کړي لِأَنَّهُ يُضَمِّنُهُ بِالذَّبْحِ ځکه چي [په دې صورت کي] دئ [مودَع] د ذبح په وجه ضامن کيږي فَلَمْ يَثْبُتِ الْمِلْكُ لَهُ إِلَّا بَعْدَ الذَّبْحِ نو [په دې صورت کي پر پسه] د ده لپاره صرف تر ذبح وروسته ملکيت ثابت سو.

**اللغات:** ﴿تشاحّا﴾ د تفاعل له بابه د تثنيه غائب ماضي صيغه ده، له شُحّ څخه مشتق دی چي خپله معنیٰ يې ده بخل او حرص، لکه څرنګه چي په عربي کي ويل کيږي: "تَشَاحَّ الرَّجُلَانَ عَلَى هٰذَا الأَمْرِ" دوو خلکو پر دغه شي حرص وکړی يعني هر يوه دا غوښتل چي زما څخه فوت نه سي، "أَيْ حَرَصَ كُلُّ وَاحِدٍ مِنْهُمَا عَلَى أَنْ لَا يَفُوْتَهُ هٰذَا الأَمْرُ"، دلته څني مراد تنازع ده يعني جنګ او جنجال کول دي.

**تشريح: صورت د مسئلې:** دا دی چي که دوی (زيد او عمر) په دې باره کي اختلاف او دعویٰ وکړي چي زه دا څرمن سوی پسه نه غواړم يا زما د پسه غوښې چي تا خوړلي دي هغه خوستا د پسه تر غوښو ډيري خوندوري وې، او دا بل يو هم هاغه وينا کوي، نو فرمايي چي په دې صورت کي به يو له بل څخه د خپل قربانۍ د غوښو قيمت اخلي او تر قيمت اخيستو وروسته به هر يو هغه صدقه کوي؛ ځکه چي قيمت د غوښو بدل دی او څرنګه چي د قربانۍ والا څاروي د خرڅولو په صورت کي د هغه قيمت صدقه کول واجب دي، همداسي دلته هم د قيمت صدقه کول ضروري دي.

ومن أتلف إلخ: فرمايي که څوک د بل چا د قرباني غوښې ضايع کړي، نو د هغه هم دغه حکم دی. او دا داسې ده لکه زيد چې د خالد پسه ذبح کړي، نو قرباني د خالد وسوه، او د خالد د قرباني غوښې زيد په خوړلو سره ضايع کړې (يعني ويې خوړې)، نو پر زيد ضمان واجبيږي.

ومن غصب شاةً إلخ: د دې حاصل دا دی چې که زيد د خالد پسه غصب کړي او پر خپل نامه په هغه سره قرباني وکړي، نو په دې صورت کې دي زيد هغه ته د خپل پسه د قيمت ضمان ورکړي او د زيد له طرفه دا قرباني صحيح کيږي؛ ځکه چې د قرباني د صحت لپاره د څاروي ملکيت شرط دی (چې قرباني کونکي به يې مالک وي). او غاصب (زيد) دلته د مخکينۍ غصب او ضمان ورکولو په وجه تر غصب سملستي وروسته د څاروي مالک سو، لهذا دلته د ذبح په وخت کې د غاصب ملکيت موجود دی، نو ځکه قرباني يې جائز او صحيح ده.

ها! که چيري خالد زيد ته خپل پسه امانتاً درولی وي او زيد پر خپل نامه هغه ذبح کړي، نو په دې صورت کې د زيد قرباني نه صحيح کيږي؛ ځکه چې د قرباني د صحت لپاره د څاروي ملکيت ضروري دی، او دلته د زيد ملکيت نسته، ځکه د وديعت او امانت په خاطر زيد دلته د ذبح په وجه د هغه ضامن کيږي (ضمان پر لازميږي)، معلومه سوه چې د ذبح په وخت کې هغه د پسه مالک نه دی، او کله چې د ذبح پر مهال هغه د پسه مالک نه دی بلکې د بل چا د پسه ذبح کونکی دی، نو بيا د هغه له طرفه قرباني هم نه صحيح کيږي.

**يادونه:** په بله وينا دا چې په غصب کې د غصب له وخت څخه ملکيت ثابتيږي، نو د غصب په صورت کې ذبح پر خپل ملکيت (خپل پسه) وارده سوه، او په امانت او وديعت کې هغه د ذبح په وجه غاصب وګرځېدی، نو د امانت په صورت کې ذبح پر خپل ملکيت وارده نه سوه.

او د عاريت، بضاعت، مضاربت، رهن ټولو همدغه حکم دی (کوم چې د وديعت دی).

# كِتَابُ الْكَرَاهِيَةِ

## (دا) کتاب د مکروه والي (د احکامو په بيان کې) دی

**تشريح:** د علامه عيني رَحِمَهُ الله د تحقيق مطابق له كتابُ الأضحية څخه وروسته د كتابُ الكَراهِيَة د بيانولو وجه دا ده چې څرنګه د أضحيه (قرباني) اکثره مسائل په رواياتو او آثارو سره ثابت دي، همداسې د کراهت عام مسائل هم په رواياتو او آثارو سره ثابت دي، لهذا د همدې مناسبت په وجه کراهيت تر اضحيه وروسته بيان سوی دی.

**د مکروه لغوي او اصطلاحي معنیٰ:** په لغت کې مکروه هغه شي ته وايي کوم چې د خوښې او محبوب شي خلاف وي.

او په اصطلاح د شريعت کې مَا يَكُوْنُ تَرْكُهُ أَوْلىٰ مِنْ تَحْصِيْلِهِ. يعني چې د هغه نه کول (پرېښوول) د هغه له کولو څخه غوره وي.

**يادونه (۱):** په دې کتاب کې که څه هم د غيرِ مکروهاتو بيان هم سته، خو هغه په دې وجه چې کله له مکروهاتو څخه ځان ساتل ضروري دي، نو ځکه د غيرِ مکروهاتو بيانول هم مهم دي.

**يادونه (۲):** مؤلفينو دغه کتاب "كتابُ الكراهية" په بېلا بېلو نومونو سره ياد کړی دی:

①... امام قدوري رَحِمَهُ الله دې ته د "كتابُ الخطر والإباحة" عنوان ورکړی دی، دا غوره عنوان دی؛ ځکه خطر د منع په معنیٰ سره دی او اباحة د جواز په معنیٰ سره دی، او په دې کتاب کې هم هغه څه بيانول کيږي کوم چې ممنوع او مباح دي.

②... ځيني حضراتو دې ته د "كتابُ الاستحسان" عنوان ورکړی دی؛ ځکه په دې کې د هغه شيانو بيان وي کوم چې شريعت مستحسن يا قبيح ګرځولي دي.

③... او ځينو دې ته د كتابُ الزهد والورع عنوان ورکړی دی؛ ځکه په دې کې ډېر مسائل داسې دي چې شريعت د هغوی اجازت ورکړی دی، لېکن زهد او تقوا د هغوی د پرېښوولو تقاضا کوي.

په تحفه او خانيه کې د كتابُ الخطر والإباحة عنوان ذکر سوی دی، په جامع صغير او هدايه کې د کراهيت او په مبسوط او ذخيره کې د استحسان عنوان ذکر سوی دی.

## د مکروه معنیٰ او مراد

قَالَ رَضِيَ اللهُ عَنْهُ: تَكَلَّمُوا فِي مَعْنَى الْمَكْرُوهِ صاحب د هدایې رَحِمَهُ الله فرمایي: چي د مکروه د معنیٰ په باره کي فقهاؤ خبره کړې ده وَالْمَرْوِيُّ عَنْ مُحَمَّدٍ نَصًّا أَنَّ كُلَّ مَكْرُوهٍ حَرَامٌ او له امام محمد رَحِمَهُ الله څخه صراحتاً دا روایت سوی دی چي هر مکروه حرام دی إِلَّا أَنَّهُ لَمَّا لَمْ يَجِدْ فِيهِ نَصًّا قَاطِعًا لیکن څرنګه چي امام محمد رَحِمَهُ الله په هغه کي هیڅ قطعي نص موندلی نه دی لَمْ يُطْلِقْ عَلَيْهِ لَفْظَ الْحَرَامِ نو ځکه ده پر هغه د حرام اطلاق نه دی کړی وَعَنْ أَبِي حَنِيفَةَ وَأَبِي يُوسُفَ ❁ أَنَّهُ إِلَى الْحَرَامِ أَقْرَبُ او له شیخینو رَحِمَهُمَا الله څخه روایت دا دی چي مکروه حرام ته زیات نژدې دی وَهُوَ يَشْتَمِلُ عَلَى فُصُولٍ او دا [کتاب الکراهیة] پر څو فصلونو مشتمل دی مِنْهَا فَصْلٌ فِي الْأَكْلِ وَالشُّرْبِ چي له هغوی څخه یو فصل په [بیان د] د خوراک او څښاک کي دی.

**تشریح**: صاحب د هدایې رَحِمَهُ الله فرمایي چي د مکروه د معنیٰ او مراد په هکله علماؤ اختلاف کړی دی، لکه ځیني چي وایي مکروه دې ته ویل کیږي چي نه کول (پرېښوول) یې تر کولو غوره وي او ځیني وایي چي بالکل د هغه نه کول غوره وي، دې ته مکروه وایي.

خو له امام محمد رَحِمَهُ الله څخه دا روایت سوی دی چي د مکروه مراد او مطلب حرام دی چي هغه په خپلو کتابو کي د مکروه لفظ استعمال کړی دی له هغه څخه حرام مراد دی، خو په مکروه سره یې ځکه نوموي چي په دې باره کي هغه ته هیڅ قطعي نص حاصل نه سو، نو ځکه د حرام پر ځای د مکروه نوم ورکوي. لنډه دا چي د امام محمد رَحِمَهُ الله په نېز چي د کوم شي او مسئلې په هکله صریح او قطعي نص موجود وي، نو هلته د حرام او حلال حکم لګوي، خو د کوم شي په هکله چي صریح نص موجود نه وي، نو هلته د حرام لپاره د مکروه او د حلال لپاره د "لا بأس" الفاظ استعمالوي.

د شیخینو رَحِمَهُمَا الله نظریه دا ده چي مکروه حرام ته ډېر نژدې دی، همدا وجه ده چي د مطلق والي په وخت کي له مکروه څخه مکروه تحریمي مرادیږي.

---

❁ القول الراجح: قول الشيخين رَحِمَهُمَا الله، قال العلامة الحصكفي رَحِمَهُ الله: ... وأما المكروه كراهة تنزيه، فإلى الحل أقرب اتفاقاً وعندهما وهو الصحيح، ومثله البدعة والشبهة إلى الحرام أقرب، وقال ابن عابدين رَحِمَهُ الله: ذكر الاختلاف بينه وبين الشيخين وتصحيح قولهما، نعم! هو موافق لما حققه المحقق ابن الهمام في تحرير الأصول من أن قول محمد رَحِمَهُ الله أنه حرام فيه نوعٌ من التجوّز للاشتراك في استحقاق العقاب وقولهما على سبيل الحقيقة...إلخ (رد المحتار ج:٥، ص:٢٣٧)، ومجمع الأنهر

**یادونه:** فقهاء کرام چې پر کوم شي د کراهت تنزیهي حکم صادروي، نو هغه په کراهت تنزیهي سره مقیدوي، کنې د مطلقاً مکروه ویلو په صورت کې له هغه څخه مکروه تحریمي مراد وي. (شامي ج:۱، ص:۱۵۰، البحر ج:۱، ص:۱۳۱، العرف الشذی ص:۵۷)

**وهویشتمل إلخ:** فرمايي چې تر کتاب الکراهیه لاندې بېلابېل فصلونه بیانول کېږي، چې له هغوی څخه اول د خوراک او څښاک د احکامو په هکله فصل بیانوي.

# فَصْلٌ فِي الْأَكْلِ وَالشُّرْبِ

(دا) فصل په (بیان د) خوراک او څښاک کې دی

## د خرو غوښې، شیدې او د اوښانو متیازې مکروه دي

قَالَ أَبُوْحَنِيْفَةَ: يُكْرَهُ لُحُوْمُ الْأُتُنِ وَأَلْبَانُهَا وَأَبْوَالُ الْإِبِلِ امام صاحب رَحِمَهُ الله فرمايي: چې د خرو غوښې او د هغوی شیدې او د اوښ متیازې مکروه دي وَقَالَ أَبُوْيُوْسُفَ وَمُحَمَّدٌ: لَا بَأْسَ بِأَبْوَالِ الْإِبِلِ او صاحبین رَحِمَهُمَا الله فرمايي: چې د اوښ په متیازو کې څه حرج نشته وَتَأْوِيْلُ قَوْلِ أَبِيْ يُوْسُفَ أَنَّهُ لَا بَأْسَ بِهَا لِلتَّدَاوِيْ او د امام ابو یوسف رَحِمَهُ الله د قول تأویل دا دی چې د درملنې [علاج] کولو لپاره د اوښ په متیازو څه حرج نشته وَقَدْ بَيَّنَّا هٰذِهِ الْجُمْلَةَ فِيْمَا تَقَدَّمَ فِي الصَّلَاةِ وَالذَّبَائِحِ او دا ټوله مخکې په کتاب الصلاة او کتاب الذبائح کې موږ بیان کړي دي فَلَا نُعِيْدُهَا لهذا دلته يې بیا نه راګرځوو وَاللَّبَنُ مُتَوَلِّدٌ مِنَ اللَّحْمِ او شیدې له غوښو څخه پیدا کېدونکي شی دي فَأَخَذَ حُكْمَهُ نو ځکه د غوښو حکم يې واخیستی [یعني د غوښو په حکم سره سوې].

**اللغات:** ﴿أُتُن﴾ جمع د أَتَانٌ ده: خرې ته وایي (حمارة). ﴿متولد﴾ د تفعّل د باب فاعل دی: پیدا کېدونکي.

**تشریح:** فرمايي د امام صاحب رَحِمَهُ الله په نیز د خرو غوښې او متیازې همدارنګه د خرې شیدې او د اوښ متیازې مکروه تحریمي دي، او د صاحبینو په نیز د اوښ متیازې مکروه نه دي چې په

استعمالولو کي يې څه حرج او پروا نسته، خو له صاحبينو څخه امام ابو يوسف رَحِمَهُ الله د علاج او تداوي پر بناء د هغه د استعمال جائز ګرځولی دی او امام محمد رَحِمَهُ الله مطلقاً د اوښ متيازې جائز ګرځولي دي؛ د صاحبينو دليل هاغه د اصحابه عرينه وو واقعه ده.

لېکن د دوی د دليل واضح او ښکاره جواب همدا دی چي د اوښ په متيازو سره شفاء ترلاسه کول خو د وحي په ذريعه معلوم سوي وه صرف د اصحاب عرينه وو په حق کي، نو د نورو خلکو په حق کي به د حرمت حکم باقي پاته وي، لهذا پر دې واقعې قياس کول او مطلقاً د اوښ متيازې جائز ګرځول صحيح نه دي.

وقد بينا إلخ: صاحب د هدايې رَحِمَهُ الله فرمايي چي موږ د دې پوره تفصيل مخکي (په کتاب الصلاة او کتاب الذبائح کي) بيان کړی دی. او پاته سوې شيدې نو هغه له غوښو څخه پيدا کيږي او جوړيږي، لهذا تاسي دومره په ياد لرئ! چي کوم حکم د څاروي د غوښو وي هغه يې د شيدو هم دی، نو ځکه د خرې متيازې مکروه دي.

**يادونه:** د امام صاحب رَحِمَهُ الله په نيز حکم دا دی چي کله سخته مجبوري وي چي د اوښ له متيازو څخه بغير بله هيڅ دواء نه وي او يو ماهر طبيب ووايي چي په دې سره يې مرض ښه کيږي، نو په داسي مجبورۍ کي د اوښ متيازې بقدرِ ضرورت جائز دي. (اثمار الهدايه)

## د سرو او سپينو زرو د لوښو استعمالول (تفصيلي بيان)

قَالَ: وَلَا يَجُوزُ الْأَكْلُ وَالشُّرْبُ وَالِادِّهَانُ وَالتَّطَيُّبُ فِي آنِيَةِ الذَّهَبِ وَالْفِضَّةِ لِلرِّجَالِ وَالنِّسَاءِ فرمايي: او جائز نه دي خوړل، چيښل، تېل لګول، خوشبو [عطر] لګول د سرو زرو او سپينو زرو په لوښو کي د خلکو او ښځو ټولو لپاره لِقَوْلِهِ عليه السلام فِي الَّذِي يَشْرَبُ فِي إِنَاءِ الذَّهَبِ وَالْفِضَّةِ [1] د نبي ﷺ د دې فرمان په وجه د هغه کس په هکله کوم چي د سرو او سپينو زرو په لوښه کي چيښل کوي «إِنَّمَا يُجَرْجِرُ فِي بَطْنِهِ نَارَ جَهَنَّمَ» [چي] دا کس د دوږخ اور خپل نس ته غړپي [اچوي] «وَأُتِيَ أَبُو هُرَيْرَةَ رَضِيَ اللهُ عَنْهُ [2] بِشَرَابٍ فِي إِنَاءِ فِضَّةٍ [همدارنګه] حضرت ابو هريره رضي الله عنه ته د سپينو زرو په لوښي کي اوبه

---

[1] تخريج: أخرجه البخاري باب آنية الفضة، ص: ۸۴۱، حديث رقم: ۵۶۳۴.

[2] تخريج: د روايت په اصل کي په نورو الفاظو له حضرت حذيفه رضي الله عنه څخه نقل سوی دی، نه له حضرت ابو هريره رضي الله عنه څخه. وګورئ! (بخاري شري، باب الأكل في اناء مفضض، ص: ۹۶۸، حديث رقم: ۵۴۲۶).

پیش کړل سوې فَلَمْ يَقْبَلْهُ وَقَالَ: نَهَانَا عَنْهُ رَسُولُ اللهِ صَلَّى اللهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ» نو حضرت ابو هریره هغه قبول نه کړې او ویې فرمایل: چې د الله نبي ﷺ موږ له دې څخه منع کړي یو وَإِذَا ثَبَتَ هٰذَا فِي الشُّرْبِ او کله چې دا [عدم جواز] د څیښلو په باره کې ثابت سو فَكَذَا فِي الإِدِّهَانِ وَنَحْوِهِ نو د تېل لګولو او داسې نورو په باره کې به هم ثابت وي لِأَنَّهُ فِي مَعْنَاهُ ځکه چې تېل لګول او داسې نور هم د څیښلو په معنیٰ سره دي وَلِأَنَّهُ تَشَبُّهٌ بِزِيِّ الْمُشْرِكِينَ او ځکه چې دا مشابهت اختیارول دي د مشرکینو په طرز سره وَتَنَعُّمٌ بِنَعِيمِ الْمُتْرَفِينَ وَالْمُسْرِفِينَ او عیش وعشرت کول په نعمتونو سره د سرکښو او فضول خرچو (په څېر) وَقَالَ فِي الْجَامِعِ الصَّغِيرِ يُكْرَهُ او په جامع صغیر کې امام محمد رَحِمَهُ الله يُكْرَهُ ویلي دي وَمُرَادُهُ التَّحْرِيمُ او په دې سره د ده مراد مکروه تحریمي دی وَيَسْتَوِي فِيهِ الرِّجَالُ وَالنِّسَاءُ او په دې حکم کې خلک او ښځې ټوله سره برابر دي لِعُمُومِ النَّهْيِ د نهي د عام والي په وجه [یعني د مذکوره حدیث نهي عام دي] وَكَذٰلِكَ الأَكْلُ بِمِلْعَقَةِ الذَّهَبِ وَالْفِضَّةِ او همدارنګه [ناجائز دي] د سرو او سپینو زرو په کاچوغې سره خوراک کول وَالِاكْتِحَالُ بِمِيلِ الذَّهَبِ وَالْفِضَّةِ او د سرو او سپینو زرو په سلایې سره سترګې تورول وَكَذَا مَا أَشْبَهَ ذٰلِكَ كَالْمُكْحُلَةِ وَالْمِرْآةِ وَغَيْرِهِمَا او همدارنګه کوم چې د دې شیانو سره مشابه وي لکه رنجېنه، هینداره او له دوی څخه بغیر نور څه لِمَا ذَكَرْنَا د هغه دلیل په وجه کوم چې موږ ذکر کړی.

**اللغات:** ﴿یجرجر﴾ د فعللة د باب مضارع ده: اوبه او داسې نور پرلپسې (متواتر) غړپل، صاحب د معجم یې داسې تعریف کړی دی: جرجر الشراب: أي جرعه جرعا متواترا لَهُ صَوت. ﴿تشبّه﴾ د تفعّل د باب مصدر دی: مشابه کېدل، مشابهت اختیارول. ﴿زيّ﴾ شکل، طرز، کروه وړه. ﴿تنعّم﴾ د تفعّل د باب مصدر دی: د تفعّل مضارع ده: عیش او عشرت کول، مېله کول (چړچې وهل)، خوند او مزه اخیستل. ﴿المترفين﴾ جمع د مُتْرَفٌ ده: د افعال د باب فاعل دی، د دې لفظ څو معناوې دي چې له هغوی څخه یوه معنیٰ ده: سرکښه، پر بغاوت او سرکښې ټینګار کونکی. ﴿مكحلة﴾ هغه ښیښه چې رانجه پکښې خوندي کیږي چې هغه ته رنجینه (یا سرمه داني) وایي.

**تشریح:** فرمایي د سرو او سپینو زرو په لوښو کې خوراک او څښاک کول او داسې نور جائز نه دي، د خلکو لپاره هم او د ښځو لپاره هم، د هغه دوو حدیثونو په وجه کوم چې ذکر سول، همدارنګه دا د مشرکینو، متکبرینو او عیش پرسته خلکو پېروي کول دي.

**وقال في الجامع إلخ:** فرمايي دلته امام قدوري رَحِمَهُ الله "لا يجوز" ويلي دي لېکن په جامع صغير کي د "يكره" لفظ استعمال سوی دی، خو د دواړو مراد يو دی؛ ځکه مخکي ذکر سوه چي د امام محمد رَحِمَهُ الله د روايت مطابق له مکروه څخه حرام مراد دي، نو له "يكره" څخه مراد مکروه تحريمي په معنیٰ د "لا يجوز" سره دی، لهذا په دواړو کي څه تعارض نسته.

او څرنګه چي په احاديثو کي د نر او ښځي تر مينځ هيڅ فرق نه دی سوی، نو ځکه له زيوراتو څخه بغير په نورو شيانو او احکامو کي د خلکو په څېر ښځو لره هم دا ممانعت شامل دی او پر هغوی هم له دې څخه ځان ساتل ضروري دي.

**وكذالك الأكل إلخ:** فرمايي چي د سرو او سپينو زرو کاچوغه يا سلايي او رنجينه استعمالول هم مکروه دي؛ ځکه چي دا هم د مترفينو او مسرفينو خوی او طريقه ده، نو ځکه پر أکل وشرب په قياس کولو سره دا شيان هم د مسلمانانو لپاره مکروه ګرځول سوي دي.

**يادونه:** د قلم، لګن، بدنی وغيره ټولو همدغه حکم دی. (شامي ج: ۵، ص: ۲۱۷)

## د مسو، سرپو او داسي نورو لوښي استعمالول

| |
|---|
| قَالَ: وَلَا بَأْسَ بِاسْتِعْمَالِ آنِيَةِ الرَّصَاصِ وَالزُّجَاجِ وَالْبِلَّوْرِ وَالْعَقِيْقِ فرمايي: او څه پروا نسته په استعمالولو کي د لوښو د سرپو او د ښيښې او د بلور ښيښې او د عقيق وَقَالَ الشَّافِعِيُّ: يُكْرَهُ او امام شافعي رَحِمَهُ الله فرمايي: چي مکروه دي لِأَنَّهُ فِي مَعْنَى الذَّهَبِ وَالْفِضَّةِ فِي التَّفَاخُرِ بِهِ ځکه په دې شيانو سره د تفاخر کولو په وجه دوی هم د سرو او سپينو زرو په معنیٰ سره دي قُلْنَا: لَيْسَ كَذٰلِكَ موږ [په جواب کي ورته] وايو چي: داسي نه ده لِأَنَّهُ مَا كَانَ مِنْ عَادَتِهِمُ التَّفَاخُرُ بِغَيْرِ الذَّهَبِ وَالْفِضَّةِ ځکه چي له سرو او سپينو زرو څخه بغير په بل سره شي تفاخر کول د مشرکينو عادت نه وو. |

**اللغات:** ﴿الرصاص﴾ أردو شارحينو د دې لفظ دوې معناوي ليکلي دي: ① سرپ (کوم چي يو مشهوره فلز دی)، ② قلعي (کوم چي تر سرپو کلک يو ډول فلز دی چي ارزيز هم ورته وايي)، ﴿الزجاج﴾ ښيښه، شيشه. ﴿البلور﴾ ① د ښيښې يو ډول قسم دی کوم چي تر عامي ښيښې ډېر صفا او شفاف ده. ② يو ډول سپينه زياته صفا ډبره ده. ﴿العقيق﴾ يو ډول سور قيمتي کاڼی دی چي له هغه څخه عموماً د ګوتمې غميان جوړول کيږي.

**تشريح:** دغه مذکوره ټوله لوښي زموږ په نيز د استعمال قابل دي او د امام شافعي رَحِمَهُ الله په نيز د دوی استعمال مکروه دی؛ اصل مدار پر دې خبره دی چي امام شافعي دا وينا کوي چي د دې لوښو په ذريعه هم تفاخر کول کيږي او موږ وايو چي د دوی په ذريعه تفاخر نه کيږي؛ ځکه له سپينو او سرو زرو څخه بغير په دې نورو لوښو وغيره سره به مشرکينو فخرونه نه کول. که بالفرض داسي وي، نو د سرو او سپينو زرو په څېر به مذکوره شيان هم ګران قيمته وای، حالانکي داسي هيڅ هم نسته، او دا تاسي هم تسليموئ چي "الأصل فی الأشياء الإباحة"، لهذا د دوی د مکروه کېدلو څه وجه زموږ په پام کي نه راځي.

## په سپينو زرو يا سرو زرو سره د پوښل سوي او ښکلي کړی سوي لوښي وغيره حکم

قَالَ: وَيَجُوزُ الشُّرْبُ فِي الْإِنَاءِ الْمُفَضَّضِ عِنْدَ أَبِي حَنِيفَةَ فرمايي: او جائز دي د امام صاحب رَحِمَهُ الله په نيز څښاک کول په هغه لوښي کي کوم چي په سپينو زرو سره ښکلي کړی سوی وي وَالرُّكُوبُ عَلَى السَّرْجِ الْمُفَضَّضِ او [جائز دي] سپرېدل پر هغه زين چي په سپينو زرو سره ښکلي [سينګار] کړی سوی وي وَالْجُلُوسُ عَلَى الْكُرْسِيِّ الْمُفَضَّضِ وَالسَّرِيرِ الْمُفَضَّضِ او [جائز دي] پر هغه کرسي او چپرکټ کښېنستل [يا پرېوتل] چي په سپينو زره سره ښکلي [سينګار] کړل سوي وي إِذَا كَانَ يَتَّقِي مَوْضِعَ الْفِضَّةِ [په دې شرط] کله چي د سپينو زرو له ځای څخه ځان ساتي وَمَعْنَاهُ: يَتَّقِي مَوْضِعَ الْفَمِ او د دې مطلب دا دی چي د خولې ايښولو له ځای څخه ځان ساتي [يعني په دې شرط کله چي په دغه لوښي کي د سپينو زرو له ځای څخه خوله ليري ساتي] وَقِيلَ: هٰذَا وَمَوْضِعَ الْيَدِ فِي الْأَخْذِ او ويل سوي دي: چي له دغه [موضع الفم] او په اخيستلو [نيولو] کي د لاس له ځای څخه ځان ساتي وَفِي السَّرِيرِ وَالسَّرْجِ مَوْضِعَ الْجُلُوسِ او په چپرکټ او زين کي د ناستي له ځای څخه ځان ساتي وَقَالَ أَبُو يُوسُفَ❁: يُكْرَهُ ذٰلِكَ او امام ابو يوسف رَحِمَهُ الله فرمايي: چي دا [ټوله صورتونه] مکروه دي وَقَوْلُ مُحَمَّدٍ يُرْوَى مَعَ أَبِي حَنِيفَةَ وَيُرْوَى مَعَ أَبِي يُوسُفَ او د امام محمد رَحِمَهُ الله قول د امام صاحب رَحِمَهُ

---

❁ القول الراجح: قول أبي حنيفة رَحِمَهُ الله، كما في الخانية (ج:۴، ص:۳۷۰)، والهندية (ج:۵، ص:۳۳۴). وقال المفتي غلام قادر النعماني: والأولىٰ اليوم العمل على قول أبي يوسف رَحِمَهُ الله، سداً لباب استعمال الذهب والفضة للرجال؛ لأن العوام لا يميّزون بين موضع الفضة وغيره. [القول الراجح ج:۲، ص:۲۹۹]

الله سره هم روايت سوى دى او د امام ابو يوسف رَحِمَهُ الله سره هم روايت سوى دى [يعني يو روايت دا دى چي هغه د امام صاحب رَحِمَهُ الله سره دى او بل روايت دا دى چي د امام ابو يوسف رَحِمَهُ الله سره دى] وَعَلىٰ هٰذَا الْخِلَافِ الْإِنَاءُ الْمُضَبَّبُ بِالذَّهَبِ وَالْفِضَّةِ او پر همدغه اختلاف دي په سرو او سپينو زرو سره پوښول سوى لوښى وَالْكُرْسِيُّ الْمُضَبَّبُ بِهِمَا او په سرو او سپينو زرو سره پوښله سوې كرسى. وَكَذَا إِذَا جَعَلَ ذٰلِكَ فِي السَّيْفِ او همدارنګه كله چي دا [په سپينو يا سرو زرو سره ښكلي كول او پوښل] وكړي په توره كي وَالْمِشْحَذِ او په سوان كي وَحَلْقَةِ الْمِرْآةِ يا د هينداري په حلقه كي أَوْ جَعَلَ الْمُصْحَفَ مُذَهَّبًا أَوْ مُفَضَّضًا يا قرآن شريف په سرو زرو يا سپينو زرو سره ښكلي كړي وَكَذَا الِاخْتِلَافُ فِي اللِّجَامِ وَالرِّكَابِ وَالثَّفْرِ إِذَا كَانَ مُفَضَّضًا او همداسي اختلاف دى په قيزه [كيزه]، ركاب او دُمچي كي كله چي دا په سپينو زرو سره ښكل كړل سوي وي وَكَذَا الثَّوْبُ فِيهِ كِتَابَةٌ بِذَهَبٍ أَوْ فِضَّةٍ عَلىٰ هٰذَا او همداسي هغه كېړه چي په هغه كي د سرو زرو يا سپينو زرو ليكنه سوې پر همدغه اختلاف ده.

**اللغات**: ﴿مفضّض﴾ د تفعيل له بابه د مفعول صيغه ده: په فضّه (سپينو زرو) سره ښكلي كړى سوى چي پر شاوخوا يې سپين زر لګول سوي وي، ﴿المضبّب﴾ د تفعيل له به بابه مخكنى صيغه ده، د دې باب څو معناوي دي چي له هغوى څخه يې يوه معنىٰ ده: مات سوي لوښي وغيره ته اوسپنه او داسي نور وراغوستل، په پوښل، نو المُضبب بألذهب والفضة: په سرو يا سپينو زرو سره پوښل سوى (سره يا سپين زر وراغوستل سوى) لوښى. تفضيض په اصل كي د ښكلا لپاره وي او تضبيب د مضبوطتيا لپاره وي، ﴿مشحذ﴾ سوان، سوهان، وسپن توري، هغه څه چي چاړه او داسي نور په تېره كول كيږي، جمع: مشاحذ، ﴿اللجام﴾ قيزه، كيزه، لګام، ﴿رِكاب﴾ (بكسر الراء) د آس وغيره رِكاب، يعني هغه د اوسپني وغيره حلقه او كړى چي د آس د زين دواړو خواوو ته راځړيږي چي سپور كس په هغه كي پښې اږدي، ﴿الثفر﴾ له څرمني او داسي نورو څخه جوړه سوې هغه پټى او تسمه چي د زين وغيره تر شا د څاروي پر كوناټو تر لكۍ لاندي تړل كيږي، كوم ته چي په پښتو كي دُمچي وايي.

**تشريح**: عبارت آسانه دى كوم چي له ترجمې څخه هم معلوميږي، مشكل لغات حل كړل سوه.

امام صاحب رَحِمَهُ الله فرمايي چي كله دا مُفضّض او مُضبّب يا مُذهّب خالص د سپينو زرو لوښي وغيره نه دي بلكي له بل شي څخه جوړ دي، محض پر شاوخوا يې سپين زر لګول سوي دي، نو ځكه استعمال يې جائز دى، په دې شرط چي د سپينو زرو له ځاى څخه ځان ساتي يعني كه د

چينلو لوښي وي، نو خاص د سپينو زرو پر ځای دي خوله نه ږدي (که څه هم لاس پر سپينو زرو ولګيږي. دا پروانه لري ديوه قول مطابق)

همدارنګه که پر زين يا کرسۍ سپين زر لګول سوي وي، نو د سپينو زرو له ځای څخه بغير پر بل ځای يې کښېنستل جائز دي.

وقال ابويوسف إلخ: فرمايي دغه ټوله صورتونه امام صاحب رَحِمَهُ الله جائز ګرځولي دي. خو امام ابو يوسف رَحِمَهُ الله مکروه ګرځولي دي. او پاتـه سو امام محمد رَحِمَهُ الله نو له هغه څخه دوه قوله نقل سوي دي: ① ځينو حضراتو ويلي دي چي هغه د امام صاحب رَحِمَهُ الله سره دی. نو هغه د دې شيانو د حلت قائل دی. ② او ځينو ويلي دي چي هغه د امام ابو يوسف رَحِمَهُ الله سره دی او د دې شيانو د کراهت قائل دی.

وعلى هذا الخلاف إلخ: فرمايي په سرو زرو سره پوښل سوي او ښکلي کړل سوي شيان مثلاً کرسۍ، يا توره، يا داسي نور سامان، يا هغه کپړه او ټوکر چي په هغه کي په سرو يا سپينو زرو سره ليکنه نقش کړل سوې وي، په دې ټولو صورتونو کي هاغه اختلاف دی کوم چي ذکر سو. يعني نور مسئله هاغه ده مخکي دا بيان وو چي مُفضّض شی استعمال کړی او دلته دا بيان دی چي مُضبّب يا مُذهّب شی استعمال کړي.

## د امام صاحب او صاحبينو محل د اختلاف

وَهٰذَا الِاخْتِلَافُ فِيمَا يَخْلُصُ او دغه اختلاف په هغه صورت کي دی کله چي دا سره او سپين زر را جلا کېدای سي فَأَمَّا التَّمْوِيهُ الَّذِي لَا يَخْلُصُ او پاتـه د سرو او سپينو زرو اوبه لګول کوم چي نه را جلا کيږي فَلَا بَأْسَ بِهِ بِالْإِجْمَاعِ نو بالاتفاق په [استعمالولو د] هغه کي هيڅ حرج نسته لَهُمَا: أَنَّ مُسْتَعْمِلَ جُزْءٍ مِنَ الْإِنَاءِ مُسْتَعْمِلَ جَمِيعِ الْأَجْزَاءِ د صاحبينو رَحِمَهُمَا الله دليل دا دی: چي د لوښي د يوه جزء [يوې حصې] استعمالونکی [د هغه] د ټولو اجزاؤ استعمالونکی دی فَيُكْرَهُ نو ځکه مکروه به وي كَمَا إِذَا اسْتَعْمَلَ مَوْضِعَ الذَّهَبِ وَالْفِضَّةِ لکه څرنګه [چي دا مکروه دي] چي [په لوښي کي] خاص د سرو او سپينو زرو ځای استعمال کړي وَلِأَبِي حَنِيفَةَ: أَنَّ ذٰلِكَ تَابِعٌ او د امام صاحب رَحِمَهُ الله دليل دا دی: چي دا [لګول سوي سره او سپين زره] تابع دي وَلَا مُعْتَبَرَ بِالتَّوَابِعِ او توابعو لره اعتبار نسته فَلَا

يُكْرَهُ نو ځکه مکروه به نه وي كَالْجُبَّةِ الْمَكْفُوفَةِ بِالْحَرِيْرِ لکه هغه چپنه چي په ورېښمو سره حاشيه ورکول سوې وي [يعني د ورېښمو حاشيې ورکول سوي وي] وَالْعَلَمُ فِي الثَّوْبِ او لکه په کپړه کي [د ورېښمو] نقش کاري [ګلکاري] وَمِسْمَارُ الذَّهَبِ فِي الْفَصِّ او [لکه] د ګوتمۍ په غمي کي د سرو زرو ميخ.

**اللغات:** ﴿يخلص﴾ د کَرُم د باب مضارع ده، د دې لفظ دوې معناوي دي: خالص کېدل. او بل را خلاصېدل او جلا کېدل، (يعني چي په وريلي کولو وغيره سره ذهب يا فضه ځني را جلا کېداى سي نو دا اختلاف دى). ﴿تمويه﴾ د تفعيل د باب مصدر دئ: په سرو يا سپينو زرو سره لړل (د سرو يا سپينو زرو اوبه ورکول). ﴿العَلَم﴾ د دې لفظ څو معناوي دي چي له هغوى څخه يې يوه معنىٰ ده: نقش ونګار (نخش ونګار)، ګلکاري.

**تشريح:** په دې عبارت کي صاحب د هدايې رَحِمَهُ الله د مخکينني اختلاف وضاحت کوي فرمايي چي د امام صاحب او صاحبينو رَحِمَهُمُ الله اختلاف صرف په هغه صورت کي دی چي پر لوښو وغيره لګول سوي سره او سپين زر ځني را جلا کېداى سي، لېکن که هغوى داسي پر لګول سوي وي چي بيا يې رجلا کېدل ممکن نه وي مثلاً د سرو او سپينو زرو په اوبو سره رنګول سوي وي، نو په دې صورت کي د ټولو امامانو په اتفاق سره د داسي لوښو وغيره استعمالول جائز دي. (ځکه د سرو او سپينو زرو په اوبو کي صرف رنګ پاته وي، نور خو هغه اوبه دي، نو د رنګ باقي پاتېدلو لره هيڅ اعتبار نسته، لهذا دا که لوښي وي، او که قيزه يا رکاب وغيره وي، ټوله بالاجماع جائز دي).

په مخکنۍ مسئله کي (چي سره او سپين زر راجلا کېداى سي) د صاحبينو رَحِمَهُمَا الله دليل دا دی چي د لوښي بعضي حصه استعمالول ګواکي د ټوله لوښي استعمالول دي، لهذا څرنګه چي په لوښي کي خاص د سره او سپينو زرو ځاى استعمالول مکروه دي، نو همداسي به د دې استعمال هم مکروه وي.

او د امام صاحب رَحِمَهُ الله دليل دا دی چي په شريعت کي اعتبار مقاصدو لره دی، د توابعو اعتبار نه کيږي، او دلته چي کوم سره او سپين زر پر لګول سوي دي دا ټوله تابع دي او اصل مقصود د لوښي استعمالول دي، نه د سرو او سپينو زرو نقش ونګار. لهذا څرنګه چي ورېښم داره حاشيو والا چپنه مکروه نه ده يعني که د چپني حاشيې د ورېښمو وي همدارنګه يا په ورېښمو سره په کپړه کي نقش ونګار او ګلکاري سوې وي دا مکروه نه دي، يا لکه څرنګه چي د سپينو زرو په ګوتمۍ کي د سرو زرو ميخ لګول سوى وي دا مکروه نه دي (چي وروسته بعيې بيان هم راسي)، نو همداسي مذکوره قسم لوښي استعمالول هم مکروه نه دي او په دوى کي هيڅ ډول قباحت او کراهت نسته.

## د مجوسي خادم د خبر حکم

قَالَ: وَمَنْ أَرْسَلَ أَجِيرًا لَهُ مَجُوسِيًّا أَوْ خَادِمًا فَاشْتَرَى لَحْمًا [امام محمد رَحِمَهُ الله] فرمايي: او کوم څوک [مالک] چې خپل مجوسي مزدور يا خدمتګاره [نوکر] واستوي او هغه غوښې رانيسي فَقَالَ: اِشْتَرَيْتُهُ مِنْ يَهُودِيٍّ أَوْ نَصْرَانِيٍّ أَوْ مُسْلِمٍ او هغه ووايي چې: ما داغوښې له يو يهودي يا نصراني يا مسلمان څخه رانيولي دي وَسِعَهُ أَكْلُهُ نو مالک لره د هغوی خوړل جائز دي لِأَنَّ قَوْلَ الْكَافِرِ مَقْبُولٌ فِي الْمُعَامَلَاتِ ځکه چې د کافر قول په معاملاتو کې منل سوی [او معتبر] دی لِأَنَّهُ خَبَرٌ صَحِيحٌ ځکه چې دا يو صحيح خبر دی لِصُدُورِهِ عَنْ عَقْلٍ وَدِينٍ يُعْتَقَدُ فِيهِ حُرْمَةُ الْكَذِبِ ځکه دا خبر له عقل والا او داسې دين والا څخه صادر سوی دی چې د هغه په دين کې [هم] د دروغو د حرام والي عقيده ساتل کيږي وَالْحَاجَةُ مَاسَّةٌ إِلَى قَبُولِهِ او د هغه د خبر قبلولو ته ضرورت هم سته لِكَثْرَةِ وُقُوعِ الْمُعَامَلَاتِ د معاملاتو د زيات واقع کېدلو په وجه وَإِنْ كَانَ غَيْرَ ذَلِكَ او که هغه [يعني له چا څخه چې دا مجوسي غوښې رانيولي وي] له دې [مسلمان او کتابي] څخه بغير وي لَمْ يَسَعْهُ أَنْ يَأْكُلَ مِنْهُ نو مالک لره جائز نه دي چې دا غوښې وخوري مَعْنَاهُ: إِذَا كَانَ ذَبِيحَةَ غَيْرِ الْكِتَابِيِّ وَالْمُسْلِمِ د دې [غير ذالک] معنیٰ دا ده: چې له کتابي او مسلمان څخه بغير د بل چا ذبيحه وي[مثلاً مجوسي خادم ووايي چې "ما له يو مجوسي څخه دا غوښې رانيولي دي" چې د هغه ذبيحه حلاله نه ده] لِأَنَّهُ لَمَّا قُبِلَ قَوْلُهُ فِي الْحِلِّ ځکه کله چې د حلال والي په باره کې د مجوسي قول مقبول دی أَوْلَى أَنْ يُقْبَلَ فِي الْحُرْمَةِ نو د حرام والي په باره کې خو به په درجه اولیٰ قبلول کيږي.

**اللغات**: ﴿أجير﴾ په أجرت (په مزدوري) نيول سوی کس، مزدورکاره. او د خَادِم معنیٰ ده: خدمت کونکی، نوکر. ﴿وسعه﴾ د سمع د باب ماضي صيغه ده. وَسِعَ يَسَعُ سَعَةً: ګنجايش کېدل، په يو شي کې تنګي نه کېدل (پراخي پکښې راتلل)، مراد ځني جائز کېدل دي، ځکه د يو کار د جائز کېدلو مطلب همدا دی چې په هغه کې تنګي نه کېدل بلکې پراخي او ګنجايش پکښې راتلل. (معجم وسيط)

**تشريح**: مخکې تېر سوه چې د اهلِ کتابو ذبيحه جائز ده. لهذا که د يو مسلمان مجوسي مزدور او نوکر له بازار څخه غوښې رانيسي او ووايي چې دا ما له مسلمان قصاب يا له يهودي يا نصراني قصاب څخه رانيولي دي، نو د هغه خوړل جائز دي؛ ځکه چې دا له مسلمان وغيره څخه د رانيولو خبر دی

کوم چې يو معامله ده. او دا قصداً د حلت او حرمت خبر ورکول نه دي چې دا له دياناتو څخه وشمېرل سي. او په معاملاتو کې د کافر خبر او قول لره اعتبار سته؛ ځکه چې دا مجوسي هم خاوند د عقل دی. او ښکاره همدا ده چې کله هغه عاقل او د خپل عقيدې په اعتبار سره يو دين او مذهب ته منسوب دی (که څه هغه دين [مجوسيت] زموږ په نېز باطل دی). نو درواغ به نه وايي؛ ځکه درواغ په ټولو دينونو کې حرام دي. او بل دا چې معاملات زيات واقع کيږي هم، نو په معاملاتو کې دې ته ضرورت پېښيږي چې د کافر قول ومنل سي، نو ځکه د دوی داسي خبر به مقبول او معتبر وي.

وإن كان غير ذالك إلخ: يعني که مجوسي خادم او نوکر خبر ورکړي چې ما دا غوښې د يو مجوسي له لوکان څخه رانيولي دي، نو د هغه خوړل حلال نه دي؛ ځکه اوس ښکاره همدا ده چې هغه د مجوسي ذبيحه ده؛ او کله چې په مخکنۍ مسئله کې د حلت په هکله د کافر قول مقبول دی. نو په حرمت کې خو په درجه اولیٰ مقبولېدل پکار دي؛ ځکه په حرمت کې د نور احتياط ضرورت وي.

## د هديه (تحفه) وغيره په باره کې د غلام، مينځې او بچي د خبر حکم

قَالَ: وَيَجُوْزُ أَنْ يُقْبَلَ فِي الْهَدِيَّةِ وَالْإِذْنِ قَوْلُ الْعَبْدِ وَالْجَارِيَةِ وَالصَّبِيِّ فرمايي: او جائز دي چې د هديه او اجازت په باره کې د غلام، مينځې او بچي قول قبول کړی سي لِأَنَّ الْهَدَايَا تُبْعَثُ عَادَةً عَلَى أَيْدِيْ هٰؤُلَاءِ ځکه هديې [او تحفې] عموماً د همدې کسانو په لاس استول کيږي وَكَذَا لَا يُمْكِنُهُمْ إِسْتِصْحَابُ الشُّهُوْدِ عَلَى الْإِذْنِ او همدارنګه دوی لره پر خپل اجازت ګواهان د ځان سره ساتل ممکن نه دي عِنْدَ الضَّرْبِ فِي الْأَرْضِ د سفر کولو په وخت کې وَالْمُبَايَعَةِ فِي السُّوْقِ او په بازار کې د سودا کولو په وخت کې فَلَوْلَمْ يُقْبَلْ قَوْلُهُمْ نو که د دوی [يعني د غلام وغيره] قول قبول نه کړی سي يُؤَدِّيْ إِلَى الْحَرَجِ نو دا به د تکليف [ستونزي] سبب وګرځي وَفِي الْجَامِعِ الصَّغِيْرِ: إِذَا قَالَتْ جَارِيَةٌ لِرَجُلٍ: بَعَثَنِيْ مَوْلَايَ إِلَيْكَ هَدِيَّةً او په جامع صغير کې دي: کله چې مينځه يو سړي ته ووايي چې: زه خپل مالک [بادار] تا ته په هديه کې را استولې يم وَسِعَهُ أَنْ يَأْخُذَهَا نو هغه سړي لره جائز دي چې دا مينځه واخلي لِأَنَّهُ لَا فَرْقَ بَيْنَ مَا إِذَا أَخْبَرَتْ بِإِهْدَاءِ الْمَوْلَى غَيْرَهَا أَوْ نَفْسَهَا ځکه چې هيڅ فرق نسته په مينځ د دې کې چې دا مينځه د خپل مالک د بل شي يا د خپل نفس د هديه کولو خبر ورکړي [يعني د نفس (چې زه يې په هديه کې درکړې يم) او د بل شي د هديې د خبر ورکولو تر مينځ هيڅ فرق نسته] لِمَا قُلْنَا د هغه دليل په وجه کوم چې موږ ووايي.

اللغات: ﴿استصحاب﴾ د استفعال مصدر دی: د ځان سره ساتل (د ځان سره لرل). ﴿حرج﴾ تنګي، سختي، تکليف.

**تشريح: صورت د مسئلې**: دا دی که کوچنی هلک، یا غلام او مینځه یو هدیه راوړي چي زما پلار، یا زما مالک دا هدیه ستا لپاره را استولې ده، یا دا کسان دیو شي د رانیولو لپاره بازار ته ولاړ سي چي موږ ته د بیع وشراء اجازت راکول سوی دی، نو د دوی قول به قبلول کیږي؛ ځکه عادت همدا دی چي هدیه د دوی په لاس استول کیږي او دا ممکنه نه ده چي هر وخت د دوی سره د اجازت ګواهان یا د هغوی لاسلیکونه ورسره وي، لهذا که د دوی قول معتبر نه کړی سي، نو زیات حرج به لازم سي.

په جامع صغیر کي امام محمد رَحِمَهُ الله فرمایلي دي چي که مینځه یو سړي ته ووایي چي زه خپل مالک تا ته په هدیه کي را استولې یم، نو د مینځي قول قبلول او مینځه د ځان سره راګرځول جائز دي؛ دلیل همغه دی کوم چي اوس ذکر سو (يؤدي إلى الحرج)؛ ځکه د دې دوو جملو تر مینځ فرق نسته چي زما مالک دا هدیه ستا لپاره را استولې ده یا زه یې تا ته په هدیه کي را استولې یم (د دواړو تر مینځ هیڅ توپیر نسته)؛ ځکه چي د دواړو مطلب إرسالِ هدیه دی، لهذا څرنګه په اوله جمله کي د مینځي قول معتبر دی، همداسي به په دویمه جمله کي هم معتبر وي.

## په معاملاتو او دیاناتو کي د فاسق د قول حکم

قَالَ: وَيُقْبَلُ فِي الْمُعَامَلَاتِ قَوْلُ الْفَاسِقِ فرمایي: په معاملاتو کي به د فاسق قول قبلول کیږي وَلَا يُقْبَلُ فِي الدِّيَانَاتِ إِلَّا قَوْلُ الْعَدْلِ او په دیاناتو کي به نه قبلول کیږي مګر صرف د عادل قول وَوَجْهُ الْفَرْقِ أَنَّ الْمُعَامَلَاتِ يَكْثُرُ وُجُودُهَا فِيمَا بَيْنَ أَجْنَاسِ النَّاسِ او وجه د فرق یې دا ده چي د معاملاتو موجودېدل [واقع کېدل] ډېر کیږي د خلکو د بېلابېلو جنسونو په مینځ کي فَلَوْ شَرَطْنَا شَرْطًا زَائِدًا نو که موږ یو اضافي شرط ولګوو يُؤَدِّي إِلَى الْحَرَجِ نو دا به د تکلیف سبب جوړ سي فَيُقْبَلُ قَوْلُ الْوَاحِدِ فِيهَا نو ځکه [د حرج دفع کولو په خاطر] به په معاملاتو کي د یوه کس قول قبلول کیږي عَدْلًا كَانَ أَوْ فَاسِقًا كَافِرًا أَوْ مُسْلِمًا عَبْدًا أَوْ حُرًّا ذَكَرًا أَوْ أُنْثَى برابره ده هغه عادل وي او که فاسق وي، کافر وي او که مسلمان وي، غلام وي او که آزاد وي، نر وي او که ښځه وي دَفْعًا لِلْحَرَجِ د حرج [تکلیف] دفع کولو لپاره.

**اللغات**: ﴿وقوع﴾ د فتح د باب مصدر دی: واقع کېدل، پېښېدل.

**تشريح**: د عبارت حاصل دا دی چي په دیاناتو کي فقط د داسي مسلمان قول معتبر دی کوم چي عادل وي، او پاته سوه معاملات د بېلابېلو (مختلف قسمه) خلکو تر مینځ واقع کیږي، نو که په دې کي د

عدالت شرط ولګول سي نو حرج کثير به لازم سي؛ په دې وجه دا حکم وسو چي د فاسق قول هم په معاملاتو کي معتبر دی.

**يادونه :** دلته له معاملاتو څخه مطلق معاملات مراد نه دي، بلکي هغه معاملات ځني مراد دي چي إلزام (ديو حکم لازمول) پکښي نه وي، تفصيل يې دا دی چي معاملات پر درې قسمه دي: ① هغه چي إلزام پکښي نه وي، لکه مضاربات او د تجارت إذن، ② هغه چي محض إلزام پکښې وي، لکه هغه حقوق چي خصومت او دعویٰ پکښي جاري کيږي، ③ هغه چي من وجه إلزام پکښې وي او من وجه نه وي، لکه د وکيل معزولېدل.

په اول قسم کي فقط تميز کافي دی، عدالت او نور څه شرط نه دي. او په دويم قسم کي د شهادت عدد ضروري دی (چي خبر ورکونکي به دوه خلک يا يو سړی او دوې ښځي وي). او په دريم قسم کي د امام صاحب رَحِمَهُ الله په نيز د شهادت عدد يا عدالت ضروري دی، خلاصه دا چي دلته اول قسم معاملات مراد دي. (شامي ج: ۵، ص: ۲۲۰)

## د پورتني مسئلې نور وضاحت

أَمَّا الدِّيَانَاتُ فَلَا يَكْثُرُ وُقُوعُهَا حَسَبَ وُقُوعِ الْمُعَامَلَاتِ کوم چي ديانات دي نو د معاملاتو د ډېر واقع کېدلو په څېر د هغوی واقع کېدل ډېر نه کيږي فَجَازَ أَنْ يُشْتَرَطَ فِيهَا زِيَادَةُ شَرْطٍ نو په دياناتو کي د يو زائد [اضافي] شرط لګول جائز [او ممکن] دي فَلَا يُقْبَلُ فِيهَا إِلَّا قَوْلُ الْمُسْلِمِ الْعَدْلِ نو ځکه په دياناتو کي به صرف د عادل مسلمان قول قبلول کيږي لِأَنَّ الْفَاسِقَ مُتَّهَمٌ وَالْكَافِرَ لَا يَلْتَزِمُ الْحُكْمَ ځکه چي فاسق تورن دی او کافر حکم پر ځان نه لازموي [يعني کافر بيا ګردسره د ديانت او اسلام حکم پر ځان لازم کړی نه دی] فَلَيْسَ لَهُ أَنْ يُلْزِمَ الْمُسْلِمَ نو ځکه هغه لره دا اختيار هم نسته چي پر مسلمان حکم لازم کړي بِخِلَافِ الْمُعَامَلَاتِ ـ په خلاف د معاملاتو لِأَنَّ الْكَافِرَ لَا يُمْكِنُهُ الْمُقَامُ فِي دِيَارِنَا إِلَّا بِالْمُعَامَلَةِ ځکه چي کافر لره زموږ په ښارو [دار الاسلام] کي پاتېدل ممکن نه دي مګر په معامله کولو سره وَلَا يَتَهَيَّأُ لَهُ الْمُعَامَلَةُ إِلَّا بَعْدَ قَبُولِ قَوْلِهِ فِيهَا او معامله د هغه لپاره مهيا کېدای نه سي مګر هغه وخت چي په معاملاتو کي د هغه قول قبول کړی سي فَكَانَ فِيهِ ضَرُورَةٌ لهذا په دې [قبول قوله في المعاملات] کي ضرورت دی فَيُقْبَلُ نو ځکه د هغه قول به قبلول کيږي.

**اللغات**: ﴿دیانات﴾ جمع د دِيَانَةٌ ده، مراد: د ديندارېو او ديني احكامو سره متعلق مسائل كوم چي غيرِ معاملات وي، ما كان بين الانسان وربه والا احكام، ﴿لا يلتزم﴾ د افتعال له بابه د نفي صيغه ده: پر ځان لازمول، په خپله غاړه او ذمه باندي اخيستل، ﴿دِيار﴾ جمع د دَارٌ ده چي د الدّار يوه معنىٰ ده: ښار او علاقه، لكه څرنګه چي د الدّار اطلاق پر دار الاسلام او دار الكفر هم كيږي.

**تشريح**: د عبارت حاصل دا دی چي ديانات دومره په كثرت سره نه واقع كيږي لكه معاملات، لهذا كه په دياناتو كي زائد شرط ولګول سي نو په دې كي به څه حرج او تكليف نه وي؛ لهذا په دياناتو كي به فقط د مسلم عادل قول معتبر وي، نه د فاسق او كافر؛ ځكه فاسق خو د خپل دروغ ويلو په وجه متهم او تورن دی، نو په خبر وركولو كي هم هغه بدروغ ويلای سي، او كافر چي كله خپله د حكم التزام نه دی كړی، نو پر مسلمان به هم د څه لازمولو حق نه لري. خو د معاملاتو مسئله جلا ده؛ ځكه كله چي كافر زموږ په دار الاسلام كي استوګن وي او په معاملاتو كي د هغه قول قبول نه كړی سي، نو هغه به دلته څنګه استوګن سي؛ ځكه كله چي هغه هيڅ معامله نه سي كولای، نو خپل ضروريات به له كومه پوره كوي، لنډه دا چي په دې كي ضرورت دی، په دې وجه په معاملاتو كي د فاسق او كافر قول معتبر دی.

**يادونه**: له دياناتو څخه ديانات محضه مراد دي، ديانات ضمينه مراد نه دي، همدارنګه هغه ديانات مراد نه دي كوم چي د ملكيت زائلېدو لره متضمن وي، د تفصيل لپاره وګورئ (شامي ج: ۵، ص: ۲۲۰).

## په دياناتو كي د مستور الحاله کس د قول حكم

| |
|---|
| وَلَا يُقْبَلُ فِيهَا قَوْلُ الْمَسْتُوْرِ فِيْ ظَاهِرِ الرِّوَايَةِ او د ظاهر روايت مطابق د مستور الحال كس قول به په دياناتو كي نه قبلول كيږي وَعَنْ أَبِيْ حَنِيْفَةَ أَنَّهُ يُقْبَلُ قَوْلُهُ فِيهَا او له امام صاحب رَحِمَهُ الله څخه روايت سوی دی چي په دياناتو كي به د هغه قول قبلول كيږي جَرْيًا عَلَىٰ مَذْهَبِهِ أَنَّهُ يَجُوزُ الْقَضَاءُ بِهِ په قياس كولو سره د هغه پر دې مذهب چي د مستور الحاله پر قول فيصله كول جائز دي وَفِي ظَاهِرِ الرِّوَايَةِ هُوَ وَالْفَاسِقُ فِيهِ سَوَاءٌ او د ظاهر روايت مطابق هغه [مستور الحاله] او فاسق سره برابر دي حَتَّى يُعْتَبَرَ فِيهِمَا أَكْبَرُ الرَّأْيِ تر دې چي په دواړو كي به د غالب ګومان اعتبار كول كيږي. |

**اللغات**: ﴿المستور﴾ د نصر د باب مفعول دی: مخفي، پټ، غير معلوم الحال (يعني حالت يې پټ وي چي عادل دی كه فاسق).

**تشريح**: کوم څوک چې مستور الحاله وي، يعني د هغه عدالت او فاسق والی معلوم نه وي، نو ظاهر روايت دا دی چې په دياناتو کې د هغه قول معتبر نه دی.

او له امام صاحب رَحِمَهُ الله څخه يو روايت دا دی چې د هغه قول به قبلول کيږي: ځکه امام صاحب رَحِمَهُ الله فرمايي چې کله قاضي د مستور الحال کس په قول فيصله وکړي نو جائز دي په دې شرط چې د ده خصم په ده کې طعن نه وکړي.

او په ظاهر روايت کې مستور الحاله او فاسق دواړه سره برابر دي، لهذا په دوی دواړو کې د غالب رايي او غالب ګومان اعتبار کيږي، لهذا که غالب رايه دا وي چې دوی رښتوني دی، نو قول به يې قبلول کيږي، کنې نه به قبلول کيږي، لکه کله چې څوک د اُوبو د مردار والي خبر ورکړي، نو په هغه کې پر غالب رايه عمل کول کيږي.

## په دياناتو کې د غلام او مينځې د قول حکم

قَالَ: وَيُقْبَلُ فِيهَا قَوْلُ الْعَبْدِ وَالْحُرِّ وَالْأَمَةِ فرمايي: او په دياناتو کې به د آزاد، غلام او مينځې قول قبلول کيږي إِذَا كَانُوا عُدُولًا [په دې شرط] کله چې دوی عادلان وي لِأَنَّ عِنْدَ الْعَدَالَةِ الصِّدْقُ رَاجِحٌ ځکه د عادل والي په وخت کې [جانب د] رښتيا والي راجح دی [يعني غالب او راجح همدا ده چې عادل کس رښتيا وايي] وَالْقَبُولُ لِرُجْحَانِهِ او [د قول] قبليدل د همدې رښتيا والي د راجح کيدو په وجه دي فَمِنَ الْمُعَامَلَاتِ مَا ذَكَرْنَاهُ نو له معاملاتو څخه ځيني خو هغه دي کوم چې موږ ذکر کړل وَمِنْهَا التَّوْكِيلُ او له هغوی څخه [يوه معامله] وکيل جوړول هم دي وَمِنَ الدِّيَانَاتِ الْإِخْبَارُ بِنَجَاسَةِ الْمَاءِ او له دياناتو څخه [يو] د اوبو د مردار والي خبر ورکول دي حَتَّى إِذَا أَخْبَرَهُ مُسْلِمٌ مَرْضِيٌّ تر دې چې که يو خوښ سوی [عادل] مسلمان [يو چا ته] د اوبو د مردار والي خبر ورکړي لَمْ يَتَوَضَّأْ بِهِ وَيَتَيَمَّمُ نو په هغوی سره به اودس نه کوي [بلکې] تيمم به کوي وَلَوْ كَانَ الْمُخْبِرُ فَاسِقًا أَوْ مَسْتُورًا او که چيري خبر ورکونکی کس فاسق يا مستور الحاله وي تَحَرَّى نو غور او فکر به کوي فَإِنْ كَانَ أَكْبَرُ رَأْيِهِ أَنَّهُ صَادِقٌ نو که چيري د ده غالب ګومان دا وي چې هغه [خبر ورکونکی] رښتونی دی [کوم چې د اوبو د مردار والي خبر ورکړی دی] يَتَيَمَّمُ وَلَا يَتَوَضَّأُ بِهِ نو تيمّم به کوي او په اوبو سره به اودس نه کوي وَإِنْ أَرَاقَ الْمَاءَ ثُمَّ تَيَمَّمَ او که اوبه چپه [توی] کړي بيا تيمّم وکړي كَانَ أَحْوَطَ نو دا زيات احتياط والا صورت دی [يعني په داسې صورت کې د اوبو په چپه کولو او تويولو کې زيات احتياط دی]

**اللغات:** ﴿راجح﴾ غالب، معتبر. ﴿مرضي﴾ د سمع د باب مفعول دی: خوښ کړی سوی (خوښ). ﴿التحرّي﴾ د تفعل د باب مصدر دی: طلب او لټون کول، غور او فکر کول. (په اصل کي طلب الأحرئ ته وايي يعني د ډېر مناسب څه طلب کول). ﴿أحوط﴾ د اسم تفضيل صيغه ده: زيات احتياط والا.

**تشريح:** صورت د مسئلې واضح او آسانه دی.

## د عادل کس په هکله د کذب احتمال ساقطيږي، او که د چا په هکله غالب ګومان د درواغو وي نو څه حکم دی؟

وَمَعَ الْعَدَالَةِ يَسْقُطُ احْتِمَالُ الْكَذِبِ او د عدالت سره [يعني چي خبر ورکونکی عادل وي نو] د درواغو احتمال ساقطيږي فَلَا مَعْنَى لِلاحْتِيَاطِ بِالْإِرَاقَةِ نو [په دې صورت کي] د اوبو په تويولو سره احتياط کولو لره هيڅ معنیٰ [او وجه] نسته أَمَّا التَّحَرِّيْ فَمُجَرَّدُ ظَنٍّ او کوم چي [د مستور الحال کس په هکله] تحري کول دي نو هغه محض ګومان دی [فلا بد فيه من الاحتياط بالإراقة] وَلَوْكَانَ أَكْبَرُ رَأْيِهِ أَنَّهُ كَاذِبٌ او که چيري د ده غالب ګومان دا وي چي هغه [خبر ورکونکی] درواغجن دی يَتَوَضَّأُ بِهِ وَلَا يَتَيَمَّمُ نو په هغه اوبو سره به اودس کوي او تيمم به نه کوي لِتَرَجُّحِ جَانِبِ الْكَذِبِ بِالتَّحَرِّيْ ځکه چي په تحرّي کولو سره د درواغو طرف راجح سو وَهٰذَا جَوَابُ الْحُكْمِ او دا [چي اودس به کوي دا] د حکم جواب دی فَأَمَّا فِي الِاحْتِيَاطِ فَيَتَيَمَّمُ بَعْدَ الْوُضُوْءِ خو په احتياط کي تر اودس وروسته به تيمم [هم] کوي [يعني احتياط دا دی چي تر اوداسه وروسته تيمم هم وکړي] لِمَا قُلْنَا د هغه دليل په وجه کوم چي موږ ذکر کړی وَمِنْهَا الْحِلُّ وَالْحُرْمَةُ او له دياناتو څخه حلالېدل او حرامېدل هم دي [چي يو شخوک ديو شي د حلت يا حُرمت خبر ورکړي] إِذَا لَمْ يَكُنْ فِيْهِ زَوَالُ الْمِلْكِ [په دې شرط] کله چي په دې کي د ملکيت زائلېدل نه وي [يعني چي د دې حلت او حرمت په خبر ورکولو سره ديو چا ملکيت نه زائليږي] وَفِيْهَا تَفَاصِيْلُ وَتَفْرِيعَاتٌ ذَكَرْنَاهَا فِي كِفَايَةِ الْمُنْتَهِيْ او د دياناتو په باره کي [نور هم] ډېر تفصيلات او تفريعات سته کوم چي موږ په كفاية المنتهي کي ذکر کړي دي.

**تشريح:** مخکي ذکر سوه چي که مُخبر (خبر ورکونکی کس) فاسق يا مستور الحاله وي او غالب ګومان دا وي چي هغه رښتونی دی، نو احتياطي حکم خو همدا دی چي اوبه چپه کړی او تيمّم وکړي.

لېکن که د مُخبر عدالت ثابت سي، نو په دې وخت کي د اوبو چپه کولو (تویېولو) هیڅ ضرورت نسته، بلکي فقط تیمم کول کافي دي؛ او څرنګه چي تحرّی د یقین په درجه کي نه ده، بلکي په تحرّی کي یو ظن او ګومان کیږي، نو ځکه د مُخبر د مستور الحاله کېدو په صورت کي د اوبو چپه کول او تر هغه وروسته تیمم کول أحوط ګرځول سوي دي.

ولوکان إلخ: د دې حاصل دا دی چي که د ده (چا ته چي خبر ورکول سوی دی) غالب ګومان دا وي چي مُخبر په خپل قول او خبر کي درواغجن دی، نو په دې وخت کي په مذکوره اوبو سره اودس کول غوره دي. د تیمّم ضرورت نسته؛ ځکه چي د درواغو جانب راجح سو، لهذا په اودس کولو کي څه حرج نسته.

وهذا جواب الحکم إلخ: یعني دا خبره چي که د مُخبر په باره کي غالب ګومان دا وي چي هغه کاذب دی نو اودس به کوي، نه تیمم، دا د حکم شرعي بیان دی، خو احتیاط په دې کي دی چي اول اودس وکړي او وروسته تیمم هم وکړي؛ ځکه تحرّی خو محض یو ګومان دی چي په هغه کي د خطا احتمال هم سته.

ومنها الحل إلخ: فرمایي چي له دیاناتو څخه د حلت او حرمت مسئله هم ده، په دې شرط چي په هغه کي د ملکیت زوال نه وي، یعني که یو سړی مثلاً د غوښو د حلت یا حرمت خبر ورکړي (چي دا غوښي پاکي یا مرداري دي)، نو د هغه خبر به قبلول کیږي، لېکن که یو سړی د زوجینو تر مینځ د رضاعت ثابتېدلو خبر (یوازي) ورکړي، نو د هغه قول به نه قبلول کیږي؛ ځکه په دې خبر ورکولو سره (له ښځي څخه) د خاوند (د بضع) ملکیت زائلیږي، نو ځکه د دغه خبر د قبلولو لپاره عدد او عدالت دواړه شیان ضروري دي.

فرمایي چي دا دول نور تفاصیل او تفریعات موږ په کفایة المنتهي کي بیان کړي دي.

## که یو دعوت او مېلمستیا ته انسان وغوښتل سي او هلته خلاف شرع څه ولیدل سي (حکم او تفصیل)

قَالَ: وَمَنْ دُعِيَ إِلَى وَلِيمَةٍ أَوْ طَعَامٍ فرمایي: او څوک چي ولیمي یا بل خوراک [مېلمستون] ته راوبلل سي فَوَجَدَ ثَمَّةَ لَعِبًا أَوْ غِنَاءً نو هلته یو لوبه یا سرود ومومندي فَلَا بَأْسَ بِأَنْ يَقْعُدَ وَيَأْكُلَ نو څه حرج نسته چي [هلته] کښېني او خوراک وکړي قَالَ: أَبُوحَنِيفَةَ: أُبْتُلِيتُ بِهَذَا مَرَّةً امام صاحب رَحِمَهُ الله فرمایي: چي یو ځل زه په دې [دول دعوت] مبتلا سوم فَصَبَرْتُ نو ما صبر وکړی وَهَذَا لِأَنَّ إِجَابَةَ

الدَّعْوَةِ سُنَّةٌ او دا ځکه چې د دعوت قبلول سنت دي قَالَ عَلَيْهِ الصَّلَاةُ وَالسَّلَامُ[1] : «مَنْ لَمْ يُجِبِ الدَّعْوَةَ فَقَدْ عَصٰى أَبَا الْقَاسِمِ» نبي کريم ﷺ فرمايلي دي: څوک چې دعوت [بلنه او ميلمستيا] قبول نه کړي نو هغه د ابو القاسم محمد ﷺ نافرماني وکړه فَلَا يَتْرُكُهَا لِمَا اقْتَرَنَ بِهَا مِنَ الْبِدْعَةِ مِنْ غَيْرِهِ نو دعوت دې په دې وجه نه پرېږدي په چې د دې دعوت سره د بل چا له طرفه بدعت يوځای سوی دی كَصَلَاةِ الْجِنَازَةِ وَاجِبَةُ الْإِقَامَةِ وَإِنْ حَضَرَتْهَا نِيَاحَةٌ لکه څرنګه چې د جنازې د لمانځه اداء کول واجب دي که څه هم نوحه کونکې ښځه حاضره سي فَإِنْ قَدَرَ عَلَى الْمَنْعِ بيا که چيري هغه [رابلل سوی کس د دوی] پر منع کولو قدرت لري مَنَعَهُمْ نو دوی دې منع کړي وَإِنْ لَمْ يَقْدِرْ او که [پر دې] قدرت نه لري يَصْبِرْ نو صبر دې وکړي وَهٰذَا إِذَا لَمْ يَكُنْ مُقْتَدًى او دا حکم هغه وخت دی کله چې رابلل سوی کس پېشوا نه وي فَإِنْ كَانَ وَلَمْ يَقْدِرْ عَلَى مَنْعِهِمْ او که چيري هغه پېشوا وي خو د دوی پر منع کولو قدرت نه لري يَخْرُجُ وَلَا يَقْعُدُ نو هغه به وځي او نه به کښېني لِأَنَّ فِي ذٰلِكَ شَيْنُ الدِّيْنِ وَفَتْحُ بَابِ الْمَعْصِيَةِ عَلَى الْمُسْلِمِيْنَ ځکه چې په دې کې د دين عيبداره کول او پر مسلمانانو د ګناه دروازه خلاصول دي وَالْمَحْكِيُّ عَنْ أَبِيْ حَنِيْفَةَ فِي الْكِتَابِ كَانَ قَبْلَ أَنْ يَصِيْرَ مُقْتَدًى او کوم [حکايت] چې له امام صاحب رَحِمَهُ الله څخه په کتاب [جامع صغير] کې نقل سوی دی هغه د ده تر پېشوا کېدو مخکې وو.

**اللغات:** ﴿الوليمة﴾ هغه خوراک او ميلمستيا کوم چې د واده په خوشحالۍ او مبارکۍ کې تيار کړل سي (په جديد عربي کې د عامي ميلمستيا خوراک ته هم وايي. خو دلته ښکاره خبره ده چې د واده طعام ځني مراد دی). ﴿غناء﴾ سرروز او سندره ويل. ﴿مقتدیٰ﴾ مقتدا: چې خلک اقتداء پسې کوي. پېشوا. لارښوونکی. ﴿شَيْن﴾ مصدر او اسم مصدر دواړه ډوله استعماليږي: عيبدار کول. عيب. بدي.

**تشريح:** له دې ځايه د دعوت او ميلمستيا په هکله د جامع صغير يو مسئله ذکر کوي. فرمايي چې که يو څوک د واده ډوډۍ او دعوت ته يا بل عام دعوت ته وبلل سي او دئ چې هلته ولاړ سي نو معلومه سي چې دلته خو د سرروز او سندرو بازار ګرم دی يا يو بل خلاف شرع کار. لوبه او لهو شروع ده. نو دا کس به څه کوي؟ فرمايي چې دلته دوه صورتونه دي: دا رابلل سوی کس به د خلکو مقتدا (پېشوا) وي يا به نه وي. او بل دا چې هغه به دا خلاف شرع کار منع کولای شي يا نه؟.

---

[1] تخريج: أخرجه مسلم كتاب النكاح، باب الأمر بإجابة الداعي إلى دعوة، ص:۶۰۶، حديث رقم:۱۴۳۲، ۳۵۲۵.

که چیري دئ (رابلل سوی کس) مقتدا نه وي او منع کولای سي، نو منع دي یې کړي. کنې صبر دي وکړي او تر خوراک وروسته دي رخصت سي؛ ځکه دعوت قبلول سنت نبوي دي او بلا عذره له هغه څخه انکار کول په نبوي حدیث سره ګناهګاره دی، لهذا که له مخکي څخه خبر نه وي چي په دعوت کي خلاف شرع کارونه کیږي. نو بیا بلا وجه له دعوت څخه انکار کول پکار نه دي. خپله امام صاحب رَحِمَهُ الله یو ځل په داسي خلاف شرع دعوت کي ګیر پاته سو. او څرنګه چي په دې وخت کي هغه دأمت مقتدا نه وو جوړ سوی، نو ځکه هغه له صبر څخه کار واخیستی او تر خوراک ختمېدو پوري یې انتظار وکړی.

لیکن که رابلل سوی کس مقتدا وي خو بیا هم پر منع کولو قادر نه وي، نو حکم دا دی چي هغه دي یو ګړی هم هلته نه پاتیږي او بغیر له خوراکه دي واپس ولاړ سي؛ ځکه که د مقتدا کېدو باوجود هغه دلته پاته سي، نو په دې سره د دین او علماؤ بدنامي راځي، او عوام الناس په غلط مفهوم مبتلا کیږي: چي خلک به د هغه پر عمل دلیل نیسي او په دې ډول دعوتونو کي به ښه په خرپ شرکت کوي او څه هم تأمل به نه کوي.

## د پورتنی مسئلي نور وضاحت

وَلَوْكَانَ ذٰلِكَ عَلَى الْمَائِدَةِ او که چیري دا [غناء او لوبه] پر سرخان وي لَا يَنْبَغِيْ أَنْ يَقْعُدَ نو پکار نه دي چي کښېني وَإِنْ لَمْ يَكُنْ مُقْتَدًى که څه هم دئ پیشوا نه وي لِقَوْلِهٖ تَعَالىٰ: ﴿فَلَا تَقْعُدْ بَعْدَ الذِّكْرٰى مَعَ الْقَوْمِ الظّٰلِمِيْنَ﴾ [الأنعام: ٦٨] د الله تعالیٰ د دې فرمان په وجه: نو مه کښېنه! وروسته تر یادېدو د ظالم قوم سره وَهٰذَا كُلُّهٗ بَعْدَ الْحُضُوْرِ او دا ټوله تر حاضرېدو وروسته دي [یعني دا ټوله تفصیل هغه وخت دي کله چي رابلونکی کس دعوت ته تر حاضرېدو وروسته په لوبه او غناء خبر سي] وَلَوْ عَلِمَ قَبْلَ الْحُضُوْرِ او که تر حاضرېدو مخکي په خبر سي لَا يَحْضُرُ نو [دعوت ته] به نه حاضرېږي لِأَنَّهٗ لَمْ يَلْزَمْهُ حَقُّ الدَّعْوَةِ ځکه چي [په دې صورت کي] پر هغه د دعوت حق لازم نه سو [لإن إجابة الدعوة إنما يلزم إذا كانت الدعوة على وجه السنة] بِخِلَافِ مَا إِذَا هَجَمَ عَلَيْهِ په خلاف د هغه صورت کله چي رابلونکی کس پر دې [لوبه او غناء] ناڅاپه راسي لِأَنَّهٗ قَدْ لَزِمَهٗ ځکه چي [په دې صورت کي] دعوت پر هغه لازم سو وَدَلَّتِ الْمَسْأَلَةُ عَلىٰ أَنَّ الْمَلَاهِيَ كُلَّهَا حَرَامٌ او دا مسئله پر دې دلالت کوي چي ټوله ملاهي حرام دي حَتَّى التَّغَنِّيْ بِضَرْبِ الْقَضِيْبِ تر دې چي د لرګي په وهلو سره سندره ویل هم حرام

دي وَكَذَا قَوْلُ أَبِيْ حَنِيْفَةَ اُبْتُلِيتُ او همدارنګه [دلالت کوي] د امام صاحب رَحِمَهُ الله دا وینا "اُبْتُلِيتُ" (زه په مبتلا سوم) [پر دې چې ملاهي ټوله حرام دي] لِأَنَّ الِابْتِلَاءَ بِالْمُحَرَّمِ يَكُوْنُ ځکه ابتلاء په حرام شي سره کیږي [مطلب دا چې په داسي صورت کي مبتلا کېدل په حرام مبتلا کېدلو ته وايي].

**اللغات:** ﴿هجم﴾ د نصر مضارع ده، د دې باب یوه معنیٰ ده: نابېره داخلېدل، ناڅاپه راتلل.

﴿ملاهي﴾ د لهو ولعب او د موسیقیٰ آلات، د راجح قول مطابق د دې مفرد مَلْهَاةٌ دی، ﴿قضیب﴾ ښاخ (پرېکړل سوی ښاخ او لرګی)، لښته.

**تشریح: صورت د مسئلې:** دا دی چي که په دعوت او مېلمستون کي د سروز او سندرو پروګرام او خلاف شروع لهو و لعب دومره تجاوز کړی وي چي سرخان هم محفوظ نه وي او پر سرخان داغه شونډنګ شروع وي. نو په دې صورت کي د مسلمان لپاره غوره همدا ده چي له سرخانه ولاړ سي او بغیر له ډوډۍ خوړلو واپس سي. برابره ده هغه مقتدا وي او که نه وي، د غیرت ایماني تقاضا همدا ده چي ولاړ سي؛ ځکه د قرآن کریم په دې آیت ﴿فلا تقعد إلخ﴾ کي د ظالمانو له ناستي پاستي څخه منع سوې ده.

**وهذا كله إلخ:** فرمایي چي مخکینۍ ټوله تفصیل هغه وخت دی کله چي له ورتګ څخه مخکي انسان په دې خبره نه وي چي په دغه دعوت کي به لهو و لعب او خلاف شرع کارونه کیږي. لېکن که هلته له ورتګ څخه مخکي دا ورته معلومه سي چي په دې دعوت کي د شریعت مخالف کارونه کیږي، نو بیا د تللو اجازت ورته نسته؛ ځکه چي د معصیت او ګناه په وجه پر دې رابلونکي کس دعوت قبلول لازم نه دي؛ ځکه دعوت قبلول هغه وخت لازم دي کله چي دا دعوت او مېلمستون د سنت مطابق وي. او دلته خو په سنت ملنډې وهل کیږي؛ نو د داسي دعوت قبلول به څنګه صحیح وي.

**بخلاف إلخ:** د دې حاصل دا دی چي که انسان یو دعوت ته راوبلل سي او له مخکي څخه هغه ته د خلاف شرع کار خبر نه وي، اوس چي هغه ناڅاپه راسي نو خلاف شرع کار ویني، نو فرمایي څرنګه چي اوس هغه دعوت قبول کړی او ورته راغلی دی او د راتګ په وجه د دعوت حق پر هغه لازم سوی دی. نو ځکه اوس هغه معذور ګڼل کیږي.

**ودلت المسألة إلخ:** فرمایي چي له پورتنۍ مسئلې څخه دا څرګنده سوه چي هر ډول لهو و لعب، سروز او موسیقي وېل حرام دي، برابره ده هغه محض په یو ښاخ، لرګي، تولکه وغیره سره وي؛ همدارنګه د امام صاحب رَحِمَهُ الله دا وینا چي "زه په مبتلا سوم" پر همدې دلالت کوي چي دا ټوله لهو و لعب حرام دي؛ ځکه چي ابتلاء عموماً د حرامو شیانو سره استعمالیږي، لهذا په دې سره هم د هغوی حرمت څرګند سو. فقط والله أعلم وعلمه أتم

# فَصْلٌ فِي اللُّبْسِ

(دا) فصل په (بيان دا حکامو د) کپړې اغوستلو کي دی

## د وربښمي جامې د اغوستلو حکم

قَالَ: لَا يَحِلُّ لِلرِّجَالِ لُبْسُ الْحَرِيْرِ وَيَحِلُّ لِلنِّسَاءِ فرمايي: او حلال نه دي د خلكو [سړيو] لپاره د وربښمو اغوستل او د ښځو لپاره حلال دي لِأَنَّ النَّبِيَّ عليه السلام نَهَى عَنْ لُبْسِ الْحَرِيْرِ وَالدِّيْبَاجِ [1] ځکه نبي ﷺ د وربښمو او ديباج له اغوستو څخه منع کړې ده وَقَالَ: إِنَّمَا يَلْبَسُهُ مَنْ لَا خَلَاقَ لَهُ فِي الْآخِرَةِ او داسي يې فرمايلي دي: دا خو هغه کس اغوندي چي په آخرت کي ور له هيڅ حصه نه وي وَإِنَّمَا حَلَّ لِلنِّسَاءِ بِحَدِيْثٍ آخَرَ [2] او دا صرف د ښځو لپاره په يو بل حديث سره حلال دي وَهُوَ مَا رَوَاهُ عِدَّةٌ مِنَ الصَّحَابَةِ رَضِيَ اللهُ عَنْهُمْ مِنْهُمْ عَلِيٌّ رضي الله عنه چي هغه حديث څو صحابه وو روايت کړی دی چي له هغوی څخه يو حضرت علي رضي الله عنه دی «أَنَّ النَّبِيَّ صلى الله عليه وسلم خَرَجَ وَبِإِحْدٰى يَدَيْهِ حَرِيْرٌ وَبِالْأُخْرٰى ذَهَبٌ چي نبي کريم ﷺ بهر راغلی په يوه لاس کي يې وربښم او په بل لاس کي يې سره زر وه وَقَالَ: هٰذَانِ مُحَرَّمَانِ عَلٰى ذُكُوْرِ أُمَّتِيْ حَلَالٌ لِإِنَاثِهِمْ» او ويې فرمايل چي: دغه دوه شيان زما د امت پر نارينه وو حرام دي او د دوی د ښځينه وو لپاره حلال دي وَيُرْوٰى: «حِلٌّ لِإِنَاثِهِمْ» او روايت سوی دی: حِلٌّ لِإِنَاثِهِمْ [يعني په يوه روايت کي د حَلَالٌ پرځای حِلٌّ يا حَلَّ ذکر سوي دي] إِلَّا أَنَّ الْقَلِيْلَ عَفْوٌ خو [د وربښمو] لږ مقدار معاف دی وَهُوَ مِقْدَارُ ثَلَاثَةِ أَصَابِعَ أَوْ أَرْبَعَةٍ او هغه درې يا

---

[1] تخريج: دا حديث په اصل کي د دوو حديثونو مجموعه ده چي هغه دواړه په ابن ماجه شريف کي پرلپسې ذکر سوي دي (ابن ماجه، باب لبس الحرير والذهب للنساء، ص:۵۱۷، حديث رقم: ۳۵۹۰، ۳۵۹۱).

[2] تخريج: أخرجه ابن ماجة، باب لبس الحرير والذهب للنساء، ص:۵۱۷، حديث رقم:۳۵۹۵. وابو داؤد، باب فـي الحرير للنساء، ص:۲۰۶، حديث رقم:۴۰۵۷.

ځلور ګوتي دي كَالْأَعْلَامِ وَالْمَكْفُوْفِ بِالْحَرِيْرِ لکه د کپړې [ټوکر] نقش ونګار او په ورېښمو سره حاشیه ورکول سوې کپړه لِمَا رُوِيَ أَنَّهُ عَلَيْهِ الصَّلَاةُ وَالسَّلَامُ نَهٰى [3] عَنْ لُبْسِ الْحَرِيْرِ إِلَّا مَوْضِعَ إِصْبَعَيْنِ أَوْ ثَلَاثَةٍ أَوْ أَرْبَعَةٍ ځکه روايت سوی دی چي نبي ﷺ د ورېښمو له اغوستو څخه منع کړې ده مګر د دوو ګوتو يا دريو ګوتو يا ځلورو ګوتو په اندازه أَرَادَ الْأَعْلَامَ په دې سره د نبي کريم ﷺ مراد د کپړې نقش ونګار دی وَعَنْهُ عليه السلام [4] : أَنَّهُ كَانَ يَلْبَسُ جُبَّةً مَكْفُوْفَةً بِالْحَرِيْرِ او له نبي ﷺ څخه روايت سوی دی: چي هغوی ﷺ به په ورېښمو سره حاشیه داره چپنه اغوستله.

**اللغات:** ﴿حريـر﴾ ورېښم، په اصل کي هغه تارو ته وايي چي د ورېښمو چينجی يې تازه را وباسي، ﴿ديباج﴾ ورېښمينه کپړه، له ورېښمو څخه جوړه کپړه به څو قسمه وه: يو به هغه کپړه وه چي د اوږدول تار [سدیٰ] (يعني کوم تار چي په کپړه [ټوکر] کي طولاً غځېدلی او جار وتلی وي دا تار) به يې له پمبه يا وړيو يا داسي نورو څخه وو، او د بَر تار [لُحمة] (کوم چي په کپړه کي عرْضاً جار وتلی وي) له خالص ورېښمو څخه وو چي داسي کپړې ته به خَزّ ويل کېده. او بل به داسي کپړه وه چي دواړه تارونه (يعني ټوله کپړه) به له خالص ورېښمو څخه وه، داسي کپړې ته دِيْبَاج ويل کېده، (دا لفظونه به څو ځله راسي، لهذا په ياد يې لرئ!). ﴿خلاق﴾ حصه، برخه او نصيب، ﴿أعلام﴾ جمع د عَلَمٌ ده، د دې لفظ يو معنیٰ ده: هغه نقش ونګار (کنبېده) او هغه ګلکاري کوم چي په کپړه کي کنبل سوې وي چي ځيني په پښتو کي طراز هم ورته وايي، يعني د کپړې او ټوکر نخش ونګار او ګلکاري.

**تشريح:** د پورتني ټوله عبارت خلاصه دا ده چي دأمت د ښځو لپاره خو مطلقاً ورېښم استعمالول جائز دي، خو د خلکو لپاره له زياتو څخه زيات د ځلورو ګوتو په اندازه د ورېښم استعمالولو اجازه سته، او دا اجازه هم د کپړې د نقش ونګار او جامې ته د حاشيې ورکولو په توګه ده (چي مثلاً چپنه يا پټو [څادر] ټوله له عام ټوکر څخه جوړ سي خو د دوو. يا دريو يا ځلور ګوتو په اندازه ورېښم هم پر ولګول سي يا د ورېښمو حاشيه ورکول سي. د دې اجازت سته)؛ لکه څرنګه چي په حديث کي له نبي کريم ﷺ څخه دا ثابت سوي دي. نو له دې څخه زيات ورېښم د خلکو لپاره قطعي حلال نه دي؛ دواړه قسمه حديثونه په کتاب کي ذکر سوي دي، نور عبارت څرګند او آسانه دی.

---

[3] تخريج: أخرجه مسلم، باب لبس الحرير وغير ذالك للرجال، ص:۹۲۸، حديث رقم: ۲۰۶۹/ ۵۴۰۹.

[4] تخريج: أخرجه ابو داؤد، باب الرخصة في العَلَم وخيط الحرير، ص:۵۲۷، حديث رقم: ۴۰۵۴.

## له اغوستلو څخه بغیر بل ځای ورېښم استعمالول

قَالَ: وَلَا بَأْسَ بِتَوَسُّدِهِ وَالنَّوْمِ عَلَيْهِ عِنْدَ أَبِي حَنِيفَةَ فرمايي: او څه پروا نسته پر ورېښمو په تکيه لګولو کي او پر هغوی په خوب کولو کي وَقَالَا: يُكْرَهُ او صاحبين رَحِمَهُمَا الله فرمايي چي: مکروه دي وَفِي الْجَامِعِ الصَّغِيرِ ذُكِرَ قَوْلُ مُحَمَّدٍ وَحْدَهُ او په جامع صغير کي د امام محمد رَحِمَهُ الله قول يوازي ذکر سوی دی وَلَمْ يُذْكَرْ قَوْلُ أَبِي يُوسُفَ او د امام ابو يوسف رَحِمَهُ الله قول نه دی ذکر سوی وَإِنَّمَا ذَكَرَهُ الْقُدُورِيُّ وَغَيْرُهُ مِنَ الْمَشَايِخِ او هغه بيا امام قدوري رَحِمَهُ الله او نورو مشائخو ذکر کړی دی وَكَذَا الِاخْتِلَافُ فِي سِتْرِ الْحَرِيرِ وَتَعْلِيقِهِ عَلَى الْأَبْوَابِ او همداسي اختلاف دی د ورېښمو په پرده کي او پر دروازو د هغه په ځړولو کي لَهُمَا الْعُمُومَاتُ د صاحبينو رَحِمَهُمَا الله دليل هغه عام احاديث دي [چي په هغه کي له ورېښمو څخه مطلقاً منع سوې ده] وَلِأَنَّهُ مِنْ زِيِّ الْأَكَاسِرَةِ وَالْجَبَابِرَةِ او ځکه چي دا د عجمي باچاهانو او د متکبرينو طرز [او خصلت] دی وَالتَّشَبُّهُ بِهِمْ حَرَامٌ او د دوی سره مشابهت اختيارول حرام دي وَقَالَ: عُمَرُ رَضِيَ اللهُ عَنْهُ *: إِيَّاكُمْ وَزِيَّ الْأَعَاجِمِ او حضرت عمر رضي الله عنه فرمايلي دي چي: ځان وساتئ! د عجمو له طرز [او کړه وړه] څخه وَلَهُ مَا رُوِيَ أَنَّهُ عَلَيْهِ السَّلَامُ [1] جَلَسَ عَلَى مِرْفَقَةِ حَرِيرٍ او د امام صاحب رَحِمَهُ الله دليل هغه حديث دی چي [په هغه کي] روايت سوي دي چي نبي کريم صلی الله علیه وسلم پر ورېښمي بالښت کښېناستو وَقَدْ كَانَ عَلَى بِسَاطِ عَبْدِ اللهِ بْنِ عَبَّاسٍ رَضِيَ اللهُ عَنْهُمَا مِرْفَقَةٌ ** [همدارنګه] د عبد الله بن عباس (رض) پر بستره ورېښمي بالښت وو وَلِأَنَّ الْقَلِيلَ مِنَ الْمَلْبُوسِ مُبَاحٌ او ځکه چي لږ اغوستل سوي [ورېښم] روا دي كَالْأَعْلَامِ لکه د کپړې نقش ونګار

---

* تخريج: أخرجه مسلم بمعناه، باب اللباس والزينة، ص:۹۲۷، حديث رقم:۲۰۶۹، ص:۵۴۱۱.

[1] تخريج: دا روايت اصلاً د ابن عامر رضي الله عنه په هکله نقل سوی دی چي هغه د ورېښمو پر تکيه ګاه ناست وو. نه رسول الله صلی الله علیه وسلم. لکه په مصنف ابن ابي شيبه کي چي داسي ذکر سوي دي: استاذن سعد على ابن عامر وتحته مرافق من حرير (مصنف ابن ابي شيبة، باب من رخص في لبس الخز، ج:۵، ص:۱۴۹، حديث رقم:۲۴۶۲۱) (ومستدرک للحاکم، کتاب التفسير، سورة الأحقاف ج:۲، ص:۴۹۴، حديث رقم:۳۶۹۷). [اثمار الهدايه]

** تخريج: أخرجه مصنف ابن ابي شيبة، باب من رخص في لبس الخز، ج:۵، ص:۱۴۹، حديث رقم:۲۴۶۲۱.

فَكَذَا الْقَلِيْلَ مِنَ اللُّبْسِ وَالِاسْتِعْمَالِ نو همداسي به لږ اغوستل او استعمالول هم روا وي وَالْجَامِعُ كَوْنُهُ نَمُوْذَجًا او [د دواړو ترمينځ] جمع کونکې علت د هغوی [ورېښمو] نمونه کېدل دي عَلَى مَا عُرِفَ لکه څرنګه چي پېژندل سوي دي.

**اللغات:** ﴿توسّد﴾ د تفعّل د باب مصدر دی: تکيه لګول (پر يو شي ځان تکيه کول)، ټېک لګول. ﴿سِتْر﴾ (بکسر السين) پرده، جمع: سُتُوْر او أَسْتَار. ﴿زی﴾ طرز، شکل، کړه وړه. ﴿أكاسرة﴾ جمع د كِسْرىٰ ده، د فارس (پخواني ايران) د باچاهانو لقب وو. ﴿بِساط﴾ هر هغه څه چي پر ځمکه هوارول کيږي: بستره، فرش، ټاټ. ﴿مرفقة﴾ د تکيه او څنګ لګولو بالښت يا بل داسي شی. ﴿أعلام﴾ د تېر عبارت په لغاتو کي يې وضاحت وسو. ﴿نموذج﴾ له فارسي څخه عربي ته را اوښتی لفظ دی: ① مِثَالُ الشَّيْءِ الَّذِي يُعْمَلُ عَلَيْهِ. ② مَا يَدُلُّ عَلَى صِفَةِ الشَّيْءِ. يعني نمونه، مثل. (كونه نموذجًا... يعني أن المستعمل يعلم بهذا المقدار لذة ما وعده له في الآخرة ليرغب في تحصيل سبب يوصل إليه).

**تشريح: صورت د مسئلې:** دا دی چي د امام صاحب رَحِمَهُ الله په نېز د ورېښمو بالښت يا کوربچه جوړول، يا د ورېښمو پرده جوړول او په دروازه باندي ځړول جائز دي، د صاحبينو رَحِمَهُمَا الله په نېز دا ټوله شيان مکروه دي، لېکن په جامع صغير کي يوازي د امام محمد رَحِمَهُ الله قول ذکر سوی دی، هلته د امام ابو يوسف رَحِمَهُ الله ذکر نسته، خو امام قدوري رَحِمَهُ الله وغيره د هغه قول د امام محمد رَحِمَهُ الله سره بيان کړی دی، لنډه دا چي صاحبين د مذکوره شيانو د کراهت قائل دي.

د دوی دليل هغه ټوله عام احاديث دي چي په هغوی کي له ورېښمو څخه مطلقاً منع سوې ده، او بل دليل دا چي د ورېښمو بالښت وغيره جوړول د عجمي بادشاهانو طريقه ده، او حضرت عمر رَضِيَ اللهُ عَنْهُ له دې څخه منع کړې ده چي د عجمي بادشاهانو سره مشابهت اختيار کړی سي، نو ځکه د مذکوره مقاصدو لپاره ورېښم استعمالول جائز نه دي.

**وله ما روى إلخ:** د امام صاحب رَحِمَهُ الله اول دليل خو هغه حديث دی چي په هغه کي له نبي ﷺ څخه د ورېښمي بالښت استعمالول ثابت سوي دي. دويم دليل دا دی چي د ابن عباس (رض) پر بستره ورېښمي بالښت موجود وو، نو که چيري د ورېښمو استعمالول جائز نه وای، نو نبي ﷺ به پر هغه تکيه نه کولای او نه به د حضرت ابن عباس رَضِيَ اللهُ عَنْهُمَا پر بستره د هغه نوم ونښان ليدل کېدای، معلومه سوه چي څه خو سته، مطلقاً حرام نه دي.

او بل دا چي څرنګه د نمونې په توګه په ملبوساتو يعني په جامو او کاليو کې څه غوندې (يعني د څلور ګوتو په اندازه) وربښم کارول جائز ګرځول سوي دي (لکه مخکې چې ذکر سوه)، نو همداسې په اغوستلو او استعمالولو کې هم دومره مقدار جائز کېدل پکار دي؛ ځکه که څوک د څه غوندې وربښمو اغوستل د دې يادوني لپاره کوي چې په جنت کې به هم الله جَلَّ جَلَالُهُ ما ته داسې وربښم بلکې تر دې اعلیٰ وربښم راکوي او په دې توګه هغه د آخرت په فکر کې مشغوله وي. نو د وربښمو د پردې، بالبنت وغيره په استعمالولو سره خو دا فايده نوره هم زياته حاصلېږي؛ ځکه پر کپړه لګول سوي وربښم ته به انسان بالقصد ګوري. لېکن پر بالبنت، پرده او داسې نورو استعمال سوي وربښم هر ګړی سړی خپل طرف ته متوجه کوي. شرط دا دی چې سړی به په همدې نيت وربښم اغوندي يا استعمالوي چې د دې په ذريعه يې فکرِ آخرت زيات سي. (احسن الهدايه)

## د جنګي مقاصدو او د جنګ په حالت کې د وربښمو استعمالول

قَالَ: وَلَا بَأْسَ بِلُبْسِ الْحَرِيرِ وَالدِّيبَاجِ فِي الْحَرْبِ عِنْدَهُمَا فرمايي: او څه پروا نسته د وربښمو او ديباج په اغوستلو کې د جنګ پر مهال د صاحبينو رَحِمَهُمَا الله په نيز لِمَا رَوَى الشَّعْبِيُّ [1] أَنَّهُ عَلَيْهِ السَّلَامُ رَخَّصَ فِي لُبْسِ الْحَرِيرِ وَالدِّيبَاجِ فِي الْحَرْبِ ځکه امام شعبي رَحِمَهُ الله روايت کړی دی چې نبي صَلَّى اللهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ په جنګ کې د وربښمو او ديباج د اغوستلو اجازت کړی دی وَلِأَنَّ فِيهِ ضَرُورَةً او ځکه چې په دې [د جنګ پر مهال د وربښمو په اغوستلو] کې ضرورت دی فَإِنَّ الْخَالِصَ مِنْهُ أَدْفَعُ لِمَعَرَّةِ السِّلَاحِ وَأَهْيَبُ فِي عَيْنِ الْعَدُوِّ لِبَرِيقِهِ ځکه خالص وربښم د اسلحې د سختۍ [او تېره والي] زيات دفع کوونکي دي او د خپل ځلا په وجه د دښمن په سترګو کې زيات هيبت اچوونکي دي وَيُكْرَهُ عِنْدَ أَبِي حَنِيفَةَ او د امام صاحب رَحِمَهُ الله په نيز مکروه دي لِأَنَّهُ لَا فَصْلَ فِيمَا رَوَيْنَاهُ ځکه چې زموږ په روايت کړی سوي حديث کې هيڅ تفصيل نسته وَالضَّرُورَةُ انْدَفَعَتْ بِالْمَخْلُوطِ او ضرورت په مخلوط وربښمو سره دفع سو [يعني په جنګ کې چې وربښمو ته کوم ضرورت پرېوځي، هغه په مخلوطه وربښمو سره هم پوره کېږي] وَهُوَ الَّذِي لُحْمَتُهُ حَرِيرٌ وَسَدَاهُ غَيْرُ ذَلِكَ او مخلوط وربښم هغه [توکر د وربښمو] دی چې د بر تار يې د وربښمو

---

[1] تخريج: أخرجه البخاري والترمذي بمعناه عن انس رضي الله عنه (بخاري، باب الحرير في الحرب ص:۴۸۳، حديث رقم:۲۹۲۰، والترمذي، باب ما جاء في الرخصة في لبس الحرير في الحرب، ص:۳۰۲، حديث رقم:۱۷۲۲) وفي المصنف: عن عطاء قال لا بأس بلبس الحرير في الحرب (مصنف ابن ابي شيبة، ج:۵، ص:۱۵۳، حديث رقم۲۴۶۶۳).

وي او د اوږدول تارېې د ورېښمو نه وي [بلكي له وړيو يا پمبې وغيره څخه وي] وَالْمَحْظُورُ لَا يُسْتَبَاحُ إِلَّا لِضَرُورَةٍ او ممنوع شى روا نه ګرځول كيږي مګر د ضرورت په وجه وَمَا رَوَاهُ مَحْمُولٌ عَلَى الْمَخْلُوطِ او كوم حديث چي امام شافعي رَحِمَهُ الله روايت كړى دى هغه پر مخلوط ورېښمو محمول دى.

**اللغات**: ﴿الحرير، الديباج﴾ د دې تعريف د فصل د شروع عبارت په لغاتو كي وګوره. ﴿أَدْفَعُ﴾ د اسم تفضيل صيغه ده: زيات دفع كونكى او خوندي كونكى، ﴿مَعَرَّةٌ﴾ د دې لفظ تقريباً نهه معناوي نقل سوي دي، چي له هغوى څخه يې يوه معنىٰ ده: شدت او سختي. ﴿بريق﴾ چمک، ځلا، برېښنا. ﴿لُحمة﴾ (بضم اللام) د دې لفظ هم څو معناوي دي چي له هغوى څخه يې يوه معنىٰ ده: په كپړه (ټوكر) كي هغه تارونه كوم چي په بَر سره پكښې تېر سوي او اوبدل سوي وي. يعني د كپړې او ټوكر د بَره تار (كوم چي عرضاً غځېدلي وي)، ﴿سَدى﴾ (بفتح السين) په كپړه كي هغه تارونه كوم چي په اوږدول سره پكښې تېر سوي وي يعني چي په اوږدل سره پكښې اوبدل سوى او غځېدلي وي، ځكه هر ټوكره او كپړه له تارو او سپنسيو څخه جوړيږي نو د بَر تارو ته يې لُحْمَة وايي او د اوږدل تارو ته يې سَدى وايي.

**تشريح**: دا مسئله د مخكنۍ مسئلې برعكس ده، حاصل يې دا دى چي د صاحبينو رَحِمَهُمَا الله په نېز د جنګ وجدال پر موقع ورېښم اغوستل مباح او روا دي، څه حرج پكښې نسته؛ د دې يو دليل خو هغه دى چي په هغه كي نبي ﷺ په جنګ كي د ورېښمو رخصت وركړى دى.

او دويم دليل دا دى چي په جنګ كي د دښمن د توري او اسلحې د وار منع كولو او د ورېښمو په ځلا او برېښنا سره د هغه د مرعوبه كولو او بېرولو لپاره ورېښمو ته ضرورت پرېوځي (ځكه ورېښم زيات چمک لري. همدارنګه كله چي د ورېښمو كپړه درې غبرګه كړل سي نو توره پر نه تېريږي)، او دا ښكاره خبره ده چي الضرورات تبيح المحظورات.

**ويكره إلخ**: او د امام صاحب رَحِمَهُ الله په نېز د جنګ په حالت كي هم خالص ورېښم استعمالول جائز نه دي، هغه فرمايي چي په دې حديث "هٰذَانِ مُحَرَّمَانِ عَلَى ذُكُورِ أُمَّتِي" كي د جنګ او غير جنګ هيڅ تفصيل او توپير نه دى سوى، نو ځكه په جنګ كي به هم ممنوع وي، او بل دا چي كه ورېښمو ته په جنګ كي ضرورت پرېوځي، نو دا ضرورت په مخلوط ورېښمو سره پوره كيږي يعني په داسې كپړه او ټوكر سره چي اوږده تارونه يې د ورېښمو او د بَر تارونه يې د عام ټوكر وي، لهذا د "الضرورة تتقدر

بقدر الضرورة" پر بناء به په همدې مخلوط ورېښمو سره کار اخيستل کيږي او خالص ورېښم به جائز نه وي.

وما رواه إلخ: فرمايي چې مورد د حديث مخالفت هم نه کوو، ځکه د امام شعبي په روايت کرده حديث کې چې د ورېښمو اباحت او جواز ذکر سوی دی، هغه هم د مخلوط ورېښمو په هکله دی، نه د خالص ورېښمو په هکله.

## د ورېښمو نور قسم جامې (خز وغيره)

قَالَ: وَلَا بَأْسَ بِلُبْسِ مَا سَدَاهُ حَرِيرٌ وَلُحْمَتُهُ غَيْرُ حَرِيرٍ كَالْقُطْنِ وَالْخَزِّ فرمايي: او څه پروا نسته د داسې کپړې [او ټوکر] په اغوستلو کې چې د اوږدول تارېږ ورېښمې وي او د بَر تارېږ ورېښمې نه وي لکه [کپړه د] پمبه او خز فِي الْحَرْبِ وَغَيْرِهِ په جنګ کې او له هغه څخه بغير [بل حالت] کې [يعني په جنګ او ناجنګ دواړو حالتونو کې روا دي] لِأَنَّ الصَّحَابَةَ رَضِيَ اللهُ عَنْهُمْ كَانُوا يَلْبَسُونَ الْخَزَّ ځکه صحابه وو به خز کپړه اغوسته وَالْخَزُّ مُسَدًّى بِالْحَرِيرِ او خز هغه کپړه ده چې د اوږدول تارېږ د ورېښمو وي [او د بَر تارېږ له پمبې يا وړيو څخه وي] وَلِأَنَّ الثَّوْبَ إِنَّمَا يَصِيرُ ثَوْبًا بِالنَّسْجِ او ځکه چې کپړه د اوبدلو په ذريعه جوړيږي وَالنَّسْجُ بِاللُّحْمَةِ او اوبدل د بَر د تار په ذريعه کيږي [ځکه چې د بَر تار په آخر کې جار ايستل کيږي او پر اوږده تار د پاسه راځي] فَكَانَتْ هِيَ الْمُعْتَبَرَةُ دُونَ السَّدَى نو ځکه د کپړې همدا د بَر تار به معتبر وي، نه د اوږدول تارېږ.

وَقَالَ أَبُويُوسُفَ: أَكْرَهُ ثَوْبَ الْقَزِّ يَكُونُ بَيْنَ الْفَرْوِ وَالظِّهَارَةِ او امام ابو يوسف رَحِمَهُ الله فرمايي چې: زه هغه د ورېښمو کپړه مکروه ګڼم چې د څرمنې [چمړې] او پاسنۍ استر تر مينځ وي [وضاحت به يې په تشريح کې وسي] وَلَا أَرَى بِحَشْوِ الْقَزِّ بَأْسًا خو د ورېښمو په ډک سوي څه کې حرج نه وينم [يعني هغه روا دی، وضاحت به يې په تشريح کې وسي] لِأَنَّ الثَّوْبَ مَلْبُوسٌ وَالْحَشْوُ غَيْرُ مَلْبُوسٍ ځکه چې کپړه اغوستل کېدونکې ده او حشو نا اغوستل کېدونکې ده قَالَ: وَمَا كَانَ لُحْمَتُهُ حَرِيرًا وَسَدَاهُ غَيْرَ حَرِيرٍ او هغه کپړه چې د بَر تارېږ ورېښمې وي او د اوږدل تارېږ ورېښمې نه وي لَا بَأْسَ بِهِ فِي الْحَرْبِ نو د جنګ پر مهال په [اغوستلو د] هغه کې څه حرج نسته لِلضَّرُورَةِ د ضرورت په وجه وَيُكْرَهُ فِي غَيْرِهِ او له جنګ څخه بغير [بل حالت] کې مکروه دي لِانْعِدَامِهَا د ضرورت د

نشتوالي په وجه وَالِاعْتِبَارُ لِلُّحْمَةِ او اعتبار د بَر تار لره دی [کوم چي په کپړه کي په بَره سره جاروتلی وي] عَلَى مَا بَيَّنَّا لکه څرنګه چي [څه مخکي] موږ بيان کړه.

**اللغات:** ﴿سدا، لُحمة﴾ په تېر عبارت کي يې وضاحت وسو. ﴿قطن﴾ مالوچ او پمبه (هغه صفا کړل سوي پمبه چي پمبه دانې څني کښل سوې وي). ﴿خز﴾ د دې لفظ څو معناوي دي چي له هغوی څخه يې يو معنیٰ ده: هغه کپړه او ټوکر چي اوږده تارونه يې د وربښمو وي او د بَر تارونه (لحمه) يې د وربښمو نه وي بلکي له وړی، پمبې يا داسي نورو څخه وي. ﴿النسج﴾ مصدر دی، له نصر او ضرب دواړو څخه راځي: له تارونو څخه ټوکر جوړول، اوبدل (وودل)، جار باسل. ﴿قَزّ﴾ خام وربښم چي له هغوی څخه بيا د وربښمو کپړه جوړول کيږي، هغه وربښم کوم چي تازه د وربښمي چنجيو له ځالي څخه را وېستل سي (معجم). ﴿فَرْو﴾ د دې لفظ دوې معناوي دي: ① څرمن، چمړه (د ګيدړي او داسي نور)، ② له څرمن او چمړې څخه جوړ سوی پوستين. ﴿الظِّهَارَة﴾ (بکسر الظاء): د جامې پاسنی (بنکاره) استر، صاحب د معجم يې داسي تعريف کړی دی: الظِّهَارَة من الثوب ما يُظهر للعين منه ولا يلي الجسد وهو خلاف البِطَانَة. يا په بله وينا دا چي د جامې د مخ استر او د مخ کپړه.

**تشريح:** په دې عبارت کي صاحب د هدايې رَحِمَهُ الله د جامع صغير دوې مسئلې بيان کړې دي:

(۱)... که چيري د کپړې اوږده تارونه (يعني کوم چي په کپړه او ټوکر کي په اوږدل سره [طولاً] اوبدل سوي وي که چيري هغه) د د وربښمو وي او د بَر تارونه يې د وربښمو نه وي بلکي له پمبې، وړی، او داسي نورو څخه وي، نو په جنګ وغيره کي د هغه استعمالول بلا کراهته جائز دي؛ ځکه چي له صحابه کرامو رضي الله عنهم څخه د داسي کپړې استعمالول ثابت دي.

او بل دليل دا دی چي د کپړې مدار پر جوړښت دی (بغير له جوړولو کپړه نه تياريږي) او د کپړې د جوړښت مدار پر هغه تارو دی کوم چي په بَر کي (عرضًا) وودل کيږي چي هغه ته په عربي کي اللُّحْمَة وايي، لهذا د کپړې د حُرمت او حلت په هکله به همدا د بَر تارونه (لحمة) اصل وي او د هغه اعتبار به کيږي چي که د يو کپړې او ټوکر د بَر والا تارونه وربښمي وي، نو حرام، کنې حلال به وي.

وقال أبويوسف أكره ثوب القز الخ: **يادونه:** په شروحو کي د دغه عبارت بېلابېل صورتونه بيان سوي دي، خو زما د ناقص فهم مطابق د اثمار الهدايې صورت او تحقيق مناسب را ته څرګند سو. نو د لته زه د هغه مطابق تشريح او صورت په خپل اندازه سره بيانوم:

امام ابو یوسف رَحِمَهُ الله فرمايي چي د ورېښمو هغه کپړه مکروه ده چي د څرمني (لاندیني استر) او پاسني استر تر مینځ وي. یعني که یو جامه داسي وي چي درې غبرګه یعني درې استره وي یا په بله وینا دا چي درې کپړې پکښي ګنډل سوي وي (لکه زموږ په اوسني وخت کي ځیني پنډي ډبلي چپني وغیره چي پر دریو کپړو او استرو مشتمله وي). او د هغې پاسنی استر (اول غبرګ) له پمبه وو یا له وړیو یا له چمړې څخه وي (مطلب دا چي د جامې اول غبرګ او اوله کپړه د ورېښمو نه وي بلکي بل ټوکر وي). او تر هغه لاندي دویم استر د ورېښمو وي او درېیم لاندینی استر د څرمنې (چمړې) یا بل شي څخه وي، نو داسي جامه د امام ابو یوسف رَحِمَهُ الله په نېز مکروه ده؛ ځکه په دې جامه کي د ورېښمو کپړه او ټوکر په مینځ کي دی نو هغه هم په اغوستلو کي راځي (ځکه جامه چي هر څو غبرګه او هر څو کپړې پکښي کارول سوي وي، چي واغوستل سي نو ټوله غبرګونه او کپړې [ټوکران] یې واغوستل سوه. لهذا د ورېښمو کپړه هم پکښي راله). نو ځکه داسي جامه مکروه ده.

لېکن که یو جامه داسي وي چي پاسنی او لاندینی استرېې له پمبې، یا چمړې وغیره څخه وي او په مینځ کي یې د پمبې د بالنبته په څېر ورېښم اچول سوي وي (یا په بله وینا دا چي دوه غبرګې کپړه وي او په مینځ کي یې د ورېښمو ټوټې اچول سوي او تخته کړل سوي وي. او دا پاسنی او لاندینی استر یې له پمبې. وړی یا چمړې څخه وي)، نو داسي څه مکروه نه دي؛ ځکه دلته په مینځ کي د ورېښمو کپړه او ټوکر نه دی راغلی، بلکي د پمبه وو په څېر ورېښم په مینځ کي ور اچول سوي دي یا په بله وینا دا چي په ورېښمو سره یو جامه ډکه کړل سوې ده چي بالنبت او کوربچه هم په دې ضمن کي راځي، نو ځکه بلا کراهته د دې استعمالول صحیح دي.

(۲)... قال وماكان إلخ: په دې سره هغه مخکنی خبره کوي چي که د کپړې او ټوکر د بَر تارونه د ورېښمو وي او اوږده تارونه (سَدی) یې د بل څه وي، نو څرنګه چي اعتبار د بَر تارو لره دی او دلته د بَر تارونه یې ورېښمي دی، نو داسي کپړه مکروه ده. خو څرنګه چي په جنګ کي ورته ضرورت سته. نو د ضرورت پر بناء په جنګ کي یې اغوستل بلا کراهته جائز او روا دي.

**یادونه**: وَقَالَ الشُّرَّاحُ: جُمْلَةُ وُجُوهِ هٰذِهِ الْمَسْأَلَةِ ثَلَاثَةٌ: ① الْأَوَّلُ مَا يَكُوْنُ كُلُّهُ حَرِيْرًا (يعني لُحمته وسَداه كلاهما من الحرير) وَهُوَ الدِّيْبَاجُ. لَا يَجُوْزُ لُبْسُهُ فِي غَيْرِ الْحَرْبِ بِالِاتِّفَاقِ، وَأَمَّا فِي الْحَرْبِ فَعِنْدَ أَبِيْ حَنِيْفَةَ لَا يَجُوْزُ وَعِنْدَهُمَا يَجُوْزُ. ② وَالثَّانِيْ مَا يَكُوْنُ سَدَاهُ حَرِيْرًا وَلُحْمَتُهُ غَيْرَهُ فَلَا بَأْسَ بِلُبْسِهِ فِي الْحَرْبِ وَغَيْرِهِ. ③ وَالثَّالِثُ عَكْسُ الثَّانِيْ وَهُوَ مُبَاحٌ فِي الْحَرْبِ دُوْنَ غَيْرِهِ.

## د سرو یا سپینو زرو زېورات او ګاڼي استعمالول د خلکو لپاره څنګه دي؟

قَالَ: وَلَا يَجُوزُ لِلرِّجَالِ التَّحَلِّيْ بِالذَّهَبِ فرمايي: او جائز نه دي د خلکو [سړيو] لپاره په سرو زرو سره ښکلا اختیارول [یعني د سرو زرو زېورات استعمالول ورلره جائز نه دي] لِمَا رَوَيْنَا د هغه دلیل په وجه کوم چي موږ روایت کړی وَلَا بِالْفِضَّةِ او نه په سپینو زرو سره لِأَنَّهَا فِي مَعْنَاهُ ځکه چي سپین زر هم د سرو زرو په معنیٰ سره دي إِلَّا بِالْخَاتَمِ وَالْمِنْطَقَةِ وَحِلْيَةِ السَّيْفِ مِنَ الْفِضَّةِ مګر د سپینو زرو په ګوتمۍ، کمربندي او د توري په دسته [موټي] سره [ښکلا اختیارول جواز لري] تَحْقِيقًا لِمَعْنَى النَّمُوْذَجِ د دې لپاره چي د نمونې معنیٰ ثابته کړل سي [د دې وضاحت مخکي وسو] وَالْفِضَّةُ أَغْنَتْ عَنِ الذَّهَبِ او سپینو زرو له سرو زرو څخه استغنا پیدا کړه [یعني چي سپین زر وي، نو سرو زرو ته ضرورت نسته (د خلکو په حق کي)] إِذْ هُمَا مِنْ جِنْسٍ وَاحِدٍ ځکه دا دواړه له یوه جنس څخه دي كَيْفَ وَقَدْ جَاءَ فِي إِبَاحَةِ ذٰلِكَ آثَارٌ او څنګه به وي حال دا چي د سپینو زرو د روایښت په هکله څو آثار راغلي دي وَفِي الْجَامِعِ الصَّغِيرِ: وَلَا يَتَخَتَّمُ إِلَّا بِالْفِضَّةِ او په جامع صغیر کي دي: چي ګوتمۍ به نه اغوندي مګر صرف د سپینو زرو وَهٰذَا نَصٌّ عَلَى أَنَّ التَّخَتُّمَ بِالْحَجَرِ وَالْحَدِيدِ وَالصُّفْرِ حَرَامٌ او دا [جمله د جامع صغیر] پر دې خبره صراحت دی چي د ډبرې، اُوسپني او ژړو ګوتمۍ اغوستل [په ګوته کول] حرام دي «وَرَأَى رَسُوْلُ اللهِ ﷺ [1] عَلَى رَجُلٍ خَاتَمَ صُفْرٍ او نبي کریم ﷺ پر [ګوته د] یو سړي د ژړو ګوتمۍ ولیده فَقَالَ: مَا لِيْ أَجِدُ مِنْكَ رَائِحَةَ الْأَصْنَامِ نو ویې فرمایل چي: څه دي مالره [څه خبره ده!] چي زه ستا څخه د بُتانو بوی محسوسوم وَرَأَى عَلَى آخَرَ خَاتَمَ حَدِيدٍ او پر یو بل سړي یې د اوسپني ګوتمۍ ولیده فَقَالَ: مَا لِيْ أَرَى عَلَيْكَ حِلْيَةَ أَهْلِ النَّارِ» نو ویې فرمایل: څه دي مالره چي پر تا د دوږخیانو زېور وینم وَمِنَ النَّاسِ مَنْ أَطْلَقَ الْحَجَرَ الَّذِيْ يُقَالُ لَهُ يَشْبُ او ځینو حضراتو د هغه ډبرې اجازت ورکړی دی چي "یشب". ورته ویل کیږي

[1] تخريج: أخرجه ابو داؤد في كتاب الخاتم، باب ما جاء في خاتم الحديد، ص:٥٩٢، حديث رقم:٤٢٢٣. والترمذي في كتاب اللباس، ص:٤٢٣، حديث رقم:١٧٨٥).

لِأَنَّهُ لَيْسَ بِحَجَرٍ ځکه هغه ډبره نه ده إِذْ لَيْسَ لَهُ ثِقَلُ الْحَجَرِ ځکه چي هغې لره د ډبري درونډ والی نسته [يعني د ډبري په شان وزن نه لري] وَإِطْلَاقُ الْجَوَابِ فِي الْكِتَابِ يَدُلُّ عَلَى تَحْرِيمِهِ او په کتاب [جامع صغير] کي د جواب مطلق کېدل د "يشب" پر حراموالي دلالت کوي.

**اللغات:** ﴿التحلّي﴾ د تفعّل د باب مصدر دی: زينت او ښکلا اختيارول، په يو څه ځان ښايسته کول (يو شی د ځان يا بل څه لپاره زېور جوړول). ﴿مِنطقة﴾ کمر بند (ملاوستنی). هغه پټی چي ملا پر تړل کيږي. ﴿نموذج﴾ نمونه. مثال. ﴿أغنت﴾ د افعال له بابه د واحد مؤنث غائب ماضي صيغه ده: مستغني کول. بې پروا کول. يو شي ته ضرورت نه پاته کول. ﴿لا يتختّم﴾ د تفعّل له بابه د نفي صيغه ده: ګوتمۍ په ګوته کول. ګوتمۍ اغوستل. ﴿صُفر﴾ ژړ. مشهوره فلز دی. ﴿أجِد﴾ د ضرب له بابه د واحد متکلم صيغه ده: پيدا کول. موندل. ﴿حِلْيَة﴾ زېور. د ښکلا شی. ﴿يشب﴾ يو ډول کاڼی دی کوم چي په مختلفه رنګو (ژړ. سور وغير) سره موندل کيږي. ﴿ثقل﴾ بوج. درونډ والی. د وزن زياتوالی.

**تشريح: صورت د مسئلې:** دا دی چي د مسلمانانو خلګو لپاره نه د سرو زرو زېور استعمالول جائز دي او نه د سپينو زرو، خو په سپينو زرو کي بعضي شيان مستثنیٰ دي، مثلاً ګوتمۍ. کمربند. د توري موټې او داسي نور چي که دا شيان له سپينو زرو څخه وي. نو په استعمال کي يې هيڅ حرج نسته.

لما روينا إلخ: فرمايي چي د سرو زرو د حرمت دليل خو هغه مخکيني حديث دی يعني "هٰذان حراماًن على ذکور اُمتي"، او هلته که څه هم د سپينو زرو حکم بيان سوی نه دی، خو څرنګه چي سپين زر د سرو زرو په معنیٰ سره دي او تر ډېري اندازې دواړه په ښکلا ترلاسه کولو کي سره ورته دي، نو ځکه کوم حکم چي د سرو زرو دی، هغه به د سپينو زرو هم وي، خو ګوتمۍ وغيره مستثنیٰ دی چي د دوی پر جواز آثار او روايات نقل سوي دي.

تحقيقا لمعنى النموذج إلخ: د دې جملې مطلب دا دی چي څرنګه ورېښم د ضرورت پر بناء جائز ګرځول سوي دي چي يو مسلمان هغه د خپل ځان لپاره نمونهٔ عمل ګرځوي (چي وضاحت يې مخکي وسو)، نو همداسي سپين زر هم په ګوتمۍ وغيره کي د ضرورت پر بناء د نمونې په توګه جائز ګرځول سوي دي. او څرنګه چي سره او سپين زر دواړه هَم معنیٰ دي. نو ځکه سپين زر کوم چي ادنیٰ دي. صرف د هغه په نمونې پېشولو باندي اکتفاء سوې ده او د اعلیٰ يعني د سرو زرو له جواز او له نمونې پېشولو څخه احتراز سوی دی.

وفي الجامع الصغير إلخ: امام محمد رَحِمَهُ الله په جامع صغير کي په ټينګار سره دا ويلي دي چې مسلمان دي له سپينو زرو څخه بغير د بل شي ګوتمي نه په ګوته کوي، د جامع صغير دا عبارت د دې خبرې څرګند ثبوت دی چې د ډبرې، او سپينې وغيره ګوتمۍ په ګوته کول ناجائز او حرام دي او خپله نبي ﷺ د داسې کسانو په حق کې د ناراضۍ اظهار کړی دی. حديثونه په عبارت کې ذکر سوه.

ومن الناس إلخ: فرمايي ځيني حضرات چې له هغوی څخه شمس الائمه سرخسي رَحِمَهُ الله هم دی د يَشب نومې ډبرې ګوتمۍ جائز ګرځولې ده. او وجه يې دا بيان کړې ده چې هغه ډبره نه ده: ځکه د ډبرې په څېر وزنداره نه ده نو من کل وجه ډبره نه سوه. لهذا د هغې استعمال جائز کېدل پکار دي چې په ګوته کړل سي. لېکن د جامع صغير په دې عبارت "لا يتختم إلا بالفضة" کې د يَشب ډبرې وغيره هيڅ تفصيل نسته. نو ځکه د هغې ګوتمۍ هم پکښې داخله ده چې اغوستل يې صحيح نه دي.

## د سرو زرو يا سپينو زرو ګوتمۍ استعمالول د خلکو لپاره څنګه دي؟

وَالتَّخَتُّمُ بِالذَّهَبِ عَلَى الرِّجَالِ حَرَامٌ او د سرو زرو ګوتمۍ اغوستل [په ګوته کول] پر خلکو حرام دي لِمَا رَوَيْنَا د هغه حديث په وجه کوم چې موږ روايت کړی وَعَنْ عَلِيٍّ رَضِيَ اللهُ عَنْهُ «أَنَّ النَّبِيَّ عَلَيْهِ الصَّلَاةُ وَالسَّلَامُ نَهَى عَنِ التَّخَتُّمِ بِالذَّهَبِ»[1] او له حضرت علي رَضِيَ اللهُ عَنْهُ څخه روايت دی: چې نبي ﷺ د سرو زرو له ګوتمۍ اغوستو څخه منع کړې ده وَلِأَنَّ الْأَصْلَ فِيهِ التَّحْرِيمُ او ځکه چې په سرو زرو کي حراموالی اصل دی وَالْإِبَاحَةُ ضَرُورَةُ الْخَتْمِ أَوِ النَّمُوذَجِ او [د ګوتمۍ] روايښت د مهر لګولو يا د نمونې د ضرورت په خاطر دی وَقَدِ انْدَفَعَتْ بِالْأَدْنَى وَهُوَ الْفِضَّةُ او دا ضرورت په ادنی يعني په سپينو زرو سره پوره سو [يعني دا ضرورت په سپينو زرو سره هم پوره کېږي] وَالْحَلْقَةُ هِيَ الْمُعْتَبَرَةُ او [په ګوتمۍ کې] اعتبار د ګوتمۍ حلقې لره دی لِأَنَّ قِوَامَ الْخَاتَمِ بِهَا ځکه چې د ګوتمۍ قايموالی [او جوړښت] په همدې حلقه سره دی وَلَا مُعْتَبَرَ بِالْفَصِّ او د ګوتمۍ غمي لره اعتبار نسته حَتَّى يَجُوزَ أَنْ يَكُونَ مِنْ حَجَرٍ تر دې چې دا جائز دي چې د ګوتمۍ غمی له ډبرې څخه وي وَيَجْعَلَ الْفَصَّ إِلَى بَاطِنِ كَفِّهِ او غمی به د خپل ورغوي [الاس] دننه طرف ته ګرځوي [يعني غمی به يې د ورغوي وطرف ته کوي] بِخِلَافِ النِّسْوَانِ په خلاف د

---

[1] تخريج: أخرجه الترمذي، باب ما جاء في كراهية خاتم الذهب، ص:۴۱۵، حديث رقم:۱۷۳۷.

ښځو لِأَنَّهُ تَزَيُّنٌ فِيْ حَقِّهِنَّ ځکه ګوتمۍ اغوستل [په ګوته کول] د ښځو په حق کې ښکلا [او سینګار کول] دي وَإِنَّمَا يَتَخَتَّمُ الْقَاضِيْ وَالسُّلْطَانُ او ګوتمۍ به قاضي او باچا اغوندي لِحَاجَتِهِ إِلَى الْخَتْمِ. ځکه چې د هغه [قاضي او باچا] مهر لګولو ته ضرورت دی وَأَمَّا غَيْرُهُمَا فَالْأَفْضَلُ أَنْ يَتْرُكَهُ او له دې دواړو څخه بغیر [بل چا] لره افضل دا ده چې هغه پرېږدي [ګوتمۍ په ګوته نه کړي] لِعَدَمِ الْحَاجَةِ إِلَيْهِ ځکه چې مهر لګولو ته د بل چا ضرورت نسته.

**اللغات**: ﴿تختم﴾ د تفعل د باب مصدر دی: ګوتمۍ په ګوته کول. ګوتمۍ اغوستل. ﴿ختم﴾ د نصر ماضي ده: مهر لګول (ټاپه لګول). ﴿فصّ﴾ د ګوتمۍ غمی. ﴿تزيّن﴾ د تفعل د باب مصدر دی. د تجلی په معنیٰ سره دی یعنې: زینت او ښکلا اختیارول (خو تحلی عموماً د سرو او سپینو زرو سره استعمالیږي).

**تشریح**: د عبارت حاصل دا دی چې د خلکو لپاره د سرو زرو ګوتمۍ اغوستل حرام دي؛ ځکه په حدیث شریف "هٰذَانِ حَرَامَانِ عَلٰى ذُكُوْرِ أُمَّتِيْ" کې دا صراحتاً ذکر سوي دي. همدارنګه له حضرت علي رضي الله عنه څخه هم د سرو زرو د ګوتمۍ اغوستلو د حرمت په هکله حدیث روایت سوی دی. او د "هٰذَانِ حَرَامَانِ..." پر بناء په سرو زرو کې اصل شی حرمت دی، خو د مهر او نمونې د ضرورت په خاطر یې حلت او اباحت ثابت سوی دی. او کله چې (د خلکو په حق کې) دا ضرورت په ادنیٰ یعني په سپینو زرو سره پوره کیږي (لکه مخکې چې هم ذکر سوه). نو اعلیٰ ته هیڅ ضرورت نسته: ځکه دا قاعده ده چې: "الضرورة تتقدّر بقدرها".

**والحلقة إلخ**: فرمایي د ګوتمۍ د جوړښت ټوله مدار پر حلقه او کړۍ دي (ځکه ګوتمۍ همدې ته وایي چې د حلقې په شیان ګول جوړه کړل سي او بیا پر سر د غمي ځای ورکول سي)، نو ځکه اعتبار صرف حلقې لره دی. نه غمي وغیره لره، همدا وجه ده که د ګوتمۍ حلقه له سپینو څخه وي او په حلقه کې ایښول سوی غمی د ډبرې وي نو جائز دي، لېکن که د ګوتمۍ حلقه له ډبرې څخه وي، نو دا جائز نه دي، ځکه د ګوتمۍ په حلت او حرمت کې اعتبار حلقې لره دی.

**ويجعل الفصّ إلخ**: څرنګه چې د ګوتمۍ اغوستل د هغه سړي په حق کې منقول دي چې د مهر (ټاپه) لګولو په غرض یا د نمونې په توګه یې اغوندي. نو ځکه سړي لره پکار دي چې د ګوتمۍ د غمي والا طرف د ورغوي وطرف ته ساتي، چې له زینت او ښکلا څخه محفوظ پاته وي، خو څرنګه چې ښځې د زینت او ښکلا لپاره ګوتمۍ اغوندي، نو ځکه هغوی دې یې ښکاره ساتي یعني د ګوتې پر پاسني طرف دې یې ساتي.

وإنما يتختم إلخ: د دې حاصل دا دی چې څرنګه د خلکو په حق کې د ګوتمې اغوستلو اصل مقصد مهر لګول دي، نو څوک چې دا مقصد تر سره کوي، هم هغه ته ګوتمې اغوستل پکار دي، چې په عامه توګه قاضي يا باچا دغه کار ترسره کوي. لهذا له دوی څخه بغير د بل چا په حق کې ضرورت ختم نسته، نو د بل چا لپاره د ګوتمې نه استعمالول ښه دي.

**يادونه**: د اوسپنې وغيره ګوتمې جائز کېدل پکار دي، لکه څرنګه چې د ابو داؤد په يو حديث کې ذکر سوي دي: كان خاتم النبي ﷺ من حديد ملوى عليه فضة (ابو داؤد، باب ما جاء في خاتم الحديد، ص: ٥٩٢، حديث رقم: ٤٢٢٣، وايضا في مصنف ابن أبي شيبة، حديث رقم: ٢٥١٢٤)

## د سرو زرو نور شيان استعمالول

قَالَ: وَلَا بَأْسَ بِمِسْمَارِ الذَّهَبِ يُجْعَلُ فِي حَجَرِ الْفَصِّ أَيْ فِي ثُقْبِهِ فرمايي: او پروا نسته په دې کې چې د سرو زرو مېخ د ګوتمې د غمي په سوري کې ولګول سي لِأَنَّهُ تَابِعٌ ځکه دا مېخ تابع دی كَالْعَلَمِ فِي الثَّوْبِ لکه په کپړه کې [لګول سوی] نقش ونګار [چې د کپړې تابع دی] فَلَا يُعَدُّ لَابِسًا لَهُ نو [د داسې مېخ والا ګوتمې اغوستونکي] به د سرو زرو اغوستونکی نه شمېرل کېږي قَالَ: وَلَا تُشَدُّ الْأَسْنَانُ بِالذَّهَبِ وَتُشَدُّ بِالْفِضَّةِ فرمايي: او نه به ټړل کېږي غاښونه په [تار د] سرو زرو سره [بلکې] ټړل کېږي به په [تار د] سپينو زرو سره وَهٰذَا عِنْدَ أَبِي حَنِيفَةَ او دا [حکم] د امام صاحب رَحِمَهُ الله په نيز دی وَقَالَ مُحَمَّدٌ ۞: لَا بَأْسَ بِالذَّهَبِ أَيْضًا او امام محمد رَحِمَهُ الله فرمايي: چې په سرو زرو هم څه پروا نه لري وَعَنْ أَبِي يُوسُفَ مِثْلُ قَوْلِ كُلٍّ مِنْهُمَا او له امام ابو يوسف رَحِمَهُ الله څخه د دوی [طرفينو] د هر يوه د قول په څېر [قول نقل سوی] دي [يعني له هغه څخه هم دوه قوله نقل سوي دي] لَهُمَا: «أَنَّ عَرْفَجَةَ بْنَ أَسْعَدَ [1] أُصِيبَ أَنْفُهُ يَوْمَ الْكِلَابِ د صاحبينو رَحِمَهُمَا الله دليل دا دی: چې د کلاب [د جنګ] په ورځ د حضرت عرفجه رَضِيَ الله عَنْه پزه ضايع سوه [پرې کړل سوه] فَاتَّخَذَ أَنْفًا مِنْ فِضَّةٍ نو هغه د سپينو زرو پزه جوړه کړه فَأَنْتَنَ بيا هغه بد بويه [خرابه] سوه فَأَمَرَهُ النَّبِيُّ عَلَيْهِ السَّلَام بِأَنْ يَتَّخِذَ أَنْفًا مِنْ ذَهَبٍ» نو رسول الله ﷺ هغه په دې سره امر کړی چې د سرو زرو پزه جوړه کړي [ولګوي]

---

۞ القول الراجح: قول أبي حنيفة رَحِمَهُ الله كما ظهر من دأب المصنف. و كما ذكر في الخانية (ج:٤، ص:٣٧١)، وملتقى الأبحر (ج:٤، ص:١٩٦)، و رد المحتار (ج:٥، ص:٢٥٥). [القول الراجح ج:٢، ص:٣٠٠]

[1] تخريج: أخرجه ابو داؤد، باب ما جاء في ربط الاسنان بالذهب، ص:٥٩٣، حديث رقم:٤٢٣٢.

وَلِأَبِي حَنِيفَةَ: أَنَّ الْأَصْلَ فِيهِ التَّحْرِيمُ او د امام صاحب رَحِمَهُ الله دليل دا دی: چې په سرو زرو کې حراموالی اصل دی وَالْإِبَاحَةُ لِلضَّرُورَةِ او روايښت د ضرورت په وجه دی وَقَدِ انْدَفَعَتْ بِالْفِضَّةِ وَهِيَ الْأَدْنَى او ضرورت په سپينو زرو يعني په ادنیٰ سره پوره سو [يعني کوم ضرورت چې دی هغه په سپينو زرو هم ښه شکه پوره کيږي] فَبَقِيَ الذَّهَبُ عَلَى التَّحْرِيمِ نو سره زر پر [خپل اصل] حراموالي پاته سوه وَالضَّرُورَةُ فِيمَا رُوِيَ لَمْ تَنْدَفِعْ فِي الْأَنْفِ دُونَهُ او کوم حديث چې [د حضرت عرفجه په هکله] روايت سوی دی په هغه کې ضرورت له سرو زرو څخه بغير [يعني په سپينو زرو سره] پوره نه سو. حَيْثُ أَنْتَنَ ځکه چې [د سپينو زرو] پزه بدبويه سوه.

**اللغات:** ﴿مِسمار﴾ ميخ، جمع: مَسَامِير. ﴿جُحر﴾ غار. ﴿ثَقب﴾ سوری. ﴿عَلَم﴾ د دې لفظ يوه معنیٰ ده: نقش ونګار (نخش ونګار)، د کپړې ګلکاري. ﴿أنتن﴾ د افعال د باب ماضي ده: بدبويه کېدل. خوسا کېدل. خرابېدل.

**تشريح:** په دې عبارت کې دوې مسئلې ذکر سوي دي:

(۱)... اعتبار په هر شي کې متبوع لره وي. نه تابع لره. لهذا که د سرو زرو مېخ وغيره د غمي په سوري کې نصب کړی سي. نو د داسي ګوتمۍ او غمي په استعمالولو کې څه حرج نسته؛ ځکه چې دلته سره زر تابع دي او پر تابع هيڅ حکم نه لګول کيږي. لهذا د داسي ګوتمۍ او غمي استعمالونکی د سرو زرو (ذهب) استعمالونکی نه دی.

(۲)... دويمه مسئله دا ده چې د امام صاحب رَحِمَهُ الله په نېز د سرو زرو په تار سره غاښ تړل جائز نه دي. همدا د امام ابو يوسف رَحِمَهُ الله يو قول هم دی. خو د امام محمد رَحِمَهُ الله په نېز چې څرنګه د سپينو زرو په تار سره غاښ تړل جائز دي، همداسي د سرو زرو په تار سره هم جائز دي. همدا د امام ابو يوسف رَحِمَهُ الله دويم قول دی.

**د صاحبينو دليل:** صاحبين رَحِمَهُمَا الله د حضرت عرفجه رَضِيَ اللهُ عَنْهُ په حديث سره دليل نيسي. فرمايي چې د "جنګ کلاب" په ورځ د هغه پزه پرې سوې وه. نو نبي ﷺ هغه ته د سرو زرو د پزې جوړولو حکم وکړی. لهذا که چيري په دې هکله سره زر جائز نه وای. نو نبي ﷺ به دا حکم نه کولای. او کله چې ټوله پزه د سرو زرو جوړول جائز دي. نو په غاښونو کې به معمولي غوندي تار لګول خو په درجه اولیٰ جائز وي.

**د امام صاحب دليل:** دا دی چې اصل په سرو زرو کې حرمت دی. او اباحت عارضي دی. او کله چې تر سرو زرو په ادنیٰ يعني په سپينو زرو سره ضرورت پوره کيږي. نو بيا خامخا د سرو زرو د تار لګولو يا په سرو زرو سره د دکولو څه ضرورت دی. لهذا کله چې په سپينو زرو سره هم کار کيږي. نو د سرو زرو به قطعاً اجازت نه ورکول کيږي.

ومارُوي إلخ: فرمايي کوم حضرات چي د حضرت عرفجه رضي الله عنه په حديث سره دليل نيسي. د هغه دوه جوابه دي:

①... په دغه حديث سره دليل نيول صحيح نه دي؛ ځکه دا حديث خو د پزي په هکله دی. د غاښ هيڅ تذکره پکښي نشته.

②... دويم جواب دا دی چي مقصد ضرورت پوره کېدل دي. او د حضرت عرفجه ضرورت خو په سپينو زرو سره پوره نه سوه چي په هغه کي يې پرې سوې پزه بدبويه سوه. نو ځکه هغه ته د سرو زرو د پزي جوړولو اجازت ورکول سو. تاسي خپله فکر وکړئ! چي حضرت عرفجه رضي الله عنه ته هم اول د ادنیٰ يعني د سپينو زرو حکم سوی وو. خو د مجبوری او عذر په وجه بيا د اعلیٰ (سرو زرو) حکم ورته وسو. او د ضرورت په وخت کي خو موږ هم په حلت او جواز ګويا يو چي "الضرورات تبيح المحظورات".

## د کوچني بچيانو او هلکانو لپاره د وربښمو او سرو زرو استعمالول

قَالَ: وَيُكْرَهُ أَنْ يُلْبَسَ الذُّكُورَ مِنَ الصِّبْيَانِ الذَّهَبُ وَالْحَرِيرُ فرمايي: او مکروه دي دا چي نارينه کوچنيانو ته سره زر يا وربښم ور واغوستل سي لِأَنَّ التَّحْرِيمَ لَمَّا ثَبَتَ فِي حَقِّ الذُّكُورِ وَحَرُمَ اللُّبْسُ ځکه کله چي د نارينه وو په حق کي [د دې شيانو] حراموالی ثابت سو او اغوستل [يې] حرام سوه حَرُمَ الْإِلْبَاسُ نو [بل چا ته يې] وراغوستل به هم حرام وي كَالْخَمْرِ لَمَّا حَرُمَ شُرْبُهَا حَرُمَ سَقْيُهَا لکه شراب چي کله د هغه چيښل حرام دي نو په [بل چا] چيښل يې هم حرام دي.

**اللغات:** ﴿ذکور﴾ جمع د ذَکَرٌ: نارينه. ﴿سقي﴾ د ضرب د باب مصدر دی: په چيښل، اوبول.

**تشريح: مسئله:** دا ده چي کوچنيان که څه هم مکلف نه دی، خو بيا هم د دوی لپاره وربښم او سره زر استعمالول مکروه دي، ځکه کله چي د خلګو لپاره د دې شيانو اغوستل او استعمالول حرام دی، نو همداسي به کوچنيانو ته هم د دې ور اغوستل حرام وي، مثلاً شراب چي د مسلمان لپاره د هغه چيښل حرام دي، نو په بل چا هم د هغه چيښل حرام دي؛ ځکه په حديث کي دا مضمون وارد سوی دی چي "الدال على الخير كفاعله والدال على الشر كفاعله".

## د مخ وغيره د وچولو لپاره ځانګړی دسمال ګرځول (تفصيلي حکم)

قَالَ: وَتُكْرَهُ الْخِرْقَةُ الَّتِي تُحْمَلُ فَيُمْسَحُ بِهَا الْعَرَقُ فرمايي: او مکروه ده د کپړې هغه ټوټه کوم چي د ځان سره ورل کيږي بيا په هغه سره خوله وچول کيږي [يعني د کپړې ټوټه (دسمال) چي د خولې وغيره

وچولو په غرض يې د ځان سره ګرځوي. دا مکروه دي] لِأَنَّهُ نَوْعُ تَجَبُّرٍ وَتَكَبُّرٍ ځکه دا يو ډول جبر او لويي کول [ځان لوړ ښودل] دي وَكَذَا الَّتِي يُمْسَحُ بِهَا الْوُضُوْءُ أَوْ يُمْتَخَطُ بِهَا او همدارنګه هغه کپړه چي په هغه سره د اودس اوبه وچول کيږي يا په هغه سره پزه پاکول کيږي وَقِيلَ: إِذَا كَانَ عَنْ حَاجَةٍ لَا يُكْرَهُ او ويل سوي دي: چي کله د ضرورت په وجه وي نو مکروه نه دي وَهُوَ الصَّحِيحُ او همدا صحيح ده وَإِنَّمَا يُكْرَهُ إِذَا كَانَ عَنْ تَكَبُّرٍ وَتَجَبُّرٍ او مکروه هلته دي کله چي د کبر او جبر کولو په توګه وي وَصَارَ كَالتَّرَبُّعِ فِي الْجُلُوْسِ او دا داسي سو لکه چارزانو کښېنستل وَلَا بَأْسَ بِأَنْ يَرْبِطَ الرَّجُلُ فِي أُصْبُعِهِ أَوْ خَاتَمِهِ الْخَيْطَ لِلْحَاجَةِ او څه پروا نسته په دې کي چي سړی پر خپله ګوته يا پر خپلي ګوتمۍ د يو ضرورت په وجه تار [سپنسی] وتړي وَيُسَمّٰى ذٰلِكَ الرَّتَمُ وَالرَّتِيْمَةُ او دغه تار ته رتم او رتيمه ويل کيږي وَكَانَ ذٰلِكَ مِنْ عَادَةِ الْعَرَبِ او دا د عربو له عادت څخه وو قَالَ قَائِلُهُمْ: د عربو يو [شعر] ويونکی وايي:

لَا يَنْفَعَنَّكَ الْيَوْمَ إِنْ هَمَّتْ بِهِمْ

هيڅکله به نن تا ته نفع [ګټه] نه وکړي که چيري ښځي د خلکو سره [د بدکاری] اراده کړې وي

كَثْرَةُ مَا تُوْصِيْ وَتَعْقَادُ الرَّتَمِ

ډېروالی د وصيت چي ته يې کوې او تار چي ته يې [پر ګوته وغيره] تړې [يعني ګټه به نه وکړي ستا ډېر وصيت کول او ستا تار تړل]

وَقَدْ رُوِيَ أَنَّ النَّبِيَّ عليه السلام أَمَرَ [1] بَعْضَ أَصْحَابِهِ بِذٰلِكَ او روايت سوی دی چي نبي ﷺ خپل يو صحابي ته د دې [تار تړلو] حکم وکړی وَلِأَنَّهُ لَيْسَ بِعَبَثٍ او ځکه چي دا عبث نه دي لِمَا فِيْهِ مِنَ الْغَرَضِ الصَّحِيْحِ ځکه په دې کي يو صحيح غرض دی وَهُوَ التَّذَكُّرُ عِنْدَ النِّسْيَانِ او هغه د هيري پر مهال يادېدل دي [يعني پر ګوته وغيره تار تړل د يو صحيح مقصد په غرض سره کيږي او هغه دا چي که فلانی کار را څخه هېر سو، نو تار ته په کتلو سره به را ته ياد سي].

---

[1] قال صاحب الثمار الهدايه: لم أجده وقال صاحب احسن الهدايه: أخرجه الطبراني في معجم الوسيط عن بشر بن ابراهيم الانصاري بمعناه.

**اللغات**: ﴿خِرقة﴾ د کپړې (ټوکر) ټوټه. ګودړ. ﴿عَرَق﴾ خوله. ﴿تجبّر﴾ د تفعّل د باب مصدر دی: سرکښه کېدل، کبر او لويي کول. ﴿يتمخط﴾ د تفعّل د باب مضارع ده: پزه صفا کول. ګرنګ وغيره پاکول. ﴿تربّع﴾ دا هم د تفعّل مصدر دی: چار زانو کښېنستل. ﴿خيط﴾ تار. سپنسی. ﴿عبث﴾ لغو او بې فايدې کار. ﴿همّت﴾ د نصر له بابه د واحد مؤنث غائب ماضي صيغه ده. د دې باب يو معنیٰ ده: پخه اراده کول. ﴿تعقاد﴾ صاحب د حاشيې وايي چې "تَعْقَاد" مصدر دی په معنیٰ د عَقْد سره پر وزن د تَفْعَال دی لکه تلعّاب او تهداب. ﴿الرّتم﴾ او الرّتمة او الرّتيمة: هغه تار کوم چې د يو علامت يا د يو حاجت يادوني لپاره پر ګوته يا ګوتمی. تړل کيږي. ﴿تذکّر﴾ د تفعّل د باب مصدر دی: يادېدل (په ياد کېدل). ياد ساتل.

**تشريح: صورت د مسئلې**: دا دی چې ځيني خلک د خولې (عرق) وچولو لپاره يا تر اودس وروسته د اندامو د وچولو يا د پزې پاکولو لپاره دُسمال وغيره د ځان سره ساتي، که چيرې دا تکبّر او خيال خانی لپاره وي، نو هغه د ځان سره ساتل او استعمالول مکروه دي؛ او بل دا چې دا د اهلِ عجمو طريقه ده. لهذا له کراهت څخه به خالي نه وي. او که چيرې د ضرورت پر بناء وي، نو جائز دي. لکه چار زانو کښېنستل چې د خيال او تکبّر په غرض مکروه دي او د مجبورۍ او ضرورت په وجه جائز دي، همداسې د دُسمال مسئله ده.

ولابأس إلخ: د دې حاصل دا دی چې که د يو کار او شي د ياد ساتلو په خاطر يا د داسې بل ضرورت په خاطر که څوک پر خپل ګوته يا ګوتمی. تار (سپنسی) وغيره وتړي، نو شرعاً دا جائز دي؛ ځکه دا فعل يې عبث نه دی؛ ځکه په دې سره يې د يو جائز مقصد حاصلولو لپاره آسانه تدبير کړی دی؛ او خپله رسول الله ﷺ هم يو صحابي ته د داسې مقصد لپاره د تار وغيره د تړلو اجازت ورکړی دی، او عربو به هم چې کله چا ته يو تنبيه ورکوله يا يو شرير انسان به يې له خپل بدي او شرارت څخه منع کوی، نو د هغه پر ګوته وغيره به يې تار تړی، د دې لپاره چې د بدي کولو پر مهال هغه تار ته ګوري او له خپل بدی څخه ځان ساتي. لکه څرنګه چې په شعر کي هم دې طرف ته اشاره سوې ده چې که يو ښځه په بديو اموخته او عادي سي او د خلکو سره د بدکارۍ کولو ژمنه وکړي، نو هغې ته چې ته څومره هم نصيحت وکړې، هغه بې کاره او د هغې پر ګوته وغيره په تار تړلو سره هيڅ نه کيږي. خو څرنګه چې د يو کار پر ښودلو يا د يو کار د ياد ساتلو په غرض مذکوره طريقه استعمالول مفيده ثابتيږي. لهذا د هغه ګنجائش سته. خو د جاهله او ناخبره عوامو لپاره دا طريقه پرېښودل (تار نه تړل) غوره دي ځکه چې اوس بېلا بېلو بدعاتو او خرافاتو د انسان زړه او دماغ په بده توګه متأثر کړی دی. (احسن الهدايه)

❁❁❁

# فَصْلٌ فِي الْوَطْيِ وَالنَّظَرِ وَاللَّمْسِ

(دا) فصل په (بیان د) وطي کولو، کتلو او مسه کولو کي دی

## د ښځي د بدن هغه اعضاء چي په عورت کي داخل نه دي

قَالَ: وَلَا يَجُوزُ أَنْ يَنْظُرَ الرَّجُلُ إِلَى الْأَجْنَبِيَّةِ إِلَّا وَجْهَهَا وَكَفَّيْهَا فرمايي: او جائز نه دي دا چي سړی وګوري د پردی ښځي وطرف ته مګر د هغې مخ او د هغې ورغوي [الاسونه] لِقَوْلِهِ تَعَالَى ﴿وَلَا يُبْدِينَ زِينَتَهُنَّ إِلَّا مَا ظَهَرَ مِنْهَا﴾ [النور: ۳۱] ځکه الله تعالیٰ فرمايلي دي: او نه دي ښکاره کوي ښځي خپل ښکلا مګر هغه کوم چي خپله ښکاري قَالَ عَلِيٌّ وَابْنُ عَبَّاسٍ رَضِيَ اللهُ عَنْهُمْ: مَا ظَهَرَ مِنْهَا الْكُحْلُ وَالْخَاتَمُ حضرت علي او ابن عباس (رض) فرمايلي دي چي: "ما ظهر منها" رانجه او ګوتمۍ دي وَالْمُرَادُ مَوْضِعُهُمَا وَهُوَ الْوَجْهُ وَالْكَفُّ او مراد د رانجه او ګوتمۍ ځای دی چي هغه مخ او ورغوی [لاس] دی كَمَا أَنَّ الْمُرَادَ بِالزِّينَةِ الْمَذْكُورَةِ مَوْضِعُهَا لکه څرنګه چي په [آيت کي په] ذکر سوي ښکلا سره مراد د هغه ځای دی وَلِأَنَّ فِي إِبْدَاءِ الْوَجْهِ وَالْكَفِّ ضَرُورَةً او ځکه چي د مخ او ورغوي په څرګندولو [ښکاره کولو] کي ضرورت دی لِحَاجَتِهَا إِلَى الْمُعَامَلَةِ مَعَ الرِّجَالِ أَخْذًا وَإِعْطَاءً وَغَيْرَ ذٰلِكَ د ښځو د محتاجه کېدو په وجه د خلکو سره معامله کولو ته د اخيستلو او ورکولو او داسي نورو په اعتبار سره [په بله وينا دا: او ځکه چي په اخيستنه او ورکونه او داسي نورو کي د خلکو سره د مخامخ کېدو د ضرورت په خاطر د مخ او لاس ښکاره کولو ته ضرورت دی] وَهٰذَا تَنْصِيصٌ عَلَى أَنَّهُ لَا يُبَاحُ النَّظَرُ إِلَى قَدَمِهَا او دا په دې خبره صراحت کول دي چي د ښځي پښې ته کتل روا نه دي وَعَنْ أَبِي حَنِيفَةَ أَنَّهُ يُبَاحُ او له امام صاحب رَحِمَهُ الله څخه روايت سوی دی چي دا روا دي لِأَنَّ فِيهِ بَعْضَ الضَّرُورَةِ ځکه په دې کي هم څه ضرورت سته وَعَنْ أَبِي يُوسُفَ أَنَّهُ يُبَاحُ النَّظَرُ إِلَى ذِرَاعِهَا أَيْضًا او له امام ابو يوسف رَحِمَهُ الله څخه روايت دی چي د ښځي بازو [مټ] ته کتل هم روا دي لِأَنَّهُ قَدْ يَبْدُو مِنْهَا عَادَةً ځکه عادتاً هغه هم ځيني وخت له ښځي څخه ښکاره کيږي.

**اللغات:** ﴿كف﴾ ورغوى سره له ګوتو. الرَّاحَةُ مَعَ الْأَصَابِعِ (إلى منتهى الأصابع)، سُمِّيَتْ بِذٰلِكَ لِأَنَّهَا تَكُفُّ الْأَذٰى عَنِ الْبَدَنِ. ﴿كحل﴾ رانجه. ﴿إبداء﴾ د افعال د باب مصدر دی: ښکاره کول. ﴿ذِراع﴾ بازو. مټ. لاس له څنګلو څخه د ګوتو تر سره (اليد من المرفق إلى أطراف الأصابع).

**تشریح: مسئله:** دا ده چي له مخ او ورغوو څخه بغیر نور د ښځي ټوله بدن په سترِ عورت کي داخل دی. لهذا له مذکوره دوو اندامو څخه بغیر د پردی ښځي بل اندام ته کتل جائز نه دي: دلیل دا آیت دی ﴿وَلَا يُبْدِينَ إلخ﴾. د حضرت علي او ابن عباس رَضِيَ اللهُ عَنْهُمْ په تفسیر د دغه آیت کي د همدې دوو شیانو استثناء سوې ده. او څرنګه چي ښځو ته د مواضعِ زینة د پټولو حکم سوی دی. همداسي د مواضع سرمه او ګوتمی یعني له مخ او ورغوو څخه بغیر د نورو ځایونو هم د پټولو حکم دوی ته سوی دی.

او د مذکوره دوو ځایونو د نه پټولو اجازت ځکه ورکول سوی دی چي په دې کي ضرورت او مجبوري ده: ځکه د ښځو هم د خلکو سره معامله او سودا کولو ته ضرورت پېښېږي چي څه ځني واخلي او څه ورکړي او داسي نور. نو د مجبورۍ په وجه مخ او لاسونه ښکاره کولای سي (دا عقلي دليل دی).

وهٰذا تنصيص إلخ: د دې حاصل دا دی چي حضرت علي او ابن عباس رَضِيَ اللهُ عَنْهُمْ چي د مذکوره آيت په تفسير کي مخ او ورغوو ته اشاره کړې ده. له دې څخه دا هم صراحتاً ثابتيږي چي د پردی ښځي پښو ته کتل هم ناجائز دي. خو له امام صاحب رَحِمَهُ الله څخه يو روايت دا دی چي د ښځي پښو ته کتل جائز دي: ځکه د پښو ښکاره کېدو ته هم ضرورت پېښيږي. او له امام ابو يوسف رَحِمَهُ الله څخه يو روايت دا دی چي د جامو او کاليو د پرېوللو پر مهال د ښځي لیځي او مټان هم حتماً ښکاره کيږي. نو د ضرورت پر بناء هغوی ته هم کتل جائز دي. ځکه که پر دې پابندي ولګول سي. نو حرج به لازم سي. والحرج مدفوعٌ في الشرع.

## په شهوت سره د ښځي ورېښتو وغيره ته د کتلو حکم

قَالَ: فَإِنْ كَانَ لَا يَأْمَنُ الشَّهْوَةَ [امام قدوري رَحِمَهُ الله] فرمايي: او که چيري هغه له شهوت څخه په امن [او مطمئن] نه وي لَا يَنْظُرُ إِلَى وَجْهِهَا إِلَّا لِحَاجَةٍ نو د هغې مخ ته دي نه ګوري مګر د يوه ضرورت په وجه لِقَوْلِهِ عَلَيْهِ الصَّلَاةُ وَالسَّلَامُ [1]: «مَنْ نَظَرَ إِلَى مَحَاسِنِ امْرَأَةٍ أَجْنَبِيَّةٍ عَنْ شَهْوَةٍ ځکه نبي ﷺ فرمايلي دي: څوک چي د پردی ښځي ښکلاوو ته د شهوت په نظر سره وګوري صُبَّ فِي عَيْنَيْهِ الْآنُكُ يَوْمَ

[1] تخريج: أخرجه ابن الأثير في النهاية في غريب الحديث والأثر (ج١، ص:٧٧). دا حديث په اصل کي د دوو حديثونو مجموعه ده چي د دې په مفهوم او معنی سره په بخاري شريف او ابوداؤد کي دوه حديثونه ذکر سوي دي (بخاري شريف، باب من كذب في حلمه، ص:١٢١٤، حديث رقم:٧٠٤٢. ابو داؤد شريف، باب ما يؤمر به من غض البصر، ص:٣١٠، حديث رقم:٢١٤٨).

الْقِيَامَةِ» نو د قيامت په ورځ به يې په سترګو کي سرپ ور واچول سي فَإِذَا خَافَ الشَّهْوَةَ نو کله چي کتونکی پر شهوت وبيرېږي [چي شهوت به مي پورته سي] لَمْ يَنْظُرْ مِنْ غَيْرِ حَاجَةٍ نو بلا ضرورته دي نه [ورته] ګوري تَحَرُّزًا عَنِ الْمُحَرَّمِ له حرام کار ځخه د بچ کېدو لپاره وَقَوْلُهُ لَا يَأْمَنُ يَدُلُّ عَلَى أَنَّهُ لَا يُبَاحُ إِذَا شَكَّ فِي الِاشْتِهَاءِ او د قدوري دا قول "لا يأمن" [چي که له شهوت ځخه په امن نه وي] پر دې دلالت کوي چي [هغه وخت هم] کتل روا نه دي کله چي يې د شهوت راپورته کېدو شک وي كَمَا إِذَا عَلِمَ أَوْ كَانَ أَكْبَرُ رَأْيِهِ ذٰلِكَ لکه [په هغه صورت کي] کله چي يې د دې يقين وي يا يې غالب ګومان وي [چي شهوت به مي پورته سي] وَلَا يَحِلُّ لَهُ أَنْ يَمَسَّ وَجْهَهَا وَلَا كَفَّيْهَا وَإِنْ كَانَ يَأْمَنُ الشَّهْوَةَ او د سړي لپاره دا روا نه دي چي مسه کړي د هغې مخ او نه د هغې ورغوي که ځه هم له شهوت ځخه په امن وي لِقِيَامِ الْمُحَرِّمِ د حرامونکي د قائموالي په وجه [يعني ځکه چي حرامونکی دليل قائم (موجود) دی] وَانْعِدَامِ الضَّرُورَةِ وَالْبَلْوَى او د ضرورت او ابتلاء عام د نشتوالي په وجه [يعني بل دا چي د مسه کولو ضرورت هم نسته او عموم بلوی هم پکښي نسته] بِخِلَافِ النَّظَرِ په خلاف د کتلو لِأَنَّ فِيهِ بَلْوَى ځکه چي په دې کي ابتلاء عام سته وَالْمُحَرِّمُ قَوْلُهُ عَلَيْهِ السَّلَامُ ❷ : «مَنْ مَسَّ كَفَّ امْرَأَةٍ لَيْسَ مِنْهَا بِسَبِيلٍ او مُحرِّم [حرامونکی دليل] د نبي ﷺ دا قول دی: څوک چي د ښځي ورغوی [لاس] مسه کړي حال دا چي د ده لپاره په دې کي شرعاً هيڅ لاره [ضرورت] نه وي وُضِعَ عَلَى كَفِّهِ جَمْرَةٌ يَوْمَ الْقِيَامَةِ» نو د هغه پر لاس به د قيامت په ورځ سکروټه کېښېنول سي.

**اللغات**: ﴿لا يأمن﴾ د سمع له بابه د نفي صيغه ده: په امن کېدل، خوندي کېدل. ﴿محاسن﴾ ښيګني، ښکلاوي، د ښکلا ځايونه. ﴿الآنک﴾ ويلي کړل سوي سرپ. ﴿تحرّز﴾ د تفعّل د باب مصدر دی: بچ کېدل، خوندي کېدل. ﴿جمرة﴾ سکروټه (انګاره).

**تشريح**: د عبارت حاصل دا دی چي د پردۍ ښځي مخ او د هغې لاس ته کتل چي جائز ګرځول سوي دي، هغه مطلق نه دي، بلکي له شهوت ځخه په امن کېدل ضروري دي چي په کتلو سره به يې شهوت نه راپورته کيږي، ها! که چيري يو ضرورت وي او بله چاره نه وي نو په شهوت سره هم کتل

---

❷ تخريج: غريب بهذا اللفظ، صاحب د اثمار الهدايه وايي چي د علامه مرغيناني رحمه الله دغه حديث په اصل کي له دې حديث ځخه مستنبط دی: قال ابو هريرة عن النبي ﷺ.... واليد زناهما البطش والرجل زناهما الخطا (مسلم شريف. كتاب القدر، باب قدر على ابن آدم حظه من الزنى وغيره، ص:١١٥٧، حديث رقم:٢٦٥٧ / ٦٧٥٤)

ورته جائز دي، خو بلا ضرورته په شهوت سره اجنبيه ښځي ته کتل په دې هکله په حديث کي سخت وعيد راغلی دی کوم چي په کتاب کي ذکر سو. لهذا له شهوت څخه د نه خوندي کېدو په صورت کي بلا ضرورته ورته کتل جائز نه دي.

وقوله لا يأمن إلخ: فرمايي امام قدوري رَحِمَهُ الله چي کوم د "لا يأمن الشهوة" جمله ذکر کړې ده. له هغه څخه دا اشاره ترلاسه کېږي چي که فقط د شهوت شک او اندېښنه وي چي کېدای سي شهوت به مي راپورته سي، نو هم بلا ضرورته کتل جائز نه دي.

ولا يحل أن يمس إلخ: د دې حاصل دا دی چي په نظر او مس کي فرق دی. په نظر کي ضرورت هم سته او ابتلاء عامه هم پکښي سته، په خلاف د مسه کولو. چيّ په هغه کي ضرورت هم ډېر کم دی او عموم بلویٰ هم پکښي نسته (مګر دا چي څوک طبيب او ډاکټر وي او بله هيڅ چاره نه وي)؛ لهذا که يو کس څه هم له شهوت څخه په امن وي، نو هم هغه ته د اجنبيه ښځي د لاس او مخ مسه کولو اجازت نسته. او بل دا چي بلا ضرورته پر داسي کونکي د رسول الله ﷺ له طرفه وعيد هم نازل سوی دی. لهذا حتی الامکان به له دې حرکاتو څخه احتراز کوي، چي له نبوي لعنت او غضب الهي او اُخروي عذاب څخه په امن وي.

## له پورتنۍ مسئلې څخه استثناء

وَهٰذَا إِذَا كَانَتْ شَابَّةً تُشْتَهٰى او دا [حکم] په هغه صورت کي دی کله چي ښځه ځوانه شهوت [خواهش] لرونکې وي [او که تُشْتَهٰى سي د مضارع مجهولي په صيغه سره نو معنی يې ده: کله چي ښځه ځوانه وي چي هغې ته د چا شهوت او اشتها کېدای سي] أَمَّا إِذَا كَانَتْ عَجُوزًا لَا تُشْتَهٰى لېکن کله چي ښځه سپين سرې [بوډۍ] وي چي شهوت لرونکې نه وي فَلَا بَأْسَ بِمُصَافَحَتِهَا وَمَسِّ يَدِهَا نو څه پروا نسته د هغې سره په مصافحه کولو او د لاس په مسولو کي يې لِانْعِدَامِ خَوْفِ الْفِتْنَةِ ځکه چي د فتنې بېره نسته وَقَدْ رُوِيَ أَنَّ أَبَا بَكْرٍ رَضِيَ اللهُ عَنْهُ كَانَ يَدْخُلُ بَعْضَ الْقَبَائِلِ الَّتِي كَانَ مُسْتَرْضَعًا فِيهِمْ او روايت سوی دی چي ابو بکر رَضِيَ اللهُ عَنْهُ به هغه قبيلو ته ورتلی چي په هغوی کي ده ته تی [شيدې] ورکول سوي وې وَكَانَ يُصَافِحُ الْعَجَائِزَ او ده به د سپين سرو [بوډيانو] سره مصافحه کوله وَعَبْدُ اللهِ بْنُ الزُّبَيْرِ اسْتَأْجَرَ عَجُوزًا لِتُمَرِّضَهُ او عبد الله بن زبير رضي الله عنه يوه سپين سرې په مزدوري نيولې وه د دې لپاره چي د ده تداوي به کوي وَكَانَتْ تَغْمِزُ رِجْلَيْهِ وَتُفَلِّي رَأْسَهُ او هغې به د ده پښې چاپي

کولې او د ده په سر کي به يې سپږي پيدا کولې [را ايستلې] وَكَذَا إِذَا كَانَ شَيْخًا يَأْمَنُ عَلٰى نَفْسِهِ او همدارنګه کله چي سړی داسي بوډا وي چي پر خپل ځان په امن وي [چي شهوت مي نه پورته کيږي] وَعَلَيْهَا او پر ښځي هم په امن وي [چي شهوت يې نه پورته کيږي، نو داسي بوډا لپاره مصافحه وغيره کول جائز دي] لِمَا قُلْنَا د هغه دليل په وجه کوم چي موږ ذکر کړی فَإِنْ كَانَ لَا يَأْمَنُ عَلَيْهَا او که چيري هغه پر ښځي په امن نه وي لَا تَحِلُّ مُصَافَحَتُهَا نو د هغې سره مصافحه کول روا نه دي لِمَا فِيهِ مِنَ التَّعْرِيضِ لِلْفِتْنَةِ ځکه چي په دې کي پر فتنې پېښول سته [چي خپل ځان او ښځه په مبتلا کوي] وَالصَّغِيرَةُ إِذَا كَانَتْ لَا تَشْتَهِيْ او کوچنۍ نجلۍ چي کله د شهوت قابله نه وي يُبَاحُ مَسُّهَا وَالنَّظَرُ إِلَيْهَا نو د هغې مسه کول او ورته کتل روا دي لِعَدَمِ خَوْفِ الْفِتْنَةِ ځکه چي [په دې کي] د فتنې ببره نسته.

**اللغات:** ﴿عجوز﴾ بوډۍ، سپين سرې ښځه. ﴿يصافح﴾ د مفاعلې د باب مضارع ده: مصافحه کول، لاس ملاوول. ﴿تُمَرِّضُ﴾ د تفعيل له بابه د واحد مؤنث غائب مضارع صيغه ده (د تفعل له بابه مصدر نه دی)، مَرَّضَ يُمَرِّضُ تَمْرِيْضًا: د دې باب څو معناوي دي چي له هغوی څخه يې ځيني دا دي: د مريض د تداوي او درملني کار کول، علاج ومعالجه، د مرض پر مهال د مريض خدمت کول. ﴿تغمز﴾ د ضرب له بابه مخکنۍ صيغه ده، د دې باب هم څو معناوي دي چي له هغوی څخه يې يوه معنیٰ ده: چاپي کول، يعني په لاسو سره د چا بدن مښل او کښېکښل. ﴿تفلّي﴾ د تفعيل له بابه مخکنۍ صيغه ده (له مجردو څخه هم راځي): په سر کي سپږي پيدا کول، له سر څخه سپږي را ايستل او وژل.

**تشريح:** صاحب د هدايې رَحِمَهُ الله فرمايي چي مخکيني ټول تفصيلات په هغه صورت کي دي، کله چي ښځه ځوانه او مشتهاة (د شهوت قابله) وي، لېکن که يو غير مشتهاة بوډۍ (سپين سرې) ښځه وي، نو بيا په دې کي څه حرج نسته چي د هغې سره مصافحه وکړی سي او لاس يې مسه کړی سي؛ ځکه د ممانعت مدار پر فتنه دی چي داسي کول د فتنې او بدکارۍ سبب جوړ نه سي، او د بوډۍ ښځي يا د شيخ فاني په صورت کي د فتنې ببره نسته، نو ځکه دا صور تونه مباح او له ممانعت څخه خارج دي؛ لکه څرنګه چي د حضرت ابوبکر صدّيق او حضرت ابن زبير رضی الله عنهما له طرز عمل څخه هم د دا ايښت ثابتيږي.

وكذا إذا إلخ: د دې حاصل دا دی چي که سړی شيخ فاني وي (چي تر اوږا کالو اوښتی وي) او د هغه پر خپل ځان کنټرول وي چي شهوت مي نه راپورته کيږي او د ښځي په هکله هم په امن وي يعني کومي ښځي ته چي لاس ور وړي د هغې شهوت هم نه راپورته کيږي (په دې وجه چي جانب مقابل ډېر بوډا دی یا هغه هم خپله ډېره بوډۍ ده)، ځرنګه چي په دې صورت کي د فتنې خطره نسته. نو ځکه د هغې سره د ده مصافحه کول او مسه کول جائز دي (لما قلنا أی لعدم خوف الفتنة)، لېکن که کوم بوډا د خپل ځان یا ښځي په هکله په امن نه وي، نو په دې صورت کي د ښځي مسه کول وغيره جائز نه دي؛ ځکه چي په دې صورت کي د فتنې اندېښنه سته چي د بدکارۍ دروازه به خلاصه سي. الله تعالیٰ فرمايلي دي ﴿وَلَا تُلْقُوا بِأَيْدِيكُمْ إِلَى التَّهْلُكَةِ﴾.

او کوچنۍ نجلۍ چي مشتهاة نه وي، نو د ميني او شفقت لپاره د هغې مچول او ورته کتل څه پروا نه لري.

## د قاضي لپاره کتل جائز دي (تفصيلي بيان)

قَالَ: وَيَجُوزُ لِلْقَاضِيْ إِذَا أَرَادَ أَنْ يَحْكُمَ عَلَيْهَا فرمايي: او جائز دي قاضي لره [کتل] کله چي هغه اراده وکړي چي پر ښځي فيصله وکړي وَلِلشَّاهِدِ إِذَا أَرَادَ أَدَاءَ الشَّهَادَةِ عَلَيْهَا او د ګواه لپاره کله چي هغه پر ښځي د ګواهۍ ورکولو اراده وکړي النَّظَرُ إِلَى وَجْهِهَا [جائز دي] کتل د هغې د مخ وطرف ته وَإِنْ خَافَ أَنْ يَشْتَهِيَ که څه هم دا ډېره يې وي چي شهوت [اشتها] به يې وسي لِلْحَاجَةِ إِلَى إِحْيَاءِ حُقُوْقِ النَّاسِ بِوَاسِطَةِ الْقَضَاءِ وَأَدَاءِ الشَّهَادَةِ ځکه چي د قضاء [فيصله کولو] او د ګواهۍ ورکولو په واسطه د خلکو د حقوقو ژوندي کولو ته ضرورت دی وَلٰكِنْ يَنْبَغِيْ أَنْ يَقْصِدَ بِهِ أَدَاءَ الشَّهَادَةِ أَوْ الْحُكْمَ عَلَيْهَا لېکن پکار دا ده چي په دې سره د ګواهي اداء کولو یا پر ښځي د فيصله کولو اراده وکړي لَا قَضَاءَ الشَّهْوَةِ نه د شهوت پوره کولو تَحَرُّزًا عَمَّا يُمْكِنُهُ التَّحَرُّزُ عَنْهُ له هغه شي څخه د بچ کېدلو [ځان ساتلو] په خاطر له کوم څخه چي ځان ساتل ممکن وي وَهُوَ قَصْدُ الْقَبِيْحِ او هغه [يعني له کوم څخه چي بچ کېدل ممکن دي] د بدۍ اراده کول دي وَأَمَّا النَّظَرُ لِتَحَمُّلِ الشَّهَادَةِ إِذَا اشْتَهٰى او پاته سو د ګواه جوړېدو لپاره کتل کله چي يې شهوت[اشتها] هم کيږي قِيْلَ: يُبَاحُ نو ويل سوي دي چي: روا دي وَالْأَصَحُّ أَنَّهُ لَا يُبَاحُ او صحيح دا ده چي روا نه دي لِأَنَّهُ يُوْجَدُ مَنْ لَا يَشْتَهِيْ ځکه

داسي کس هم پېدا کېدلای سي چي [په کتلو سره] يې شهوت نه کېږي فَلَا ضَرُوْرَةَ نو ضرورت نسته بِخِلَافِ حَالَةِ الْأَدَاءِ په خلاف د ګواهي اداء کولو د حالت وَمَنْ أَرَادَ أَنْ يَتَزَوَّجَ امْرَأَةً او څوک چي اراده وکړي چي ديو ښځي سره نکاح وکړي فَلَا بَأْسَ بِأَنْ يَنْظُرَ إِلَيْهَا نو په دې کي پروا نسته چي هغې ته وګوري وَإِنْ عَلِمَ أَنَّهُ يَشْتَهِيهَا که څه هم د دې يقين يې وي چي هغې ته به يې شهوت [اشتها] وسي لِقَوْلِهِ [1] عَلَيْهِ السَّلَامُ فِيهِ ځکه چي په دې باره کي نبي ﷺ فرمايلي دي «أَبْصِرْهَا فَإِنَّهُ أَحْرَى أَنْ يُؤْدِمَ بَيْنَكُمَا» هغې ته وګوره! ځکه دا زيات لائق دي چي ستاسي دواړو تر مينځ ألفت پيدا کړي وَلِأَنَّ مَقْصُودَهُ إِقَامَةُ السُّنَّةِ او ځکه چي د دې کتلو مقصد سنت اداء کول دي لَا قَضَاءُ الشَّهْوَةِ نه شهوت پوره کول.

**اللغات**: ﴿يحكم﴾ د نصر د باب مضارع ده: حکم کول، فيصله کول. ﴿تحرز﴾ د تفعل د باب مصدر دی: بچ کېدل، ځان ساتل. ﴿أبصر﴾ د افعال د باب ماضي ده: ليدل. ﴿أحرىٰ﴾ د اسم تفضيل صيغه ده: زيات لائق، زيات مناسب. ﴿يُؤْدِمْ﴾ او يُؤدم. د افعال له بابه د مضارع صيغه ده (او په مجردو کي د ضرب له بابه هم راتلای سي خو بيا به يُؤْدَمُ يعني د دال په فتحه سره ويل کيږي)، د دې باب معنیٰ ده: د خلکو تر مينځ صلح(سوله) او روغه کول. جوړ جاړی راوستل. ألفت او اتفاق پيدا کول. نو د أن يُودم بينكما مطلب دا دی چي د خاوند او ښځي تر مينځ به ألفت او مينه وي او د خوابدی پر ځای به د دوی تر مينځ صلح او محبت وي.

**تشريح**: **صورت د مسئلې**: دا دی چي ديو ښځي په خلاف د فيصله کولو يا پر هغې د ګواهي ورکولو پر مهال قاضي او ګواه لره جائز دي چي هغې ته ګوري، که څه هم د شهوت را پورته کېدو بېره يې وي؛ ځکه دلته که يو طرف ته د شهوت بېره ده، نو بل طرف ته د خلکو د حقوقو د اداء کولو لپاره فيصله کول يا ګواهي ورکول ضروري دي، ښکاره ده چي د حقوقو ادا ينه د شهوت له بيري څخه مهم ده. نو ځکه په دې صورت کي به ښځي ته کتل جائز وي، چي صحيح فيصله وکړی سي او د حق په اداينه کي هيڅ ډول کمي او کوتاهي نه وسي، خو د قاضي او شاهد (ګواه) لپاره ضروري ده چي په دې هکله له الله جل جلاله څخه وبيريږي او له څه خباثت او د شهوت له نيت څخه بغير خپل فريضه سر ته ورسوي. او همدا د مسلمان د ژوند مقصد دی چي حتی الامکان به له بدی څخه ځان ساتي.

وأما النظر إلخ: مخکي ذکر سوه چي د ګواهي اداء کولو (اداء شهادة) پر مهال کتل روا دي که څه هم د شهوت بېره او خطره وي، خو د ګواه جوړېدو (تحمّل شهادة) پر مهال که د شهوت راپورته کېدلو بېره وي، نو په دې هکله دوه قوله دي: ① ورته کتل جائز دي، ② لېکن صحيح قول دا دی چي جائز نه دي؛ ځکه په دې صورت کي داسي ځوک هم ترلاسه کېدلای سي چي هغې ته په نظر کولو سره يې شهوت نه پورته کيږي.

بخلاف الاداء إلخ: يعني ګواهي اداء کول له ګواه جوړېدو څخه جلا دي؛ ځکه ګواه جوړېدل يو امانت دی چي تر ګواه جوړېدلو وروسته ګواهي اداء کول لازم دي، لهذا ځوک چي يو وار ديو شي ګواه جوړ سي، نو تر دې وروسته د هغه د اداء کولو فريضه به سر ته رسوي که څه هم د شهوت بېره وي.

## ﴿د نکاح په اراده ښځي ته کتل جائز دي﴾

ومن أراد إلخ: د دې حاصل دا دی چي که ځوک مثلاً زيد غواړي چي له فاطمې سره نکاح وکړي، نو زيد لره دا جائز او روا دي چي فاطمې ته وګوري، په دې کي څه حرج نسته، که څه هم د شهوت راپورته کېدو يقين يې وي؛ ځکه نبي کريم ﷺ و حضرت مغيره بن شعبه رضي الله عنه ته د دغه کتلو اجازت ورکړی وو چي په دې سره به د خاوند او ښځي تر مينځ اُلفت او موافقت پيدا سي او د همېشه لپاره به يې تر مينځ محبت او صلح قائم وي؛ او بل دا چي د دغه کتلو مقصد او غرض دا دی چي د نکاح سنت اداء سي، نه شهوت او مزه ترلاسه کول، لهذا په همدې مقصد سره د قضاءِ شهوت له ارادې څخه بغير ورته اجازت سته.

### ښځي ته د طبيب (ډاکټر) کتل څنګه دي؟

وَيَجُوْزُ لِلطَّبِيْبِ أَنْ يَنْظُرَ إِلٰى مَوْضِعِ الْمَرَضِ مِنْهَا او جائز دي طبيب لره چي د ښځي د مرض ځای ته وګوري لِلضَّرُوْرَةِ د ضرورت په وجه وَيَنْبَغِيْ أَنْ يُعَلِّمَ امْرَأَةً مُدَاوَاتَهَا او پکار دا ده چي دا طبيب يو ښځي ته د هغې درملنه ور وښودي [يعني غوره دا ده چي خپله يې علاج نه وکړي بلکي د دوی د کوريو ښځي يا بلي ښځي ته يې ور وښودي چي هغه دا کار تر سره کړي] لِأَنَّ نَظَرَ الْجِنْسِ إِلَى الْجِنْسِ أَسْهَلُ ځکه د جنس [ښځي] کتل و جنس [ښځي] ته زيات آسانه دي [چي په دې کي د شهوت را پورته کېدو خطره نسته] فَإِنْ لَمْ يَقْدِرُوْا خو که چيري دوی [د ښځي کور والا] قدرت نه لري [چي خپله د ښځي علاج وکړی سي] يُسْتَرُ كُلُّ عُضْوٍ مِنْهَا سِوَى مَوْضِعِ الْمَرَضِ نو د ښځي هر اندام دي پټ کړل سي د مرض له

ځای شخه بغیر ثُمَّ يَنْظُرُ وَيَغُضُّ بَصَرَهُ مَا اسْتَطَاعَ بیا دي طبیب ورته وګوري او څومره چې یې وس وي خپل نظر دي ټیټ ساتي لِأَنَّ مَا ثَبَتَ بِالضَّرُورَةِ ځکه کوم شی چې د ضرورت پر بناء ثابت وي يَتَقَدَّرُ بِقَدْرِهَا هغه د ضرورت په مقدار اندازه کیږي [یعني د ضرورت مطابق ثابتیږي. نه تر هغه زیات] وَصَارَ كَنَظَرِ الْخَافِضَةِ وَالْخَتَّانِ او دا [د طبیب نظر] داسې سو لکه د سنتونکي [ختنه کونکي] ښځي او د سنتونکي سړي نظر وَكَذَا يَجُوزُ لِلرَّجُلِ النَّظَرُ إِلَى مَوْضِعِ الِاحْتِقَانِ مِنَ الرَّجُلِ او همدارنګه سړي لره د سړي د حقنه کولو [حقنه لګولو] ځای ته کتل جائز دي لِأَنَّهُ مُدَاوَاةٌ ځکه چې حقنه کول یو درملنه [علاج] دی وَيَجُوزُ لِلْمَرَضِ او دا درملنه [یعني حقنه کول] د مرض لپاره جائز دي وَكَذَا لِلْهُزَالِ الْفَاحِشِ او همداسې د زیات ډنګر والي لپاره عَلَى مَا رُوِيَ عَنْ أَبِي يُوسُفَ لکه څرنګه چې له امام ابو یوسف رَحِمَهُ الله څخه روایت سوی دی لِأَنَّهُ أَمَارَةُ الْمَرَضِ ځکه زیات ډنګر والی [هم] د مرض نښه ده [او د مرض لپاره حقنه لګول جائز دي. فکذا هذا].

**اللغات**: ﴿يعلم﴾ د تفعیل د باب مضارع ده: ور زده کول. ور ښوول. ﴿مداوتها﴾ د مفاعلې د باب مصدر دی (مداواة): علاج او درملنه. ﴿يغض﴾ د نصر د باب مضارع ده: نظر ټیټول. ټیټ او لاندې ساتل. ﴿الخافضة﴾ د دې لفظ څو معناوي دي چې له هغوی څخه یې یوه معنیٰ ده: هغه ښځه کوم چې د ښځو د سنتېدو کار کوي. سنتونکې (د تناسلي آلې پرېکونکې) ښځه. ختنه کونکې. ﴿ختان﴾ سنتونکی سړی. ﴿احتقان﴾ د افتعال د باب مصدر دی: حقنه حقنه کول. حقنه ورکول او لګول (د شا د لاري [یعني د مقعدي لخوا] د مریض معدې ته دواء رسول). اماله کول. وتطلق اليوم على إدخال الدواء إلى داخل الجسم بواسطة الضغط سواء كان عن طريق الدبر أم عن طريق الجلد. (معجم لغة الفقهاء) ﴿أمارة﴾ علامت. نښه.

**تشریح: صورت د مسئلې**: دا دی چې که یو ښځه مریضه وي او نژدې هیڅ ښځینه طبیبه نه وي او مرض داسې وي چې له نارینه مریض څخه بغیر یې علاج نه سي کېدلای. نو په دې صورت کې د طبیب (ډاکټر) لپاره د مجبورۍ پر بناء د ښځې د مرض ځای لره کتل جائز دي. او د مرض له ځای څخه پرته نور اندامونه دي په کامله توګه پټ کړل سي. او د طبیب لپاره ضروري ده چې صرف د مرض ځای ته ګوري او حتی الامکان به خپل نظر ټیټ ساتي؛ ځکه چې دا ضرورتاً ثابت دي. او د "الضرورة تقدر بقدرها" قاعده خو تاسي ډېر له مخکې څخه معلومه ده.

وكذا يجوز إلخ: فرمايي كه څوک سخت مريض سي، يا څوک ډېر ډنګر او کمزوري وي، نو په دې صورت کي هغه لره حقنه ورکول جائز دي. او حقنه لګونکي کس لره دا روا دي چي د حقنه لګولو ځای ته يې وګوري؛ ځکه د عام علاج په څېر حقنه هم يو علاج دی او د مرض لپاره حقنه ورکول جائز دي، او زښت ډنګر والی هم د مرض په وجه وي. نو ځکه په دواړو صورتونو کي حقنه ورکول جائز دي، او کله چي دا يو علاج دی، نو د مرض ځای ته به د طبيب (حقنه لګونکي) کتل هم جائز وي.

## د سړي کوم اندامونه په عورت کې داخل دي؟

قَالَ: وَيَنْظُرُ الرَّجُلُ مِنَ الرَّجُلِ إِلَى جَمِيعِ بَدَنِهِ [امام قدوري رَحِمَهُ الله] فرمايي: او سړی د سړي ټوله بدن ته کتلای سي إِلَّا مَا بَيْنَ سُرَّتِهِ إِلَى رُكْبَتِهِ مګر هغه حصه کوم چي په مينځ کي له نامه څخه تر ځنګنو پوري ده [يعني له نامه څخه تر ځنګنو پوري دا حصه يې په عورت کي داخله ده] لِقَوْلِهِ عَلَيْهِ الصَّلَاةُ وَالسَّلَامُ [1]: «عَوْرَةُ الرَّجُلِ مَا بَيْنَ سُرَّتِهِ إِلَى رُكْبَتِهِ» ځکه نبي ﷺ فرمايلي دي: د سړي [نارينه] عورت هغه دی کوم چي په مينځ کي له نامه څخه تر ځنګنو پوري دی وَيُرْوَى: «مَا دُونَ سُرَّتِهِ حَتَّى يُجَاوِزَ رُكْبَتَيْهِ» او [دويم] روايت سوی دی چي: د هغه تر نامه لاندي تر دې چي تر ځنګنو يې تېر سي [نو ځنګون هم په عورت کي داخل سو] وَبِهَذَا ثَبَتَ أَنَّ السُّرَّةَ لَيْسَتْ بِعَوْرَةٍ او په همدې [دويم روايت] سره دا ثابته سوه چي نوم عورت نه دی خِلَافًا لِمَا يَقُولُهُ أَبُو عِصْمَةَ وَالشَّافِعِيُّ په خلاف د هغه چي ابو عصمه او امام شافعي رَحِمَهُمَا الله فرمايي. وَالرُّكْبَةُ عَوْرَةٌ او ځنګون عورت دی خِلَافًا لِمَا قَالَهُ الشَّافِعِيُّ په خلاف د هغه چي امام شافعي رَحِمَهُ الله فرمايلي دي وَالْفَخِذُ عَوْرَةٌ او ورون عورت دی خِلَافًا لِأَصْحَابِ الظَّوَاهِرِ په خلاف د اصحاب ظواهرو وَمَا دُونَ السُّرَّةِ إِلَى مَنْبَتِ الشَّعْرِ عَوْرَةٌ او تر نامه لاندي د ورېښتانو د راشنه کېدو تر ځايه [سپوختي] پوري هم عورت دی خِلَافًا لِمَا يَقُولُهُ الْإِمَامُ أَبُو بَكْرٍ مُحَمَّدُ بْنُ الْفَضْلِ الْكَمَارِيُّ مُعْتَمِدًا فِيهِ الْعَادَةَ په خلاف د هغه کوم چي امام ابو بکر محمد بن الفضل الکماري رَحِمَهُ الله فرمايي [چي دا عورت نه دی] چي هغه په دې هکله پر عادت اعتماد

---

[1] تخريج: أخرجه دار القطني، باب الأمر بتعليم الصلاة... وحدّ العورة التي يجب سترها ج:۱، ص:۲۳۷، حديث رقم:۸۷۹.

کونکی دی [ چې خلک عادتاً او عموماً تر نامه لاندې لنګ وغیره تړي. نو دا قول یې معتبر نه دی] لِأَنَّهُ لَا مُعْتَبَرَ بِهَا مَعَ النَّصِّ بِخِلَافِهِ ځکه چې عادت لره اعتبار نسته د داسې نص [د موجود والي] سره کوم چې یې خلاف دی [یعنې څرنګه چې د ده د قول په خلاف نص (حدیث) موجود دی نو ځکه دلته عادت لره اعتبار نسته] وَقَدْ رَوَى أَبُو هُرَيْرَةَ رضي الله عنه عَنِ النَّبِيِّ عليه السلام أَنَّهُ قَالَ [2]: «الرُّكْبَةُ مِنَ الْعَوْرَةِ» او حضرت ابو هريره رضي الله عنه له نبي ﷺ څخه روایت کړی دی چې هغه وفرمایل: ځنګون له عورت څخه دی وَأَبْدَى الْحَسَنُ بْنُ عَلِيٍّ رضي الله عنه سُرَّتَهُ فَقَبَّلَهَا أَبُو هُرَيْرَةَ رضي الله عنه [همدارنګه] حسن بن علي رضي الله عنه خپل نوم ښکاره کړی وو، نو حضرت ابو هريره رضي الله عنه پر هغه مچ کړی وَقَالَ عليه السلام لِجَرْهَدٍ [3]: «وَارِ فَخِذَكَ أَمَا عَلِمْتَ أَنَّ الْفَخِذَ عَوْرَةٌ؟» [همدارنګه] نبي ﷺ جرهد رضي الله عنه ته وفرمایل: ورون دې پټ کړه! ته نه یې خبر چې ورون عورت دی وَلِأَنَّ الرُّكْبَةَ مُلْتَقَى عَظْمِ الْفَخِذِ وَالسَّاقِ او ځکه چې ځنګون د ورانه او پنډۍ د هډوکي د یو ځای کېدلو ځای دی فَاجْتَمَعَ الْمُحَرِّمُ وَالْمُبِيحُ نو [د ځنګون په هکله] حرامونکی دلیل او روا کونکی دلیل سره جمع سول وَفِي مِثْلِهِ يَغْلِبُ الْمُحَرِّمُ او په داسې صورت کې حرامونکي دلیل غالب [او راجح] وي [یعنې ترجیح مُحَرِّم لره وي] وَحُكْمُ الْعَوْرَةِ فِي الرُّكْبَةِ أَخَفُّ مِنْهُ فِي الْفَخِذِ او عورت والا حکم په ځنګانه کې سپک دی له هغه عورت والا حکم څخه کوم چې په ورانه کې دی [په بله وینا دا چې د عورت کېدلو په حکم کې ځنګون د ورانه په نسبت سپک دی] وَفِي الْفَخِذِ أَخَفُّ مِنْهُ فِي السَّوْأَةِ او [د عورت والا حکم] په ورانه کې له هغه حکم څخه سپک کوم چې په شرمګاه کې دی [یعنې ورون بیا د شرمګاه په نسبت په حکم د عورت کېدلو کې سپک دی] حَتَّى أَنَّ كَاشِفَ الرُّكْبَةِ يُنْكَرُ عَلَيْهِ

---

[2] تخریج: دا حدیث له حضرت علي رضي الله عنه څخه منقول دی، نه له حضرت ابو هريره رضي الله عنه، چې الفاظ یې داسې دي: سمعتُ علياً يقول: قال رسول الله ﷺ: الركبة من العورة (دار قطني، باب الأمر بتعليم الصلاة إلخ، ج:١، ص:٢٣٧، حديث رقم:٨٧٨).

[3] تخریج: په ابو داؤد شریف کې دا حدیث په دې الفاظو سره منقول دی: ...كان جرهد هذا من اصحاب الصفة انه قال: جلس رسول الله ﷺ عندنا وفخذي منكشفة، فقال: أما علمت أن الفخذ عورة (ابوداؤد، باب النهي عن التعري ص:٥٦٧، حديث رقم:٤٠١٤. والترمذي، ص:٦٣٠، حديث رقم:٢٧٩٥)

بِرِفْقٍ تر دې چې د ځنګانه پر لځونکي به په نرمي سره نکير [منع] کول کيږي وَكَاشِفُ الْفَخِذِ يُعَنَّفُ عَلَيْهِ او د ورانه پر لځونکي به سختي [او زور] کيږي وَكَاشِفُ السَّوْأَةِ يُؤَدَّبُ إِنْ لَجَّ او د شرمګاه لځونکي ته به سزا ورکول کيږي که چيري هغه ټينګار کوي وَمَا يُبَاحُ النَّظَرُ إِلَيْهِ لِلرَّجُلِ مِنَ الرَّجُلِ يُبَاحُ الْمَسُّ او سړي لره چې د سړي کوم ځای ته کتل جائز دي د هغه ځای مسه کول هم ورته جائز دي لِأَنَّهُمَا فِيمَا لَيْسَ بِعَوْرَةٍ سَوَاءٌ ځکه چې دا دواړه [يعني کتل او مسه کول] په هغه ځای کې چې عورت نه وي سره برابر دي.

**اللغات**: ﴿فَخْذ﴾ او فَخِذ: ورون، پتون، ج: أَفْخَاذ. ﴿منبت﴾ د اسم ظرف صيغه ده: د را شنه کېدلو (راپورته کېدو) ځای. ﴿ملتقى﴾ دا هم د اسم ظرف صيغه ده: د سره يو ځای کېدلو ځای. ﴿سوئة﴾ او سوأة: فرج، شرمګاه (د سړي او ښځې دواړو په فرج باندې يې اطلاق کيږي). ﴿رِفق﴾ نرمي، آساني. ﴿يعنّف﴾ د تفعيل د باب مضارع ده: سختي کول، په سختي او ټينګار سره غندل. ﴿يؤدّب﴾ مخکنۍ صيغه ده. د دې باب دوې معناوې دي: ① ادب ور ښودل. ② پر يو جرم سزا ورکول. ﴿لَجّ﴾ د ماضي صيغه ده. له ضرب او سمع دواړو بابونو څخه راتلای سي: ټينګار او اصرار کول. له منع کېدو څخه انکار کول. يو کار لازم نيول.

**تشريح**: د عبارت حاصل دا دی چې د احنافو په نيز د سړي نوم (ناف) په عورت کې داخل نه دی او ځنګون پکښې داخل دی، نو ځکه يو سړی د بل سړي ټوله اندامونو ته کتلای سي خو تر نامه لاندي بيا د ځنګنو تر حصې پوري کتل ورته جائز نه دي؛ دليل په عبارت کې ذکر سوی حديث شريف دی، او له همدې حديث څخه دا خبره ثابته سوه چې نوم په عورت کې داخل نه دي، ځکه د مذکوره روايت په دواړو الفاظو کې نوم (ناف) له عورت څخه خارج ګرځول سوی دی، نو امام شافعي او ابو عصمه رَحِمَهُمَا الله چې نوم په عورت کې داخلوي دا صحيح نه دي، يعني ابو عصمه رَحِمَهُ الله چې کوم دا خبره کوي چې نوم د عورت حدّ دی، نو هغه به هم په عورت کې داخل وي، او امام شافعي رَحِمَهُ الله بيا فرمايي چې څرنګه شرمګاه د شهوت محل ده، همداسي نوم هم د شهوت محل دی، خو مذکوره حديث د دوی په خلاف دی؛ ځکه په حديث کې په ښکاره توګه نوم له عورت څخه ايستل سوی دی، لهذا د حديث په خلاف به هيڅ تعليل هم نه قبلول کيږي.

والركبة إلخ: زموږ په نيز ځنګون په عورت کې داخل دی او د امام شافعي رَحِمَهُ الله په نيز خارج دی: د دوی دليل هغه روايت دی چې په هغه کې د حضرت انس طرزِ عمل بيان سوی دی چې حضرت

انس رضي الله عنه به د بل ځای نه هیڅکله هم ځنګون نه ښکاره کوي، او د دې روایت مقصد شمائل بیانول دي، که چیرې ځنګون عورات وي نو د شمائلو په ضمن کې به نه راتلای؛ ځکه عورت پټول خو فرض دي، که چیرې دا عوزت وای، نو د فرائضو په ضمن کې به نه ذکر کول کېدای، معلومه سوه چې ځنګون عورت نه دی.

الفخذ عورة إلخ: او زمونږ په نیز ورون په عورت کې داخل دی، خو اصحاب ظواهر هغه له عورت څخه خارج بولي؛ دوی په دې آیت ﴿فَلَمَّا ذَاقَا الشَّجَرَةَ بَدَتْ لَهُمَا سَوْآتُهُمَا﴾ سره دلیل نیسي په دې توګه چې د غنمو د خوړلو پر مهال د حضرت آدم او حضرت حوا علیهما السلام دواړو ورنونه لڅ او ښکاره وه، که چیرې د ورونو پټول فرض وای او عورت وای، نو دوی به ضرور د دې اهتمام کولای.

وما دون السرة إلخ: زمونږ په نیز تر نامه لاندې د وربښتو راشنه کېدلو تر ځایه (سپوختي) پورې هم په عورت کې اخل دي، لېکن امام ابو بکر کماري دا حصه خارج عن العورة بولي او دلیل دا پېشوي چې خلک عموماً له دې څخه لاندې لنګ وغیره تړي، لهذا د تعامل ناس په وجه به هغه له عورت څخه خارج وي.

لأنه لا معتبر إلخ: صاحب د هدایې رَحِمَهُ الله د دې په جوب کې فرمایي چې کله په حدیث شریف کې دا حصه عورت ښوول سوې ده، نو بیا د هغه په مقابله کې تعامل او قیاس حجت جوړول او دا حصه عورت نه شمېرل پکار نه دي.

وقد روى أبو هريرة إلخ: مخکې مو وویل چې امام شافعي رَحِمَهُ الله ځنګون له عورت څخه ایستلی دی. نو صاحب د هدایې د هغه پر عورت کېدو د حضرت ابو هریره رضي الله عنه په حدیث سره دلیل پېش کړی دی، او د صریح حدیث په مقابله کې د صحابي عمل حجت نه دی. او امام شافعي او ابو عصمه چې نوم (ناف) په عورت کې داخل کړی دی، د هغه په تردید کې بیا صاحب د هدایې د حضرت ابو هریره رضي الله عنه عمل پېشوي چې ستاسو قیاس صحیح نه دی، ځکه که نوم عورت وای، نو ابو هریره رضي الله عنه به د حضرت حسن رضي الله عنه نوم نه مچولای.

وقال النبي ﷺ لجرهد إلخ: مخکې مو دا هم وویل چې اصحاب ظواهر ورون په عورت کې داخل نه بولي، دلته صاحب د هدایې رَحِمَهُ الله د هغه په خلاف د حضرت جرهد واقعه پېشوي کله چې هغه صُفه ته په داسې حال کې راغلی چې ورون یې لڅ وو، نو نبي کریم ﷺ هغه ته د ورون پټولو حکم وکړی چې دا عورت دی، له دې څخه دا ښکاره سوه چې ورون په عورت کې داخل دی، او اصحاب ظواهر چې په

آیت سره دلیل نیسي دا صحیح نه دي: ځکه هغه یوه غیر اختیاري حالت وو، او اختیاري حالت پر غیرِ اختیاري حالت قیاسول صحیح نه دي.

وإن الركبة إلخ: په دې سره د ځنګون د عورت کېدلو په هکله عقلي دلیل بیانوي، حاصل یې دا دی چې ځنګون د ورانه د هډوکي او د پنډۍ د هډوکي د سره یوځای کېدلو ځای دی. نو د ورون وطرف ته په نظر کولو سره هغه په عورت کې داخلېدل پکار دي؛ ځکه چې ورون په عورت کې داخل دی. او د پنډۍ تقاضا دا ده چې هغه له عورت څخه خارج دی؛ ځکه پنډۍ په عورت کې داخله نه ده. نو اوس دلته مُحرِم او مُبیح سره جمع سول. او د فقهې دا ثابت شده اُصول دی چې "إِذَا اجْتَمَعَ الْحَلَالُ وَالْحَرَامُ أَوِ الْمُحَرِّمُ وَالْمُبِيْحُ ، غُلِّبَ الْحَرَامُ وَ الْمُحَرِّمُ" یعني کله چې حلال او حرام یا حراموونکی او روا کوونکی دلیلونه سره جمع سي، نو په دې وخت کې مُحرِم (حراموونکي دلیل) لره ترجیح وي. نو ځکه دلته به هم مُحرِم لره ترجیح حاصله وي چې د ورون والا طرف به غالب وي. لهذا کله چې داسې ده نو ځنګون به هم په عورت کې داخل وي.

وحکم العورة إلخ: د دې خاصل دا دی چې کله ځنګون، ورون وغیره هم په عورت کې داخل دي. نو آیا د دوی او د شرمګاه حکم یو دی او که سره جلا دي؟. فرمایي چې د دوی په حکم او مرتبه کې فرق دی. نو تر ټولو سخت عورت شرمګاه ده، چې که څوک د هغه پر لڅولو ټېنګار کوي. نو سزا به ورکول کېږي چې د هغه لڅول تر ټولو زیات بد دي، او بیا تر هغه را لاندې ورون دی چې د هغه د لڅولو څخه به په ټینګه منع کول کېږي، او تر هغه لاندې بیا ځنګون دی، چې د هغه د لڅولو څخه به په نرمۍ سره منع کول کېږي، دا په دریو سره عورتونو کې فرق سو.

وما یباح إلخ: فرمایي سړی چې د بل سړي کومو اندامونو ته کتلای سي، هغه اندامونو ته لاس وروړل او مسه کول هم روا دي، څه حرج پکښې نسته؛ ځکه چې له عورت څخه خارج دي، خو که د شهوت راپورته کېدو خطره وي، نو بیا به یې نه مسه کوي.

## ښځه د سړي کومو اندامو ته کتلای سي؟

قَالَ: وَيَجُوْزُ لِلْمَرْأَةِ أَنْ تَنْظُرَ مِنَ الرَّجُلِ إِلَى مَا يَنْظُرُ الرَّجُلُ إِلَيْهِ مِنْهُ فرمایي: او جائز دي ښځې لره چې وګوري د سړي هغه حصې ته کوم ته چې بل سړی کتلای سي إِذَا أَمِنَتِ الشَّهْوَةَ [په دې شرط] کله چې له شهوت څخه په امن وي لِاسْتِوَاءِ الرَّجُلِ وَالْمَرْأَةِ فِي النَّظَرِ إِلَى مَا لَيْسَ بِعَوْرَةٍ ځکه سړی او ښځه هغه حصې ته په کتلو کې سره برابر دي کوم چې عورت نه وي كَالثِّيَابِ وَالدَّوَابِّ لکه جامې او

سپارلي وَفِي كِتَابِ الْخُنْثٰى مِنَ الْأَصْلِ او د اصل [مبسوط] په کتاب الخنثیٰ کي دي أَنَّ نَظَرَ الْمَرْأَةِ إِلَى الرَّجُلِ الْأَجْنَبِيِّ بِمَنْزِلَةِ نَظَرِ الرَّجُلِ إِلٰى مَحَارِمِهِ چي د پردي سړي وطرف ته د ښځي کتل داسي دي لکه خپل محارمو ته د سړي کتل [او سړی د خپل محارمو ملا او نس ته نه سي کتلای. فکذا هذه] لِأَنَّ النَّظَرَ إِلٰى خِلَافِ الْجِنْسِ أَغْلَظُ ځکه چي د خلاف جنس [ښځه و سړي] ته کتل زيات سخت دي فَإِنْ كَانَ فِي قَلْبِهَا شَهْوَةٌ او که چيري د ښځي په زړه کي شهوت وي أَوْ أَكْبَرُ رَأْيِهَا أَنَّهَا تَشْتَهِيْ يا د هغې غالب ګومان دا وي چي شهوت [اشتها] به يې وسي أَوْ شَكَّتْ فِي ذٰلِكَ يا په دې باره کي شکمنه وي يُسْتَحَبُّ لَهَا أَنْ تَغُضَّ بَصَرَهَا نو هغې لره مستحب دي چي خپل نظر ټيټ وساتي وَلَوْ كَانَ النَّاظِرُ هُوَ الرَّجُلُ إِلَيْهَا او که چيري خپله سړی د ښځي وطرف ته کتونکی وي وَهُوَ بِهٰذِهِ الصِّفَةِ او هغه په دغه صفت سره وي [يعني شهوت يې وي يا يې غالب ګومان يا شک وي] لَمْ يَنْظُرْ نو نه دي ګوري وَهٰذَا إِشَارَةٌ إِلَى التَّحْرِيمِ او دا [چي نه دي ګوري] د حراموالي وطرف ته اشاره ده [چي ور ته کتل حرام دي].

**اللغات**: ﴿استواء﴾ دافتعال د باب مصدر دی: سره برابر پدل، برابر والی. ﴿دواب﴾ جمع د دَابَّةٌ ده: څاروی (چارپای)، سپارلی ﴿محارم﴾ ذی رحم محرم قربيان.

**تشريح: صورت د مسئلې**: دا دی چي دوه سړي چي يو د بل کومو اندامو ته کتلای سي، همداسي يوه پردۍ ښځه هم د سړي هغه اندامو ته کتلای سي، په دې شرط چي دا ښځه له شهوت څخه په امن وي: او د دې د جائز کېدو دليل دا دی چي د سړي او ښځي چي کوم اندامونه عورت نه وي، دوی يو د بل هغه اندامو ته کتلای سي او جائز دي، لکه څرنګه چي سړی د ښځي جامو او سپارلي ته کتلای سي. همداسي ښځه هم د سړي جامو او سپارلي ته کتلای سي. له دواړو طرفو څخه په دې کي هيڅ حرج نسته.

وفی کتاب إلخ: فرمايي دمبسوط په کتاب الخنثیٰ کي دا مسئله داسي بيان سوې ده چي اجنبي سړي ته د ښځي کتل داسي دي لکه سړی چي خپل محارمو (خپل ذی رحم محرم ښځو) ته ګوري، او ښکاره ده چي سړی د خپل محارمو شا او نس ته نه سي کتلای، نو ځکه پردۍ ښځه هم د يو سړي نس يا شا ته نه سي کتلای: ځکه د خلاف جنس په صورت کي کتل نور هم زيات خطرناک او شهوت راپورته کونکي وي.

**يادونه**: صاحب د اثمار الهدايې غفرالله له وايي چي زما سره چي د مبسوط (کتاب الاصل) کومه نسخه موجوده ده په هغه کي کتاب الخنثیٰ نسته.

فإن كان في قلبها إلخ: او که چیرې یو سړي ته په کتلو سره د ښځې زړه مائله سي یا دا یې ظنِ غالب وي چې شهوت به یې پورته سي یا یې د شهوت اندېښنه او خطره وي، نو په دې ټولو صورتونو کې هغې ته پکار دي چې خپل نظر ټیټ وساتي، کنې هغې لره به نقصان وي.

ولو كان إلخ: د دې حاصل دا دی چې که کتل د سړي له طرفه وي او ښځې ته په کتلو سره د هغه د شهوت راپورته کېدو ظنِ غالب یا یې شک او اندېښنه وي، نو په دې وخت کې ښځې ته د سړي کتل حرام او ناجائز دي.

## د پورتنۍ مسئلې نور وضاحت

وَوَجْهُ الْفَرْقِ أَنَّ الشَّهْوَةَ عَلَيْهِنَّ غَالِبَةٌ او [په دواړو صورتونو کې] د فرق وجه دا ده چې پر ښځو شهوت غالب وي وَهُوَ كَالْمُتَحَقِّقِ اعْتِبَارًا او غالب شی د اعتبار له رویه د ثابت سوي [موجود] شي په څېر دی [نو مطلب دا چې په ښځه کې ګواکې هر وخت شهوت وي] فَإِذَا اشْتَهَى الرَّجُلُ نو کله چې د سړي هم اشتها وسي [شهوت یې پورته سي] كَانَتِ الشَّهْوَةُ مَوْجُودَةً فِي الْجَانِبَيْنِ نو په دواړو طرفونو کې به شهوت موجود سي وَلَا كَذٰلِكَ إِذَا اشْتَهَتِ الْمَرْأَةُ او [برابر] د ښځې د اشتها کېدلو په صورت کې داسي نه ده لِأَنَّ الشَّهْوَةَ غَيْرُ مَوْجُودَةٍ فِي جَانِبِهِ حَقِيقَةً وَاعْتِبَارًا ځکه [اوس] د سړي په طرف کې نه حقیقتاً شهوت موجود دی او نه اعتباراً [یعني نه یې اعتبار کېدلای سي] فَكَانَتْ مِنْ جَانِبٍ وَاحِدٍ لهذا صرف له یوه طرفه شهوت [ثابت] سو وَالْمُتَحَقِّقُ مِنَ الْجَانِبَيْنِ فِي الْإِفْضَاءِ إِلَى الْمُحَرَّمِ أَقْوَى مِنَ الْمُتَحَقِّقِ فِي جَانِبٍ وَاحِدٍ او هغه [شهوت] چې له دواړو طرفونو څخه ثابت وي و حرام ته په رسولو کې [یعني د بدکارۍ په سبب جوړېدلو کې] زیات قوي دی له هغه [شهوت] څخه چې صرف په یوه طرف کې موجود وي.

**اللغات**: ﴿متحقق﴾ د تفعّل د باب مفعول دی: ثابت سوی، موجود. ﴿إفضاء﴾ د افعال د باب مصدر دی: رسول، رسېدل، سبب جوړېدل.

**تشریح**: په مخکیني صورت کې ذکر سوه چې ښځې لره نظر ټیټول پکار دي او سړي لره نظر کول (کتل) حرام دي، د دې دواړو تر مینځ د فرق وجه دا ده چې پر ښځو شهوت غالبه وي او په احکامو کې غالب لره د وقوع درجه ورکول کیږي، لهذا ښځه له مخکې څخه تیاره او سړی چې هم کله مشتهي او تیار سي، نو د معاملې خرابېدلو خطره به زیاته سي.

خو کله چې پوازې د ښځې شهوت پورته وي. نه د سړي. نو په دې وخت کې د فساد خطره نه وي چې د سړي شهوت مړ وي. نو په دې وخت کې د ښځې لپاره د غض بصر (نظر ټيټولو) حکم سوی دی. او چې د سړي شهوت پورته وي. نو په دې وخت کې هغه لره نظر کول حرام ګرځول سوي دي: ځکه په داسي صورت کې د ګناه واقع کېدلو زياته خطره وي. لنډه دا چې کله له دواړو طرفونو څخه شهوت موجود وي. نو د فساد خطره قوي وي. لهذا په دې صورت کې محض کتل جرم ګرځول سوي دي. او که له يوه طرف څخه شهوت وي. نو د فساد خطره کمه وي. نو ځکه محض په نظر ټيټولو سره دا خطره ختميږي.

## ښځې ته د ښځې کتل (حکم او تفصيل)

قَالَ: وَتَنْظُرُ الْمَرْأَةُ مِنَ الْمَرْأَةِ إِلَى مَا فرمايي: او ښځه د ښځې هغه حصې [اندامو] ته کتلای سي يَجُوْزُ لِلرَّجُلِ أَنْ يَنْظُرَ إِلَيْهِ مِنَ الرَّجُلِ کوم چې سړي لره جائز دي چې د سړي هغه حصې ته وګوري لِوُجُوْدِ الْمُجَانَسَةِ د همجنس والي د موجوديت په وجه [يعني ځکه چې د دواړو يو جنس دی] وَانْعِدَامِ الشَّهْوَةِ غَالِبًا او غالباً د شهوت د نشتوالي په وجه كَمَا فِي نَظَرِ الرَّجُلِ إِلَى الرَّجُلِ لکه د سړي و سړي ته د کتلو په صورت کې [چې شهوت معدوم وي] وَكَذَا الضَّرُوْرَةُ قَدْ تَحَقَّقَتْ إِلَى الْاِنْكِشَافِ فِيْمَا بَيْنَهُنَّ همدارنګه د ښځو تر مينځ [د دومره حصې] لڅېدو ته ضرورت ثابت دی وَعَنْ أَبِيْ حَنِيْفَةَ رَحِمَهُ اللهُ أَنَّ نَظَرَ الْمَرْأَةِ إِلَى الْمَرْأَةِ كَنَظَرِ الرَّجُلِ إِلَى مَحَارِمِهِ او له امام صاحب رَحِمَهُ الله څخه روايت دی چې د ښځې و ښځې ته کتل داسي دي لکه د سړي و خپل محارمو ته کتل بِخِلَافِ نَظَرِهَا إِلَى الرَّجُلِ په خلاف د ښځې و سړي ته کتل [چې له نامه څخه تر زنګنو بغير نور ټوله بدن ته يې کتلای سي] لِأَنَّ الرِّجَالَ يَحْتَاجُوْنَ إِلَى زِيَادَةِ الْاِنْكِشَافِ لِلْاِشْتِغَالِ بِالْأَعْمَالِ ځکه په کارو د مشغولېدو په سبب خلک [د بدن] زيات لڅېدو ته محتاجه دي وَالْأَوَّلُ أَصَحُّ او اول قول زيات صحيح دی.

**اللغات**: ﴿مجانسة﴾ د مفاعلې د باب مصدر دی: هَمْ جنسه کېدل (همجنس والی)، له يوه جنسه کېدل. ﴿انكشاف﴾ د انفعال د باب مصدر دی: لڅېدل (لڅوالی).

**تشريح**: يو نارينه چې د بل نارينه کومو اندامونو ته کتلای سي، ښځه هم د بلي ښځې هغه اندامونو ته کتلای سي: ځکه همجنس ته کتل زيات آسانه او له فساده خالي وي چې همجنس ته د کتلو په صورت کې د ميلان او شهوت پورته کېدو خطره نه وي، او څرنګه چې سړی و بل سړي ته په کتلو سره نه مشتهي کيږي او په خپل مينځ کې يو د بل مخ ته ځيني اندامونه ښکاره کوي، همداسي ښځې

هم د خپل همجنس په مخ کي "حمام" وغيره ته د ننوتو پر مهال د ځيني اندامونو پر لڅېدو مجبوره وي، لهذا که دا ممنوع وګرځول سي، نو حرج کثير به لازم سي، والحرج مدفوعٌ في الشرع.

وعن أبي حنيفة إلخ: د دې حاصل دا دی چي له امام صاحب رَحِمَهُ الله څخه يو روايت دا هم نقل سوی دی چي څرنګه سړی د خپل محارمو (ذوي محرم قريبانو) نس او ملا ته نه سي کتلای. همداسي ښځه هم د بلي ښځي نس او ملا ته نه سي کتلای، خو ښځه د سړي نس او ملا ته کتلای سي: ځکه د کارو او مزدوريو د کثرت پر بناء د نارينه وو دا ځايونه حتماً ښکاره کيږي او د دې ښکاره کولو ته مجبوره دي، لهذا د دې په ممنوع ګرځولو سره ضرر کثير لازميږي کوم چي صحيح نه دی.

لېکن صاحب د کتاب فرمايي چي اول قول او صورت زيات صحيح دی چي ښځه د بلي ښځي نس او ملا ته کتلای سي، لکه څرنګه چي سړی د بل سړي هغې ته کتلای سي او ښځه د سړي هغې ته کتلای سي. (احسن الهدايه)

## خپلي ښځي ته کتل

قَالَ: وَيَنْظُرُ الرَّجُلُ مِنْ أَمَتِهِ الَّتِي تَحِلُّ لَهُ وَزَوْجَتِهِ إِلَى فَرْجِهَا فرمايي: او سړی د خپل هغه مينځي چي ورته حلاله وي او د خپل ښځي فرج [شرمګاه] ته کتلای سي وَهٰذَا إِطْلَاقٌ فِي النَّظَرِ إِلَى سَائِرِ بَدَنِهَا عَنْ شَهْوَةٍ وَغَيْرِ شَهْوَةٍ او دا [عبارت] د کتلو په باره کي مطلق دی د هغې ټوله بدن ته په شهوت سره وي او که بغير له شهوته وي [يا په بله وينا دا چي دا عبارت د شهوت او بدون شهوت دواړو کي د خپل مينځي او خپل ښځي ټوله بدن ته د کتلو مطلقاً اجازت دی] وَالْأَصْلُ فِيهِ قَوْلُهُ عَلَيْهِ الصَّلَاةُ وَالسَّلَامُ [1] «غُضَّ بَصَرَكَ إِلَّا عَنْ أَمَتِكَ وَامْرَأَتِكَ» او اصل په دې باره کي د نبي کريم ﷺ دا فرمان دی: خپل نظر ټيټ ساته! مګر له خپل مينځي او خپل ښځي څخه وَلِأَنَّ مَا فَوْقَ ذٰلِكَ مِنَ الْمَسِّ وَالْغِشْيَانِ مُبَاحٌ او ځکه چي تر دې بالا شی يعني مسه کول او جماع کول [هم] روا دي فَالنَّظَرُ أَوْلَى نو نظر خو به په درجه اولیٰ روا وي إِلَّا أَنَّ الْأَوْلَى أَنْ لَا يَنْظُرَ كُلُّ وَاحِدٍ مِنْهُمَا إِلَى عَوْرَةِ صَاحِبِهِ خو غوره دا ده چي له دوی دواړو [زوجينو] څخه هر يو د خپل ملګري عورت ته نه ګوري لِقَوْلِهِ عَلَيْهِ الصَّلَاةُ وَالسَّلَامُ [2] «إِذَا أَتَى أَحَدُكُمْ أَهْلَهُ

[1] تخريج: أخرجه الترمذي في كتاب الأدب، باب ما جاء في حفظ العورة، ص: ۶۳۰، حديث رقم: ۲۷۹۴.

[2] تخريج: أخرجه ابن ماجة في كتاب النكاح، باب التستر عند الجماع، ص: ۲۷۵، حديث رقم: ۱۹۲۱، ۱۹۲۲.

فَلْيَسْتَتِرْ مَا اسْتَطَاعَ ځکه نبي ﷺ فرمايلي دي: کله چي له تاسي څخه يو خپلي کور والا [ښځي] ته راسي نو څومره چي يې طاقت پرده دي کوي وَلَا يَتَجَرَّدَانِ تَجَرُّدَ الْعَيْرِ» او دوی دي د خرو په څېر ځان نه لڅوي وَلِأَنَّ ذٰلِكَ يُورِثُ النِّسْيَانَ او ځکه چي دا [عورت او فرج ته کتل] هېره پيدا کوي لِوُرُوْدِ الْأَثَرِ ځکه [په دې هکله] اثر وارد سوی دی وَكَانَ ابْنُ عُمَرَ رَضِيَ اللهُ عَنْهُمَا يَقُوْلُ: اَلْأَوْلٰى أَنْ يَنْظُرَ لِيَكُوْنَ أَبْلَغَ فِي تَحْصِيْلِ مَعْنَى اللَّذَّةِ خو حضرت ابن عمر (رض) به فرمايل: غوره دا ده چي [ورته] وګوري دي لپاره چي د لذت د معنیٰ په حاصلولو کي زيات کامل وي [يعني چي په پوره توګه خوند حاصل کړی سي].

**اللغات:** ﴿مسيس﴾ مصدر دی. له سمع او نصر دواړو څخه راځي. مَسَّ يَمَسُّ وَيَمُسُّ مَسًّا و مَسِيْسًا و مِسِيْسٰى: مسه کول. لاس ور وړل. رسېدل. ﴿غِشْيَانٌ﴾ او غَشَيَان د سمع مصدر دی: يو ځا ته راتلل. مراد ځني کور والي او جماع کول دي. ﴿تجرّد﴾ د تفعّل د باب مصدر دی: لڅېدل. بربنډ کېدل. ﴿عَيْر﴾ (په فتح د عين سره) خر ته وايي، هغه که وحشي خر وي او که کورنی وي (يعني عَيْر هر دول خره ته وايي). او عِيْر (په کسره د عين سره) هغه اوښان يا خرونه او غاطري چي غله او خوراکه باندي راوړل کيږي، بيا يې پر هره قافله اطلاق وسو. (مصباح)

**تشريح: صورت د مسئلي:** دا دی چي د خپل حلالي مينځي او د خپل ښځي فرج او د هغې ټوله بدن ته د سړي کتل مطلقاً جائز دي، برابره ده په شهوت سره وي يا بغير له شهوته وي؛ ځکه نبي کريم ﷺ مينځي او ښځي ته د مطلقاً کتلو اجازت ورکړی دی.

او د دې عقلي دليل دا دی چي د خپل حلالي مينځي او ښځي مسه کول بلکي جماع ورسره کول هم روا دي، نو په کتلو کي يې څه حرج دی. دا خو به په درجه اولیٰ روا وي. دا کوم څه چي ذکر سوه دا مسئله او فتویٰ ده. لېکن تقویٰ دا ده چي له زوجينو څخه به يو د بل فرج ته نه ګوري؛ ځکه په حديث کي د جماع پر مهال هم د پرده کولو حکم سوی دی او د لڅوالي ممانعت راغلی دی. او بل دا چي فرج ته په کتلو سره په سړي کي د هيري ناروغي پيدا کيږي؛ نو ځکه نه ورته کتل زيات غوره دي. لېکن د حضرت ابن عمر رضی الله عنهما په نيز کتل زيات غوره دي چي د خاوند او ښځي تر مينځ بشپړ لطف او لذت حاصل سي، همدارنګه بعضي فقهاؤ د جماع پر مهال خاوند او ښځي لره يو د بل فرج ته کتل د خوند او لذت زياتېدلو سبب ګرځولي دي. (احسن الهدايه)

## خپلو محارمو ته د سري کتل

قَالَ: وَيَنْظُرُ الرَّجُلُ مِنْ ذَوَاتِ مَحَارِمِهِ إِلَى الْوَجْهِ وَالرَّأْسِ وَالصَّدْرِ وَالسَّاقَيْنِ وَالْعَضُدَيْنِ فرمايي: او سړی کتلای سي د خپل ذی رحم محرم ښځو مخ، سر، سينه، پنډيو، بازوګانو [ليڅو او متانو] ته وَلَا يَنْظُرُ إِلَى ظَهْرِهَا وَبَطْنِهَا وَفَخِذِهَا او نه سي کتلای د هغوی ملا، نس او ورنو ته وَالْأَصْلُ فِيهِ قَوْلُه تَعَالَىٰ او اصل په دې باره کي د الله تعالىٰ دا فرمان دی وَلَا يُبْدِينَ زِينَتَهُنَّ إِلَّا لِبُعُولَتِهِنَّ [النور: ٣١] او نه دي ښکاره وي ښځي خپل ښايست [او ځايونه د ښايست] مګر لپاره د خپلو خاوندانو [او لپاره د خپلو پلرونو. او ځامنو ...إلخ] وَالْمُرَادُ وَاللهُ أَعْلَمُ مَوَاضِعُ الزِّينَةِ او [په آيت کي له زينت څخه] مراد والله اعلم د زينت [ښايست] ځايونه دي وَهِيَ مَا ذُكِرَ فِي الْكِتَابِ او د زينت ځايونه هغه دي کوم چي موږ په قدوري [متن] کي ذکر کړل وَيَدْخُلُ فِي ذٰلِكَ السَّاعِدُ وَالْأُذُنُ وَالْعُنُقُ وَالْقَدَمُ او په دې [مواضع زينت] کي ليڅي، غوږ، غاړه او پښه هم داخليږي لِأَنَّ كُلَّ ذٰلِكَ مَوَاضِعُ الزِّينَةِ ځکه چي دا ټول د ښايست ځايونه دي بِخِلَافِ الظَّهْرِ وَالْبَطْنِ وَالْفَخِذِ په خلاف د ملا او نس او ورنو لِأَنَّهَا لَيْسَتْ مِنْ مَوَاضِعِ الزِّينَةِ ځکه چي دا د ښايست له ځايو څخه نه دي.

**اللغات**: ﴿العضد﴾ ما بين المرفق الى الكتف، بازو، مټ. ﴿بُعُولَة﴾ جمع د بَعْلٌ ده: مېړه، خاوند (کله چي د هغه او ښځي تر مينځ واده وسي). ﴿الساعد﴾ ما بين المرفق الى الكف من الاعلى (يعني له څنګلو څخه تر ورغوي پوري د دغه حصې پورتني او ښکارني طرف ته ساعد وايي). ليڅه چي دواړو ته ليڅي وايي. خو عموماً عضد او ساعد په يوه معنىٰ سره استعماليږي.

**تشريح**: **صورت د مسئلې**: دا دی چي د خپل ذی رحم محرم ښځو مخ، سر، سينه، پنډۍ او ليڅو ته کتل جائز دي، خو د دوی ملا، نس او ورونو ته کتل جائز نه دي؛ دليل د قرآن کريم هغه آيت دی کوم چي په کتاب کي ذکر سو؛ ځکه په دې آيت کي ښځو لره د محارمو مخ ته د زينت ښکاره کولو اجازه ور کول سوې ده (يعني إلّا لبعولتهن أو آبائهن ...إلخ)، او له زينت څخه مراد مواضعِ زينت دي (لکه مخکي چي هم ذکر سوه)، او ښکاره ده چي سر، سينه وغيره مواضعِ زينت دي، نو ځکه دې ځايو ته به د محرم کس نظر ناروا نه وي.

ويدخل إلخ: فرمايي كله چي په آيت كي له زينت څخه مراد مواضع زينت دي، نو څرنګه چي په ليځو او په غوږو، غاړه او پښو باندي زيورات اغوستل كيږي، لهذا دوى به هم په مواضع زينت كي داخل وي چي د دوى ښكاره كول او كتل به هم جائز وي، خو نس او ملا څرنګه چي په هغوى زيورات نه اغوستل كيږي، نو ځكه هغوى به له مواضع زينت څخه خارج وي او ښكاره كول او كتل به يې جائز نه وي.

## د پورتنی مسئلې نور وضاحت

وَلِأَنَّ الْبَعْضَ يَدْخُلُ عَلَى الْبَعْضِ مِنْ غَيْرِ اسْتِئْذَانٍ وَاحْتِشَامٍ او ځكه چي له څه اجازت غوښتلو او شرم كولو څخه بغير بعضي پر بعضو داخليږي وَالْمَرْأَةُ فِي بَيْتِهَا فِي ثِيَابِ مِهْنَتِهَا عَادَةً او ښځه په خپل كور كي عموماً د كار [خوارۍ] په كپړو كي وي فَلَوْ حَرُمَ النَّظَرُ إِلَى هٰذِهِ الْمَوَاضِعِ نو كه چيري دغه ځايو ته نظر حرام وګرځول سي أَدّٰى إِلَى الْحَرَجِ نو دا به د ستونزي [تكليف] سبب وګرځي وَكَذَا الرَّغْبَةُ تَقِلُّ لِلْحُرْمَةِ الْمُؤَبَّدَةِ او همدارنګه د همېشني حرمت په وجه رغبت كم وي فَقَلَّ مَا تُشْتَهٰى نو [نتيجتاً] به اشتها [شهوت] هم ډېر كم وي بِخِلَافِ مَا وَرَاءَهَا په خلاف له دې [مواضع زينت] څخه بغير نور ځايونه لِأَنَّهَا لَا تَنْكَشِفُ عَادَةً ځكه هغوى عادتاً نه لڅيږي وَالْمَحْرَمُ مَنْ لَا تَجُوْزُ الْمُنَاكَحَةُ بَيْنَهُ وَبَيْنَهَا عَلَى التَّأْبِيْدِ او ذی رحم محرم هغه كس دى چي د همېشه لپاره د هغه او ښځي تر مينځ نكاح جائز نه وي بِنَسَبٍ كَانَ برابره ده د نسب په وجه وي أَوْ بِسَبَبٍ يا د يو سبب په وجه وي كَالرَّضَاعِ وَالْمُصَاهَرَةِ لكه [په وجه د] رضاعت او مصاهرت لِوُجُوْدِ الْمَعْنَيَيْنِ فِيْهِ ځكه چي په دوى كي هم دواړي معناوي [يعني ضرورت او قلت رغبت] موجود دي وَسَوَاءٌ كَانَتِ الْمُصَاهَرَةُ بِنِكَاحٍ أَوْ سِفَاحٍ فِي الْأَصَحِّ او برابره ده مصاهرت په نكاح سره وي يا په زنا سره وي لِمَا بَيَّنَّا د هغه دليل په وجه كوم چي موږ بيان كړى.

**اللغات**: ﴿احتشام﴾ د افتعال د باب مصدر دى: شرم وحيا كول، انقباض. ﴿مهنة﴾ كار، خواري. ﴿مصاهرة﴾ د مفاعلې د باب مصدر دى: د خسر توب او خواښي توب قرابت (خواښي والى او خسر والى). د خېښنى او زومتوب قرابت. ﴿سِفَاح﴾ بدكاري، زنا.

**تشريح**: مخكي ذكر سوه چي د ذی رحم محرم ښځو سر، پندۍ وغيره ته كتل جائز دي، په دې عبارت كي د هغه عقلي دليل بيانوي فرمايي چي په معاشره (ټولنه) كي رواج دا دى چي محارم يو د بل كورو او خونو ته په آزاده داخليږي او په دې هكله هيڅ بنديز نه وي، نه خو اجازت غواړي او نه

شرم وحيا محسوسوي، او ښځې په خپل کورني کارنو مصروفه وي نو داسې هم کيږي چې ځينې وخت د دوی پړوني له سر څخه لاندې يا جلا وي، لهذا که د مذکوره ځايو (سروغيره) پر کتلو پابندې ولګول سي، نو زيات حرج به لازم سي، حالانکې شريعت حتی الامکان د حرج او تکليف ليرې کولو کوښش کړی دی نو ځکه د مجبوری او ضرورت پر بناء مذکوره ځايو ته کتل جائز ګرځول سوي دي.

وکذا إلخ: او بل دا چې د کومو کسانو تر مينځ چې دائمي حرمت وي (يعني محارم)، نو د هغوی يو بل ته رغبت هم کم وي، او په داسې کتلو سره د هغوی شهوت هم نه پورته کيږي، نو ځکه د فساد او فتنې د نشتوالي په وجه هم د محارمو سر، پنډۍ وغيره ته کتل جائز ګرځول سوي دي.

بخلاف ما وراءها إلخ: فرمايي چې له سر وغيره څخه بغير نور ځايونه مثلاً ورون، نس وغيره چې څرنګه په عامه توګه د هر چا مخ ته د هغوی د پټولو التزام کيږي او د خلکو مخ ته لڅول يې معيوب ګڼل کيږي، نو ځکه د هغوی نه لڅول جائز دي او نه ورته کتل جائز دي.

والمحرم إلخ: په دې سره د ذی رحم محرم تعريف بيانوي چې محرم هغه کس ته وايي چې هيڅکله هم د ښځې سره د هغه نکاح نه سي کېدلای، برابره ده د نسب په وجه وي، لکه ورور، اکا وغيره. يا د يو بل سبب پر بناء وي، مثلاً دواړو د يوې ښځې تی رودلی وي، يا حرمت مصاهرت وي يعني د ښځې مور (خواښې) وغيره، د دوی سره هم په داسې توګه نکاح حرامه ده؛ ځکه د شهوت او رغبت کمښت چې څرنګه په نسبي قرابت کې سته، همداسې په رضاعت او مصاهرت کې هم سته.

او أصح قول دا دی چې د نکاح او زنا دواړو حرمت مصاهرت سره برابره دی؛ ځکه په دواړو صورتونو کې کتل حرام ګرځول د حرج سبب ګرځي، همدارنګه په دواړو صورتونو کې د شهوت او رغبت قلت موجود دی، خو ځينې مشايخو د مصاهرت بالزنا په صورت کې مذکوره ځايو ته کتل جائز نه دي ګرځولي او دليل يې دا پېش کړی دی چې که دا جائز وګرځول سي، نو په دې صورت کې به زاني لره د جرم په توګه اجازت ثابت سي، حال دا چې د محارمو اجازت د نعمت او انعام په توګه دی. نو ځکه د مزنيه ښځې د مور مخ، سر وغيره ته به د زاني کتل جائز نه وي، خو صحيح اول قول دی چې په هغه کې مصاهرت بالنکاح او بالزنا دواړو په يوه حکم ګرځول سوي دي.

### د خپلو محارمو د مسه کولو حکم او تفصيل

قَالَ: وَلَا بَأْسَ بِأَنْ يَمُسَّ مَا جَازَ أَنْ يَنْظُرَ إِلَيْهِ مِنْهَا فرمايي: او پروا نسته په دې کې چې مسه کړي د محارمو هغه اندامونه چې ورته کتل جائز وي [يعني د ذی رحم محرم ښځو وکومو اندامونو ته چې کتل جائز دي، د هغوی مسه کول هم جائز دي] لِتَحَقُّقِ الْحَاجَةِ إِلَى ذٰلِكَ فِي الْمُسَافَرَةِ ځکه په سفر کې دې ته

ضرورت ثابت دی وَقِلَّةِ الشَّهْوَةِ لِلْمَحَارِمِيَّةِ او [ځکه چي] د حرمت پر بناء شهوت هم کم دی بِخِلَافِ وَجْهِ الْأَجْنَبِيَّةِ وَكَفَّيْهَا په خلاف د پردی ښځي مخ او د هغې ورغوي حَيْثُ لَا يُبَاحُ الْمَسُّ چي [د هغوی] مسه کول روا نه دي وَإِنْ أُبِيحَ النَّظَرُ که څه هم [ورته] کتل روا دي لِأَنَّ الشَّهْوَةَ مُتَكَامِلَةٌ ځکه چي [دلته] شهوت کامل دی إِلَّا إِذَا كَانَ يَخَافُ عَلَيْهَا أَوْ عَلَى نَفْسِهِ الشَّهْوَةَ مګر دا چي کله هغه [کتونکي] ته د شهوت بېره وي پر خپلو محارمو يا پر خپل ځان فَحِينَئِذٍ لَا يَنْظُرُ وَلَا يَمَسُّ نو په دې وخت کي به نه [ورته] ګوري او نه به [يې] مسه کوي لِقَوْلِهِ عَلَيْهِ الصَّلَاةُ وَالسَّلَامُ [1] «الْعَيْنَانِ تَزْنِيَانِ وَزِنَاهُمَا النَّظَرُ ځکه نبي کريم ﷺ فرمايلي دي: چي سترګي زنا کوي او د هغوی زنا کتل دي وَالْيَدَانِ تَزْنِيَانِ وَزِنَاهُمَا الْبَطْشُ» او لاسونه هم زنا کوي او د هغوی زنا نيول دي وَحُرْمَةُ الزِّنَا بِذَوَاتِ الْمَحَارِمِ أَغْلَظُ او د محارمو سره د زنا حرمت زيات سخت دي فَيَجْتَنِبُ نو ځکه [د شهوت د بيري په وخت کي] به [له نظر او مس څخه] پرهيز کوي وَلَا بَأْسَ بِالْخَلْوَةِ وَالْمُسَافَرَةِ بِهِنَّ او څه پروا نسته د محارمو سره په خلوت او سفر کولو کي لِقَوْلِهِ عَلَيْهِ الصَّلَاةُ وَالسَّلَامُ [2]: «لَا تُسَافِرُ الْمَرْأَةُ فَوْقَ ثَلَاثَةِ أَيَّامٍ وَلَيَالِيهَا إِلَّا وَمَعَهَا زَوْجُهَا أَوْ ذُو رَحِمٍ مَحْرَمٍ مِنْهَا» ځکه نبي کريم ﷺ فرمايلي دي: ښځه به سفر نه کوي تر دريو ورځو زيات مګر دا چي د هغې سره خپل خاوند يا ذو رحم محرم وي وَقَوْلُهُ عَلَيْهِ الصَّلَاةُ وَالسَّلَامُ [3]: «أَلَا لَا يَخْلُوَنَّ رَجُلٌ بِامْرَأَةٍ لَيْسَ مِنْهَا بِسَبِيلٍ فَإِنَّ ثَالِثَهُمَا الشَّيْطَانُ» او د نبي کريم ﷺ فرمان دی: خبردار! خلوت دي نه کوي سړی د يو داسي ښځي سره چي له هغې سره يې هيڅ سبيل نه وي، ځکه د دوی دوارو [سره] دريم شيطان دی وَالْمُرَادُ إِذَا لَمْ يَكُنْ مَحْرَمًا او مراد [له دې فرمان "ليس منها بسبيل" څخه]-دا دی چي کله ذو رحم محرم کس [ور سره] نه وي فَإِنِ احْتَاجَتْ إِلَى الْإِرْكَابِ وَالْإِنْزَالِ بيا که ذو رحم محرم ښځي [پر سپارلي] سپرولو ته او را شوه کېدلو ته محتاجه

---

[1] تخريج: أخرجه أبو داؤد فى كتاب النكاح، باب فى ما يؤمر به من غض البصر، حديث رقم:۲۱۵۲.

[2] تخريج: أخرجه مسلم فى كتاب الحج، باب سفر المرأة، حديث رقم:۴۱۸.

[3] تخريج: أخرجه الترمذى فى كتاب الفتن، باب ما جاء فى لزوم الجماعة، حديث رقم:۲۱۶۵.

سي فَلَا بَأْسَ بِأَنْ يَمَسَّهَا مِنْ وَرَاءِ ثِيَابِهَا نو بيا څه پروا نسته په دې کې چې پر کپړو سربېره يې مسه کړي وَيَأْخُذَ ظَهْرَهَا وَبَطْنَهَا دُونَ مَا تَحْتَهُمَا او ملا يا نس يې ونيسي، نه تر ملا او نس لاندې حصه إِذَا أَمِنَا الشَّهْوَةَ [په دې شرط] کله چې دواړه له شهوت څخه په امن وي فَإِنْ خَافَهَا عَلَى نَفْسِهِ أَوْ عَلَيْهَا تَيَقُّنًا أَوْ ظَنًّا أَوْ شَكًّا خو که چېرې پر خپل ځان يا پر ښځه يې په يقيني توګه يا په ګوماني يا شکي توګه د شهوت بېره وي فَلْيَجْتَنِبْ ذٰلِكَ بِجَهْدِهِ نو بيا دې ځان ساتي له مسه کولو څخه د خپل کوشش [او وس] مطابق ثُمَّ إِنْ أَمْكَنَهَا الرُّكُوبَ بِنَفْسِهَا بيا که ذو رحم محرم ښځو لره خپله سپرېدل ممکن وي يَمْتَنِعُ عَنْ ذٰلِكَ أَصْلًا نو سړی به بالکل له مسه کولو څخه منع کيږي وَإِنْ لَمْ يُمْكِنْهَا او که خپله سپرېدل ورلره ممکن نه وي يَتَكَلَّفُ بِالثِّيَابِ نو په کپړه سره به [د مسه کولو] تکليف کوي كَيْ لَا تُصِيبَهُ حَرَارَةُ عُضْوِهَا د دې لپاره چې د اندام [بدن] ګرمي يې سړي ته نه ورسيږي وَإِنْ لَمْ يَجِدِ الثِّيَابَ او که کپړه نه وموندي يَدْفَعُ الشَّهْوَةَ عَنْ قَلْبِهِ بِقَدْرِ الْإِمْكَانِ نو حتى الامکان دې له خپل زړه څخه شهوت لېرې کوي.

**اللغات**: ﴿أغلظ﴾ د اسم تفضيل صيغه ده: زيات سخت، بدترين. ﴿بَطْش﴾ مصدر دی، له نصر او ضرب دواړو څخه راځي: نيول (په لاس نيول او رااخيستل). ﴿إركاب﴾ د افعال د باب مصدر دی: سپرول، خېژول. ﴿إنزال﴾ مخکنی صيغه ده، د دې باب څو معناوې دي چې له هغوی څخه يې يوه معنیٰ ده: (له سپارلي څخه) راشوه کول، راکوزول.

**تشريح: صورت د مسئلې**: دا دی چې د ذی رحم محرم ښځو کومو اندامو ته چې کتل جائز دي، د هغوی مسه کول هم پروا نه لري، څه قباحت او حرج پکښې نسته. په دې شرط چې له جانبين څخه د شهوت خطره نه وي؛ ځکه د سفر په حالت کې دې ته ضرورت پېښيږي. او بل دا چې د دائمي حرمت په وجه شهوت غالباً کم وي، نو ځکه د دوی په مسئله کې شرعاً څه حرج نسته.

بخلاف وجه الأجنبية إلخ: او پاتې سو د اجنبيه (پردۍ) ښځې حکم له دې څخه جلا دی؛ ځکه د اجنبيه ښځې مخ او لاسو ته کتل خو جائز دي. لېکن مسه کول يې جائز نه دي؛ ځکه که څه هم د سفر وغيره د ضرورت په وجه د اجنبيه ښځې مسه کول هم روا کېدل پکار دي، خو څرنګه چې د اجنبيه ښځې په صورت کې شهوت کامل موجوديږي. او عموماً اجنبيه ښځې ته په کتلو سره شهوت پوره ته

کيږي، لهذا که دلته هم مسه کول منع نه کړل سي، نو دا به د فساد سبب وګرځي، نو ځکه د اجنبيه ښځي په صورت کي د مسه کولو اجازت نه دی ور کول سوی.

إلا إذا كان يخاف إلخ: د دې حاصل دا دی چي د ذی رحم محرم ښځو مسه کول هم هغه وخت جائز دي، کله چي له دواړو طرفونو څخه د شهوت بېره نه وي، لېکن که د سړي پر خپل ځان واک او کنټرول نه وي، يا يې د ښځي د شهوت پور ته کېدو بېره وي، نو په دې وخت کي ذی رحم محرم ښځي ته هم کتل او مسه کول يې جائز نه دي؛ ځکه په حديث کي دي چي سترګي هم زنا کوي او لاسونه هم زنا کوي چي د سترګو زنا (په شهوت سره) کتل دي او د لاسو زنا (په شهوت سره) نيول دي. لهذا حتی الامکان به له دې څخه د بچ کېدو کوښښ کيږي، او د ذی رحم محرم ښځو سره د زنا حرمت د اجنبيه ښځو په نسبت نور هم زيات سخت او سنګين دی، نو ځکه د شهوت د خطرې په وخت کي دلته له کتلو او مسه کولو څخه ځان ساتل نور هم ډېر لازمي او ضروري دي.

ولا بأس إلخ: فرمايي د محارمو سره د سفر کولو يا د هغوی سره په خلوت کولو او تنها کښېنستلو کي څه حرج نسته؛ ځکه په حديث شريف کي د خاوند او محارمو سره د سفر کولو اجازت ور کول سوی دی. او په بل حديث شريف "أَلَا لَا يَخْلُوَنَّ رَجُلٌ إلخ" کي دي چي که د ښځي سره غير ذی محرم کس وي نو هلته د دوی سره دريم کس شيطان دی چي په مينځ کي يې ډېر ژر جوړښت راولي او فتنه وفساد واقع کوي. لهذا په سفر وغير کي په ځانګړې توګه ذی رحم محرم کس پکار دی. (احسن الهدايه)

فإن احتاجت إلخ: که ښځه د خپل ذو رحم محرم کس سره سفر کوي او سپارلي ته په ختلو او راشوه کېدو کي مرستي ته مجبوره سي، نو که چيري دواړه له شهوت څخه په امن وي، نو د هغې دغه محرم کس لره دا اجازه سته چي پر جامو سربېره هغه تر ملا او نس (له بغل څخه) ونيسي او مرسته ور سره وکړي، په دې کي څه حرج نسته، لېکن که د يوه له طرفه د شهوت يقين يا ظن غالب يا شک وي، نو په دې صورت کي حتی الامکان له مسه کولو او نيولو څخه بچ کېدل پکار دي. او که ښځه بذات خود سپرېدلای سي، نو بيا د لاس ور وړلو قطعاً اجازت نسته. لېکن که په ختلو، راشوه کېدلو کي ورته تکليف وي، نو په دې وخت کي سړي لره پکار دي چي په ختلو او راشوه کېدو کي يې مرسته وکړي او له جامې او کپړې وغيره څخه هغه ونيسي، د دې لپاره چي د ښځي د بدن حرارت او ګرمي محسوس نه کړئ سي، او که جامه او کپړه نه وموندل سي، نو ښکاره ده چي د ضعيف کس سره مرسته کول ضروري دي، نو ځکه سړي ته پکار دي چي حتی الامکان پر خپل نفس کنټرول راولي او له شيطاني او شهواني خيال څخه په کلکه ځان وساتي او د هغې مرسته وکړي.

## د بل چا د مینځي احکام

قَالَ: وَيَنْظُرُ الرَّجُلُ مِنْ مَمْلُوكَةِ غَيْرِهِ إِلَى مَا فرمايي: او سړی کتلای سي د بل چا د مینځي هغه حصې [اندامونو] ته يَجُوزُ أَنْ يَنْظُرَ إِلَيْهِ مِنْ ذَوَاتِ مَحَارِمِهِ کوم چي جائز دي چي ورته وګوري له خپل ذی رحم محرم ښځو څخه [يعني د خپلو محرماتو کومو اندامو ته کتل چي جائز دي، د بل چا د مینځي هم هغه اندامونو ته کتل جائز دي] لِأَنَّهَا تَخْرُجُ لِحَوَائِجِ مَوْلَاهَا ځکه چي مینځه د خپل مالک د ضرورتونو لپاره بهر وځي وَتَخْدُمُ أَضْيَافَهُ وَهِيَ فِي ثِيَابِ مِهْنَتِهَا او د خپل مالک د مېلمنو خدمت کوي په داسي حال کي چي هغه خپل د کار په کپړو [کالیو] کي وي فَصَارَ حَالُهَا خَارِجَ الْبَيْتِ فِي حَقِّ الْأَجَانِبِ كَحَالِ الْمَرْأَةِ دَاخِلَهُ فِي حَقِّ مَحَارِمِ الْأَقَارِبِ نو له کور څخه بهر د پردیو خلکو په حق کي د مینځي حالت داسي سو لکه په کور کي دننه د ذی رحم محرم قریبانو په حق کي د ښځي حالت وَكَانَ عُمَرُ رَضِيَ اللَّهُ عَنْهُ إِذَا رَأَى جَارِيَةً مُتَقَنِّعَةً او حضرت عمر رضي الله عنه چي کله به يو مینځه په پړوني کي ولیدله عَلَاهَا بِالدُّرَّةِ نو هغه به يې پر سر په دره ووهله وَقَالَ: أَلْقِي عَنْكِ الْخِمَارَ يَا دَفَارُ او داسي به يې وفرمايل: له ځانه پړونی لیري کړه! اې بوينا کي! أَتَتَشَبَّهِينَ بِالْحَرَائِرِ آيا ته د آزادو ښځو سره مشابهت اختياروې وَلَا يَحِلُّ النَّظَرُ إِلَى بَطْنِهَا وَظَهْرِهَا او د مینځي نس او شا ته کتل جائز نه دي خِلَافًا لِمَا يَقُولُهُ مُحَمَّدُ بْنُ مُقَاتِلٍ أَنَّهُ يُبَاحُ إِلَّا إِلَى مَا دُونَ السُّرَّةِ إِلَى الرُّكْبَةِ په خلاف د هغه کوم چي محمد بن مقاتل رَحِمَهُ الله وايي چي له نامه څخه تر ځنګنو بغير د مینځي نور بدن ته کتل روا دي [يعني دا قول يې صحيح نه دی] لِأَنَّهُ لَا ضَرُورَةَ كَمَا فِي الْمَحَارِمِ ځکه چي [مینځي ته د کتلو] ضرورت نسته لکه څرنګه چي په محارمو کي دی بَلْ أَوْلَى بلکي [د مینځي ملا او نس ته] نه کتل غوره دي لِقِلَّةِ الشَّهْوَةِ فِيهِنَّ وَكَمَالِهَا فِي الْإِمَاءِ ځکه په محارمو کي شهوت کم دی او په مینځو کي شهوت کامل دی وَلَفْظَةُ الْمَمْلُوكَةِ تَنْتَظِمُ الْمُدَبَّرَةَ وَالْمُكَاتَبَةَ وَأُمَّ الْوَلَدِ او د "مملوکه" لفظ مدبره، مکاتبه او أم ولد ټولو لره شامل دی لِتَحَقُّقِ الْحَاجَةِ د حاجت ثابتېدلو پر بناء وَالْمُسْتَسْعَاةُ كَالْمُكَاتَبَةِ عِنْدَ أَبِي حَنِيفَةَ او سعی کونکې مینځه د مکاتبه مینځي په څېر ده د امام صاحب رَحِمَهُ الله په نيز عَلَى مَا عُرِفَ لکه

ځرنګه چې پېژندل سوې ده وَأَمَّا الْخَلْوَةُ بِهَا وَالْمُسَافَرَةُ مَعَهَا فَقَدْ قِيلَ يُبَاحُ او پاته سو [د بل چا] د مينځې سره خلوت او سفر کول نو ويل سوي دي چې روا دي كَمَا فِي الْمَحَارِمِ لکه ځرنګه چې په محارمو کې [روا دي] وَقَدْ قِيلَ: لَا يُبَاحُ او ويل سوي دي: چې روا نه دي لِعَدَمِ الضَّرُورَةِ ځکه چې ضرورت نسته وَفِي الْإِرْكَابِ وَالْإِنْزَالِ اِعْتَبَرَ مُحَمَّدٌ فِي الْأَصْلِ الضَّرُورَةَ فِيهِنَّ او د سپرولو او راښوه کولو په هکله په اصل [مبسوط] کې امام محمد رَحِمَهُ الله په مينځو کې د ضرورت اعتبار کړی دی وَفِي ذَوَاتِ الْمَحَارِمِ مُجَرَّدَ الْحَاجَةِ او په محارمو کې يې د محض حاجت اعتبار کړی دی.

**اللغات:** ﴿حوائج﴾ جمع د حَاجَةٌ ده: حاجتونه، ضرورتونه، ارتياوي، ﴿متقنعة﴾ د تفعّل له بابه د واحد مؤنث اسم فاعل صيغه ده: نقاب کونکې ښځه چې مخ يې پټ کړې وي، په پړوني وغيره باندي سر پټونکې ښځه، مراد: پرده کونکې ښځه، ﴿خمار﴾ پړونی، پوړنی، ﴿دفار﴾ بدبويه (بوېناکه)، ګنده، نالائق، ﴿مستسعاة﴾ د استفعال له بابه د واحد مؤنث فاعل صيغه ده: هغه مينځه چې مالک ورته ويلي وي دومره مال را وګټه بيا ستا دا پاته حصه آزاده ده، اِسْتَسْعٰى يَسْتَسْعِيْ اِسْتِسْعَاءً: په غلام يا مينځه سعي او خواري کښل، خواري (مال په ګټل)، يعني په غلام کسب او مزدوري کول (د دې لپاره چې غلام څه مال وګټي او د خپل پاته حصې قيمت اداء کړي او په پوره توګه آزاد سي).

**تشريح: صورت د مسئلې:** ذا دی چې ځرنګه د خپل ذی رحم محرم ښځو مخ، سر، سينې وغيره ته کتل جائز دي، همداسي د بل چا د مينځې هم مذکوره اندامو ته کتل جائز دي. او د دې د جائز کېدو وجه دا ده چې په عامه توګه مينځې د خپل مالک د ضروریاتو او خدماتو لپاره دباندي وځي، او د خپل کار په جامو کې د مالک د مېلمنو خدمت کوي، نو له کور څخه دباندي د پرديو خلګو په حق کې د مينځې درجه داسي سوه لکه په کور کې دننه د ذی رحم محرم قريبانو په حق کې د آزادي ښځې درجه، په بله وينا دا چې ځرنګه په کور کې دننه انسان خپل ذی رحم محرم ښځو ته کتلای سي، همداسي له کور څخه دباندي د بل چا مينځې ته کتلای سي، همدا وجه ده چې کله به حضرت عمر رضي الله عنه د يو چا مينځه په چادري، نقاب وغيره کې وليدله، نو هغې ته به يې سزا ورکوله؛ ځکه پر مينځې د خپل مالک حکم پوره کول او اطاعت کول ضروري دي او د حکم پوره کولو لپاره له کوره دباندي وتل هم پېښېږي او ځيني وخت د مالک يو کار ته ډېر تلوار وي، اوس که دا مينځه چادري وغيره پر سر کړي، نو کېدای سي چې او به تر ورخ واوړي او دا کار ډېر وخت ونيسي، او بل دا چې په

چادري وغيره کي وتل دا دآزادو ښځو خاصه او ځانګړنه ده، که چيري مينځې هم دغه طرز اختيار کړي، نو مَا الفَرْق بينهما.

ولا يحل إلخ: څرنګه چي د ذی رحم محرم ښځو نس او ملا ته کتل جائز نه دي چي هيڅ ضرورت دې ته نسته، همداسي د بل چا د مينځې دغه حصو ته کول جائز نه دي، خو په دې هکله د محمد بن مقاتل رَحِمَهُ الله اختلاف دی هغه وايي چي له نامه څخه تر زنګنو بغير نورو ځايو ته يې کتل روا دي، او مونږ وايو چي د عدمِ ضرورت په وجه د مينځې نس او ملا ته کتل جائز نه دي. او بل چي کله د ذی رحم محرم ښځو نس او ملا ته کتل جائز نه دي سره د دې چي د هغوی په حق کي شهوت غالباً کم وي، نو د مينځو نس او ملا ته کتل په درجه اولیٰ جائز کېدل پکار نه دي؛ ځکه د مينځو په هکله شهوت غالب وي او د فساد او فتنې خطره پکښې زياته وي.

ولفظة المملوكة إلخ: فرمايي په متن کي چي کوم د "مَمْلُوْکَةٌ" لفظ ذکر دی، په هغه کي مدبّره، اُم ولد او مکاتبه ټوله مينځې داخلي دي؛ ځکه کوم ضرورت چي د مملوکه مينځې سره متعلق دي، هاغه د مدبّره وغيره سره هم متعلق دي، لهذا څرنګه چي د مملوکه مينځې په حق کي اجازت سته، نو په مدبّره، اُم ولد او مکاتبه مينځې کي به هم اجازت وي.

والمستسعاة إلخ: په کتابُ العتق کي ستاسي مخ ته تېر سوه چي امام صاحب رَحِمَهُ الله د عتق د تجزّی قائل دی (چي عتق [آزادي] هم متجزي کېدای سي)، نو فرمايي هغه مينځه چي مالک يې يوه حصه آزاده کړې وي او د پاته حصې د آزادولو لپاره مينځه هڅه او مزدوري کوي، د داسي مينځې هم هاغه حکم دی کوم چي د مدبّره او مکاتبه مينځې دي، يعني د هغې مخ ته هم کتل جائز دي.

وأما الخلوة إلخ: د دې حاصل دا دی چي ځيني حضرات د ذی رحم محرم ښځو په څېر د اجنبيه مينځې سره خلوت او سفر کول روا ګڼي، او ځيني نور حضرات بيا د عدمِ ضرورت په وجه دا ناروا ګڼي، خو امام محمد رَحِمَهُ الله په مبسوط کي د سپرېدلو او له سپارلي څخه د راښکته کېدلو په اړه د مينځو په حق کي د ضرورت اعتبار کړی دی او د ذی رحم محرم ښځو په حق کي يې د حاجت اعتبار کړی دی. يعني که د مينځې خېژولو او راښکته کولو ته سخت ضرورت وي مثلاً که مينځه نه وخېژول سي نو قافله به ځني ولاړه سي او دا به د مرګ په انتظار ناسته پاته سي، نو په داسي وخت کي اجنبي کس مرسته ورسره کولای سي، او د ذی رحم محرم ښځې مسئله دا ده چي که هغه د يو حاجت لپاره روانه وي، مثلاً کوريې په ښار کي وي او هغه خپل کښت ته ځي او د خوراک لپاره سبزيجات

رواړي، نو که چیري په ختلو او راښوه کېدو کي مرستي ته مجبوره وي، نو مرسته ورسره کول جائز دي، په دې شرط چي له جانبینو څخه د شهوت خطره نه وي، کنې جائز نه دي.

**فایده:** ضرورت دې ته وایي چي له هغه څخه هیڅ چاره نه وي او حصول یې ضروري وي او حاجت هغه دی چي انسان ورته محتاجه وي خو له هغه څخه بغیر هم چاره او ګذاره کېدلای سي. (احسن الهدایه)

## د مینځي د رانیولو پر مهال د مسه کولو حکم

قَالَ: وَلَا بَأْسَ بِأَنْ يَمَسَّ ذٰلِكَ إِذَا أَرَادَ الشِّرَاءَ فرمایي: او پروا نسته په دې کي چي دا ځایونه مسه کړي کله چي [د مینځي] د رانیولو اراده لري وَإِنْ خَافَ أَنْ يَشْتَهِيَ که څه هم پر دې بېرېږي چي اشتها [شهوت] به یې وسي كَذَا ذَكَرَهُ فِي الْمُخْتَصَرِ همداسي یې په مختصر القدوري کي ذکر کړي دي وَأَطْلَقَ أَيْضًا فِي الْجَامِعِ الصَّغِيرِ وَلَمْ يُفَصِّلْ او په جامع صغیر کي هم امام محمد رَحِمَهُ الله مطلق بیان کړی دی او هیڅ تفصیل یې نه دی کړی قَالَ مَشَايِخُنَا رَحِمَهُمُ اللهُ: يُبَاحُ النَّظَرُ فِي هٰذِهِ الْحَالَةِ وَإِنِ اشْتَهٰى لِلضَّرُورَةِ زموږ مشایخ رَحِمَهُمُ الله فرمایي: چي په دغه حالت کي د ضرورت په وجه کتل خو روا دي که څه هم اشتها [شهوت] یې وسي وَلَا يُبَاحُ الْمَسُّ إِذَا اشْتَهٰى أَوْ كَانَ أَكْبَرُ رَأْيِهِ ذٰلِكَ خو مسه کول روا نه دي کله چي اشتها یې وسي یا یې د دې غالب ګومان وي [چي اشتها به مي وسي] لِأَنَّهُ نَوْعُ اسْتِمْتَاعٍ ځکه چي مسه کول هم یو ډول نفع اخیستل دي وَفِي غَيْرِ حَالَةِ الشِّرَاءِ يُبَاحُ النَّظَرُ وَالْمَسُّ بِشَرْطِ عَدَمِ الشَّهْوَةِ او د رانیولو له حالت څخه بغیر بل حالت کي کتل او مسه کول د شهوت [اشتها] نه کېدلو په شرط سره روا دي.

**اللغات:** ﴿يَمَسّ﴾ او يَمُس یعني له سمع او نصر دواړو بابونو څخه ورېل کېدای سي: مسه کول، لاس ور وړل. ﴿استمتاع﴾ د استفعال د باب مصدر دی: (له ښځي څخه) نفع او کار اخیستل، (د ښځي سره جماع کول).

**تشریح: صورت د مسئلې:** دا دی چي د رانیولو پر مهال که څوک د مینځي سر وغیره مسه کړي، نو څه پروا نه لري، که څه هم د خپل شهوت پورته کېدو بېره یې وي، په قدوري او جامع صغیر کي یې دغه مسئله مطلقاً ذکر کړې ده، یعني د شهوت او عدمِ شهوت تر مینځ یې هیڅ فرق نه دی کړی (یعني د شهوت او عدمِ شهوت په دواړو صورتونو کي د مینځي هغه اندامونه مسه کول روا دي کوم ته چي کتل روا دي)، خو مشایخو رَحِمَهُمُ الله د رانیولو د ضرورت په خاطر په شهوت سره کتل خو روا کړي دي، لېکن مسه کول یې نا روا ګرځولي دي که د شهوت یقین یا یې ظن غالب وي؛ ځکه چي مسه کول هم یو ډول استمتاع ده، او استمتاع بالاجنبیه حرام ده، ها! که چیري شهوت نه وي، نو کتل او مسه کول دواړه جائز دي، برابره ده رانیول یې مقصود وي او که نه وي.

## د بالغي مينځي احکام او د نامرده کس، نرښځي وغيرهما احکام

قَالَ: وَإِذَا حَاضَتِ الْأَمَةُ فرمايي: او کله چي مينځه حائضه سي لَمْ تُعْرَضْ فِيْ إِزَارٍ وَاحِدٍ نو په يوازي لنګ کي به نه پېشول کيږي [چي فقط لاندي حصه يې پټه وي او نس او ملا ښکاره وي] وَمَعْنَاهُ بَلَغَتْ او د دې معنیٰ دا ده چي [کله] بالغه سي وَهٰذَا مُوَافِقٌ لِمَا بَيَّنَّا أَنَّ الظَّهْرَ وَالْبَطْنَ مِنْهَا عَوْرَةٌ او دا حکم د هغه دليل په وجه دی کوم چي موږ بيان کړی چي د مينځي ملا او نس عورت دي وَعَنْ مُحَمَّدٍ أَنَّهَا إِذَا كَانَتْ تَشْتَهِيْ وَيُجَامَعُ مِثْلُهَا او له امام محمد رَحِمَهُ الله څخه روايت دی چي کله مينځه داشتها [شهوت] قابله وي او د داسي [دومره عمروالا] ښځي سره جماع کېدلای سي فَهِيَ كَالْبَالِغَةِ نو هغه د بالغي ښځي په څېر ده لَا تُعْرَضُ فِيْ إِزَارٍ وَاحِدٍ چي په يوه جامه کي به نه پېشول کيږي لِوُجُوْدِ الْاِشْتِهَاءِ داشتها [شهوت] موجودېدلو په وجه قَالَ: وَالْخَصِيُّ فِي النَّظَرِ إِلَى الْأَجْنَبِيَّةِ كَالْفَحْلِ فرمايي: او پردۍ ښځي ته د کتلو په هکله خسي کس د [ناخسي] نارينه په څېر دی لِقَوْلِ عَائِشَةَ رَضِيَ اللهُ عَنْهَا: اَلْخِصَاءُ مُثْلَةٌ د حضرت عائشې (رض) د قول په وجه: چي خسي کول [په څېر د] مثله کول دي فَلَا يُبِيْحُ مَا كَانَ حَرَامًا قَبْلَهُ لهذا خسي کول هغه شی نه روا کوي کوم چي تر خسي کولو مخکي حرام وي وَلِأَنَّهُ فَحْلٌ يُجَامِعُ او ځکه چي خسي نارينه دی چي جماع کولای سي وَكَذَا الْمَجْبُوْبُ او همداسي هغه کس چي ذکر يې پرېکړل سوی وي لِأَنَّهُ يَسْحَقُ وَيُنْزِلُ ځکه هغه ځان مږلای سي او انزال کولای سي [يعني په ځان مږلو سره مني را ايستلای سي] وَكَذَا الْمُخَنَّثُ فِي الرَّدِيْءِ مِنَ الْأَفْعَالِ او همدارنګه مخنث [د ښځو سره مشابهت اختيارونکی] په بدو کارو کي [يعني بدکاره مخنث] لِأَنَّهُ فَحْلٌ فَاسِقٌ ځکه چي هغه فاسق نارينه دی وَالْحَاصِلُ أَنَّهُ يُؤْخَذُ فِيْهِ بِمُحْكَمِ كِتَابِ اللهِ الْمُنَزَّلِ فِيْهِ خلاصه دا چي په دې باره کي به په کتابُ الله کي پر نازل سوي حکم عمل کيږي وَالطِّفْلُ الصَّغِيْرُ مُسْتَثْنًى بِالنَّصِّ او کوچنی بچی د نص په وجه [له پورتني حکم څخه] مستثنیٰ دی.

**اللغات**: ﴿لم تعرض﴾ د ضرب له بابه د جحدِ مجهول صيغه ده: پېشول، وړاندي کول، مخ ته راوړل. ﴿إزار﴾ هغه جامه چي د بدن پر لاندي نيمه حصه تړل کيږي، يعني لنګ. الإزار: ثوب يحيط

بالنصف الاسفل من البدن. ﴿خصي﴾ خسي، هغه سړی چي خوټي (خصيتين) يې ټکول سوي وي، ﴿فحل﴾ مينده، نارينه، هغه سړی چي په وطي سره يې له ښځي څخه کوچنی پيدا کېدلای سي، ﴿مجبوب﴾ هغه سړی چي ذکَر يې پرېکړی سوي وي، ﴿يسحق﴾ مږل، له مساحقت څخه دی (أحسن الهداية). ﴿مُخنّث﴾ په عربي کي اصل نرښځي ته "خُنثٰی" وايي کوم چي د نارينه اندام يعني ذَکَر هم لري او د ښځي فرج هم لري، او "مُخَـنَّث" هغه سړي ته وايي کوم چي بالکليه د ښځو سره مشابهت اختياروي او د ښځو چمونه او حرکتونه کوي، صاحب د معجم يې داسي تعريف کړی دی: "الرَّجُلُ الْمُتَشَبِّهُ بِالنِّسَاءِ فِيْ مِشْيَتِهٖ وَكَلَامِهٖ وَتَعَطُّفِهٖ وَتَلَيُّنِهٖ" (يعني هغه سړی کوم چي په خپل تګ، کلام، ميلان او نرمۍ کي د ښځي سره مشابهت کونکی وي)، او دلته ځني مراد "المتشبّه بالنساء في الردیء من الأفعال" دی لکه څرنګه چي خپله مصنف رَحِمَهُ الله ويلي دي.

**تشريح: صورت د مسئلې:** دا دی چي څرنګه د آزادو ښځو نس او ملا عورت دي، همداسي د مينځي نس او ملا هم په عورت کي داخل دي او هغوی ته کتل جائز نه دي، اوس مسئله دا ده چي کله مينځه حائضه يعني بالغه سي، نو تر دې وروسته به هغه د خرڅلاو وغيره په غرض د خلکو مخ ته په يوه لنګ او پرتوګ کي نه پېشول کيږي بلکې د هغې نس او ملا وغيره به هم پټول کيږي يا کميس به ور اغوستل کيږي چي څه فتنه واقع نه سي. امام محمد رَحِمَهُ الله هم مشتهاة مينځې ته د بالغي مينځي حکم ورکړی دي او په يوه إزار کي له وتلو څخه يې منع کړې ده.

قال إلخ: د دې حاصل دا دی چي څرنګه سړي لره د پردۍ ښځي د مخ او لاسو څخه بغير نورو ځايو ته کتل جائز نه دي، همداسي خسي کس، مقطوع الذکر او بدکاره مخنث لره هم د مخ او لاسو څخه بغير د پردۍ ښځي نورو ځايو ته کتل جائز نه دي؛ د خسي په هکله دليل د حضرت عائشې رضي الله عنها دا فرمان دی چي خسي کول د مثله کولو په څېر دي، لهذا کوم شی چي تر دې مخکي حرام وو يعني نظر إلى الأجنبية، تر خسي کولو وروسته به هم جائز او حلال نه وي. او بل دا چي دا خسي هم د نورو خلکو په څېر پر جماع قادره وي، تر دې چي ځينو د خسي کس جماع نوره هم زيات سخته ښوولې ده؛ ځکه د هغه په آله کي ژر سستي نه راځي. والله أعلم

او مقطوع الذکر کس ځکه د روغو خلکو په حکم کي دی چي د ذکر او ځان مږلو په ذريعه هغه هم پر انزال کولو قادر دی، لهذا د شهوت او بدکارۍ بېره په هغه کي هم سته. او بدکاره مخنث هم د فاسق نارينه په څېر دی، نو ځکه دا دواړه به هم د نارينه وو په حکم کي وي.

والحاصل إلخ: فرمايي خلاصه د خبري دا ده چي د مذکوره اصنافو په هکله به په کتابُ الله کي پر نازل سوي حکم عمل کيږي او په کتابُ الله کي په دې هکله دوه آيتونه نازل سوي دي: ① ﴿قُل لِّلْمُؤْمِنِينَ يَغُضُّوا مِنْ أَبْصَارِهِمْ﴾، ② ﴿أَوِ التَّابِعِينَ غَيْرِ أُولِي الْإِرْبَةِ مِنَ الرِّجَالِ﴾. تاسي او ګورئ! له دغه دوو آيتو څخه مخکي اول آيت محکم دی او په هغه کي مطلقاً ټولو مسلمانانو ته ته د نظر ټيټ ساتلو حکم سوی دی، خو دويم آيت متشابه دی چي په هغه کي تأويلات هم سوي دي او د هغه تأويلاتو په ضمن کي خسي وغيره له نارينه وو څخه مستثنیٰ سوي دي او د کوچنيانو په حکم ګرځول سوي دي چي دوی ته هم د کوچنيانو په څېر واجنبيه ښځي ته د مطلقاً کتلو اجازت سته، لېکن تاسي ته معلومه ده چي کله په محکم اومتشابه کي تعارض راسي نو په دې وخت کي په محکم عمل کيږي او متشابه پرېښوول کيږي، نو ځکه دلته به هم په محکم عمل کيږي او د محکم په وجه به خسي او دا نورو کسانو ته د نارينه وو حکم ورکول کيږي چي دوی لره به ښځو ته د کتلو اجازت نه وي لکه څرنګه چي کوچنيانو لره اجازت دی. او پاته سوه کوچنيان په دې آيت ﴿أَوِ الطِّفْلِ الَّذِينَ لَمْ يَظْهَرُوا إلخ﴾ سره مستثنیٰ او خارج کړل سوي دي، نو ځکه کوچني لره خو به د مطلقاً کتلو، مسه کولو وغيره اجازت وي.

## د نارينه غلام خپلي مالکي ښځي ته د کتلو حکم

| |
|---|
| قَالَ: وَلَا يَجُوزُ لِلْمَمْلُوكِ أَنْ يَنْظُرَ مِنْ سَيِّدَتِهِ إِلَّا مَا يَجُوزُ لِلْأَجْنَبِيِّ النَّظَرُ إِلَيْهِ مِنْهَا فرمايي: او غلام لره جائز نه دي چي خپل مالکي ته وګوري مګر د دې هغه اندامو ته چي پردی کس هغوی ته کتلای سي وَقَالَ مَالِكٌ: هُوَ كَالْمَحْرَمِ او امام مالک رَحِمَهُ الله فرمايي: چي غلام د محرم [نورحم محرم] په څېر دی وَهُوَ أَحَدُ قَوْلَيِ الشَّافِعِيِّ او همدا د امام شافعي رَحِمَهُ الله يو قول دی لِقَوْلِهِ تَعَالَى: أَوْ مَا مَلَكَتْ أَيْمَانُهُنَّ [النور: ۳۱] د الله تعالیٰ د دې فرمان په وجه: ﴿أو ما ملكت أيمانهنّ﴾ [...يا هغه ښځي چي تاسي يې مالکان ياست] وَلِأَنَّ الْحَاجَةَ مُتَحَقِّقَةٌ او ځکه چي ضرورت موجود دی لِدُخُولِهِ عَلَيْهَا مِنْ غَيْرِ اسْتِئْذَانٍ څکه غلام پر خپل مالکي بغير له اجازت ته داخليږي وَلَنَا: أَنَّهُ فَحْلٌ غَيْرُ مَحْرَمٍ او زموږ |

دليل دا دی: چي غلام يو داسي نارينه دی کوم چي محرم نه دی [نامحرمه نارينه دی] وَلَازَوْجٌ او نه خاوند [مېړه] دی وَالشَّهْوَةُ مُتَحَقَّقَةٌ لِجَوَازِ النِّكَاحِ فِي الْجُمْلَةِ او في الجمله د نکاح جائز کېدلو په خاطر شهوت هم موجود دی وَالْحَاجَةُ قَاصِرَةٌ او ضرورت ډېر کم [معمولي] دی لِأَنَّهُ يَعْمَلُ خَارِجَ الْبَيْتِ ځکه چي غلام د کور دباندي کارونه کوي وَالْمُرَادُ بِالنَّصِّ الْإِمَاءُ او په نصّ [آيت] سره مراد مينځي دي قَالَ: سَعِيدٌ وَالْحَسَنُ وَغَيْرُهُمَا: لَا تَغُرَّنَّكُمْ سُورَةُ النُّورِ فَإِنَّهَا فِي الْإِنَاثِ دُونَ الذُّكُورِ حضرت سعيد او حضرت حسن رَحِمَهُمَا الله فرمايلي دي: چي سورة النور دي تاسي دوکه نه کړي ځکه هغه د ښځينه وو په باره کي دی، نه د نارينه وو.

**اللغات**: ﴿سيِّدة﴾ مالکه، باداره، ﴿استئذان﴾ د استفعال د باب مصدر دی: د اجازت طلب کول، اجازه غوښتل، ﴿لا تغرنّ﴾ د نصر له بابه د واحد مؤنث غائب نفي مؤکد با نون ثقيله صيغه ده: په فريب او دوکه مبتلا کول، دوکه کول.

**صورت د مسئلې**: دا دی چي د احنافو په نيز غلام د اجنبي په څېر دی، يعني يو پردي کس لره چي د ښځي کومو اندامو ته کتل جائز دي، غلام لره هم د خپل مالکي ښځي صرف هاغه اندامو ته کتل جائز دي (چي هغه مخ او لاسونه دي)، امام مالک او امام شافعي رَحِمَهُ الله فرمايي چي غلام د خپل مالکي په حق کي محرم دی، يعني محرم کس لره چي د ښځو کومو اندامو ته کتل جائز دي، غلام لره هم د خپل مالکي هغه اندامو ته کتل جائز دي.

د دوی دليل دا آيت دی ﴿أَوْ مَا مَلَكَتْ أَيْمَانُهُنَّ﴾ چي په دې آيت کي کلمه د "مَا" عامه ده غلامان او مينځي ټوله پکښي داخل دي، لهذا څرنګه چي د مينځو په مخ کي خپل مواضعِ زينت (د ښکلا ځايونه) ښکاره کول جائز دي، نو همداسي به د غلامانو په مخ کي هم ښکاره کول جائز وي.

او دويم دليل دا دی چي غلام د خپل مالکي د کار او خدمت لپاره کور ته ځي راځي او عموماً بلا اجازته ځي راځي، او ښځه هر وخت په کور کي پرده او چادري نه سي کولای، نو ځکه د ضرورت پر بناء به د ښځي په حق کي خپل غلام د محرم په درجه کي وي او حکم به يې د محارمو په څېر وي.

ولنا إلخ: دا احنافو دليل دا دی چي غلام هم يو نارينه دی، پر جماع قادر دی، او بل هغه محرم او خاوند هم نه دی او د هغه او د مالکي تر مينځ د نکاح حرمت هم ابدي او دائمي نه دی (لکه د محارمو تر مينځ د نکاح حرمت)، نو د شهوت قوي امکان هم سته، لهذا هيڅکله به غلام ته د محارمو درجه نه ورکول کيږي، کنې د فتنې او فساد لامل به وګرځي.

والحاجة إلخ: او پاته سو امام مالک او امام شافعي رَحِمَهُمَا چي د غلام په حق کي د محرم کېدلو ضرورت ثابت کړی دی، د هغه جواب دا دی چي دلته ډېر معمولي ضرورت دی، ځکه غلام خو زياتره وخت دباندېني کارونه ترسره کوي، د کورني کارو لپاره خو مينځه او نوکره مقرره وي او غلام کله نا کله کور ته راځي، لهذا د دومره معمولي ضرورت په خاطر هغه ته د محارمو درجه نه سي ورکول کېدلای.

• پاته سو په پورتني آيت سره د دوی دليل نيول صحيح نه دي؛ ځکه که څه هم د "مَا" کلمه د عموم لپاره ده، لېکن څرنګه چې حضرت سعيد او حضرت حسن بصري رَحِمَهُمَا الله او داسي نورو دلته فقط ښځي د "مَا" مصداق ښوولي دي، نو بيا له دې څخه "مَا" عام کول او په هغه کي غلامان هم داخلول به صحيح نه وي.

## له خپلي ښځي يا مينځي څخه د عزل کولو حکم

قَالَ: وَيَعْزِلُ عَنْ أَمَتِهِ بِغَيْرِ إِذْنِهَا فرمايي: او سړی له خپلي مينځي څخه د هغې له اجازته بغير عزل کولای سي وَلَا يَعْزِلُ عَنْ زَوْجَتِهِ إِلَّا بِإِذْنِهَا لېکن له خپلي ښځي څخه د هغې له اجازته بغير عزل نه سي کولای لِأَنَّهُ عَلَيْهِ الصَّلَاةُ وَالسَّلَامُ [1] نَهَى عَنِ الْعَزْلِ عَنِ الْحُرَّةِ إِلَّا بِإِذْنِهَا ځکه نبي کريم ﷺ د آزادي ښځي له اجازته بغير د هغې له عزل څخه منع کړې ده وَقَالَ لِمَوْلَى أَمَةٍ: اِعْزِلْ عَنْهَا إِنْ شِئْتَ او نبي ﷺ د يوې مينځي مالک ته وفرمايل: له هغې څخه عزل کوه! که ستا خوښه وي وَلِأَنَّ الْوَطْءَ حَقُّ الْحُرَّةِ قَضَاءً لِلشَّهْوَةِ وَتَحْصِيلًا لِلْوَلَدِ او ځکه چي وطي د آزادي ښځي حق دی د شهوت پوره کولو او بچي حاصلولو لپاره وَلِهَذَا تُخَيَّرُ فِي الْجَبِّ وَالْعِنَّةِ په همدې وجه [د خاوند] د مقطوع الذکر او

---

[1] تخريج: أخرجه ابن ماجة في كتاب النكاح، باب العزل، حديث رقم:١٩٢٨.

نامرده کېدو په صورت کي آزادي ښځي ته اختيار ورکول کيږي وَلَا حَقَّ لِلْأَمَةِ فِى الْوَطْءِ او په وطي کي د مينځي هيڅ حق نسته فَلِهٰذَا لَا يَنْقُصُ حَقُّ الْحُرَّةِ بِغَيْرِ إِذْنِهَا په همدې وجه خاوند د آزادي ښځي له اجازت نه بغير د هغې حق نه سي کمولای وَيَسْتَبِدُّ بِهِ الْمَوْلٰى خو د مينځي مالک په دې هکله مستقل [خودمختاره] دی وَلَوْ كَانَ تَحْتَهُ أَمَةُ غَيْرِهِ او که د يو چا تر ملکيت لاندي د بل چا مينځه وي فَقَدْ ذَكَرْنَاهُ فِى النِّكَاحِ نو د دې ذکر موږ په کتابُ النکاح کي کړی دی.

**اللغات**: ﴿جَبّ﴾ (بفتح الجيم): د ذکر پرېکېدل، مقطوع الذکر کېدل. ﴿عِنَّة﴾ عنين کېدل (نامرده کېدل)، د يو مرض په وجه له جماع څخه عاجزه کېدل. ﴿يستبد﴾ د استفعال له بابه د مضارع صيغه ده. اِسْتَبَدَّ يَسْتَبِدُّ اِسْتِبْدَادًا: مستقل کېدل، خودمختاره کېدل.

**تشريح**: **مسئله**: دا ده چي له خپلي مينځي څخه د هغې له اجازت نه بغير هم عزل کول جائز دي، خو له خپلي آزادي ښځي څخه د هغې له اجازت نه بغير عزل کول جائز نه دي؛ ځکه نبي کريم ﷺ د آزادي ښځي له اجازت نه بغير له عزل کولو څخه منع کړې ده او د مينځي په هکله يې عزل د مالک (مولیٰ) پر خوښه موقوف کړی دی.

او بل دا چي وطي دا د آزادي ښځي حق دی چي هغه خپل شهوت پوره کړی سي او د وطي په ذريعه د بچي نعمت حاصل کړی سي، همدا وجه ده چي د دغه حقوقو په خاطر هغې ته د مقطوع الذکر او نامرده (عنين) سره د اوسېدلو او نه اوسېدلو اختيار ورکول سوی دی. لهذا کله چي وطي د هغې حق دی نو احترام يې ضروري دی، او د احترام تقاضا دا ده چي د هغې له اجازت نه بغير عزل (د انزال په وخت کي جلا کېدل) نه وَسي، ځکه همدا انزال د وطي مغز او ماحصل دی. او پاتې سوه مينځه د وطي سره د هغې هيڅ حق متعلق نه دی؛ نو ځکه مالک لره د هغې سره د عزل کولو يا نه کولو اختيار سته، ځکه دلته د حق ضايع کېدلو هيڅ انديښنه نسته.

فرمايي که د چا په ملکيت کي د بل چا مينځه وي، نو د هغې سره د عزل کولو مسئله په کتابُ النکاح کي بيان سوې ده.

❀❀❀

# فِصْلٌ فِی الْاِسْتِبْرَاءِ وَغَیْرِهٖ

## دا فصل په (بیان د) استبراء او داسي نورو کي دی

**تشريح:**

**د استبراء معنیٰ او وضاحت:** استبراء له "بَرَاءة" څخه مشتق دی: د رحم د پاکوالي او خالي والي طلب کول، یا په بله وینا دا چې د رحم د خالي والي (نه حامله کېدلو) خبر تر لاسه کول او معلومول چې د ښځي رحم خو به د بل چا په اوبو سره مشغوله نه وي یعني حامله خو به نه وي، د استبراء او را روان عبارت آسانه مطلب دا دی چې کله د چا په ملکیت کي مینځه راسي (هغه که هر ډول راسي) نو تر یوه حیضه پوري دي وطي نه ور سره کوي، بلکي کله چې یې حیض راسي او بیا ختم سي نو وطي دي ور سره وکړي د دې لپاره چې په یقیني توګه معلومه سي چې په نس کي یې د بل چا حمل نسته؛ ځکه د حیض راتلل د دې خبري علامه ده چې په نس کي یې حمل نسته. او پاته سوه حامله مینځه چې کله بچی وزیږوي او د نفاس موده یې پوره سي، نو بیا دي وطي ور سره وکړي ځکه چې نس د بل چا په نطفه او حمل سره مشغول دی.

**د استبراء حکم**

قَالَ: وَمَنِ اشْتَرَى جَارِيَةً فرمايي: او څوک چې مینځه رانیسي فَإِنَّهُ لَا يَقْرَبُهَا نو دئ به هغه مینځي ته نه ورنږدې کیږي [سملستي به جماع نه ور سره کوي] وَلَا يَلْمِسُهَا او نه به یې مسه کوي وَلَا يُقَبِّلُهَا او نه به یې مچوي وَلَا يَنْظُرُ إِلَى فَرْجِهَا بِشَهْوَةٍ او نه به یې فرج ته په شهوت سره ګوري حَتَّى يَسْتَبْرِئَهَا تر دې چې استبراء ور سره وکړي [طلب د برائت او پاکوالی یې وکړي] وَالْأَصْلُ فِيهِ قَوْلُهُ عَلَيْهِ الصَّلَاةُ وَالسَّلَامُ فِي سَبَايَا أَوْطَاسٍ [1] «أَلَا لَا تُوطَأُ الْحَبَالَى حَتَّى يَضَعْنَ حَمْلَهُنَّ خبردار! د حامله ښځو [مینځو] سره به وطي نه کیږي تر دې چې حمل وزیږوي وَلَا الْحَيَالَى حَتَّى يُسْتَبْرَأْنَ بِحَيْضَةٍ» او نه به د غیر حاملاتو سره وطي کیږي تر دې چې په یوه حیض استبراء ور سره وکړل سي أَفَادَ وُجُوبَ

[1] تخريج: اخرجه ابو داؤد فی كتاب النكاح، باب فی وطء السبايا، حديث رقم: ٢١٥٧.

الِاسْتِبْرَاءِ عَلَى الْمَوْلَى دغه حديث پر مالک د استبراء واجبېدلو فايده ورکړه وَدَلَّ عَلَى السَّبَبِ فِي الْمَسْبِيَّةِ [همدارنګه] پر هغه سبب يې دلالت وکړی کوم چې د قيد کړل سوې مينځې په هکله دی وَهُوَ اسْتِحْدَاثُ الْمِلْكِ وَالْيَدِ او هغه سبب د ملکيت او قبضې استحداث دی لِأَنَّهُ هُوَ الْمَوْجُودُ فِي مَوْرِدِ النَّصِّ ځکه همدا [استحداث] په مورد نص کې موجود دی وَهَذَا لِأَنَّ الْحِكْمَةَ فِيهِ التَّعَرُّفُ عَنْ بَرَاءَةِ الرَّحِمِ او دا ځکه چې د استبراء حکمت د رحم د برائت [خالي والي او پاکوالي] په هکله معلومات کول دي صِيَانَةً لِلْمِيَاهِ الْمُحْتَرَمَةِ عَنِ الِاخْتِلَاطِ د بچ کېدو په خاطر د محترمو اوبو له اختلاط څخه [يعني چې د مينځې په رحم کې د دوو کسانو نطفې سره ګډې نه سي] وَالْأَنْسَابِ عَنِ الِاشْتِبَاهِ او له اشتباه څخه د نسبونو [د بچ کېدو په خاطر]

**اللغات:** ﴿سبايا﴾ جمع د سَبِيٌّ ده: قيدي (بندي)، قيد کړل سوې ښځه، (په عربي ژبه کې عموماً د قيدي سړي لپاره "أَسِيْر" استعماليږي، او د قيدي ښځي لپاره "سَبْي" او "سَبِيّ" استعماليږي د اول جمع سُبِيٌّ او د دويم جمع سَبَايَا راځي)، ﴿حَبالى﴾ جمع د حُبْلَى ده: حامله (بلاربه) ښځه، ﴿حَيَالى﴾ جمع د حَائِل ده: وهي التي لا حمل لها، يعني هر هغه مؤنث حيوان او ساکښ چې حامل نه وي، د دغه لفظ څو معناوي دي چې له هغوی څخه يوه همدغه معنیٰ ده، او ګورئ!: ① الْمُتَغَيِّر، ② وَالْأُنْثَى من ولد النَّاقة سَاعَةَ تولد، ③ وكل أُنْثَى لَا تحبل، يُقَال: امْرَأَة حَائِل وناقة حَائِل ونخلة حَائِل، ﴿استحداث﴾ د استفعال د باب مصدر دی: نوي کېدل، نوی کول، نوي پيدا کول.

**تشريح: صورت د مسئلې:** دا دی که رانيول سوې مينځه حامله وي، نو د حمل زېږولو تر وخته له هغې څخه هر ډول استمتاع (نفع اخيستل) ممنوع دي، او که هغه غير حامله وي، نو د يوه حيض تر راتلو استمتاع وغيره ممنوع دي، دليل د غزوهٔ حنين د بنديانو او قيديانو په هکله د نبي کريم ﷺ فرمان دی. "أوطاس" له مکې مبارکې څخه د دريو مراحلو پر فاصله د يو ځای نوم دی، همدلته غزوهٔ حنين واقع سوې وه.

**أفاد إلخ:** فرمايي چې له دغه حديث څخه دوې خبري څرګنديږي: ① استبراء پر مالک واجب ده، ② او بل دا چې هر کله هم د استبراء سبب (استحداث الملک) موجود سي يعني مينځه د يو چا ملکيت ته نقل سي، نو استبراء واجب ده، او په حديث شريف کې هم دا دوې خبري بيان سوي دي چې د نيول سوي (ګرفتار شده) ښځو سره تر هاغه وخته وطي مه کوئ!، يعني اول خو د مالکانو لپاره تر وضع

الحمل او استبراء بالحيض پوري انتظار کول بيان سوي دي او بيا همدا بيان پر سبب د انتظار دلالت کونکی هم دی.

وهذا لأن إلخ: دا د استبراء واجبېدلو عقلي دليل دی، فرمايي د استبراء مقصد دا دی چي داوبو (مني وو) اختلاط رانه سي او نسب مشتبه نه سي او دا معلومه سي چي رحم بري او پاک دی، کنې که چيري استبراء واجب نه کړی سي، نو نه د ثابت النسب او ولد الزنا تر مينځ توپير کېدلای سي او نه د چا نسب محفوظ کېدلای سي. له ماء محترم څخه مراد دا دي چي هغه د زنا اوبه نه وي يعني حمل (بچي) ثابت النسب وي لکه په را روان عبارت کي به هم ذکر سي. صاحب کتاب رَحِمَهُ الله د "المياه المحترمه" په قيد سره زنا وغيره خارج کړي دي؛ ځکه هغه مياه غيرمحترمه دي.

## د استبراء واجبېدلو شرطونه

وَذٰلِكَ عِنْدَ حَقِيقَةِ الشُّغْلِ أَوْ تَوَهُّمِ الشُّغْلِ بِمَاءٍ مُحْتَرَمٍ او دا [بچ کېدل او استبراء کول] د رحم د حقيقتاً مشغول والي يا د هغه د وهم په وخت کي دي په محترمو اوبو سره [په بله وينا دا چي په اوبو (نطفې) سره د رحم د حقيقتاً مشغولېدو يا د دې د وهم پر بناء استبراء کول واجب دي] وَهُوَ أَنْ يَكُونَ الْوَلَدُ ثَابِتَ النَّسَبِ او هغه [ماءِ محترم] دا دي چي د بچي نسب ثابت وي [يعني چي هغه اوبه د زنا اوبه او نطفه نه وي بلکي د حلالي جماع اوبه وي نو په دې وخت کي اوبه محترم شمېرل کيږي] وَيَجِبُ عَلَى الْمُشْتَرِي لَا عَلَى الْبَائِعِ او استبراء پر مشتري واجب ده، نه پر بائع لِأَنَّ الْعِلَّةَ الْحَقِيقِيَّةَ إِرَادَةُ الْوَطْءِ ځکه چي حقيقي علت د وطي اراده ده وَالْمُشْتَرِي هُوَ الَّذِي يُرِيدُهُ دُونَ الْبَائِعِ او همدا مشتري [رانيونکی] هغه کس دی چي د وطي اراده کوي، نه بائع فَيَجِبُ عَلَيْهِ نو ځکه پر مشتري به استبراء واجب وي غَيْرَ أَنَّ الْإِرَادَةَ أَمْرٌ مُبْطَنٌ خو څرنګه چي اراده يو باطني شی ده فَيُدَارُ الْحُكْمُ عَلَى دَلِيلِهَا نو ځکه د حکم مدار به د ارادې پر دليل وي وَهُوَ التَّمَكُّنُ مِنَ الْوَطْءِ او هغه پر وطي قدرت لرل دي وَالتَّمَكُّنُ إِنَّمَا يَثْبُتُ بِالْمِلْكِ وَالْيَدِ او قدرت لرل په ملکيت او قبضې سره ثابتيږي فَانْتَصَبَ سَبَبًا نو همدا [تمکّن] به سبب درېږي [يعني همدا قدرت لرل به سبب منل کيږي] وَأُدِيرَ الْحُكْمُ عَلَيْهِ تَيْسِيرًا او پر همدې [تمکّن] به د حکم مدار کيږي د آسانتيا په خاطر فَكَانَ السَّبَبُ اسْتِحْدَاثَ مِلْكِ الرَّقَبَةِ الْمُؤَكَّدِ بِالْيَدِ نو سبب به د ملک رقبه استحداث وي داسي ملک رقبه کوم چي په قبضه سره مؤکد وي وَتَعَدَّى الْحُكْمُ إِلَى سَائِرِ أَسْبَابِ

الْمِلْكِ او دا حکم د ملکیت د نورو اسبابو وطرف ته [هم] متعدي کیږي كَالشِّرَاءِ وَالْهِبَةِ وَالْوَصِيَّةِ وَالْمِيرَاثِ وَالْخُلْعِ وَالْكِتَابَةِ وَغَيْرِ ذٰلِكَ لکه رانیول، هبه، وصیت، میارث، خلع، مکاتبت او له دې څخه بغیر نور اسباب.

**اللغات**: ﴿شغل﴾ د فتح د باب اسم مصدر دی: مشغولیت (رحم په بچي مشغولېدل، یعني ښځه حامله کېدل). ﴿أمر مُبْطَن﴾ پټه معامله، ناڅرګند او مخفي کار. ﴿یدار﴾ د فتح مضارع مجهوله ده: دائر کېدل، مدار کېدل، مبني کېدل. ﴿تمکّن﴾ د تفعّل د باب مصدر دی: قدرت لرل، قادر کېدل. ﴿الید﴾ لاس، مراد: قبضه.

**تشریح**: د عبارت حاصل دا دی چي د استبراء واجبېدلو شرط دا دی چي رحم حقیقتاً (په حمل سره) مشغول وي یا د هغه د مشغولیت وهم وي، او د استبراء واجبېدلو حقیقي علت د وطي اراده ده، او د وطي اراده همدا مشتري (رانیونکی کس) کوي، نو ځکه استبراء به هم پر هاغه واجب وي، او د بائع په حق کي چي څرنګه دا علت نسته، نو ځکه هغه به په استبراء سره نه مکلف کیږي.

غیرأن إلخ: د دې حاصل دا دی چي د استبراء واجبېدلو علت خو اراده ګرځول سوې ده او اراده یو مخفي شی ده، لهذا د حکم مدار به د ارادې پر دلیل وي، د ارادې پر دلیل به پام کیږي، او د ارادې دلیل پر وطي قدرت لرل دي، او پر وطي قدرت لرل په ملکیت او قبضه سره ثابتیږي (یعني چي څوک د مینځي مالک سي او قبضه پر وکړي، او دا په مشتري کي موجود دي)، نو ځکه پر وطي قدرت لرل (تمکّن) به د وطي سبب ګرځول کیږي او پر هغه به د حکم مدار وي.

وتعدی الحکم إلخ: د دې حاصل دا دی چي د استبراء واجبېدلو سبب استحداث الملک دی، نو چیري چي هم دا سبب (استحداث الملک والید) وي، هلته به استبراء کیږي، مثلاً د شراء، هبې، وصیت، میراث او خلع په صورت کي چي څرنګه استحداث الملک راځي، نو ځکه په دې صورتونو کي به استبراء هم واجب وي، مطلب چي که د شراء (رانیولو) یا د هبې او داسي نورو په ذریعه څوک مینځه ترلاسه کړي، نو پر هغه استبراء واجب ده.

## پر پورتنی مذکوره قاعده څه نور تفریعات

وَكَذَا يَجِبُ عَلَى الْمُشْتَرِيْ مِنْ مَالِ الصَّبِيِّ وَمِنَ الْمَرْأَةِ وَالْمَمْلُوكِ وَمِمَّنْ لَا يَحِلُّ لَهُ وَطْؤُهَا او همدارنګه پر هغه کس استبراء واجب ده کوم چي [دمینځي] رانیونکي وي د بچي له مال څخه او له ښځي څخه او له مملوک [غلام] څخه او له داسي کس څخه چي هغه ته د مینځي سره وطي کول روا نه وي [مثلاً د یو چا رضاعي خور رانیسي] وَكَذَا إِذَا كَانَتِ الْمُشْتَرَاةُ بِكْرًا او همدارنګه کله چي رانیول سوې مینځه

باکره وي لَمْ تُوطَأْ نو نه به وطي کول کيږي [يعني د باکره مينځې سره به هم استبراء کوئ] لِتَحَقُّقِ السَّبَبِ د سبب د ثابتېدلو [موجودېدلو] په وجه وَإِدَارَةُ الْأَحْكَامِ عَلَى الْأَسْبَابِ دُونَ الْحِكَمِ او د حکمونو دار ومدار پر اسبابو وي، نه پر حکمتونو لِبُطُونِهَا ځکه چې حکمتونه باطني [مخفي] دي فَيُعْتَبَرُ تَحَقُّقُ السَّبَبِ عِنْدَ تَوَهُّمِ الشُّغْلِ نو [د رحم] د مشغولتيا د وهم په وخت کې به د سبب موجودېدلو اعتبار کيږي وَكَذَا لَا يُجْتَزَأُ بِالْحَيْضَةِ الَّتِي اشْتَرَاهَا فِي أَثْنَائِهَا او همدارنګه اکتفاء به نه کيږي په هغه حيض سره چې د هغه په دوران کې يې مينځه رانيولې وي وَلَا بِالْحَيْضَةِ الَّتِي حَاضَتْهَا بَعْدَ الشِّرَاءِ أَوْ غَيْرِهِ مِنْ أَسْبَابِ الْمِلْكِ قَبْلَ الْقَبْضِ او نه په هغه حيض سره کوم چې له رانيولو يا [د داسې] نورو د ملکيت له اسبابو څخه وروسته تر قبضې مخکې راغلی وي [په بله وينا دا چې او نه هغه حيض کوم چې تر رانيولو يا تر بل سببِ ملک (لکه هبه وغيره) وروسته او تر قبضې مخکې راغلی وي] وَلَا بِالْوِلَادَةِ الْحَاصِلَةِ بَعْدَهَا قَبْلَ الْقَبْضِ او نه به اکتفاء کيږي په هغه ولادت سره کوم چې د ملکيت له اسبابو څخه وروسته تر قبضې مخکې حاصل سوی وي خِلَافًا لِأَبِي يُوسُفَ رَحِمَهُ اللهُ په خلاف د امام ابو يوسف رَحِمَهُ الله لِأَنَّ السَّبَبَ اسْتِحْدَاثُ الْمِلْكِ وَالْيَدِ ځکه چې [د استبراء] سبب د ملکيت او قبضې [دواړو] استحداث دی وَالْحُكْمُ لَا يَسْبِقُ السَّبَبَ او حکم تر سبب نه سې مخکې کېدلای وَكَذَا لَا يُجْتَزَأُ بِالْحَاصِلِ قَبْلَ الْإِجَازَةِ فِي بَيْعِ الْفُضُولِيِّ او نه به اکتفا کيږي په هغه حيض سره کوم چې د فضولي په بيع کې تر اجازت مخکې راغلی وي وَإِنْ كَانَتْ فِي يَدِ الْمُشْتَرِي که څه هم مينځه د مشتري په قبضه کې وي وَلَا بِالْحَاصِلِ بَعْدَ الْقَبْضِ فِي الشِّرَاءِ الْفَاسِدِ قَبْلَ أَنْ يَشْتَرِيَهَا شِرَاءً صَحِيحًا او نه به په هغه حيض سره اکتفا کيږي کوم چې راغلی وي په شراء فاسد کې تر قبضې وروسته مخکې تر دې چې هغه دا مينځه په شراء صحيح سره رانيسي [يعني هغه حيض کوم چې په شراء فاسد کې تر قبضې وروسته او د شراء صحيح په توګه تر رانيولو مخکې راغلی وي] لِمَا قُلْنَا د هغه دليل په وجه کوم چې موږ ذکر کړی.

**اللغات**: ﴿بکر﴾ باکره، پېغله (هغه ښځه چې د بکارت پرده يې ثابته پاتې وي)، ﴿استحداث﴾ د استفعال د باب مصدر دی: نوي کېدل، نوي کول، ﴿لا يجتزأ﴾ د افتعال له بابه د نفي مجهول صيغه ده: اکتفاء کېدل، کافي کېدل.

**تشریح**: کله چې مصنف رَحِمَهُ الله یوه قاعده بیان کړه چې په استحداث الملک والید سره استبراء واجبيږي، نو اوس تر دې قاعدې لاندې څو مسئلې بیانوي، مثلاً که څوک دیو بچي مینځه د هغه له پلار یا وصي څخه رانیسي، یا دیو ښځي مینځه رانیسي، یا دیو مأذون في التجارة غلام مینځه رانیسي، یا دیو داسي کس مینځه رانیسي چې د هغې سره د هغه وطي حلال نه وي، مثلاً دیو چا په ملکیت کي خپل رضاعي خور وي، نو ښکاره ده چې د رضاعي خور سره وطي حلال نه دي، اوس که له هغه څخه څوک دا رضاعي خور رانیسي، نو په دې ټولو صورتونو کي که څه هم حقیقي شغل نسته (یعني حقیقتاً دا معلومه نه ده چې د هغې نس به په حمل سره مشغوله وي)، خو د شغل د توهّم پر بناء د استحداث الملک والید په خاطر استبراء واجب ده.

او د شغل توهّم دا دی چې کېدلی سي د دغو مینځو سره وطي بالشبهه سوي وي، نو ښکاره ده چې اوس استبراء ضروري سوه. فرمایي که دیو چا مینځه بالکل باکره وي او هغې ته هیچا لاس ور وړی نه وي، نو د دې هم داغه حکم دی؛ ځکه چې سبب (استحداث الملک والید) متحقق او موجود دی او د شغل وهم باقي دی.

وكذا لايجتزأ إلخ: د دې حاصل دا دی چې هغه حیض به په استبراء کي شمېرل کیږي کوم چې تر ملکیت او قبضې وروسته راسي (مثلاً چې مشتري مینځه رانیسي او قبضه پر وکړي، نو تر دې وروسته راتلونکی حیض معتبر دی)، لهذا که څوک حائضه مینځه رانیسي، نو د هغې دا موجوده حیض به په استبراء کي نه شمېرل کیږي؛ ځکه دا حیض قبل الملکیت والید راغلی دی، همدارنګه که له رانیولو څخه وروسته، یا په وراثت کي له حصه معلومېدلو څخه وروسته یا له هبې وغیره څخه وروسته او تر قبضې مخکي مینځي ته حیض راسي، نو دا حیض هم په استبراء کي معتبر نه دی؛ ځکه چې اوس یو سبب یعني قبضه (ید) کم او ناقص دی. همدارنګه که څوک حامله مینځه رانیسي او هغه له قبضې څخه مخکي بچی وزیږوي، نو دا ولادت هم د استبراء لپاره کفایت نه کوي؛ ځکه چې دا قبل القبض پېښ سوی دی.

خو په دې مسئله کي د امام ابو یوسف رَحِمَهُ الله اختلاف دی، هغه فرمایي چې کله بچی پیدا سو، نو دا څرګنده سوه چې اوس د مینځي رحم بالکل خالي دی او د استبراء مقصد همدا دی چې د رحم فراغت او خالي والی یقیني سي، او په مذکوره صورت کي خو له استبراء څخه مخکي د رحم فراغت یقیني سو، نو اوس به بلا وجه ولي تر یوه حیضه په انتظار کولو سره مکلف کول کیږي، آیا تاسي ته معلومه نه ده چې که تر دخول مخکي یو ښځي ته طلاق ورکول سي، نو څرنګه چې په دې صورت کي د رحم فراغت متیقن دی، نو ځکه پر هغې عدت نه واجبیږي، لهذا همداسي به دلته هم استبراء نه واجبیږي؛ ځکه چې د رحم فراغت متیقن دی. او قاعده دا ده چې "الیقین لا یزول بالشك".

لېکن زموږ دليل هاغه دی کوم چي مخکي ذکر سو چي د استبراء واجبېدلو سبب استحداث الملک واليد دواړه دي او حکم (چي هغه دلته د استبراء واجبدل دي) تر سبب وروسته ثابتيږي. نه تر سبب مخکي.

وکذا لايجتزأ إلخ: د دې حاصل دا دی چي که څوک د مالک له اجازته بغير د فضولي په توګه ديو چا مينځه خرڅه کړي، نو اوس دا بيع د مالک پر اجازت موقوفه ده. لهذا که د مالک تر اجازت مخکي مينځي ته حيض راسي، نو دا حيض هم د استبراء لپاره ناکافي دی. که څه هم مينځه د مشتري په قبضه کي وي، ځکه دلته حيض که څه هم بعد القبض راغلی دی. لېکن د بيع د مرتوف کېدو په وجه دا حيض د استبراء لپاره د کافي کېدو قابل نه دی.

همدارنګه که څوک په شراء فاسد سره يو مينځه رانيسي او هغې ته حيض راسي. بيا داغه مينځه وروسته په شراء صحيح سره رانيسي. نو هغه شراء فاسد والا حيض د استبراء لپاره نه کافي کيږي؛ ځکه چي استحداث الملک واليد په شراء صحيح کي موجود دي. او معتبر هغه حيض دی کوم چي تر استحداث الملک واليد وروسته وي. تر هغه مخکي والا حيض معتبر نه دی.

## د خپلي مشترکي مينځي د رانيولو په صورت کي د استبراء حکم

وَيَجِبُ فِي جَارِيَةٍ لِلْمُشْتَرِي فِيهَا شِقْصٌ فَاشْتَرَى الْبَاقِيَ او استبراء په هغه مينځه کي هم واجب ده چي په هغه کي د مشتري بعضي حصه وي بيا مشتري پاته حصه [هم] رانيسي لِأَنَّ السَّبَبَ قَدْ تَمَّ الْآنَ ځکه چي سبب اوس پوره سو وَالْحُكْمُ يُضَافُ إِلَى تَمَامِ الْعِلَّةِ او حکم د بشپړ علت وطرف ته منسوب کيږي وَيُجْتَزَأُ بِالْحَيْضَةِ الَّتِي حَاضَتْهَا بَعْدَ الْقَبْضِ وَهِيَ مَجُوسِيَّةٌ أَوْ مُكَاتَبَةٌ او په هغه حيض سره به [هم] اکتفا کيږي کوم چي تر قبضې وروسته مينځي ته په داسي حال کي راغلی وي چي هغه مجوسيه يا مکاتبه وي بِأَنْ كَاتَبَهَا بَعْدَ الشِّرَاءِ په دې توګه چي تر رانيولو وروسته مالک هغه مکاتبه جوړه کړې وي ثُمَّ أَسْلَمَتِ الْمَجُوسِيَّةُ أَوْ عَجَزَتِ الْمُكَاتَبَةُ بيا دا مجوسيه مينځه اسلام راوړي يا مکاتبه له بدلت کتاب څخه عاجزه سي لِوُجُودِهَا بَعْدَ السَّبَبِ ځکه چي حيض تر سبب وروسته موجود سو وَهُوَ اسْتِحْدَاثُ الْمِلْكِ وَالْيَدِ او هغه [سبب] د ملکيت او قبضې نوې کېدل دي إِذْ هُوَ مُقْتَضٍ لِلْحِلِّ ځکه همدا [سبب] د حلت تقاضا کونکی دی وَالْحُرْمَةُ لِمَانِعٍ او حرمت ديو مانع په وجه وو كَمَا فِي حَالَةِ الْحَيْضِ لکه څرنګه چي د حيض په حالت کي کيږي وَلَا يَجِبُ الِاسْتِبْرَاءُ إِذَا

رَجَعَتِ الْاٰبِقَةُ أَوْ رُدَّتِ الْمَغْصُوبَةُ أَوِ الْمُؤَاجَرَةُ او استبراء نه واجبيږي کله چي تښتېدلې مينځه واپس راسي يا غصب کړل سوې مينځه يا په أجرت ورکول سوې مينځه واپس کړل سي أَوْ فُكَّتِ الْمَرْهُوْنَةُ يا په رهن کي ورکول سوې مينځه را خلاصه کړل سي لِانْعِدَامِ السَّبَبِ وَهُوَ اسْتِحْدَاثُ الْمِلْكِ وَالْيَدِ ځکه چي [په دې ټولو صورتونو کي] سبب يعني د ملکيت او قبضې نوي کېدل معلوم دي وَهُوَ سَبَبٌ مُتَعَيَّنٌ او همدا [استحداث الملک واليد (د استبراء لپاره)] ټاکل سوی سبب دی فَأُدِيْرَ الْحُكْمُ عَلَيْهِ وُجُوْدًا وَعَدَمًا نو ځکه د وجود او عدم دواړو په اعتبار سره به د حکم دار ومدار پر هغه وي وَلَهَا نَظَائِرُ كَثِيْرَةٌ كَتَبْنَاهَا فِي كِفَايَةِ الْمُنْتَهِيْ او دغه مسئلې لره ډېر مثالونه سته کوم چي موږ په کفاية المنتهي کي بيان کړي دي.

**اللغات**: ﴿شقص﴾ حصه، ټوکره. ﴿يضاف﴾ د افعال له بابه مضارع مجهوله ده: مضاف کېدل، منسوب کېدل (اضافت او نسبت کېدل). ﴿فکّت﴾ د سمع له بابه بابه ماضي مجهوله ده، د دې باب څو معناوي دي چي له هغوی څخه يوه معنیٰ ده: خلاصول.

**تشريح**: **صورت د مسئلې**: دا دی چي د دوو يا څو کسانو تر مينځ يوه مينځه مشترکه ده، بيا له دوی څخه يو شريک د نورو شريکانو حصې رانيولې او قيمت يې ورکړی، نو اوس استبراء واجب ده؛ ځکه د استبراء سبب يعني "حدوث الملک واليد" د شريکانو د حصو تر رانيولو وروسته موجود سو، نو ځکه اوس به حکم (استبراء) هم ثابتيږي؛ ځکه حکم د ټوله علت وطرف ته مضاف کيږي، نه د بعضي وطرف ته، او تر رانيولو وروسته علت پوره سو؛ ځکه تر دې مخکي خو په هغه مينځه کي د نورو حق هم وو (او په رانيولو سره د نورو حق ختم سو او د استبراء سبب کامل ثابت سو).

ويجتزأ إلخ: د دې حاصل دا دی چي که يو څوک د يو مجوسي مينځه رانيسي او پر هغې قبضه وکړي يا د يو مسلمان مينځه رانيسي او هغه مکاتبه جوړه کړئ، بيا د ده په قبضه کي مجوسيه مينځي ته حيض راسي او بيا هغه مسلمانه سي، يا د مسلمان مينځي ته د همدې مکاتبت په حالت کي حيض راسي بيا هغه د بدل کتابت له اداء کولو څخه عاجزه سي، نو په دې دواړو صورتونو کي د دوی حيض د استبراء لپاره کافي کيږي؛ ځکه دا له مِلْك او يَد دواړو څخه وروسته راغلی دی او د استبراء په باب کي داسي حيض معتبر دی، لهذا دا حيض به په استبراء کي کارېګر ثابتيږي، خو د وطي عدمِ حلت (ناروابنت) د يو عارض په وجه وو يعني د مجوسيه مينځي د نا مسلمانوالي په وجه او په مکاتبه کي

د بدل کتابت په وجه وو، لهذا کله چې دا دواړه شیان زائل سوه، نو اوس وطي کول هم حلال او صحیح سوه، لکه د حیض په حالت کې چې د وطي حرمت دیو مانع یعني د حیض په وجه وي او د هغه په ختمېدلو سره حرمت ختمیږي.

ولا یجب الاستبراء إلخ: څرنګه چې د استبراء واجبېدلو سبب استحداث الملک والید دي، نو چیرې چې دا سبب موجود او ثابت سي، هلته استبراء هم واجبیږي، او چیرې چې دا سبب موجود نه وي، هلته استبراء هم نه واجبیږي.

مثلاً تښتېدلې مینځه واپس راسي، یا مغصوبه مینځه غاصب واپس کړي، یا مستأجره مینځه مستأجر واپس کړي، یا مرهونه مینځه راخلاصه کړل سي (مثلاً یو کس له بل چا څخه قرض اخیستی وي او په رهن ایښي کې یې مینځه ورکړې وي، بیا هغه کس قرض اداء کړي او خپل مینځه څني واخلي)، نو څرنګه چې په دې ټولو صورتونو کې استحداث الملک والید نسته، نو ځکه په دې صورتونو کې استبراء هم نه واجبیږي.

## تر استبراء مخکې د وطي د دواعي وو حرمت

وَإِذَا ثَبَتَ وُجُوبُ الِاسْتِبْرَاءِ وَحَرُمَ الْوَطْءُ او کله چې د استبراء واجبېدل ثابت سوه او وطي حرام سوې حَرُمَ الدَّوَاعِيْ نو د وطي دواعي [وطي ته رابلونکي څه] به هم حرام وي لِإِفْضَائِهَا إِلَيْهِ وطي ته د هغوی د رسېدلو په وجه [یعني ځکه چې د وطي دواعي آخر د وطي سبب ګرځي] أَوْ لِاحْتِمَالِ وُقُوعِهَا فِي غَيْرِ الْمِلْكِ عَلَى اعْتِبَارِ ظُهُوْرِ الْحَبَلِ وَدَعْوَةِ الْبَائِعِ یا د بل چا په ملکیت کې د هغوی د واقع کېدلو په وجه د حمل ښکاره کېدلو او د بائع د دعوې کولو په اعتبار سره بِخِلَافِ الْحَائِضِ حَيْثُ لَا تَحْرُمُ الدَّوَاعِيْ فِيهَا په خلاف د حائضې مینځې چې د هغې په هکله دواعي حرام نه دي لِأَنَّهُ لَا يُحْتَمَلُ الْوُقُوْعُ فِي غَيْرِ الْمِلْكِ ځکه چې [دلته] د بل چا په ملکیت کې د دواعي وو د واقع کېدلو احتمال نسته وَلِأَنَّهُ زَمَانُ نَفْرَةٍ او ځکه چې دا [د حیض زمانه] د نفرت زمانه ده فَالْإِطْلَاقُ فِي الدَّوَاعِيْ لَا يُفْضِيْ إِلَى الْوَطْءِ لهذا [دلته] د دواعي وو اجازت ورکول وطي ته رسول نه کوي وَالرَّغْبَةُ فِي الْمُشْتَرَاةِ قَبْلَ الدُّخُوْلِ أَصْدَقُ الرَّغَبَاتِ او په رانیول سوې مینځه کې تر دخول مخکې رېښتونې رغبت وي فَتُفْضِيْ إِلَيْهِ نو [هلته] دواعي وطي ته رسول کوي وَلَمْ يَذْكُرِ الدَّوَاعِيَ فِي الْمَسْبِيَّةِ او [په ظاهر روایت کې] د قید کړل سوي مینځې په هکله یې د دواعي وو یادونه نه ده کړې وَعَنْ مُحَمَّدٍ أَنَّهَا لَا تَحْرُمُ او له امام محمد

رَحِمَهُ الله څخه روايت دى چي [د مسبيه مينځي سره] دواعي د وطي حرام نه دي لِأَنَّهَا لَا تَحْتَمِلُ وُقُوعَهَا فِي غَيْرِ الْمِلْكِ ځکه چي [د لته] د بل چا په ملکيت کي د هغوی د واقع کېدلو احتمال نسته لِأَنَّهُ لَوْ ظَهَرَ بِهَا حَبَلٌ ځکه که چيري په دې مينځه کي حمل ښکاره سي لَا تَصِحُّ دَعْوَةُ الْحَرْبِيِّ نو هم د حربي دعوی نه صحيح کيږي بِخِلَافِ الْمُشْتَرَاةِ په خلاف د رانيول سوي مينځي عَلَى مَا بَيَّنَّا لکه څرنګه چي موږ بيان کړه.

**اللغات**: ﴿دواعي﴾ جمع د دَاعِيَة ده: بلونکي، سبب ګرځېدونکي څه. ﴿إفضاء﴾ د افعال د باب مصدر دی: رسول، رسېدل، سبب جوړېدل. ﴿مسبية﴾ د واحد مؤنث اسم مفعول صيغه ده: قيدي کړل سوې ښځه. ﴿حبل﴾ حمل، حامله والی.

**تشريح: صورت د مسئلې**: دا دی چي کله تر استبراء مخکي د رانيول سوي مينځي سره وطي جائز نه دي. نو د وطي دواعي هم جائز نه دي؛ يعني څرنګه چي وطي او جماع کول ممنوع دي، همداسي مسه کول، مچول او داسي نور هم ممنوع دي؛ ځکه د وطي دواعي مفضي إلى الوطي وي يعني وطي ته لاره هواري او د وطي سبب ګرځي. او بله وجه (د دواعيو د حرامېدلو) دا ده چي کېدای سي د مينځي حمل ښکاره سي او بائع د خپل حمل کېدلو دعوی وکړي (چي دا حمل زما له نطفې څخه دی). نو په دې صورت کي دوه (۲) نقصانه پېښيږي: ① بيع به باطله سي، ② دواعي به د بل چا په ملکيت کي واقع سي، نو ځکه احوط همدا ده چي د وطي د حرامېدو سره دواعي هم حرام دي.

بخلاف الحائض إلخ: دا د يو مقدّر سوال جواب دی. سوال دا دی چي څرنګه دلته وطي او دواعي د وطي دواړه حرام ګرځول سوي دي، همداسي د حائضه ښځي په مسئله کي هم دواړه حرامېدل پکار دي؛ حال دا چي موږ وينو د حائضې سره خو وطي حرام دي، لېکن دواعي روا دي دي. آخر د دې څه وجه ده؟.

صاحب د کتاب رَحِمَهُ الله د دې په جواب کي فرمايي چي د کومو دوو وجوهاتو پر بناء په مينځه کي دواعي حرام کړل سوي دي (يعني دواعي مفضي إلى الوطي کېدل. او د بل چا په ملکيت کي د وطي واقع کېدلو احتمال)، هغه وجوهات په حائضه کي نسته؛ ځکه دلته ښځه خپله وي، لهذا د بل چا په ملکيت کي د دواعي وو د واقع کېدلو احتمال ختم دی. او بل دا چي د حيض زمانه د نفرت او کراهيت زمانه وي، لهذا په دې زمانه کي دواعي مفضي إلى الوطي هم نه ګرځي. په همدې وجه په حيض او حائضه کي د دواعي وو اجازت ورکول سوی دی.

والرغبة إلخ: فرمايي څرنګه چي په رانيول سوې مينځه کي د سړي رغبت ريښتونی رغبت او زيات وي، نو ځکه که په دې صورت کي د دواعي وړ اجازت رکول سي، نو د هغوی د مفضي إلى الوطي کېدلو خطره څه زياته ده، لهذا غوره هم دا ده چي دلته د وطي په څېر دواعي د وطي هم ممنوع پاته وي.

ولم يذكر إلخ: فرمايي چي په ظاهر روايت کي د قيد کړل سوي مينځي سره تر استبراء مخکي صرف د وطي د ممانعت حکم سوی دی او د وطي د دواعي وو هيڅ ذکر نه دی سوی، امام محمد رَحِمَهُ الله فرمايي چي د قيد کړل سوي مينځي سره دواعي حرام نه دي؛ ځکه دلته مينځه په خپل ملکيت کي وي، لهذا د حامله کېدو په صورت کي نه د وقوع الدواعي في غير الملک والا نقصان راځي او نه د هغې د حربي خاوند دعوىٰ صحيح کيږي چي دا زما حمل دی؛ نو ځکه د قيد کړل سوي مينځي سره به قبل الاستبراء دواعي جائز وي، خو د رانيول سوې مينځي سره به دواعي جائز نه دي؛ ځکه هغې ته رغبت او شهوت زيات وي. (احسن الهدايه)

## د حامله، صغيره او آئسه په حق کي د استبراء حکم

وَالِاسْتِبْرَاءُ فِي الْحَامِلِ بِوَضْعِ الْحَمْلِ او د حامله مينځي په هکله استبراء په حمل زېږولو سره ده لِمَا رَوَيْنَا د هغه حديث په وجه کوم چي موږ روايت کړی وَفِي ذَوَاتِ الْأَشْهُرِ بِالشَّهْرِ او د مياشتي والا مينځو [چي د هغوی په حق کي د حيض پر ځای په مياشتي سره حساب کيږي يعني د صغيره او آئسه] په هکله استبراء په مياشتي سره ده لِأَنَّهُ أُقِيمَ فِي حَقِّهِنَّ مَقَامَ الْحَيْضِ ځکه چي د هغوی په حق کي مياشته د حيض قام مقام ده كَمَا فِي الْمُعْتَدَّةِ لکه څرنګه چي د عده تېرونکي ښځي په هکله کيږي وَإِذَا حَاضَتْ فِي أَثْنَائِهِ او کله چي داسي مينځي [صيغره او آئسه] لره د مياشتي په دوران کي حيض راسي بَطَلَ الِاسْتِبْرَاءُ بِالْأَيَّامِ نو په ورځو سره استبراء باطليږي لِلْقُدْرَةِ عَلَى الْأَصْلِ قَبْلَ حُصُولِ الْمَقْصُودِ بِالْبَدَلِ پر اصل د قادر کېدلو په وجه مخکي تر دې چي د بدل په ذريعه مقصد حاصل کړی سي كَمَا فِي الْعِدَّةِ لکه څرنګه چي په عده کي کيږي فَإِنِ ارْتَفَعَ حَيْضُهَا بيا که د هغې حيض پورته سي [يعني حيض يې ودريږي او ممتدة الطهر سي] تَرَكَهَا حَتَّى إِذَا تَبَيَّنَ أَنَّهَا لَيْسَتْ بِحَامِلٍ نو هغه دي پرېږدي [وطي دي نه ور سره کوي] تر دې چي کله دا ښکاره سي چي هغه حامله نه ده وَقَعَ عَلَيْهَا نو [بيا] دي جماع ور سره وکړي وَلَيْسَ فِيهِ تَقْدِيرٌ فِي ظَاهِرِ الرِّوَايَةِ او په ظاهر روايت کي د دې پر ښودلو [وطي نه

کولو] په هکله هيڅ اندازه نه ده ټاکل سوې وَقِيلَ: يَتَبَيَّنُ بِشَهْرَيْنِ أَوْ ثَلَاثَةٍ او ويل سوي دي [يعني يو قول دادی]: چې په دوو يا درېو مياشتو کې دا ښکاره کيږي وَعَنْ مُحَمَّدٍ أَرْبَعَةُ أَشْهُرٍ وَعَشَرَةُ أَيَّامٍ او له امام محمد رَحِمَهُ الله څخه څلور مياشتې او لس ورځې نقل سوي دي وَعَنْهُ شَهْرَانِ وَخَمْسَةُ أَيَّامٍ [همدارنګه] له هغه څخه دوې مياشتې او پنځه ورځې [هم] نقل سوي دي اِعْتِبَارًا بِعِدَّةِ الْحُرَّةِ أَوِ الْأَمَةِ فِي الْوَفَاةِ په قياس کولو سره د آزادې ښځې يا د مينځې پر عده په وفات کې [يعني امام محمد رَحِمَهُ الله په دې هکله د آزادې ښځې يا مينځې د خاوند د وفات پر عده قياس کړی دی] وَعَنْ زُفَرَ سَنَتَانِ او له امام زفر رَحِمَهُ الله څخه دوه کاله نقل سوي دي وَهُوَ رِوَايَةٌ عَنْ أَبِي حَنِيفَةَ او همدا له امام صاحب رَحِمَهُ الله څخه يو روايت دی.

**اللغات**: ﴿اليد﴾ قبضه. ﴿العدة﴾ عده، عدت. ﴿الوفاة﴾ مړينه، مړ کېدل.

**تشريح**: **مسئله**: دا ده چې د حامله مينځې په حق کې استبراء د هغې حمل زېږول دي؛ ځکه په حديث شريف کې صراحتاً دا حکم سوی دی چې "أَلَا لَا تُوطَأُ الْحَبَالَى حَتَّى يَضَعْنَ حَمْلَهُنَّ"، خو په مياشتو سره د حيض وغيره شمېرونکي ښځې مثلاً آئسه او صغيره د هغوی په حق کې مياشته استبراء ده؛ ځکه د هغوی په حق کې همدا مياشته د حيض قائم مقام کړل سوې ده، لکه د وفات عده تېرونکې ښځه که چيرې صغيره يا آئسه وي، نو د هغې په حق کې هم مياشته د حيض قائم مقام وي، نو ځکه د دوی په حق کې به د همدې مياشتې په ذريعه استبراء کول کيږي.

وإذا حاضت إلخ: فرمايي که چيرې صغيره يا آئسه د ورځو په اعتبار سره استبراء کوې او د ورځو له پوره کېدو څخه مخکې هغې ته حيض راسي، نو ځرنګه چې اوس ورځې (أيام) فرع او بدل دي او حيض اصل دی، او قاعده دا ده چې د بدل په ذريعه د مقصود حاصلولو څخه مخکې پر اصل د قدرت پيدا کېدلو په صورت کې حکم د اصل وطرف ته ګرځي، لهذا دلته به هم حکم د اصل يعني د حيض وطرف ته ګرځي او استبراء بالأيام لره به اعتبار نه وي، لکه يو ښځه چې په ورځو سره عده تېروي بيا هغې ته حيض راسي، نو حکم دا دی چې اوس به هغه د حيض مطابق عده تېروي.

---

۞ القول الراجح: قول محمد رَحِمَهُ الله فی هذه الرواية الثانية (أی شهران وخمسة أيام)، كما ذكر فی الدر المختار (ج:۵، ص:۲۶۵)، وكذا فی مجمع الأنهر (ج:۴، ص:۲۰۸). [القول الراجح ج:۲، ص:۳۰۲]

فإن ارتفع إلخ: د دې حاصل دا دی چې که په حیض سره د استبراء کولو په دوران کې د ښځې حیض بند سي او طهر يې اوږد سي (يعني مينځه ممتدة الطهر سي)، نو اوس به څه کوي؟، فرمايي چې تر هغه وخته دي له جماع څخه منع کيږي تر څو چې د ښځې نه حامله کېدل يقيني سي، او کله چې يقيني معلومه سي چې هغه حامله نه ده، نو بيا دي جماع وغيره شروع کړي.

لېکن دا به څنګه معلوميږي چې هغه حامله ده، که نه؟، فرمايي چې په ظاهر روايت کې د دې هيڅ مقدار متعيّن سوی نه دی، خو ځينو ويلي دي چې تر دوو۲ مياشتو او ځينو ويلي دي چې تر دريو۳ مياشتو به ځان ساتل کيږي. له امام محمد رَحِمَهُ الله څخه په دې هکله دوه روايتونه نقل سوي دي: ① څلور مياشتي او لس ورځي، ② دوې مياشتي او پنځه ورځي. امام زفر رَحِمَهُ الله د دوو ۲ کلنو قائل دی او په همدې کي زيات احتياط دی؛ ځکه تر دوو کالو زيات بچی په نس کي نه پاتيږي، د امام صاحب رَحِمَهُ الله هم يو قول دغسي دی، خو فقهاؤ د آسانتيا په خاطر د دوو مياشتو او پنځو ورځو والا قول اختيار کړی دی.

## د استبراء لپاره د حيله کولو حکم

قَالَ: وَلَا بَأْسَ بِالِاحْتِيَالِ لِإِسْقَاطِ الِاسْتِبْرَاءِ عِنْدَ أَبِي يُوسُفَ فرمايي: او پروا نسته په حيله اختيارولو کي د استبراء ساقطولو لپاره د امام ابو يوسف رَحِمَهُ الله په نيز خِلَافًا لِمُحَمَّدٍ ۞ په خلاف د امام محمد رَحِمَهُ الله وَقَدْ ذَكَرْنَا الْوَجْهَيْنِ فِي الشُّفْعَةِ او موږ دواړي وجهي [د دواړو دليلونه] په کتاب الشفعه کي ذکر کړي دي وَالْمَأْخُوذُ قَوْلُ أَبِي يُوسُفَ فِيمَا او د امام ابو يوسف رَحِمَهُ الله قول په هغه صورت کي قابل د عمل [معتبر] دی إِذَا عُلِمَ أَنَّ الْبَائِعَ لَمْ يَقْرَبْهَا فِي طُهْرِهَا ذٰلِكَ کله چې دا معلومه سي چې بائع په هغه طهر کي د مينځي سره جماع نه ده کړې وَقَوْلُ مُحَمَّدٍ فِيمَا او د امام محمد رَحِمَهُ الله قول په هغه صورت کي قابل د عمل دی إِذَا قَرِبَهَا کله چې يې جماع ور سره کړې وي وَالْحِيلَةُ إِذَا لَمْ يَكُنْ تَحْتَ الْمُشْتَرِيْ حُرَّةٌ أَنْ يَتَزَوَّجَهَا قَبْلَ الشِّرَاءِ او حيله کله چې تر مشتري لاندې [د مشتري په نکاح کې] آزاده ښځه نه وي [نو حيله] دا ده چې هغه د دغه مينځي سره تر رانيولو مخکي نکاح وکړي ثُمَّ يَشْتَرِيَهَا بيا يې رانيسي وَلَوْ كَانَتْ او که [د هغه په نکاح کي آزاده ښځه] وي فَالْحِيلَةُ أَنْ

---

۞ القول الراجح: قول أبي يوسف رَحِمَهُ الله، وقد مرّ بيان هٰذه المسئلة يعني بيان الحيلة فی باب ما تبطل به الشفعة، فارجع هناك.

يُزَوِّجَهَا الْبَائِعُ قَبْلَ الشِّرَاءِ أَوِ الْمُشْتَرِيْ قَبْلَ الْقَبْضِ مِمَّنْ يُوْثَقُ بِهِ نو حيله دا ده چي تر رانيولو مخکي بائع يا مشتري دا مينځه په نکاح ورکړي داسي کس ته چي پر هغه اعتماد [باور] کېدلای سي ثُمَّ يَشْتَرِيَهَا وَيَقْبِضَهَا بيا مشتري هغه رانيسي او قبضه پر وکړي [په اول صورت کي] أَوْ يَقْبِضُهَا يا [فقط] پر هغه قبضه وکړي [په دويم صورت کي يعني چي مشتري په نکاح ورکړې وي] ثُمَّ يُطَلِّقُ الزَّوْجُ بيا دي خاوند طلاق ورکړي لِأَنَّ عِنْدَ وُجُوْدِ السَّبَبِ وَهُوَ اسْتِحْدَاثُ الْمِلْكِ الْمُؤَكَّدِ بِالْقَبْضِ ځکه د سبب موجودېدلو په وخت کي او هغه [سبب] د داسي ملکيت استحداث [نوي کېدل] دي کوم چي په قبضه سره مؤکد وي إِذَا لَمْ يَكُنْ فَرْجُهَا حَلَالًا لَهُ کله چي د هغې شرمګاه د ده لپاره حلاله نه وه [يعني د سبب موجودېدلو په وخت کي چي کله د هغې شرمګاه د ده لپاره...] لَا يَجِبُ الِاسْتِبْرَاءُ نو استبراء نه واجبيږي [د پوره جملې وعند السبب... إلخ مجموعي ترجمه دا ده: ځکه کله چي د سبب موجودېدلو يعني د استحداث الملک المؤکد بالقبض په وخت کي د مينځي شرمګاه د مشتري لپاره حلاله نه وه. نو استبراء به هم واجب نه وي] وَإِنْ حَلَّ بَعْدَ ذٰلِكَ که څه هم تر دې [يعني تر سبب موجودېدلو] وروسته ورته حلاله سي لِأَنَّ الْمُعْتَبَرَ أَوَانُ وُجُوْدِ السَّبَبِ ځکه چي معتبر د سبب موجودېدلو وخت دی كَمَا إِذَا كَانَتْ مُعْتَدَّةَ الْغَيْرِ لکه [په هغه صورت کي] کله چي مينځه د بل چاعده تېرونکې وي.

**اللغات**: ﴿احتيال﴾ د افتعال د باب مصدر دی: حيله جوړول، حيله اختيارول، چل او تدبير کول. ﴿لم يقرب﴾ د سمع له بابه د جحد صيغه ده: نږدې کېدل، مراد وطي او جماع کول. ﴿يزوّج﴾ د تفعيل د باب مضارع ده: په نکاح ورکول، نکاح ورتړل. ﴿يوثق﴾ د مضارع مجهولي صيغه ده: : اعتماد کول، باور کول. ﴿فرج﴾ د ښځي شرمګاه.

**تشريح**: د عبارت حاصل دا دی چي د استبراء ساقطولو لپاره حيله اختيارول د امام ابو يوسف رَحِمَهُ الله په نيز ګنجايش لري، څه حرج پکښي نسته. لېکن امام محمد رَحِمَهُ الله دا مکروه ګڼلي دي ځکه په دې صورت کي د محترمو اوبو (مياه محترمه) حفاظت او صيانت نسته. صاحب د هدايې رَحِمَهُ الله فرمايي چي د دواړو حضراتو قول د عمل قابل دی. لېکن دومره ياد ساتل پکار دي چي د امام ابو يوسف رَحِمَهُ الله پر قول دي هغه وخت عمل کيږي کله چي په يقين سره معلومه سي چي د خرڅولو په طهر کي بائع د هغې سره وطي نه دي کړي (يعني په کوم طهر کي چي بائع مينځه خرڅه کړې ده په هغه کي

يې وطي نه دي ور سره کړي). نو په دې وخت کې د استبراء ساقطولو حيله صحيح ده. خو کله چې دا معلومه سي چې بائع په دې طهر کې خپل کار کړی دی، نو په داسي وخت کې دي د امام محمد رَحِمَهُ الله پر قول عمل کيږي او د استبراء ساقطولو حيله نه صحيح کيږي.

والحيلة إلخ: صاحب د هدايې رَحِمَهُ الله د استبراء ساقطولو لپاره دوې حيلې بيان کړي دي. له هغوی څخه اوله حيله دا ده چې که د مشتري په نکاح کې يو آزاده ښځه نه وي. نو هغه دي د مينځې تر رانيولو مخکي د هغې سره نکاح وکړي او بيا دي يې رانيسي، نو په دې صورت کې استبراء نه واجبيږي؛ ځکه د خپل منکوحه مينځې په رانيولو سره خو اول نکاح باطليږي او دويم دا چې په دې صورت کې استبراء هم نه واجبيږي؛ ځکه چې عدم جماع يقيني ده. او دا شرط ځکه لګول سوی دی چې آزاده ښځه به يې په نکاح کې نه وي؛ ځکه د آزادې ښځې په موجوديت کې د مينځې سره نکاح کول صحيح نه دي.

ولو كانت إلخ: له دې ځايه دويمه حيله بيانوي؛ تفصيل يې دا دی چې که د مشتري په نکاح کې آزاده ښځه وي، نو بيا حيله دا ده چې بائع دي د مشتري له شراء (رانيولو) څخه مخکي د يو معتمد کس سره د مينځې نکاح وکړي، يا مشتري دي تر قبضې مخکي د يو معتمد کس سره د هغې نکاح وکړي (د معتمد کس مطلب دا چې پر هغه دومره اعتماد لري چې د مينځې سره به وطي نه کوي او وروسته به طلاق ورکوي). بيا دي په اول صورت کې مشتري (يعني که بائع په نکاح ورکړې وي [قبل الشراء]. نو مشتري دي) هغه رانيسي او قبضه دي پر وکړي او په دويم صورت کې (چې مشتري رانيولې وي او په نکاح يې ورکړې وي. مشتري) دي صرف پر مينځې قبضه وکړي، لنډه دا چې په دې دواړو صورتونو کې د استحداث الملک واليد (يعني د مينځې رانيولو او قبضه پر کولو) په وخت کې د مشتري لپاره د هغې فرج حلال نه دی (فرج يې ځکه ورته حلال نه دی چې هغه تر اوسه د بل چا [معتمد کس] په نکاح کې ده)، نو ځکه پر مشتري به استبراء هم واجب نه وي، بيا دي تر دې وروسته د مينځې خاوند (معتمد کس) هغې ته طلاق ورکړي، څرنګه چې دا طلاق قبل الدخول دی، نو ځکه عده هم نه واجبيږي او نه پر مالک (مشتري) استبراء واجبيږي؛ ځکه د استحداث الملک واليد په وخت کې خو د فرج د نا حلال والي په وجه استبراء پر واجب سوې نه وه. او اوس ځکه نه پر واجبيږي چې اوس خو استحداث الملک واليد نه دی واقع سوی (ځکه هغه د خاوند تر طلاق ورکولو مخکي واقع سوی وي. يعني مشتري خو د هغه تر طلاق مخکي مينځه رانيولې او قبضه يې پر کړې ده).

او د دې مثال بالکل داسي دی لکه مشتري چې له يو مالک څخه داسي مينځه رانيسي چې هغه د بل چا په نکاح کې وي (يعني مالک بل چا مثلاً زيد ته په نکاح ورکړې وي) او خاوند (زيد) هغې ته طلاق

ورکړې وي چې هغه اوس د دې عده تېروي، نو مشتري (رانيونکی) به د هغې سره وطي نه کوي تر دې چې د هغې عده تېره نه سي. بيا د عدې له تېرېدلو څخه وروسته پر مشتري استبراء واجب نه ده؛ ځکه کله چې مشتري مينځه رانيولې وه نو په هغه وخت کي (يعني د استحداث الملک واليد په وخت کي) د ده لپاره د مينځي فرج حلال نه وو (ځکه هغه تر اوسه د مړه خاوند په نکاح کي وه)، او پاتـه سو اوس چې د ده لپاره هغه حلاله سوه، نو اوس بيا استحداث الملک واليد نه دی سوی.

## د کفارهٔ ظهار تر اداء کولو مخکي د وطي د دواعي وو حکم

قَالَ: وَلَا يَقْرَبُ الْمُظَاهِرُ فرمايي: او ظهار کونکی کس به نه جماع کوي وَلَا يَلْمِسُ او نه به مسول کوي وَلَا يُقَبِّلُ او نه به مچول کوي وَلَا يَنْظُرُ إِلَى فَرْجِهَا بِشَهْوَةٍ او نه به د هغې شرمګاه ته په شهوت سره ګوري حَتَّى يُكَفِّرَ تر دې چې کفاره اداء کړي لِأَنَّهُ لَمَّا حَرُمَ الْوَطْءُ إِلَى أَنْ يُكَفِّرَ ځکه کله چې د هغه د کفاره اداء کولو تر وخته وطي حرام دي حَرُمَ الدَّوَاعِيْ نو دواعي به هم حرام وي لِلْإِفْضَاءِ إِلَيْهِ ځکه چې دواعي وطي ته رسول کوي لِأَنَّ الْأَصْلَ أَنَّ سَبَبَ الْحَرَامِ حَرَامٌ ځکه اُصول دا دی چې د حرام سبب هم حرام وي كَمَا فِي الْاِعْتِكَافِ وَالْإِحْرَامِ وَفِي الْمَنْكُوحَةِ إِذَا وُطِئَتْ بِشُبْهَةٍ لکه څرنګه چې په اعتکاف او احرام او منکوحه کي کيږي کله چې هغه په شبهه سره وطي کړل سي بِخِلَافِ حَالَةِ الْحَيْضِ وَالصَّوْمِ په خلاف د حيض او روژې د حالت لِأَنَّ الْحَيْضَ يَمْتَدُّ شَطْرَ عُمْرِهَا ځکه چې حيض د ښځي تر نيمايي عمره پوري اوږديږي [يعني د هغې نيم عمر په حيض کي تيريږي] وَالصَّوْمُ يَمْتَدُّ شَهْرًا فَرْضًا وَأَكْثَرُ الْعُمُرِ نَفْلًا [همدارنګه] فرض روژه تر يوې مياشتي پوري او نفلي روژه تر اکثر عمره پوري اوږديږي [يعني په کال کي يوه مياشت فرضي روژې نيسي او په دا نورو وختو کي بيا نفلي روژې نيسي] فَفِي الْمَنْعِ عَنْهَا بَعْضُ الْحَرَجِ نو له دواعي وو څخه په منع کولو کي څه حرج سته وَلَا كَذٰلِكَ مَا عَدَدْنَاهَا او کوم چې موږ شمارلي دي [يعني اعتکاف او احرام] هغه داسي نه دي لِقُصُوْرِ مُدَدِهَا ځکه چې د هغوی مودتونه کم دي وَقَدْ صَحَّ أَنَّ النَّبِيَّ عَلَيْهِ الصَّلَاةُ وَالسَّلَامُ كَانَ يُقَبِّلُ وَهُوَ صَائِمٌ او په صحيح حديث سره ثابت دي چې نبي کريم ﷺ به مچه اخيسته په داسي حال کي چې هغه به روژتي وو [يعني د روژې په حالت کي به يې خپلي بيبياني مچولې] وَيُضَاجِعُ نِسَاءَهُ وَهُنَّ حُيَّضٌ او د خپلو بيبيانو [أزواج مطهراتو] سره به پرېوتی په داسي حال کي چې هغوی به حائضې وي.

**اللغات**: ﴿يكفّر﴾ د تفعيل له بابه د مضارع صيغه ده، د دې باب له معناوو څخه يوه معنیٰ ده: كفاره وركول. ﴿يمتدّ﴾ د افتعال د باب مضارع ده: اوږدېدل، كشېدل. ﴿شطر﴾ نيمه حصه، جزء. ﴿يضاجع﴾ د مفاعلې د باب مضارع ده: پرېوتل، څملاستل.

**تشريح**: **صورت د مسئلې**: دا دی كه څوک د خپلې ښځې سره ظهار وكړي نو د كفارهٔ ظهار تر اداء كولو مخكې چې څرنګه ده ته وطي كول جائز نه دي، همداسې دواعي د وطي هم ورته جائز نه دي: ځكه دواعي د وطي سبب ګرځي او د دوی په جائز ګرځولو كې خطره زياته ده. او بل دا چې قاعده همدا ده چې د حرام سبب هم حرام وي، لكه په اعتكاف كې چې وطي حرام دي نو دواعي د وطي هم پكښې حرام دي، او د احرام په حالت كې وطي حرام دي نو دواعي هم پكښې حرام دي. همدارنګه كه څوک د بل چا ښځه خپل منكوحه وګڼي او د هغې سره وطي وكړي (يعني د بل چا د ښځې سره وطي بالشبهه وكړي)، نو د هغې خاوند لره د عده تېرېدلو تر وخته وطي او دواعي د وطي دواړه ناجائز دي.

بخلاف حالة الحيض إلخ: دا د يو مقدّر اعتراض جواب دی، اعتراض دا دی چې كله تاسې دا قاعده مقرره كړه چې د حرام سبب هم حرم وي، نو بيا خو پكار دا ده چې د حيض او روژې په حالت كې هم د وطي دواعي حرام سي (كوم چې د وطي سبب دي)، حالانكې په دې صورتونو كې دواعي روا دي، آخر د دې څه وجه ده؟.

د دې په جواب كې صاحب د هدايې رَحِمَهُ الله فرمايي چې د حيض او روژې مسئله له اعتكاف وغيره څخه جلا ده؛ ځكه ښځې خپل نيمايي عمر په حيض كې تېروي، همدارنګه په كال كې يوه مياشت فرض روژې نيسي او په عامو ورځو كې نفلي روژې نيسي، لهذا كه په دې حالتونو كې د وطي سره دواعي هم حرام كړل سي، نو حرج به لازم سي، او په شريعت مطهره كې هر ځای حرج ليرې كړی سوی دی، نو ځكه په دې حالتونو كې به دواعي جائز وي. او پاته سو په اعتكاف او احرام كې په شمار څو ورځو لګيږي (هغه هم پر اعتكاف كونكو او احرام تړونكو كسانو)، نو په دې حالتونو كې د دواعي وو په حرامولو سره حرج نه لازميږي، نو ځكه په دې صورتونو كې به دواعي پر خپل ممانعت باقي پاته وي او ناجائز به وي.

همدارنګه د حيض او روژې په هكله خو خپله د نبي كريم ﷺ له عمل څخه هم د دواعي وو جواز څرګنديږي، لكه څرنګه چې په عبارت كې په دې هكله حديث ذكر سوی دی.

## دوې داسې مينځې مچول کوم چې سره خوندې وي (حکم او تفصيل)

قَالَ: وَمَنْ لَهُ أَمَتَانِ أُخْتَانِ [امام محمد رَحِمَهُ الله په جامع صغير کې] فرمايي: او که چا لره دوې خوندې مينځې وي [يعني که دوې داسې ښځې د چا مينځې وي چې دواړه سره خوندې وي]. فَقَبَّلَهُمَا بِشَهْوَةٍ بيا هغه دا دواړې په شهوت سره مچ کړې فَإِنَّهُ لَا يُجَامِعُ وَاحِدَةً مِنْهُمَا نو هغه به د دوی يوې سره هم نه جماع کوي وَلَا يُقَبِّلُهَا او نه به يې مچوي وَلَا يَمَسُّهَا بِشَهْوَةٍ او نه به يې په شهوت سره مسه کوي وَلَا يَنْظُرُ إِلَى فَرْجِهَا بِشَهْوَةٍ او نه به يې فرج ته په شهوت سره ګوري حَتَّى يُمَلِّكَ فَرْجَ الْأُخْرَى غَيْرَهُ تر دې چې هغه [مچونکی مالک] په دوی کې د هغه بلې يوې د فرج بل څوک مالک جوړ کړې بِمِلْكٍ په ملکيت سره [يعني د بل چا په ملکيت کې يې ورکړي] أَوْ نِكَاحٍ په نکاح سره [يعني دا بله يوه په نکاح ورکړي] أَوْ يُعْتِقُهَا يا يې آزاده کړي وَأَصْلُ هٰذَا أَنَّ الْجَمْعَ بَيْنَ الْأُخْتَيْنِ الْمَمْلُوكَتَيْنِ لَا يَجُوزُ وَطْئًا او اصل د دې [مسئلې] دا دی چې د داسې دوو خوندو تر مينځ کوم چې دواړه مملوکه [مينځې] وي د وطې په اعتبار سره جمع راوستل جائز نه دي لِإِطْلَاقِ قَوْلِهِ تَعَالَى: وَأَنْ تَجْمَعُوا بَيْنَ الْأُخْتَيْنِ [النساء: ۲۳] د الله تعالیٰ د دې فرمان د مطلقوالي په وجه: او دا چې تاسې جمع [يو ځای والی] راولئ د دوو خوند تر مينځ وَلَا يُعَارَضُ بِقَوْلِهِ تَعَالَى: أَوْ مَا مَلَكَتْ أَيْمَانُكُمْ [النساء: ۳] او معارضه نه کيږي د دې [مخکنۍ] آيت د دغه آيت سره [يعني د هغه او دغه آيت تر مينځ تعارض نشته]: يا هغه مينځې چې تاسې يې مالکان ياست لِأَنَّ التَّرْجِيحَ لِلْمُحَرِّمِ ځکه چې ترجيح حراموونکي دليل لره وي [نه مُبِيح (روا کونکي دليل) لره. او "أن تجمعوا إلخ" مُحَرِّم دی او دا بل آيت مُبِيح دی. او د محرم او مبيح تر مينځ تعارض نشته ځکه چې تعارض په دوو برابرو شيانو کې راځي لېکن دلته دواړه برابر نه دي بلکې محرم لره ترجيح حاصله ده] وَكَذَا لَا يَجُوزُ الْجَمْعُ بَيْنَهُمَا فِي الدَّوَاعِي او همدارنګه د وطې په دواعي وو کې هم د دوو خوندو تر مينځ جمع راوستل جائز نه دي لِإِطْلَاقِ النَّصِّ د نص [آيت] د مطلق والي په وجه وَلِأَنَّ الدَّوَاعِيَ إِلَى الْوَطْءِ بِمَنْزِلَةِ الْوَطْءِ فِي التَّحْرِيمِ او ځکه چې د تحريم [حرامېدلو] په باب کې د وطې دواعي هم د وطې په درجه کې دي عَلَى مَا مَهَّدْنَاهُ مِنْ قَبْلُ لکه څرنګه چې مخکې په ترتيب سره موږ د دې بيان کړی دی فَإِذَا قَبَّلَهُمَا نو کله چې هغه دواړې مچ کړې فَكَأَنَّهُ وَطِئَهُمَا نو ګواکې هغه د دواړو سره وطې کړې وَلَوْ وَطِئَهُمَا او که چيرې

هغه د دوارو سره وطي وكړي فَلَيْسَ لَهُ أَنْ يُجَامِعَ إِحْدَاهُمَا وَلَا أَنْ يَأْتِيَ بِالدَّوَاعِيْ فِيْهِمَا نو بيا هغه ته جائز نه دي چې په دوی کي ديوې سره جماع وکړي او نه دا جائز دي چې د دوارو سره دواعي د وطي وكړي فَكَذَا إِذَا قَبَّلَهُمَا نو همداسي كله چي دواړه مچ كړي وَكَذَا إِذَا مَسَّهُمَا بِشَهْوَةٍ او همدارنګه كله چي په شهوت سره دواړه مسه كړي أَوْ نَظَرَ إِلَى فَرْجِهِمَا بِشَهْوَةٍ يا په شهوت سره د دوارو شرمګاه ته وګوري لِمَا بَيَّنَّا د هاغه دليل په وجه كوم چي موږ بيان كړى إِلَّا أَنْ يُمَلِّكَ فَرْجَ الْأُخْرَى غَيْرَهُ بِمِلْكٍ أَوْ نِكَاحٍ مګر دا چي د هغه بلي يوې د فرج بل څوک مالک جوړ کړي په ملكيت يا نكاح سره أَوْ يُعْتِقَهَا يا يې آزاده كړي لِأَنَّهُ لَمَّا حَرُمَ عَلَيْهِ فَرْجُهَا ځکه کله چي پر هغه د بلي يوې فرج حرام سو لَمْ يَبْقَ جَامِعًا نو هغه [د دو خوندو ترمينځ] جمع كونكى پاته نه سو.

**اللغات**: ﴿يُمَلِّك﴾ د تفعيل د باب مضارع ده: مالک جوړول، په ملكيت كي وركول، ﴿مهدنا﴾ د تفعيل له بابه د جمع متكلم صيغه ده، خپله معنیٰ يې ده: سمول او برابرول، بستره هوارول (غوړول)، مراد ځني په "ترتيب او تفصيل سره بيانول" دي.

**تشريح**: **صورت د مسئلي**: دا دی چي په قرآني آيت سره جَمْع بَيْنَ الْأُخْتَيْن حرام ګرځول سوې ده، د نكاح په اعتبار سره هم او د وطي په اعتبار سره هم. او په شهوت سره مچول وغيره هم د وطي په حكم كي دي، نو كه ديو چا په ملكيت كي دوې داسي مينځي وي كوم چي سره خوندي وي او مالک هغوی دواړه په شهوت سره مچي كړي، نو اوس مالک د هغوی ترمينځ جمع كونكى سو. لهذا اوس مالک نه د هغوی يوې سره وطي كولای سي او نه يې په شهوت سره مچولای او مسه كولای سي او نه د يوې فرج ته په شهوت سره كتلای سي، ها! كه چيري تر دې وروسته مالک له هغوی څخه يوه مينځه بل چا ته وركړي يعني بل څوک يې د فرج مالک كړي، يا يوه مينځه بل چا ته په نكاح وركړي يا يوه آزاده كړي، نو بيا د بلي يوې (يعني د هغې د خور) سره وطي او دواعي د وطي كول ورته جائز دي.

**يادونه**: او كه مالک فقط يوه مچ كړي نو فقط د هغې سره وطي جائز دي، نه د بلي سره، همدارنګه كه مچه په شهوت سره نه وي، نو دا د نه مچولو په درجه كي ده.

**وأصل هذا إلخ**: په دې سره د مذكوره د مسئلي دليل بيانوي چي د الله تعالیٰ دا فرمان ﴿وأن تجمعوا بين الأختين﴾ مطلق دی چي په هغه كي د دوو خوندو سره نكاح كول هم شامل دي او د دوې مملوكه خوندي په وطي كي جمع كول هم پكښي داخل دي.

ولا يعارض إلخ: پر پورتني دليل يو اعتراض واردیږي چي د قرآن کريم په يو بل آيت ﴿فَمَا مَلَكَتْ أَيْمَانُكُمْ﴾ کي عموم دی چي برابره ده تاسي د هرڅومره مينځو مالکان ياست د هغوی سره وطي وغيره کول حلال دي، لهذا په دې دوو آيتونو کي تعارض راغلی، په اول سره حرمت او په دويم سره حلت ثابتيږي؟، د جواب حاصل دا دی چي تعارض په دوو برابرو شيانو کي راځي او دلته برابري نسته ځکه "و أن تجمعوا إلخ" مُحرِّم دی او دا بل آيت "أو ما ملكت إلخ" مُبيح دی او اُصول دا دی چي محرم لره پر مبيح ترجيح حاصله ده، نو ځکه دلته به هم محرم او جانب د حرمت لره ترجيح وي او جمع بين الأختين به صحيح نه وي.

خلاصه د کلام دا چي په آيت سره ثابته سوه چي په نکاح کي دوو خوندي سره جمع کول حرام دي، نو همدغسي په ملکيت والا وطي کي دوو خوندي سره جمع کول هم حرام دي.

وكذا لايجوز إلخ: څرنګه چي په قرآن کي مطلقاً له جمع بين الأختين څخه منع سوې ده، لهذا څرنګه چي په وطي کي دوو خوندي سره جمع کول حرام دي، همداسي د آيت د اطلاق په وجه په دواعي د وطي کي هم دوو خوندي سره جمع کول حرام دي؛ ځکه د وطي دواعي د وطي په درجه کي دي چي تفصيل يې مخکي تېر سوی دی، نو مچه اخيستل د وطي په درجه کي سوه، او دا معلومه خبره ده چي که مالک د دواړو خوندو مينځو سره وطي وکړي نو همدا حکم به يې وي چي تر دې وروسته هغه نه د يوې سره وطي کولای سي او نه دواعي د وطي کولای سي (ځکه چي په وطي سره هغه جامع بين الأختين وګرځېدی)، نو د دواړو تر مچولو وروسته به هم داغه حکم وي چي اوس د دواړو سره وطي او دواعي د وطي حرام دي.

خو که تر دې وروسته مالک له هغوی څخه يوه مينځه د بل چا په ملکيت کي ورکړي يا يې بل چا ته په نکاح ورکړي يا يې آزاده کړي، نو بيا د بلي يوې (يعني د هغې د خور) سره وطي کول حلال او جائز دي، ځکه کله چي اوس بل چا ته د ورکولو وغيره په وجه يوه مينځه د مالک لپاره حرامه سوه، نو اوس د بلي يوې سره د وطي کولو په وجه هغه جامع بين الأختين نه ګرځي؛ ځکه چي د هغې خور د ده له ملکيته ووتله او ورته حرامه سوه.

## د پورتني مسئلې نور وضاحت او تفصيل

وَقَوْلُهُ: بِمِلْكٍ او [په متن کي] د امام محمد رَحِمَهُ الله دا قول: بِمِلْكٍ [چي بل څوک د مينځي د فرج مالک جوړ کړي په ملکيت سره] أَرَادَ بِهِ مِلْكَ يَمِينٍ په دې سره هغه د ملک يمين اراده کړې ده [يعني له دې ملک څخه ملک يمين مراد دی] فَيَنْتَظِمُ التَّمْلِيكُ بِسَائِرِ أَسْبَابِهِ نو دا به د تمليک [مالک جوړولو] ټولو

اسبابو لره شامل وي بَيْعًا أَوْ غَيْرَهُ هغه که بيع وي [يعني په بيع سره يې مالک جوړ کړي] يا له بيع څخه نور اسباب [لکه هبه. وصيت او داسي نور] وَتَمْلِيكُ الشِّقْصِ فِيْهِ كَتَمْلِيكِ الْكُلِّ او [د مينځي] د يوې حصې مالک جوړول په دې باب کې د ټولې [مينځي] د مالک جوړولو په څېر دي لِأَنَّ الْوَطْءَ يَحْرُمُ بِهِ ځکه د دې [بعضي حصې د تمليک] په وجه وطي حراميږي وَكَذَا إِعْتَاقُ الْبَعْضِ مِنْ إِحْدَاهُمَا كَإِعْتَاقِ كُلِّهَا او همدارنګه له دوی دواړو [خوندو مينځو] څخه د يوې څه حصه آزادول د ټولي مينځي د آزادولو په څېر دي وَكَذَا الْكِتَابَةُ كَالْإِعْتَاقِ فِي هٰذَا او همدارنګه په دې باب کې مکاتبه جوړول د آزادولو په څېر دي لِثُبُوتِ حُرْمَةِ الْوَطْءِ بِذٰلِكَ كُلِّهِ ځکه چي په دې ټولو سره د وطي حرمت ثابتيږي وَبِرَهْنِ إِحْدَاهُمَا وَإِجَارَتِهَا وَتَدْبِيرِهَا لَا تَحِلُّ الْأُخْرٰى او له دوی څخه يوه مينځه په رهن کي په ورکولو سره يا په اجارتا ورکولو سره يا د يوې په مدبّره جوړولو سره بله يوه [مالک لره] نه حلاليږي لِأَنَّهَا لَا تَخْرُجُ بِهَا عَنْ مِلْكِهِ ځکه د دې افعالو په وجه هغه مينځه د مالک له ملکيت نه وځي وَقَوْلُهُ: أَوْ نِكَاحٍ او د امام محمد رَحِمَهُ الله دا قول: أَوْ نِكَاحٍ [چي يا بل چا ته يې په نکاح ورکړي] أَرَادَ بِهِ النِّكَاحَ الصَّحِيحَ په دې سره هغه د صحيح نکاح اراده کړې ده أَمَّا إِذَا زَوَّجَ إِحْدَاهُمَا نِكَاحًا فَاسِدًا خو که مالک له دوی څخه يوه په نکاحِ فاسد سره په نکاح ورکړي لَا يُبَاحُ لَهُ وَطْءُ الْأُخْرٰى نو ده ته د هغه بلي يوې سره وطي کول نه روا کيږي إِلَّا أَنْ يَدْخُلَ الزَّوْجُ بِهَا فِيْهِ مګر دا چي خاوند په دې نکاح فاسد کي په هغې دخول وکړي [وطي ور سره وکړي، نو بيا مالک ته د هغه بلي يوې سره وطي کول روا کيږي] لِأَنَّهُ يَجِبُ الْعِدَّةُ عَلَيْهَا ځکه چي پر هغې [مدخول بها] عده واجبيږي وَالْعِدَّةُ كَالنِّكَاحِ الصَّحِيحِ فِي التَّحْرِيمِ او د تحريم په باب کي عده د نکاحِ صحيح په څېر ده وَلَوْ وَطِئَ إِحْدَاهُمَا او که مالک په دوی کي د يوې سره وطي کړې وي حَلَّ لَهُ وَطْءُ الْمَوْطُوْءَةِ دُوْنَ الْأُخْرٰى نو هغه ته د دې وطي کړل سوي مينځي سره وطي کول روا دي. نه د هغه بلي يوې سره لِأَنَّهُ يَصِيرُ جَامِعًا بِوَطْءِ الْأُخْرٰى لَا بِوَطْءِ الْمَوْطُوْءَةِ ځکه چي د هغه بلي يوې په وطي کولو سره مالک [د دوو خوندو ترمينځ] جمع کونکی ګرځي، نه د موطوئه په وطي کولو سره وَكُلُّ امْرَأَتَيْنِ لَا يَجُوْزُ الْجَمْعُ بَيْنَهُمَا نِكَاحًا او هر داسي دوې مينځي چي په نکاح کي د

هغوی جمع کول جائز نه وي فِيمَا ذَكَرْنَاهُ بِمَنْزِلَةِ الْأُخْتَيْنِ هغوی په دې ټولو صورتونو کې کوم چې مونږ ذکر کړل د دوو خوندو په درجه کې دي.

**اللغات**: ﴿ملك يمين﴾ پر غلام يا مينځې د سړي ملکيت ثابتېدل (يعني د غلام او مينځې مالک کېدل)، چې دې ته ملک رقبه هم وايي، ﴿تمليك﴾ مالک جوړول، مالک ګرځول، په ملکيت کې ورکول.

**تشريح**: له دې ځايه صاحب د هدايې په متن کې د امام محمد رَحِمَهُ الله د قول "بِمِلْكٍ" مراد بيانوي، چې د دې مراد او مطلب دا دی چې بل څوک د دې مينځې مالک جوړ کړي چې دې ته ملک يمين وايي. نو د ملک (مالک کېدو) او تمليک چې څومره هم اسباب دي، له هغوی څخه چې کومه طريقه هم اختيار کړل سي ټوله سره برابر دي، يعني برابره ده مينځه پر دې بل چا خرڅه کړی سي، يا په هبه يا صدقه کې ورکړل سي او داسي نور.

وتمليك الشق إلخ: او تاسي ته به معلومه وي چې کومه مينځه د دوو کسانو تر مينځ مشترکه وي. نو په دوی کې يوه لره هم د هغې سره وطي کول روا نه دي. لهذا که دلته مالک له دغه دوو خوندو مينځو څخه د يوې بعضي حصه د بل چا په ملکيت کې ورکړي، نو څرنګه چې اوس هغه مينځه پر مالک حرامه سوه. نو ځکه اوس د هغې د خور سره وطي او دواعي د وطي کول حلال دي. همدارنګه که د يوې بعضي حصه آزاده کړي. نو هم يې د بلې خور سره وطي او دواعي حلال دي، همدارنګه که يوه مکاتبه جوړه کړي، نو هم دغه حکم دی؛ ځکه په دې ټولو صورتونو کې حرمت ثابتيږي او کله چې حرمت ثابت سو. نو د هغې د خور سره په وطي کولو سره جمع بين الأختين نه لازميږي، ځکه چې هغه د مالک له ملکيته ووتله.

وبرهن إحداهما إلخ: يعني که مالک له دواړو خوندو مينځو څخه يوه مينځه بل چا ته په رهن (ګروي) کې ورکړي. نو څرنګه چې په دې سره دا مرهونه مينځه د مالک له ملکيته نه وځي، نو ځکه اوس د هغې خور ورته حلاله نه ده. همدارنګه که يوه مينځه په اجاره ورکړي يا يې مدبّره وګرځوي. نو هم داغه حکم دی چې په دې سره هغه د مالک له ملکيت نه وځي، لهذا د هغې د خور سره وطي کول حلال نه دي.

وقوله أو نكاح إلخ: په متن کې چې د امام محمد رَحِمَهُ الله دا قول ذکر سوی دی "أَوْ نِكَاحٍ" (چې يا مينځه بل چا ته په نکاح ورکړي)، له دې څخه مراد نکاح صحيح ده. لهذا که مالک د يوې مينځې نکاح د بل چا سره وکړي خو هغه نکاح فاسد وي. نو په دې صورت کې هم مالک ته د هغې د خور سره وطي کول روا او حلال نه دي. خو که خاوند نه د دې نکاح فاسد کې د هغې سره وطي وکړي او دخول په وکړي. نو اوس مالک ته د هغې د خور سره وطي کول روا نه دي؛ ځکه د دخول په وجه پر هغې عده واجب سوه، او کله چې عده واجب سوه، نو معتده (عده تېرونکې) پر خپل مالک حرامه سوه او کله چې حرامه سوه. نو اوس د هغې د خور سره وطي کول روا سوه. په بله وينا دا چې څرنګه په نکاح صحيح سره د مالک لپاره حرمت ثابتيږي. همداسي په عده سره هم حرمت ثابتيږي.

ولو وطئ إلخ: او که مالک د يوې سره وطي کړې وي نو بس د هغې سره دي وطي کوي. دا بلې ته دي نه ورنږدې کيږي. ځکه چې جمع بين الأختين هغه وخت لازميږي کله چې دا بلې ته هم ورنږدې سي وطي ور سره وکړي.

وكل امرأة إلخ: فرمايي هر داسي دوې ښځې چې په نکاح کې د هغوی جمع کول جائز نه وي. داسي دوې مينځې هم په وطي کې جمع کول جائز نه دي او نه په دواعي د وطي کې. مثلاً دوې داسي مينځې چې سره خاله او خورزه وي يا دوې داسي مينځې چې سره امه او وريره وي. د دوی احکام هم د جمع بين الأختين په څېر دي.

## د سړي خوله وغيره مچول او معانقه کول څنګه دي؟(حکم او تفصيل)

قَالَ: وَيُكْرَهُ أَنْ يُقَبِّلَ الرَّجُلُ فَمَ الرَّجُلِ أَوْ يَدَهُ أَوْ شَيْئًا مِنْهُ فرمايي: او مکروه دي دا چې سړی مچ کړي د سړي خوله يا د هغه لاس يا د هغه د بدن يوه حصه أَوْ يُعَانِقَهُ يا د هغه سره معانقه وکړي وَذَكَرَ الطَّحَاوِيُّ أَنَّ هٰذَا قَوْلُ أَبِي حَنِيفَةَ وَمُحَمَّدٍ او امام طحاوي رَحِمَهُ الله ذکر کړي دي چې دا د طرفينو رَحِمَهُمَا الله قول دی وَقَالَ أَبُو يُوسُفَ*: لَا بَأْسَ بِالتَّقْبِيلِ وَالْمُعَانَقَةِ او امام ابو يوسف رَحِمَهُ الله فرمايي: چې په مچولو او معانقه کولو کې څه پروا نسته لِمَا رُوِيَ[1] أَنَّ النَّبِيَّ عَلَيْهِ الصَّلَاةُ وَالسَّلَامُ عَانَقَ جَعْفَرًا رضي الله عنه حِينَ قَدِمَ مِنَ الْحَبَشَةِ وَقَبَّلَ بَيْنَ عَيْنَيْهِ ځکه روايت سوی دی چې نبي کريم ﷺ د حضرت جعفر رضي الله عنه سره معانقه وکړه کله چې هغه له حبشې څخه راغلی او هغه يې د سترګو تر مينځ مچ کړی وَلَهُمَا مَا رُوِيَ[2] أَنَّ النَّبِيَّ عَلَيْهِ الصَّلَاةُ وَالسَّلَامُ نَهَى عَنِ الْمُكَامَعَةِ وَهِيَ الْمُعَانَقَةُ وَعَنِ الْمُكَاعَمَةِ وَهِيَ التَّقْبِيلُ او د طرفينو دليل دا روايت دی چې نبي کريم ﷺ له مکامعه

---

* القول الراجح (ونص الخلاف): قال المصنف (صاحب الهداية) رحمه الله في آخر العبارة: الخلاف في المعانقة في إزار واحد. أما إذا كان عليه قميص أو جبة فلا بأس بها بالإجماع، وهو الصحيح. وفي العناية: ذكر التوفيق بين الأحاديث بهذا الطريق. قال العلامة أكمل الدين البابرتي [illegible] من هذه الأحاديث، فقال: المكروه من المعانقة ما كان على وجه الشهوة، وعبر عنه المصنف رحمه الله بقوله في إزار [illegible] [illegible] فأما على وجه البر والكرامة إذا كان عليه قميص أو جبة فلا بأس (العناية ج:٨، ص:٤٨٥). وقال صاحب [illegible] [illegible] عنه عن الإزار، فإن كان عليهما قميص أو جبة فلا بأس بالإجماع (البحر ج [illegible] ص:٣٦٤) [illegible] [illegible] ٣٠٣]

[1] تخريج: أخرجه الحاكم في مستدركه في مناقب جعفر ابن أبي طالب، حديث رقم ٤٩٢١.

[2] تخريج: أخرجه [illegible] في كتاب [illegible] باب [illegible] حديث رقم ٤٠٢٠.

څخه منع کړې ده او هغه معانقه کول دي او له مکاعمه څخه يې منع کړې ده او هغه مچول دي وَمَا رَوَاهُ مَحْمُولٌ عَلٰى مَا قَبْلَ التَّحْرِيْمِ او کوم چي امام ابو يوسف رَحِمَهُ الله روايت کړی دی هغه له تحريم څخه پر مخکيني حالت محمول دي قَالُوْا: الْخِلَافُ فِي الْمُعَانَقَةِ فِيْ إِزَارٍ وَاحِدٍ بيا فقهاؤ ويلي دي: چي اختلاف په هغه معانقه کي دی چي په يوه لنګ کي وسي أَمَّا إِذَا كَانَ عَلَيْهِ قَمِيْصٌ أَوْ جُبَّةٌ لېکن کله چي د معانقه کونکي پر بدن کميس يا چپنه [هم] وي فَلَا بَأْسَ بِهَا بِالْإِجْمَاعِ نو [بيا] بالاتفاق په معانقه کولو کلي څه پروا نسته وَهُوَ الصَّحِيْحُ او همدا صحيح ده قَالَ: وَلَا بَأْسَ بِالْمُصَافَحَةِ فرمايي: او په مصافحه کولو کي څه حرج نسته لِأَنَّهُ هُوَ الْمُتَوَارَثُ ځکه چي همدا مصافحه [له عهد نبوي څخه ترننه پوري] متوارث ده وَقَالَ عَلَيْهِ الصَّلَاةُ وَالسَّلَامُ[3]: مَنْ صَافَحَ أَخَاهُ الْمُسْلِمَ وَحَرَّكَ يَدَهُ او نبي کريم ﷺ فرمايلي دي: څوک چي د خپل مسلمان ورور سره مصافحه وکړي او د هغه لاس وښوروري تَنَاثَرَتْ ذُنُوْبُهُ نو [په دې سره] د هغه ګناهونه ورژيږي [توی سي].

**اللغات**: ﴿معانقة﴾ د مفاعلې د باب مصدر دی: ترغاړي کېدل، يو بل سره غاړه ملاوول. ﴿مصافحه﴾ مخکني صيغه ده: يو بل ته لاس ورکول، روغبړ. مصافحه په اصل کي دې ته وايي چي خپل مخ د بل يوه د مخ سره برابر کړی سي او د لاس ورغوي د هغه د لاس د ورغوي سره ملاو کړل سي. فقط ګوتي نيول مصافحه نه ده. په خلاف د روافضو. ﴿مُتَوَارَث﴾ د تفاعل له باب څخه د مفعول صيغه ده: يو بل ته په ميراث کي پاته سوی. يو بل ته په ميراث کي حاصل سوی. ﴿تناثرت﴾ د تفاعل له باب څخه د واحد مؤنث غائب ماضي صيغه ده: رژېدل. (توېدل).

**تشريح**: **صورت د مسئلې**: دا دی چي د طرفينو رَحِمَهُمَا الله په نېز يوه سړي ته د بل سړي خوله، لاس، يا يې د بدن بل اندام مچول او د هغه سره معانقه کول مکروه دي، خو د امام بو يوسف رَحِمَهُ الله په نېز دا مچول او معانقه دواړه جائز دي.

**د امام ابو يوسف دليل**: دا حديث دی چي کله حضرت جعفر طيّار رَضِيَ اللهُ عَنْهُ له حبشې څخه واپس راغلی نو نبي کريم ﷺ د هغه سره معانقه وکړه او د دواړو سترګو پر مېنځ والا حصه يې مچ هم کړی. نو له دې څخه د دواړو جواز ثابت سو.

---

[3] تخريج: أخرجه الطبراني في معجمه الوسط، انظر للتفصيل [نصب الراية ۴/۲۵۹].

**د طرفینو دلیل:** هغه دریم حدیث دی چې په هغه کې له معانقه او مچولو څخه منع سوې ده. او طرفینو رَحِمَهُمَا الله د امام ابو یوسف رَحِمَهُ الله د حدیث دا جواب ورکړی دی چې دغه قصه له تحریم څخه مخکې پېښه سوې ده او په مذکوره حدیث سره منسوخه ده.

**ثم قالوا إلخ:** لیکن مشائخو دلته دا تحقیق کړی دی چې دا اختلاف په هغه صورت کې دی کله چې په یوازې لنګ کې د سړي سره معانقه وسي. لیکن که د پاسه یې کمیس یا چپنه وغیره هم اغوستې وي. نو بیا بالاتفاق معانقه جائز ده. صاحب د هدایې رَحِمَهُ الله همدغه تحقیق صحیح ګرځولی دی.

**ولا بأس بالمصافحة إلخ:** فرمایي چې په مصافحه کولو کې څه حرج او پروا نشته، ځکه همدا په مسلمانانو کې رواج دی او بل په حدیث کې د ددې اجازت او فضیلت وارد سوی دی. (او سنت دا ده چې مصافحه په دواړو لاسو سره وسي او د ملاقات پر مهال تر سلام وروسته وسي او په مینځه کې یوه کپړه وغیره حائل نه وي. او په مصافحه کې دې بته ګوته هم نیسي ځکه په هغې کې یو رګ دی چې د هغه په کښېکښل کېدو سره محبت زیاتیږي).

**یادونه (۱):** که یو نارینه له بل نارینه څخه یا یوه ښځه له بلې ښځې څخه د ملاقات یا رخصتۍ پر مهال مچه واخلي. که چیرې دا په شهوت سره وي، نو مکروه تحریمي دی او که د اکرام او احترام په غرض سره وي. نو جائز دي. لکه د یو فقیه مخ مچول. (در مختار شامي ج: ۵، ص: ۲۴۴)

**یادونه (۲):** د یو عالم او نېک صالح کس لاس مچول د تبرک په توګه جائز دي. همدارنګه د دیندار حاکم او عادل باچا مخ مچول جائز دي او بعضې حضراتو سنت ګرځولي دي. شرنبلالي رَحِمَهُ الله ویلي دي چې د احادیثو مفاد سنتوالی یا نُدب دی چې ودې طرف ته علامه عیني رَحِمَهُ الله اشاره کړې ده. او غیر عادل او غیر عالم کس مچول جائز نه دي او په حواله د مجتبیٰ او محیط که چیرې مقصود د هغه د اسلام تعظیم او اکرام کول وي. نو جائز دي او که مقصود حصول د دنیا وي. نو مکروه دي. (درمختار شامي ج: ۵، ص: ۲۴۵)

**یادونه (۳):** د داسې کس په احترام کې ولاړېدل مستحب دي کوم چې د تعظیم او احترام قابل وي (پورتنی حواله) او د خپل ځان لپاره دا خوښول مکروه دي او که له خوښې څخه بغیر خلک ورته ولاړ سي، نو مکروه نه دي. (مجمع الأنهر)

قد تم بعون الله وتوفيقه المجلّد الأول من كتاب الشفعة، ويتلوه المجلّد الثاني مبتدئًا بـ «فصل في البيع» من «كتاب الكراهية»، نلتمس من جميع القرّاء أن يدعوا الشارحه ولوالديه

ولأساتذته ولمن قام بنشره وتوزيعه، والله المُوفّق والمُعين.

ربنا تقبل منا إنك أنت السمع العليم، وتب علينا إنك أنت التواب الرحيم